٩
تفسیر
حکمۃ القرآن
تالیف
فضیلۃ الشیخ ابو محمد امین اللہ البشاوری
حفظہ اللہ تعالیٰ
جمع وترتیب : ابوزهیر سیف الله
المکتبۃ المحمدیۃ
مینگل مارکیٹ گنج - پشاور Mob: 0301-8828402
Scanned by CamScanner

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ○

| آیاتها (۷۳) | (۲۷) سورة النمل مكية (٤٨) | ركوعاتها (۷) |
|---|---|---|

سورتِ نمل مکي دے، په دے کښې درے نوي آيتونه او اووه رکوع دي

## تفسير سورة النمل

**نوم:** په (۱۸) آيت کښې [اَلنَّمْلُ] لفظ راغلے، چه ددے معنیٰ ده میږی۔ همدا لفظ ددے سورت نوم کیښودے شوے۔ صاحب د محاسن التنزیل د مفسر مهایمیؒ په حواله لیکی چه په دے آیت کښې د میږانو خپل مینځ کښې خبرے اترے نقل شوی، چه دے نه ثابتیږی چه حیوانانو ته هم دا خبره معلومه ده چه انبیاء کرام علیهم السلام او د دوئ ملګری قصدًا چاته تکلیف رسول نهٔ برداشت کوی۔ او هر کله چه دوئ دومره اعلیٰ او اُوچت انسانان دی په دوئ باندے ایمان راوړل او په دوئ اعتماد کول عقلی طور سره واجب دی۔ په همدے مناسبت سره ددے سورت نوم [اَلنَّمْلُ] کیښودے شو۔ دویم نوم ئے سورة سلیمان علیه السلام دے ځکه چه د سلیمان علیه السلام ناشنا واقعات پکښې ذکر دی۔

او پدے سورت کښې عَجَائِبُ الْمَخْلُوْقَات او عجائب واقعات هم ذکر دی لکه د میږانو قصه، د مارغانو قصه، د دَابَّةُ الْاَرْض تذکره، د بلقیس بادشاهی، د ﴿ اَلَّذِیْ عِنْدَهٗ عِلْمٌ مِّنَ الْكِتَابِ﴾ والا ذکر راغلے دے۔

### مناسبت

۱- مخکښې ئے وویل چه د الله نه سوئ بل چاته رامدد شه مهٔ وایئ (فَلَا تَدْعُ مَعَ اللهِ) نو دلته وائی چه انبیاء علیهم السلام په غیبو نهٔ دی پوهه نو ځکه دوی ته رامدد شه مهٔ وایئ۔

۲- مخکښې سورت کښې د مؤمنانو د نجات او د کافرانو د هلاکت خبره ذکر شوه نو پدے سورت کښې الله تعالیٰ د علم بیان کوی چه چا سره علم وی، هغهٔ ته الله تعالیٰ نجات ورکوی چه تفصیل ئے روستو راځی۔

۳- مخکښې سورت کښې اظهار د غضب او د نعمتِ الهیه وو نو پدے سورت کښې اظهار د علم او حکمت د الله تعالیٰ دے په مخلوق کښې.

٤- په هغه سورت کښې نقلي دلیلونه وو په توحید باندے نو پدے سورت کښې دوه علتونه ذکر کوی دپاره د رد د شرك.

## موضوع د سورت

۱- زمونږ مشائخ وائی چه پدے سورت کښې اثبات د توحید دے په دوه طریقو سره، یو دا چه نفی د علم غیب د غیر الله نه. یعنی چه د مخلوق سره د غیبو علم نشته، غیبدان صرف الله تعالیٰ دے، او دا راځی په آیت (٦٥) کښې. او دویم دا چه ټول بندګان بزرګان په سلامتیا او عافیت کښې الله تعالیٰ ته محتاج دی. (احسن الکلام)

۲- لیکن ظاهر دا ده چه پدے سورت کښې د علم موضوع ده. یعنی تَرْغِیْبُ اِلَی الْعِلْمِ وَفَوَائِدُ الْعِلْمِ وَاَضْرَارُ الْجَهْلِ) یعنی علم ته ترغیب ورکوی او د علم فائدے او د جهالت ضررونه بیانوی، وګوره مشرك جاهل دے چه د بی علمئ د وجه نه په شرك کښې واقع دے، او د میږئ نه هم لوی جاهلان دی ځکه چه میږئ خپل قوم د علم د وجه نه بچ کړو او ابوجهل وغیره خپل قوم تباه کړو. هُدهُد (ملا چرګك) هم په شرك باندے خفګان کړیدے. بلقیس یوه زنانه ده لیکن ځومره هوښیارتیا ورسره وه چه د سلیمان ﷺ تابعداره شوه او خپل قوم ئے هم د هلاکت نه بچ کړو، او اسلام ئے راوړو. نو علم انسان لره ایمان او اسلام ته راکاږی او په کافرانو کښې علم نشته، پدے وجه ئے نۀ خپل ځان ته هدایت وکړو او نۀ ئے خپل قوم ته وکړو. علم والا خلك په خبره کښې سوچ کوی نو هدایت ته زر راځی. پدے وجه پدے سورت کښې به د علم لفظ زیات ذکر کیږی.

لکه په اول کښې یُوْقِنُوْنَ راغلے دے او یقین علم ته وائی. او یَعْمَهُوْنَ (د زړهٔړوند والی ته وائی) او حَکِیْمٍ عَلِیْمٍ. لفظ ذکر دے، (بِخَبَرٍ) (یعنی واقعه) لفظ ذکر دے، او پدے کښې معنیٰ د علم ده. او په ﴿وَاسْتَیْقَنَتْهَا اَنْفُسُهُمْ﴾ کښې معنیٰ د علم ده. او ﴿وَلَقَدْ آتَیْنَا دَاوٗدَ وَسُلَیْمَانَ عِلْمًا﴾ ﴿عُلِّمْنَا مَنْطِقَ الطَّیْرِ﴾ او په آخر کښې هم دی ﴿اَکَذَّبْتُمْ بِاٰیٰتِیْ وَلَمْ تُحِیْطُوْا بِهَا عِلْمًا﴾ دا اجمال دے او تفصیل به ئے روستو راځی.

| طٰسٓ ۚ تِلْكَ اٰیٰتُ الْقُرْاٰنِ وَکِتٰبٍ مُّبِیْنٍ ﴿۱﴾ هُدًی |
|---|
| ددے حروفو په مطلب الله پو هه دے. دا آیتونه د قرآن او د کتاب ښکاره دی. هدایت دے |

| وَبُشْرٰی لِلْمُؤْمِنِیْنَ ﴿۲﴾ الَّذِیْنَ یُقِیْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَیُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ |
| --- |
| او زیرے دیے دپاره د مؤمنانو۔ هغه کسان دي چه پابندي کوي د مانځه او ورکوي زکاة |
| وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ هُمْ یُوْقِنُوْنَ ﴿۳﴾ |
| او دوي په آخرت باندے هم دوي یقین کوي۔ |

**تفسیر**: طٰسٓ حروفِ مقطعه دي، او دلته ئے کم ذکر کړل ځکه چه واقعات پکښې د مخکښې په نسبت کم دي۔ او پدے کښې د قرآن کریم کمال او اعجاز ته اشاره ده۔

او کیدے شي چه په (ط) کښې اشاره وي هغه علم او حکمتونو د موسیٰ علیه السلام ته چه په طور کښې ئے هغه ته ورکړي وو او په (س) کښې اشاره وي سقوط د فرعون ته چه غیر شرعي سیاست او حکومت ئے کولو، او دارنګه په (س) کښې اشاره وي حِکمتونو د سلیمان علیه السلام ته چه هغه شرعي سیاست کولو۔ او میم ئے ذکر نکړو ځکه چه د محمد ﷺ احوال پدے سورت کښې اختصار سره ذکر دي۔

او (طس) په ترکیب کښې مبتداء ده او خبر ئے روستو (تِلْكَ) دے۔ یعنی طس چه دے دا آیتونه د کتاب دي۔

تِلْكَ: دا اشاره ده همدے سورت ته۔

په دے آیتونو کښې د (قرآني آیتونو) درے صفات بیان شوي: اولنے صفت دادے چه خلق به ددے آیتونو تلاوت کوي، دا قرآن دے یعنی د لوستو لائق دے۔ دویم صفت دادے چه دا قرآن هم د نورو آسماني کتابونو پشان یو کتاب دے، چه الله دا په خپل رسول محمد ﷺ باندے نازل کړے۔ او دریم صفت دادے چه دا قرآن یو واضح کتاب دے، چه دهٔ د توحید عقیده، عبادات او د شریعت نور احکام صفا صفا بیان کړي۔

قرآن د خپلو پورتنو صفتونو سره هغه مؤمنانو دپاره د هدایت کتاب او د رحمت باعث او د الله د رضا سبب دے، چه هغویٔ د ایمان راوړو نه پس ښهٔ عملونه کوي، د مانځه پابندي کوي، زکاة ورکوي، او په آخرت یقین لري۔ معلومه شوه چه کوم خلق د ایمان او د عمل د دولت نه محروم دي، هغویٔ ته په دے قرآن سره فائده نهٔ رسیږي۔

او پدے کښې اشاره ده چه که تاسو علم حاصلویٔ نو هغه په قرآن کریم کښې دے۔ او څوك چه د قرآن نه مخ واړوي، هغهٔ سره به حقیقي او اصلي علمونه نهٔ وي لکه دا

اشارات به روستو هم راشي.

يُوْقِنُوْنَ : يقين څه ته وائي : [اَلْعِلْمُ التَّامُّ الْوَاصِلُ اِلَى الْقَلْبِ الدَّاعِيُ اِلَى الْعَمَلِ] هغه کامل علم دے چه زړه ته ورسيږي او انسان عمل ته راکاږي.

| |
|---|
| اِنَّ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ زَيَّنَّا لَهُمْ اَعْمَالَهُمْ |
| يقيناً هغه کسان چه ايمان نه راوړي په آخرت ښائسته کړيدي مونږ دوی ته (بد) عملونه د دوی |
| فَهُمْ يَعْمَهُوْنَ ﴿٤﴾ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ لَهُمْ سُوْٓءُ الْعَذَابِ وَهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ |
| نو دوی پريشانه دی. دا هغه کسان دی چه دوی لره بد عذاب دے او دوی په آخرت کښې |
| هُمُ الْاَخْسَرُوْنَ ﴿٥﴾ وَاِنَّكَ لَتُلَقَّى الْقُرْاٰنَ مِنْ لَّدُنْ حَكِيْمٍ |
| هم دوی تاوان والا دی. او يقيناً تا ته خامخا درکولے شی قرآن د طرف د حکمتونو والا |
| عَلِيْمٍ ﴿٦﴾ اِذْ قَالَ مُوْسٰى لِاَهْلِهٖٓ اِنِّيْٓ اٰنَسْتُ |
| پوهه ذات نه. کله چه اُووئيل موسیٰ (عليه السلام) خپلے کور والا ته يقيناً ما ليدلے دے |
| نَارًا ؕ سَاٰتِيْكُمْ مِّنْهَا بِخَبَرٍ اَوْ اٰتِيْكُمْ بِشِهَابٍ قَبَسٍ |
| اُور، زر دے چه رابه وړم تاسو ته د هغے نه څه خبر يا به راوړم تاسو ته لمبه بله |
| لَّعَلَّكُمْ تَصْطَلُوْنَ ﴿٧﴾ |
| دے دپاره چه تاسو گرم شئ. |

**تفسير:** آخرت باندے ايمان لرل د تمامو ښيگړو جرړه ده، او ددے نه انکار کول د شر او فساد بنياد دے. څوك چه د آخرت نه منکر وی الله تعالیٰ ددهٔ بد کارونه ددهٔ په نظر کښې ښائسته کوی. ددهٔ د زړهٔ نه د جزاء او سزا ويره اوځی، او دا په خواهشاتو او گناهونو کښې دوب شی بيا ددهٔ حالت داسے شی چه دا په همدے گناهونو کښې غوپے وهی، او په دهٔ کښې دننه د خير او شر تميز باقی پاتے نشی. زړهٔ ئے روند شی ځکه چه عَمَه د زړهٔ روند والی ته او د رائے کمزوروالی ته وائی چه انسان بيا حيران او پريشانه وی، د ځيزونو په عيبونو نهٔ پوهيږی، حق طرفته ئے رايه نهٔ جوړيږی.

نو ددے آيت نه دا ثابته شوه چه علم والا هغه خلك دی چه آخرت منی او څوك چه

آخرت نۀ منی، دا لوی جاهل دے ځکه چه دۀ پدے تنکه دنیا باندے نظر لګی او د فراخه آخرت نه غافل دے۔ نو په قرآن او په آخرت باندے علم راوستل د علم مرکز دے۔

اَعۡمَالَهُمۡ : ددے اعمالو نه مراد د دوی بد عملونه دی چه دا ورته ښائسته ښکاره شویدی دا د دوی د کفر سزا ده۔ یا ددے نه نیك عملونه مراد دی، او معنیٰ دا ده چه مونږ دوی ته د دنیا او د آخرت نیك عملونه ښائسته ښکاره بیان کړل لیکن دوی هغه قبول نکړل او په سرکشئ کښې اخته شول۔ اول مطلب زجاج بیان کړیدے او ظاهر دے۔

اَلۡاَخۡسَرُوۡنَ: دا خلك دنیا کښې تاوان والا دی لیکن په آخرت کښې به ئے تاوان راښکاره کیږی۔ (سُوۡٓءُ الۡعَذَابِ) کښې د دنیا عذاب ته هم اشاره ده لکه څنګه چه د مکے د کافرانو سره وشو چه د بدر په غزا کښې قتل کړے شو او کوم چه باقی پاتے شو هغه قید کړے شو۔

وَاِنَّكَ لَتُلَقَّى: پدے آیت کښې رسول الله ﷺ ته تاکید کوی په بیانولو د قرآن۔ معنیٰ دا ده چه قرآن تا ته د طرفه د الله تعالیٰ نه راځی او تۀ هغه قبلولے په مضبوطیا سره۔

دارنګه پدے آیت کښې د قرآن کریم او د رسول الله ﷺ رشتینوالی ته اشاره ده، یعنی دا قرآن په تا باندے د الله تعالیٰ له خوا نازل شوے چه د هغۀ هیڅ یو کار د حکمت نه خالی نۀ دے، او هغه په تمامو کارونو باندے ښۀ خبر دے، دے وجے نه ددے قرآن په رشتین والی کښې هیڅ شبهه نشته۔ او دا آیت د هغه عجیب او غریب خبرونو او واقعاتو دپاره یو تمهید دے کوم چه روستو بیانیدونکی دی، یعنی د مکے کافرانو ته دا ښودل مقصد دے چه الله تعالیٰ دا خبرونه نبی کریم ﷺ ته د وحی په ذریعه ښودلی دی، ګنے دا خبرونه دۀ ته د کوم ځای نه معلوم شو۔ او دا ددے خبرے قطعی دلیل دے چه تۀ د الله نبی ئے، او دا قرآن د الله حق کلام دے۔

حَكِيۡمٍ عَلِيۡمٍ : یعنی الله تعالیٰ حکمتونو والا پوهه دے نو کتاب کښې به ئے هم حکمتونه او د علم نه ډکے خبرے وی۔ حکمة کښې خپله علم پروت دے نو جدا ئے ولے ذکر کړو؟ نو پدے کښې اشاره ده عَمَلی علم ته یعنی هغه علم ته چه د عمل د کیفیت سره متعلق وی یعنی د دغه علم په وجه الله تعالیٰ په کارونو کولو کښې حق ته رسیدونکے دے۔

اِذۡ قَالَ مُوۡسٰی: پدے واقعه کښې ډیر فوائد دی (۱) پدے کښې نفی د علم غیب ده۔ (۲) ظاهر دا ده چه دا واقعه د تحقیق الخبر دپاره راوړے شویده یعنی موسیٰ ﷺ ته وګوره

چه هغه نه لاره ورکه شویده نو تحقیق کوی، او بل طرفته د خپل اهل تربیت او رهنمائی کوی نو پدے کښې تشبّه بالانبیاء ده چه اے مشرکانو! تاسو له پکار دی چه د خپلو کشرانو صحیح تربیت او رهنمائی وکړئ او دوی د هلاکت نه بچ کړئ، او بغیر د تحقیق نه تاسو ولے رسول الله ﷺ رد کوئ او ځان هلاکت ته گوزاروئ۔

مطلب: هر کله چه موسیٰ علیه السلام د مدین نه مصر ته تلو دپاره د خپلے ښځے (د شعیب علیه السلام لور) سره روان شو۔ څهٔ وخت چه د شپے په وخت کوه سیناء ته اورسیدهٔ، او د یخنیٔ موسم وو، نو وے لیدل چه د غرهٔ د اړخ نه رنړا راوځی، خپلے ښځے ته ئے ووئیل چه تهٔ دلته پاتے شه، زهٔ هلته ځم او د خلقو نه لاره معلوموم (ځکه چه دویٔ نه لاره ورکه شوے وه) یا د اُور نه لیتکے راوړم دے دپاره چه تاسو د یخنیٔ په دے شپه کښې گرمی حاصله کړئ۔ کله چه هلته اورسیدهٔ نو وے لیدل چه دا خو اُور نهٔ دے بلکه رنړا ده، چه د یوے دیرے زیاتے شنے وُنے نه راخیژی، او ددے رنړا تیزی او د دغه وُنے شینوالے نور هم زیاتیږی، او سر ئے پورته کړو وے کتل چه دا رنړا د آسمان د طرفه راځی او د سترگو د نظره پورے ددے سلسله ولاړه ده۔ بیا آواز راغے چه خیر او برکت دے هغه کس دپاره کوم چه په دے اُور کښې ولاړ دے چه په حقیقت کښې دا د الله نُور دے، او هغه خلقو دپاره هم کوم چه ددے اُور خوا اوشاته دی، یعنی د شام او بیت المقدس د زمکے والو دپاره۔ الله تعالیٰ د سورتِ انبیاء په (۷۱) آیت کښې د شام سرزمین ته برکتناکه وئیلے ده: ﴿ وَنَجَّيْنَاهُ وَلُوطًا إِلَى الْأَرْضِ الَّتِي بَارَكْنَا فِيهَا لِلْعَالَمِينَ ﴾ (اومونږ ابراهیم او لوط بچ کړل او هغه زمکے ته مو روان کړل چه په هغے کښې مونږ د تمام جهان والو دپاره برکت ایخودے وو)۔

بِشِهَابٍ قَبَسٍ: یعنی لمبه د بل ځای نه رانقل شوے، حاصل معنیٰ ئے ده: لمبه بَله۔ نو قبس په معنیٰ د مَقْبُوس سره دے۔ او مقصد په دواړو ذکر کولو کښې دا دے چه رنړا او گرموالے دواړه ملاؤ شی۔

## فوائد الآیة

۱- د موسیٰ علیه السلام سره اهل وعیال وو، او مفسرین لیکی چه دے په تیارهٔ شپه کښې چه یخه یخنی وه او لاره ترے ورکه شوے وه او بی بی ئے د حمل والا وه، پدے حالت کښې د شعیب علیه السلام د کور (مَدْین) نه د خپلے مور او وروڼو ملاقات لپاره مصر ته راروان دے۔

۲- لِأَهْلِهِ: نه معلومه شوه چه ښځه د انسان د اهل نه ده۔ بعض وائی چه ددهٔ سره

اولاد هم وو لیکن ظاهر دا ده چه ددے نه مراد صرف بی بی ده۔
۳- موسیٰ علیه السلام په غیبو نهٔ پو هیدو پدے وجه ئے نور ته نار (اُور) ووئیلو۔
٤- د ښځے سره یواځے سفر کول جائز دی۔
٥- بخبر: دلته ئے د خبر لفظ راوړو ځکه چه د موضوع د سورت سره زیات مناسب دے۔ یعنی خبر د لارے۔
٦- صاحب د فتح البیان وائی چه قصه د موسیٰ علیه السلام یوه ده او الفاظ ئے مختلف راغلی دی، دا دلیل دے چه حدیث په معنیٰ سره نقل کول جائز دی۔ دارنګه نکاح په غیر د لفظ د تزوج نه (په نورو الفاظو) هم جائز ده۔ (فتح البیان٥/١١٥)
تَصۡطَلُوۡنَ: یعنی پدے امید چه تاسو به پرے د یخنیٔ نه ځان ګرم کړئ۔ یعنی دے دپاره چه تاوده شئ۔

| فَلَمَّا جَآءَهَا نُوۡدِیَ اَنۡۢ بُوۡرِكَ |
|---|
| نو هرکله چه راغے هغے ته آواز اُوکړے شو هغه ته چه برکت ورکړے شویدے |
| مَنۡ فِی النَّارِ وَمَنۡ حَوۡلَهَا ؕ وَسُبۡحٰنَ اللّٰهِ رَبِّ الۡعٰلَمِیۡنَ ﴿۸﴾ |
| هغه چا ته چه په (طلب د) اُور کښې دے او پاکی ده الله تعالیٰ لره چه رب د مخلوقاتو دے |
| یٰمُوۡسٰۤی اِنَّهٗۤ اَنَا اللّٰهُ الۡعَزِیۡزُ الۡحَکِیۡمُ ﴿۹﴾ وَاَلۡقِ عَصَاكَ ؕ |
| اے موسیٰ یقیناً شان دا دے زهٔ الله یم غالبه حکمتونو والا۔ او ګوزار کړه امسا خپله |
| فَلَمَّا رَاٰهَا تَهۡتَزُّ کَاَنَّهَا جَآنٌّ وَّلّٰی مُدۡبِرًا |
| نو هرکله ئے چه اُولیده هغه چه خوزیدله ګویا که هغه نرے مار دے (نو) واوړیدو شا کونکے |
| وَّلَمۡ یُعَقِّبۡ ؕ یٰمُوۡسٰی لَا تَخَفۡ ۟ اِنِّیۡ لَا یَخَافُ لَدَیَّ الۡمُرۡسَلُوۡنَ ﴿۱۰﴾ |
| او شا ته ئے نهٔ کتل، اے موسیٰ مهٔ یریږه یقیناً زهٔ چه یم نهٔ یریږی زما په خوا کښې پیغمبران۔ |

**تفسیر**: بُوۡرِكَ: یعنی برکت اچولے شویدے یعنی الله تعالیٰ برکت اچولے دے، او مطلب دا دے چه مونږ تا لره برکات درکړیدی او تهٔ مو پاك کړے ئے او د خپلے پیغمبریٔ دپاره مو غوره کړے ئے۔ (فتح البیان) او دا په اصل کښې د الله تعالیٰ د طرفنه موسیٰ علیه السلام ته سلام او ترحُّب (مَرۡحَبًا وئیل) دی۔

بیا ئے دۀ ته د برکت والا ووېلو؟ وجه دا وه چه دا د خیر طلبګار وو او څوك چه خیر طلب کوی، هغه برکت والا وی، دۀ د خپلے بی بی رهنمائی او خدمت کولو، او په نیکه اراده مصر ته روان دے۔ نو هغه انسان هم مبارك دے چه قرآن او علم طلب کوی۔

مَنْ فِي النَّارِ: یعنی هغه څوك چه په طلب د اُور کښی دے۔ ۲- یا هغه څوك چه په ځای د اُور کښی دے۔ او د نار نه مراد نُور دے لیکن د موسیٰ علیه السلام د ګمان مطابق ئے ورته نار ووئیلو۔ او چا د مَنْ فِي النَّار نه الله تعالیٰ مراد کړیدے لیکن دا خبره ضعیفه ده۔

وَمَنْ حَوْلَهَا: ۱- ددے نه مراد ملائك دی چه دے نُور ته راجمع کړے شوی وو۔ (سدیؒ)
۲- یا ددے نه مراد د طورِ خواؤ شا یعنی د شام او فلسطین زمکه ده۔

وَسُبْحٰنَ اللّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ: چونکه ددے مقام تقاضا داوه چه د الله تعالیٰ ذات د بندګانو سره د هر قِسم تشبیه او مماثلت (یوشان والی) نه پاك وګڼلے شی، او موسیٰ علیه السلام ته دا وښودلے شی چه داسے خبره نۀ ده چه ګنے الله رب العالمین په دے وُنه کښی ناست دے، یا ئے په دے کښی حلول (نزول) کړے، یا یوه ژبه حرکت کوی چه د هغے نه دا آواز راوځی۔ دے وجے نه الله تعالیٰ وفرمایل چه دا رب العالمین چه څۀ غواړی کوی ئے، او هغه د هیڅ مخلوق سره مشابه نۀ دے، هیڅوك د هغۀ احاطه کونکے نشته، هغه یواځے اوبے نیازه دے، او د تمام مخلوقاتو د مماثلت او مشابهت نه بیخی پاك دے۔ یعنی د الله نِدَاء (آواز) او کلام د مخلوق د آواز او کلام سره مشابه نۀ دے۔

اِنَّهٗ اَنَا اللّٰهُ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ: دے نه پس الله موسیٰ علیه السلام له خبر ورکړو چه دا الله دے چه هغۀ سره خبرے کوی، څۀ ملائك، یا بل څۀ مخلوق نشته۔ او کله چه د موسیٰ علیه السلام زړۀ ته سکون ملاؤ شو، نو الله تعالیٰ هغۀ ته ووئیل چه تۀ خپله همسا په زمکه وغورزوه۔ غورزولو سره همسا د یو مار غونته په تیزئ سره منډه کړه۔ موسیٰ علیه السلام دے اَمدو سره سَمدست د ویرے د وجے نه منډه کړه، او شاته ئے نۀ کتل، نو الله تعالیٰ ورته آواز اوکړو چه اے موسیٰ! تۀ یریږه مۀ، پیغمبران زما خواته نۀ یریږی، ځکه چه هغوئ زما په حفاظت کښی وی۔

مفسرین لیکی چه په دے آیت کښی موسیٰ علیه السلام له زیرے ورکړے شوے چه الله تعالیٰ دے خپل نبی او رسول غوره کړے دے، او ددۀ د زړۀ نه ئے ویره اوخکلے ده دے دپاره چه دے چاته د اسلامی دعوت ورکولو دپاره ورځی، هغۀ سره پوره جرأت او په ډاګه خبره وکړے شی۔

او پدے جمله ﴿لَا یَخَافُ لَدَیَّ الْمُرْسَلُوْنَ﴾ کښې رسول الله ﷺ ته هم تسلی ده، ځکه چه هغه باندے به هم د عذابونو ذکر راتللو په وجه ډیره پریشانی راتلله نو الله تعالیٰ تسلی ورکړه چه پیغمبر باندے عذابونه نهٔ راځی۔ پدے وجه ئے (اَلْمُرْسَلُوْنَ) جمعے صیغه راوړه۔

اَلْعَزِیْزُ: کښې اشاره ده چه الله تعالیٰ به موسیٰ علیه السلام ته غلبه او عزت ورکوی۔

اَلْحَکِیْمُ : کښې اشاره ده چه په موسیٰ علیه السلام ئے اول کښې قسم قسم مصیبتونه راوستل او په آخر کښې کامیابی ورکول د الله په حکمت بناء دی۔

| |
|---|
| اِلَّا مَنْ ظَلَمَ ثُمَّ بَدَّلَ حُسْنًا بَعْدَ |
| مگر هغه څوک چه ظلم ئے کړے وی بیا بدله کړی (گناه لره) په نیکئ باندے روستو د |
| سُوْٓءٍ فَاِنِّیْ غَفُوْرٌ رَّحِیْمٌ ﴿۱۱﴾ وَاَدْخِلْ یَدَكَ فِیْ جَیْبِكَ |
| بدئ نه نو یقیناً زهٔ بخونکے رحم کونکے یم۔ او ننباسه لاس خپل په گریوان خپل کښې |
| تَخْرُجْ بَیْضَآءَ مِنْ غَیْرِ سُوْٓءٍ فِیْ تِسْعِ اٰیٰتٍ اِلٰی فِرْعَوْنَ |
| را اُوځی به سپین په غیر د څه عیب نه، (مونږ اُولیږلے ته) په نهه معجزاتو کښې فرعون |
| وَقَوْمِهٖ اِنَّهُمْ کَانُوْا قَوْمًا فٰسِقِیْنَ ﴿۱۲﴾ فَلَمَّا جَآءَتْهُمْ |
| ته او قوم د هغه ته، یقیناً دوی وو قوم نافرمان۔ نو هرکله چه راغلل دوی ته |
| اٰیٰتُنَا مُبْصِرَةً قَالُوْا هٰذَا سِحْرٌ مُّبِیْنٌ ﴿۱۳﴾ وَجَحَدُوْا |
| معجزات زمونږ ښکاره، اُووئیل دوی دا جادو دے ښکاره۔ او انکار اُوکړو دوی |
| بِهَا وَاسْتَیْقَنَتْهَآ اَنْفُسُهُمْ ظُلْمًا |
| ددے (معجزاتو) نه او یقین کړے وو په هغے باندے نفسونو د دوی د وجے د ظلم نه |
| وَّعُلُوًّا فَانْظُرْ کَیْفَ کَانَ عَاقِبَةُ الْمُفْسِدِیْنَ ﴿۱۴﴾ |
| او د لوئی نه، نو اُوگوره څنگه شو انجام د فساد کونکو۔ |

**تفسیر** :اِلَّا مَنْ ظَلَمَ : ۱- دا استثناء منقطع ده او پدے کښې د غیر انبیاؤ حال ذکر کوی یعنی چا چه گناه وکړه او بیا ئے توبه وکړه نو دهٔ باندے به خوف نهٔ وی ځکه چه الله

ورته بخنه کوی. ۲- یا دا استثناء متصل مفرغ ده. او ددے مستثنیٰ مِنهُ پټه ده. اَیْ اِنَّمَا الْخَوْفُ عَلٰی مَنْ سِوَاهُمْ. یره خو د پیغمبرانو نه په علاوه خلکو وی.
نو سوال پیدا شو چه د پیغمبرانو نه علاوه به ټول خلك په یره کښې وی او په عذاب کښې به گرفتار وی نو په (اِلَّا مَنْ ظَلَمَ) سره جواب کوی چه چا ظلم وکړو په شرك او کفر او گناهونو سره، په هغه به یره وی. بیا وائی : (ثُمَّ بَدَّلَ) یعنی چا چه ظلم وکړو او بیا ئے د بدیٔ نه پس توبه ویستله نو هغه به هم د عذاب نه خلاص وی او یره به پرے نهٔ وی. نو دریے قسمه خلك د عذابونو نه خلاص دی، یو پیغمبران، دویم هغه نیکان چه ظلم ئے نهٔ وی کړے. دریم هغه خلك چه اول کښې ئے گناهونه او ظلمونه کړی وی لیکن بیا ئے توبه ویستلی وی او نیك اعمال ئے شروع کړی وی. نو پاتے شو څلورم خلك هغه مجرمان چه هغوی په جرمونو او گناهونو کښې اخته وی او توبه نهٔ وباسی.نو پدے یو آیت کښې څلور خبرے راجمع شوے، دا د قرآن کمال دے، او پدے کښې ترغیب دے چه راشئ د کفر او شرك او گناهونو نه توبه وباسئ الله تعالیٰ بخنه کونکے رحم کونکے دے.
۳- څینی وائی : دا استثناء متصل ده د مذکور نه او د ظلم نه مراد خلافِ اولیٰ کار دے. او مطلب دا دے چه [اِلَّا مَنْ ظَلَمَ مِنَ الْمُرْسَلِیْنَ بِاِتْیَانِ الصَّغَائِرِ الَّتِیْ لَا یَسْلَمُ مِنْهَا اَحَدٌ] مگر هغه چا چه د پیغمبرانو نه صغیره او خلافِ اولیٰ کار کړے وی او بیا ئے توبه ویستلی وی نو زهٔ بخنه کونکے رحم کونکے یم. لکه قتل د قبطی د لاسه د موسیٰ ﷺ نه وغیره. او دا قول نحاسؒ غوره کړیدے. (فتح البیان وغیره) اول قول ظاهر دے.
مفسرین لیکی : چه پدے کښې اشاره ده چه که د بعض انبیاء کرامو علیهم السلام نه کومه وړه گناه یا خلاف اولیٰ کار صادر شوے وی نو د هغوی په وجه هغوی ډیر پریشانه او په یره کښې وی او همیشه د الله تعالیٰ نه بخنه او دعا غواړی نو پدے وجه الله تعالیٰ دلته هغوی ته د بخنے اعلان وکړو.
دغسے په دے آیتِ کریمه کښې اشاره شوے چه تاسو غلطی خو شوے وه، لیکن الله تعالیٰ ستا د توبے او استغفار او نیك اعمالو په وجه دا معاف کړه.
حافظ ابن کثیرؒ لیکی چه په دے آیتِ کریمه کښې انسانانو دپاره لوی زیرے دے، چه که یو انسان څهٔ گناه وکړی، بیا د هغے نه په رشتینے زړهٔ سره توبه وکړی، نو د الله تعالیٰ وعده ده چه هغه به معاف کوی، او په هغهٔ به رحم کوی.
وَاَدْخِلْ یَدَكَ: الله تعالیٰ موسیٰ ﷺ له د دویمے معجزے ورکولو دپاره وفرمایل چه تهٔ

خپل لاس د خپل قمیص په گریوان کښې واچوه، هغه به بغیر د څهٔ بیمارئ نه د سپوږمئ غوندې ځلیدونکے وی۔ موسیٰ علیه السلام دغسے وکړل، او د هغهٔ لاس په غیر د څهٔ بیمارئ نه انتهائی ځلیدونکے جوړ شو او سترګے ئے کیرے پیرے کولے۔

فِيْ تِسْعِ اٰيٰتٍ: اَیْ اَرْسَلْنَاكَ فِیْ تِسْعِ آیَاتٍ۔ موږ تهٔ په نهه معجزو کښې ولیږلے۔

پدے وخت کښې دوه معجزے ورکړے شوے او روستو زمانه کښې ئے نورے ورکړے، نو نهه شوے یا دا دواړه د نورو نهو نه علاوه وے نو ټولے معجزے یولس وے، دوه دا او دریم دریاب چاودل، طوفان، ملخان، سپیږے، چیندخان، وینه، مخونه وړانول او قحطونه راوستل او د هغوی په فصلونو کښې نقصان راوستل۔ (فتح البیان)

مُبْصِرَةً: یعنی ښکاره او رڼا کونکے۔ یعنی دومره ښکاره معجزات وو چه که دے سره سترګے وے نو دے به کتل کولے شوے۔ یعنی دا داسے ننبے وے چه که چا به ورته کتل نو الله ئے پرے پیژندلے شو۔ د عقلمندئ ننبے وے۔

وَجَحَدُوْا بِهَا: جَحد انکار مَعَ الْعِلْم ته وائی۔ یعنی سره د پوهے نه انکار کول، او پدے کښې اشاره ده چه د فرعونیانو د حق نه انکار، عِنادی او د ضد په وجه وو۔ د ناپوهئ په وجه نهٔ وو۔ لکه وَاسْتَيْقَنَتْهَآ اَنْفُسُهُمْ ئے تشریح ده۔ یعنی زړهٔ کښې ئے ښهٔ یقین راغلے وو چه دا حق معجزات دی، او موسیٰ او هارون علیهما السلام د الله تعالیٰ حق پیغمبران دی۔

او دا دلیل دے چه د چا په زړهٔ کښې تصدیق وی لیکن په ژبه انکار کوی نو دا کفر دے۔

ظُلْمًا وَّعُلُوًّا: دا دلیل دے چه کله سبب د کفر عناد او تکبر وی سره د علم نه۔

اهل علم وائی: ظلم او تکبر د انسان علم او هوښیارتیا ختموی، بیا په حقیقت نهٔ پوهیږی۔ الله فرمائی: ﴿سَاَصْرِفُ عَنْ اٰيٰتِيَ الَّذِيْنَ يَتَكَبَّرُوْنَ فِي الْاَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ﴾ (الاعراف:۱٤٦) زر دے چه زهٔ به د خپلو آیتونو د پوهے نه هغه خلك واړوم چه په زمکه کښې ناحقه تکبر کوی۔

ظلم او تکبر د علم منافی څیزونه دی۔ او ددے انجام خراب دی۔

عَاقِبَةُ الْمُفْسِدِيْنَ: یعنی د ظلم او تکبر - چه دا لوی فساد دے- انجام هلاکت دے لکه فرعونیان په یو ځای په سمندر کښې ډوب شول۔

حافظ ابن کثیرؒ لیکی چه په دے آیت کښې د نبی کریم ﷺ دروغژن ګڼرونکو ته وئیلے کیږی چه که تاسو هم په خپل کفر او عناد باندے ټینګ پاتے شوئ نو هسے نهٔ چه ستاسو انجام هم د فرعونیانو غوندے شی۔

| |
|---|
| وَلَقَدْ اٰتَيْنَا دَاوٗدَ وَسُلَيْمٰنَ عِلْمًا ج وَقَالَا |
| او یقیناً ورکړے وو مونږ داود او سلیمان (علیهما السلام) ته پوهه او وئیلی وو دواړو |
| الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ فَضَّلَنَا |
| ټول صفتونه د کمال خاص الله لره دی هغه ذات چه غوره والے ئے راکړیدے مونږ ته |
| عَلٰى كَثِيْرٍ مِّنْ عِبَادِهِ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۵﴾ وَوَرِثَ سُلَيْمٰنُ دَاوٗدَ |
| په ډیرو د بندګانو مؤمنانو خپلو۔ او میراث واخستو سلیمان (ؑ) د داود (ؑ) نه |
| وَقَالَ يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ عُلِّمْنَا مَنْطِقَ الطَّيْرِ |
| او وے وئیل : اے خلقو! خودلے شویدی مونږ ته خبرے د مارغانو |
| وَاُوْتِيْنَا مِنْ كُلِّ شَيْءٍ ط اِنَّ هٰذَا لَهُوَ الْفَضْلُ الْمُبِيْنُ ﴿۱۶﴾ |
| او راکړے شویدے مونږ ته د هر (ضروری) شی نه، یقیناً دا خامخا فضل ښکاره دے۔ |

**تفسیر** : په دے سورت کښې د انبیاؤ او د هغوئ د قومونو په عجیب او غریب قیصو کښې دویمه قصه د داؤد ؑ او سلیمان ؑ ده۔ پدے واقعه ذکر کولو کښې د علم فائده ذکر ده چه داسے علم کول پکار دی چه انسان پرے خپل ځان او قوم ته فائده ورکړی لکه داود او سلیمان علیهما السلام چه دغسے وکړل او لکه میږئ چه خپل قوم ته فائده ورکړه۔

الله تعالیٰ فرمائی مونږ داؤد او سلیمان (علیهما السلام) له ډیر علم ورکړے وو۔ (عِلْمًا) ئے نکره راوړه د تعظیم دپاره، اشاره ده ډیر علم ته۔ د شریعت او د فیصلو د علم نه علاوه الله داؤد ؑ له زبور ورکړو، د زغرو جوړولو علم ئے ورکړو، وُسپنه به د هغهٔ په لاس کښې ویلی کیده، دواړه پلار او ځوی د مارغانو په خبرو هم پوهیدل، او د سلیمان ؑ دپاره پیریان او انسانان، مارغان، هواء او ځناور وغیره مسخر کړے شوی وو، او دواړو له الله تعالیٰ بادشاهی ورکړے وه۔

الله تعالیٰ خو دواړو ته بادشاهی هم ورکړے وه لیکن دلته ئے د علم نعمت راوړو پدے کښې اشاره ده چه علم د ټولو نعمتونو نه اعلیٰ او اُوچت نعمت دے۔

وَقَالَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ: ددے قِسما قِسم نعمتونو د شکر اداء کولو دپاره دواړو

ووئيل چه تمام صفتونه هغه الله لره دي چه هغهٔ مونږه په خپلو ډيرو مومنانو بندګانو باندے غوره کړي يو۔ يعنى دا علم او نبوت او دا بادشاهي ټول د الله تعالىٰ فضل او د هغهٔ عطيه ده۔ هغهٔ خالص په خپل فضل او کرم سره مونږ له دا نعمتونه راکړي، مونږ خو د هغهٔ کمزوري بندګان يو۔ مونږ ددے نعمتونو په حاصلولو باندے په خپل ځان کښې کله قدرت لرلو۔

فَضَّلَنَا عَلٰى كَثِيْرٍ : يعنى الله تعالىٰ مونږ په علم او نبوت او د مارغانو او جناتو او انسانانو او شيطانانو تابع کولو سره په ډيرو بندګانو غوره کړي يو۔ او دا خبره دوی د تحديث بالنعمة (د نعمت ښکاره کولو) په طور ووئيل۔ او دا هم يو قسم شکر دے چه بنده خلکو ته په خپل ځان باندے د الله تعالىٰ نعمتونه ذکر کړي چه مونږ سره الله تعالىٰ دومره احسانات کړيدي۔

او عَلٰى كَثِيْرٍ ئے ووئيل، نهٔ ټول بندګان پدے کښې د دوی تواضع ته اشاره ده۔

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ کښې اشاره ده چه عالِم لره په علم باندے شکر کول واجب دي۔

او بله اشاره ده چه قرآن کريم تاسو ته لوی نعمت او د علم نه ډک کتاب راغلو نو ددے شکر وکړئ، حال دا چه تاسو ددے نه انکار کوئ۔

صاحب د فتح البيان ليکي : پدے آيت کښې د علم شرافت او ددے اُوچته مرتبه ذکر ده، او دا چه د علم اهل خلک به په نورو مقدم کولے شي، او د عِلم نعمت د هغه اُوچتو نعمتونو نه دے چه الله تعالىٰ ئے خپلو خاصو بندګانو ته ورکوي، او چا ته چه علم ورکړے شو نو هغه ته په ډيرو بندګانو باندے فضيلت او غوره والے او لوی شرافت ورکړے شو، او رسول الله ﷺ علماؤ ته د انبياؤ وارثان پدے وجه وئيلي دي چه دوی انبياؤ ته په شرافت او مرتبه کښې نزدے دي ځکه چه دا هغه خلک دي چه دوی د انبياؤ د راليږلو مقصد راپوره کړيدے، نو پدے وجه په دوی باندے لازم دي چه ددے لوی نعمت په بدله کښې د الله تعالىٰ حمد او شکر وکړي او عالِم دا عقيده وساتي چه که دے په ډيرو خلکو غوره دے نو دهٔ باندے هم ددهٔ په شان ډير خلک غوره دي،

او د سيدنا عمر فاروق ﷺ تواضع او عاجزئ ته وګوره چه امت دپاره ئے سبق پريخے دے، فرمائي : [ كُلُّ النَّاسِ اَفْقَهُ مِنْ عُمَرَ]۔ ټول خلک د عمر نه زيات پوهه دي۔ انتهىٰ۔

وَوَرِثَ سُلَيْمٰنُ دَاوٗدَ : مفسرين ليکي چه د داؤد ﷺ نولس ځامن وو، په دے کښې سليمان ﷺ د ټولو نه وړوکے وو۔ دلته د وراثت نه مراد د علم او نبوت ميراث دے۔

د دنیوی مال او متاع وراثت مراد نهٔ دے۔ یعنی الله تعالیٰ د داؤد ﷺ د علم او د نبوت وارث د هغهٔ وړوکے ځوی سلیمان ﷺ جوړ کړے وو۔ سلیمان ﷺ د الله تعالیٰ شکر اداء کوی او خلقو ته وائی چه مونږ له د مارغانو د خبرو علم راکړے شوے، او مونږ له د خپل رب له خوا هر شے راکړے شوے، د هیڅ شی کمے نشته، بیشکه د الله په مونږ باندے ښکاره فضل او کرم دے۔ سلیمان ﷺ دا خبره د فخر او مباهات دپاره نهٔ، بلکه د الله تعالیٰ د شکر اداء کولو په نیت کړے۔

**وَوَرِثَ**: اَیْ قَامَ مُقَامَهٗ فِی النُّبُوَّةِ وَالْعِلْمِ دُوْنَ الْمَالِ۔ یعنی د هغه په ځای قائم شو په نبوت او علم کښ نهٔ په مال کښ ځکه چه د انبیاؤ نه روپئ او اشرفئ نهٔ میراث کیږی۔ کنے بیا خو په هغے کښ نور بچی هم شریك وو، هغوی به ئے هم ذکر کړی وے۔

قتادة وائی: سلیمان ﷺ د داود ﷺ په نبوت او بادشاهئ او علم کښ نائب شو او د داود ﷺ نه زیات ورته دا ورکړے شو چه هواء او جنات او شیطانان ئے تابع کړے شو۔

دارنګه بادشاهی ئے لویه وه او په فیصلو کښ د هغهٔ نه زیات وو او داود ﷺ د سلیمان ﷺ نه په عبادتونو کښ زیات وو۔ (فتح البیان)

**عُلِّمْنَا**: دا ضمیر د جمع دے دپاره د تعظیم۔ قرطبیؒ وائی: معنیٰ دا ده چه الله تعالیٰ په مونږ باندے زیات احسان کړے چه د داود ﷺ نه مونږ ته علم، نبوت، او خلافت پاتے کیدو نه سوئ د مارغانو د خبرو علم راکړے شو۔

**مَنْطِقَ الطَّیْرِ**: یعنی هر مارغه چه به په آواز سره څه غوښتل نو هغے باندے پوهیدو، د مارغانو آوازونو ته ئے منطق (خبرے) ووئیل ځکه چه پدے باندے پوهیدل کیدے شو لکه د خبرو په شان۔ بعض وائی: چه عُلِّمْنَا کښ د جمع ضمیر سلیمان او داود دواړو ته راجع دے نو دواړه د مارغانو په خبره پوهیدل۔ (خطیبؒ)

او کله چه به مارغانو څه آواز وکړو نو سلیمان ﷺ به د خپل قوتِ قدسیه په وجه د هغهٔ په مقصد پوهیدو کوم دپاره به ئے چه آواز کړے وو۔

بیا اهل علمؒ وائی چه سلیمان ﷺ ته د ټولو حیواناتو د آوازونو علم ورکړے شوے وو، لیکن مارغان ئے ذکر کړل ځکه چه دا د سلیمان ﷺ خصوصی لښکر وو د نورو لښکرو په شان، د هغهٔ سره به ددے دپاره ګرځیدل چه په هغه باندے د نمرن نه سورے وکړی، نو پدے وجه ئے دا ذکر کړل۔ او قتادةؒ او شعبیؒ وائی چه صرف د مارغانو په خبرو پوهیدو او هر چه میږئ ده نو هغه هم د مارغانو د ډلے نه ده ځکه چه ډیر کرته د هغے وزرے راوخی

او آلوزي او د سلیمان ﷺ دغه میرئ هم دغه شان وه۔
او د مارغانو په خبره پو هیدل د سلیمان ﷺ معجزه وه نو بغیر د وحی د علم نه څوك دا دعوئ نشي کولے چه فلانئ مرغئ فلانئ خبرے کوي۔ دلته تفسیر نسفي او خازن او قرطبيّ د بعض مارغانو خبرے نقل کړیدي چه هیڅ صحیح متصل سند نۀ لري او په نقل کولو کښې ئے فائده هم نشته نو مونږ پریخوستل۔
وَاُوْتِيْنَا مِنْ كُلِّ شَيْءٍ: یعنی مونږ ته الله تعالیٰ هر ضروري شے راکړے دے لکه علم، نبوت، حکمة، مال، د جناتو، انسانانو، مارغانو، هواګانو او حیواناتو تابع کیدل۔ او دے ته استغراق عرفي وائي، ځکه چه ډیر څیزونه هغۀ ته نۀ وو ورکړے شوی لکه اول کښې د سبا مملکت وغیره۔
جعفر بن محمدؒ فرمائي: سلیمان ﷺ ته د زمکے د مشرق او د مغرب بادشاهي ورکړے شوے وه نو هغه اُوه کاله اُوه میاشتے بادشاهي وکړه چه په ټوله دنیا بادشاه شوے وو، او هر شے ورته ورکړے شوے وو۔ او د هغۀ په زمانه کښې ناشنا صنعتونه ایجاد شوی وو۔ (فتح البیان)
او مطلب د سلیمان ﷺ دا وو چه الله تعالیٰ مونږ ته هر شے راکړے نو مونږ نه فائده واخلئ او دا خبره ئے د شکر په طریقه کوله۔
او د (أَيُّهَا النَّاسُ) نه معلومه شوه چه په انبیاء علیهم السلام باندے د معجزاتو اظهار واجب دے، دے دپاره چه خلك پرے په همغه طریقه ایمان راوړي ځنګه چه یو نبي وي لکه رسول الله ﷺ به فرمایل: [أَنَا سَيِّدُ وُلْدِ آدَمَ وَلَا فَخْرَ ...... (آدَمُ فَمَنْ دُونَهُ تَحْتَ لِوَائِيْ] زۀ د آدم ﷺ د اولادو سردار یم او په دے زما هیڅ تکبر نشته- آدم (ﷺ) او د هغه نه روستو ټول خلك به د قیامت په ورځ زما د جنډے د لاندے وي۔ (احمد: ٢٥٤٦) صحیح)
او معجزات دوه قسمه دي (١) روحاني لکه د مارغانو د خبرو علم۔
(٢) دویم ظاهري چه عجیبه لویه بادشاهي ده۔
**فائده**: عُلِّمْنَا او اُوْتِيْنَا مجهول صیغے ووئیلے، فاعل ئے معلوم دے چه الله تعالیٰ دے، اشاره ده چه معجزات د انبیاء علیهم السلام په اختیار کښې نۀ وي۔
لَهُوَ الْفَضْلُ الْمُبِيْنُ: بادشاهي چه د دین د ترقئ دپاره استعمالیږي هم د الله تعالیٰ فضل دے۔

وَحُشِرَ لِسُلَيْمٰنَ جُنُوْدُهٗ مِنَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ وَ

او راجمع کړے شوے سلیمان (علیه السلام) ته لښکرے د هغه د پیریانو او انسانانو او

الطَّيْرِ فَهُمْ يُوْزَعُوْنَ ﴿۱۷﴾ حَتّٰى اِذَا اَتَوْا عَلٰى وَادِ النَّمْلِ

مارغانو نه نو دوی صف صف کړے شو۔ تردے چه کله راغلل دوی په میدان د میږانو

قَالَتْ نَمْلَةٌ يّٰاَيُّهَا النَّمْلُ ادْخُلُوْا مَسٰكِنَكُمْ ۚ لَا يَحْطِمَنَّكُمْ سُلَيْمٰنُ

اُووئیل یوے میږئ اے میږانو! داخل شئ سوړو خپلو ته، چیت نکړی تاسو لره سلیمان

وَجُنُوْدُهٗ ۙ وَهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ ﴿۱۸﴾ فَتَبَسَّمَ ضَاحِكًا مِّنْ

او لښکرے د هغه او دوی به نۀ پو هیږی۔ نو مسکے شو سلیمان خندیدونکے د وجے د

قَوْلِهَا وَقَالَ رَبِّ اَوْزِعْنِيْٓ اَنْ اَشْكُرَ نِعْمَتَكَ

وینا د هغے نه او وے وئیل اے ربه زما! توفیق راکړے ما ته چه شکر اُوکړم د نعمتونو ستا

الَّتِيْٓ اَنْعَمْتَ عَلَيَّ وَعَلٰى وَالِدَيَّ وَاَنْ اَعْمَلَ

هغه چه تا احسان کړیدے په ما باندے او په مور او پلار زما باندے او دا چه عمل اُوکړم

صَالِحًا تَرْضٰىهُ وَاَدْخِلْنِيْ بِرَحْمَتِكَ فِيْ عِبَادِكَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿۱۹﴾

نیک چه ته ئے خوښوے او داخل کړه ما په رحمت خپل سره په بندګانو نیکانو کښں۔

**تفسیر**: دا نمونه ده دپاره د تصدیق د (عُلِّمْنَا مَنْطِقَ الطَّيْرِ) ۔ پدے کښں د سلیمان (علیه السلام) یو سفر ذکر کوی چه هر کله هغهٔ په پیریانو، انسانانو او مارغانو باندے مشتمل د یو مُنظم او مُرتب فوج سره روان شو۔ په لاره کښں هغویٔ په یو داسے میدان باندے تیر شو چه په هغے کښں میږان وو۔ یو میږی دا جرّار لښکر ولیدهٔ او نورو میږانو ته ئے ووئیل چه تاسو تول زر تر زره خپلو سوړو ته ننوځئ، هسے نۀ چه سلیمان او د هغهٔ فوج په ناخبرئ کښں تاسو باندے خپے کینهٔ دی۔ سلیمان (علیه السلام) ددے خبرے په آوریدو مُسکے شو او د الله شکر اداء کولو دپاره ئے دعاء وکړه چه اے زما ربه! ماله ددے خبرے توفیق راکړه چه تا چه په ما او زما په مور پلار د کومو نعمتونو باران کړے د هغے شکر اداء کړم، او داسے نیک کارونه وکړم چه تهٔ ئے خوښوے، او په خپل رحم او کرم سره ما په خپلو نیکو بندګانو

کښې داخل کړه.

**فَهُمْ يُوزَعُونَ** : اَیْ حُبِسَ اَوَّلُهُمْ عَلٰی آخِرِهِمْ حَتّٰی یَمْشُوْا فِیْ نِظَامٍ وَّاحِدٍ - یعنې اول په آخر باندې رابند کړې شو دې دپاره چه په یو منظم شکل سره روان شي. وزغ په اصل کښې منع کولو او بندولو ته ویلې شي. دلته ئې معنیٰ دا ده: صفونه صفونه کړې شو.

## فوائد او حکمتونه

۱- بادشاه لره فوجي نظام ضروري دې.

۲- په وخت د ضرورت کښې ټول لښکر جمع کول پکار دي.

۳- لښکر د هغهٔ درې قسمه مخلوق وو، دا په طریقه د معجزې سره وو.

٤- لښکر ټول یو ځای جمع کول ددې دپاره چه په دشمن باندې هیبت پریوزي.

٥- لښکر په مختلفو حصو تقسیمول پکار دي په وخت د ضرورت کښې دپاره د تنظیم او ترتیب. او دې دپاره چه د کشرانو حالات مشرانو ته پیش کړې شي. دا ټول سیاسي امور دي.

٦- په سفر کښې د یو بل نه د جدا کیدو ممانعت کول پکار دي.

**عَلٰی وَادِ النَّمْلِ**: دا په طائف (حجاز سعودي) کښې مشهوره کنده ده چه میږان پکښې زیات دي. علامه بقاعيّ په ((نظم الدرر)) کښې لیکلي چه ما دا کنده لیدلې ده. او بیضاويّ وائي چه دا په شام کښې ده.

**قَالَتْ نَمْلَةٌ** : دا مشهوره ده چه دا مؤنث وه او دا قول د امام ابو حنیفهٔ نقل شویدې او دلیل ئې دا نیولې دې چه په فعل کښې تاء راغلې ده چه دلالت کوي په تانیث د فاعل (نَمْلَة) باندې. لیکن علامه طیبيّ او ابو حیانؒ او زمخشري پدې باندې رد کړیدې چه نملة داسې لفظ دې چه مذکر او مؤنث پکښې برابر دي، او تانیث لفظي دلالت په تانیث حقیقي معنوي باندې نهٔ کوي. نو ظاهر احتمال دا دې چه دا نر وو خو لفظ ئې د مؤنث په شکل راغلې دې لکه د طلحة او سَمُرَة او شُعْبة په شان. نو دې باندې د باطل پرستو دا دلیل نیول چه د ښځو بادشاهي جائز ده غلط دي. بله دا چه که بالفرض ومنو چه دا مؤنث وه نو دا غیر مکلف مخلوق دې او په انسانانو کښې د ښځو د اِمارت نه رسول الله ﷺ منع فرمائیلې ده، دا د اهل زیغو طریقه ده چه د متشابهاتو نه دلیل نیسي او مُحکمات پریدي.

يَاَيُّهَا النَّمْلُ ادْخُلُوْا: میږئ دلته د خپل قوم خیرخواهي او رهنمائي کړیده۔
صاحب د فتح البیان لیکي چه د میږئ په دے قول کښې یولس طریقے د بلاغت دي۔ بیا ئے هغه ذکر کړیدي۔

## د واقعے حکمتونه

١- میږانو او نورو حشراتو کښې الله تعالیٰ فهم او شعور اچولے دے۔
٢- میږي هم ژوند په خاص نظم او ترتیب سره تیروي۔
٣- هر مشر له پکار دي چه خپل قوم ته د خطراتو او مفاسدونه د بچ کیدو تدبیر وښائي لکه چه دے میږي خودلے وو۔
٤- وَهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ کښې میږي د سلیمان ﷺ او د هغه د لښکر دپاه عذر بیان کړو، نو ددے نه معلومه شوه چه د چا نه په ناخبرئ سره یو عمل کیږي نو هغه معذوره ګنړل پکار دي۔
تاریخي روایاتو کښې راځي چه سلیمان ﷺ میږئ راوغوښته او دائے ورته وویل چه آیا تا زۀ ظالم وګنړلم چه دا دې وویل چه سلیمان او د هغه لښکر تاسو چیت نکړي؟ نو هغے وویل: چه ما ورسره ﴿وَهُمْ لَايَشْعُرُوْنَ﴾ وئیلي دي یعني دوي به په ناپوهئ سره تاسو چخپت کړي۔ دارنګه هغے وویل : [إِنِّيْ لَمْ أُرِدْ حَطْمَ الْاَبْدَانِ وَإِنَّمَا اَرَدْتُّ حَطْمَ النُّفُوْسِ] زما د ظاهري بدنونو چخپت والے مقصد نۀ وو بلکه د نفسونو ماتیدل مقصد وو، ځکه چه دوي به د سلیمان ﷺ دا عظیمه بادشاهي ویني او د الله لوی نعمتونه په هغه باندے، نو د الله نعمتونه به په خپلو ځانونو سپك وګنړي نو نفسونه به ئے هلاك شي۔
دا هم تاریخي اسرائیلي قصه ده لیکن نقل کول ئے جائز دي، په [حَدِّثُوْا عَنْ بَنِيْ إِسْرَائِيْلَ وَلَا حَرَجَ] کښې داخلیږي، ځکه چه الله تعالیٰ بعض حیواناتو ته ډیره هوښیارتیا ورکړے ده۔
د حیواناتو ماهرینو علماؤ لیکلي دي چه میږئ ډیر عجیب حیوان دے چه په جلتئ سره د ورانډے نه د خوراك بوټي موندہ کوي او بیا خپلو ملګرو ته خبر ورکوي چه راشئ فلانئ ځاي کښې طعام پروت دے، نو په شریکه په اتفاق سره راشي، او د یو درونډ شي پسے ونښلي او خپلے سوړي ته ئے نقل کوي۔ دوي په ذخیره اندوزئ کښې مثال دے، د ژمي دپاره روزي خانله په سوړه کښې ساتي۔ دوي ته الله تعالیٰ دا پوهه ورکړے ده چه

ژمي هم راروان دے، او بیا په سورة کښې بعض دانے لکه غنم او جوار دانے دوه ځای ماتوی دے دپاره چه شنے نشي او دهنیا چه دوه ځای ماته شي هم شنه کیږي نو هغه څلور ځای ماتوی۔ بیا په سورة کښې ځانله اُوچت ځای تیاروی دے دپاره چه که باران وشي نو دوی لاندے نکړي او دانو دپاره یو طاقچه تیاروی چه باران هغه خرابے نکړي۔ نو پدے تولو کښې د انسانانو دپاره او خاصکر د قریشو دپاره عبرت دے چه وګورئ میږئ د خپل قوم څنګه تربیت کوی او تاسو خپل قوم هلاکت ته ګوزارئ۔

۵- د میږئ دا عقیده وه چه پیغمبران او اولیاء په غیبو نهٔ پو هیږي، د خپو لاندے د میږو د حال نه هم خبر نهٔ دی۔

۶- وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ: یعنی که دوی پو هه شي، بیا دا کار نکوی، دا خبره ئے د عذر په طریقه ویله چه دوی خو عدل والا دی لیکن د ناخبرئ کار سره رانیول نهٔ وی۔ (فتح البیان واحسن الکلام)

صاحب د فتح البیان لیکی چه ګویا که میږي وپیژندل چه نبي معصوم وی او د هغهٔ لښکر محفوظ وی نو د هغوی نه به دا حیوانات چخچت کول نهٔ واقع کیږي مګر په سهوه سره، نو دا ډیره لویه تنبیه ده پدے خبره چه د انبیاء علیهم السلام په عصمت باندے یقین کول واجب دی، او د هغوی اصحاب محفوظ دی۔ دا دلیل دے چه شیعه ګان کوم چه د رسول الله ﷺ ملګروته د ظلم او د حقوقو د هرپ کولو نسبت کوی دوی د میږو نه هم کمزوری او ضعیف عقل او رائے والا دی ځکه چه د میږئ عقیده د سلیمان ؑ د لښکرو په باره کښې دا وه چه دوی عدل والا دی، او دا کسان د رسول الله ﷺ د ملګرو په باره کښې د ظلم عقیده ساتی نو د دوارو ترمینځ څومره وړاندے والے دے۔

فَتَبَسَّمَ : یعنی هرکله چه سلیمان ؑ د میږي دا خبرے واوریدے نو هغهٔ دا د الله تعالیٰ نعمت وګنړلو چه د میږانو په خبره ورته الله تعالیٰ پو هه ورکړه او خوشحالی ئے ښکاره کړه او بیا ئے په ژبه باندے د الله شکریه ادا کړه۔

ضَاحِكًا : د تبسم نه روستو ئے ضحك ذکر کړو ځکه چه ضحك دلته په معنیٰ د خوشحالئ سره دے۔ یعنی موسکے شو خوشحالي کونکے۔ یا مراد دا دے چه اول ئے تبسم وکړو او بیا ئے صورت د ضحك اختیار کړو۔

وَعَلَىٰ وَالِدَيَّ: شوکاني" لیکی چه په مور پلار باندے احسان ګویا که په سړي باندے احسان وی، دے وجے نه په دے باندے ئے هم د الله تعالیٰ د شکر کولو توفیق وغوښتو، او

وے غوښتل چه دنیوی نعمتونو سره الله دهٔ له دینی نعمتونه هم ورکړی، څکه ئے د
نیك عمل توفیق وغوښتو۔ او چونکه د مومن بنده آخرنے مقصد د آخرت کامیابی ده،
دے وجے نه په آخره کښې ئے دعاء وکړه چه الله د قیامت په ورځ دے په خپلو نیکانو
بندګانو کښې شامل کړی۔

دلته علامه شوکانی رحمه الله د خپل ځان دپاره دعاء کړے ده چه اے الله ! زهٔ هم تانه هغه
څهٔ غواړم کوم چه ستا بنده سلیمان تانه غوښتلی وو، نو زما دعاء قبوله کړه او په ما
فضل وکړه، اګرکه زهٔ په عمل کښې کوتاه یم، لیکن د جنت د حاصلیدو سبب خالص ستا
فضل او کرم دے۔ اهـ

زه هم خپل دواړه لاسونه د أرحم الراحمین په حضور کښې وړاندے کوم چه اے زما ربه !
زهٔ هم ستا د نبی کریم سلیمان ﷺ پشان تانه ستا رضا او د نیك عمل توفیق غواړم، او
داچه د قیامت په ورځ ما هم په خپل رحم او کرم سره په خپلو نیکو بندګانو کښې شامل
کړه، او زما والدینو له، زما خویندو، وروڼو، زما ښځے، زما ځامنو او لوڼړو او ټولو
دوستانو او استاذانو او شاګردانو له د خپل فضل او کرم په سوری کښې ځای ورکړه۔ او په
جنت کښې مو یو ځای کړه۔ آمین یا رب العالمین ! (ابوزهیر)

## حکمتونه

١- دلته ئے د خندا دوه قسمونه ذکر کړیدی (١) تَبَسُّم۔ (٢) ضِحُك۔ او قهقهه ئے نهٔ ده
ذکر کړے څکه چه هغه د زړهٔ د غفلت نه پیدا کیږی او انبیاء علیهم السلام د زړهٔ د غفلت
نه پاك وی۔ عائشه رضی الله عنها فرمائی : [مَا رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ ضَاحِكًا حَتّٰی اَرٰی مِنْهُ
لَهَوَاتِهٖ، اِنَّمَا كَانَ يَتَبَسَّمُ] (بخاری :٤٨٢٨ مسلم : ٢١٢٣)

رسول الله ﷺ داسے خندا هیڅکله نهٔ ده کړے چه ما د هغه تالو ژبه لیدلی وی۔

٢- په نعمت باندے خوشحالی کول جائز دی۔

٣- د شکر د دعاء توفیق هم شکر دے۔

٤- او په والدینو باندے چه کوم نعمت شوے وی په هغے باندے هم شکر کول پکار
دی۔

٥- انبیاء علیهم السلام هم په عمل صالح کولو مکلف دی یعنی داسے عمل چه د
وحی مطابق وی۔

٦- انبیاء علیهم السلام هم د الله رحمت ته محتاج دی۔
٧- د الله تعالیٰ د رحمت حاصلولو بهترینه وسیله دعاء ده۔
اَوْزِعْنِیْ: یعنی ما بند وساته په شکر د نعمت ستا۔ اَوزع مخکښ ذکر شو چه اول په آخر باندے بندولو ته وئیلے شی یعنی په شکر مے داسے بند کړه چه نهٔ ترے مخکښ لاړ شم او نهٔ روستو۔ بیا ئے حاصل معنیٰ ده: [اَلْهِمْنِیْ] ما ته الهام وکړه او توفیق راکړه۔
تَرْضٰهُ: دا ورسره ځکه وائی چه کله یو انسان عمل صالح وکړی لیکن الله ته خوښ نهٔ وی ځکه چه د شرطونو موافق نهٔ وی۔

| وَتَفَقَّدَ الطَّيْرَ فَقَالَ مَالِيَ |
|---|
| او تلاش کړل سلیمان (علیه السلام) مارغانو لره نو وے وئیل څه وجه ده ما لره |
| لَآ اَرَى الْهُدْهُدَ اَمْ كَانَ مِنَ الْغَآئِبِيْنَ ﴿٢٠﴾ لَاُعَذِّبَنَّهٗ |
| چه نهٔ وینم ملاچرګک یا دے هغه د غائبانو نه۔ خامخا زهٔ به عذاب ورکړم هغه ته |
| عَذَابًا شَدِيْدًا اَوْ لَاَاذْبَحَنَّهٗٓ اَوْ لَيَاْتِيَنِّيْ بِسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ ﴿٢١﴾ فَمَكَثَ غَيْرَ بَعِيْدٍ |
| عذاب سخت یا به ئے حلال کړم یا به راوړی ما ته دلیل ښکاره۔ نو ایسار شو لږ وخت |
| فَقَالَ اَحَطْتُّ بِمَا لَمْ تُحِطْ بِهٖ |
| نو وے وئیل راګیر کړیدے ما په خپل علم کښ هغه شے چه تا نهٔ دے راګیر کړے هغه |
| وَجِئْتُكَ مِنْ سَبَاٍۭ بِنَبَاٍ يَّقِيْنٍ ﴿٢٢﴾ اِنِّيْ وَجَدْتُّ امْرَاَةً |
| او راوړیدے ما تا ته د سبا ښار نه یو خبر یقینی۔ یقیناً ما اُوموندله یوه ښځه |
| تَمْلِكُهُمْ وَاُوْتِيَتْ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ |
| چه بادشاهی ئے کوله د هغوی او ورکړے شوے وو هغے ته د هر (ضروری) څیز نه |
| وَّلَهَا عَرْشٌ عَظِيْمٌ ﴿٢٣﴾ وَجَدْتُّهَا وَقَوْمَهَا يَسْجُدُوْنَ |
| او هغے لره تخت لوئی دے۔ (قیمتی)۔ اُوموندله ما هغه او قوم د هغے چه سجدے کوی |
| لِلشَّمْسِ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ اَعْمَالَهُمْ فَصَدَّهُمْ |
| نمر ته سویٰ د الله نه او ښائسته کړیدی دوی ته شیطان (بد) عملونه د دوی نو منع کړی |

عَنِ السَّبِيلِ فَهُمْ لَا يَهْتَدُونَ ﴿٢٤﴾ أَلَّا يَسْجُدُوا لِلَّهِ

ئې دي د نيغې لارې نه نو دوی (سمه) لار نهٔ مومي۔ ولې سجدې نهٔ کوي دوی الله ته

الَّذِي يُخْرِجُ الْخَبْءَ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَيَعْلَمُ مَا

هغه ذات چه راوباسي پټ څيزونه په آسمانونو او زمکه کښې او پوهيږي په هغه څه

تُخْفُونَ وَمَا تُعْلِنُونَ ﴿٢٥﴾ اللَّهُ لَا إِلَٰهَ

چه تاسو ئې پټوئ او په هغه څه چه تاسو ئې ښکاره کوئ۔ الله نشته لائق د بندګئ

إِلَّا هُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ (س) ﴿٢٦﴾

سوئ د هغه نه مالك د عرش لوئي دے۔

**تفسير** : سليمان عليه السلام يوه ورځ د سفر په دوران کښې د مارغانو حاضري واخسته، او خاص طور سره د هُدهُد په باره کښې ئې تپوس وکړو، نو هغه غائب وو۔ حافظ ابن کثيرؒ د ابن عباس رضی الله عنه نه روايت نقل کړے چه سليمان عليه السلام به کله په شاړ ميدان کښې وو چرته چه به د اُوبو ضرورت شو نو هُدهُد به هغه ځاى ښودلو چرته چه به د زمکې لاندے اُوبهٔ وے، بيا به پيريانو دغه ځاى کنستلو او اُوبهٔ به ئې را اُوخکلے۔ د همدے ضرورت له مخه سليمان عليه السلام هُدهُد طلب کړو نو هغه ورته ملاؤ نشو، هغه خفه شو او وے وئيل چه که هغهٔ معقول عُذر پيش نهٔ کړو نو زهٔ به ورته سخته سزا ورکړم، يا به ئې ذبح کړم، ليکن لږ وخت پس هغه د سليمان عليه السلام مخے ته حاضر شو، او خپل عُذر ئې پيش کړو، او خبر ئې ورکړو چه ما هغه څهٔ ليدلي دي چه د هغې علم تاته نشته، ما د يمن د سباء ښار (چه اُوس ورته مآرب وائي) يو بيخي رشتينے خبر راوړے۔ ما هلته يوه ښځه اُوليده چه بادشا هنره وه۔ او هغې ته الله هر سازو سامان او د مالدارئ اسباب ورکړي، او د هغې يو لوئ شاهي تخت دے چه په هغې باندے ناسته وي حکومت کوي۔

وَتَفَقَّدَ الطَّيْرَ : مفسرينو ليکلي دي چه کله سليمان عليه السلام ددے سفر منزل مقصود ته ورسيدو نو د لښکر د خواصو او د عومو خبر ګيري ئې شروع کړه۔ ددے نه دا حکمت معلوميږي چه بادشاه او امير باندے لازم دي چه د خپل رعيت او فوج تالاش به کوي او د هغوی د احوالو خبر ګيري به کوي چه څوك حاضر او څوك غائب دي او څه عملونه کوي، غفلت نه به کار نهٔ اخلي، او همدا طريقه د تربيت ده۔

دارنګه معلومه شوه چه سلیمان ﷺ په غیبو باندې علم نهٔ لرلو ځکه چه د هدهد د حال نه خبر نهٔ وو۔

مَالِيَ لَا اَرَ الْهُدْهُدَ : دا د عربو عادت دے چه ځان ته اول نسبت کوی او مطلب دا دے چه زما ملا چرګك نهٔ لیدل آیا زما نقصان دے چه زما سترګو ته څه پرده راغلے ده، یا د هغهٔ نقصان دے چه غائب شویدے نو پته ولګیده چه هغه غائب دے۔

لَاُعَذِّبَنَّهٗ عَذَابًا شَدِيْدًا : دا دهمکی ده چه ولے بې اجازته یو ځای ته ځی، بنده به شتر بې مهار نهٔ جوړیږی چه په خپله طبع څه ئے خوښه وی هغه کوی، او چرته چه غواړی ځی، بلکه د امیر اطاعت لازم دے۔

## حکمتونه

۱- د غیر حاضرئ په وجه مجرم ته سزا ورکول جائز دی۔

۲- مجرم ته د جرم په تفاوت (فرق) سره سزا ورکول لکه لږه غیر حاضری ئے وکړه نو لږه سزا او که ډیره ئے وکړه نو ډیره سزا به ورکړی۔

۳- بِسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ: دا دلیل دے چه خوك صحیح عذر پیش کړی نو د هغه سزا معاف کول پکار دی۔

٤- په عَذَاب شَدِيْد کښې اختلاف دے، ځینی وائی چه ددے نه مراد بنړکے ویستل دی، ځینی وائی چه هغه د خدمت نه منع کول دی۔ او بعض وائی چه نمر ته ګوزارل دی۔ یا پنجره کښې ساتل دی۔ یا د میږانو مخے ته ګوزارل چه هغوی ئے وخوری۔

٥- ابن عباسؓ وائی چه د سلطان مبین نه مراد رشتینی او حق او ښکاره خبر راوړل دی۔

فَمَكَثَ غَيْرَ بَعِيْدٍ : یعنی هُدهد لږ وخت غیر حاضر وو بیا زر راغلو او عذر ئے پیش کړو او د سزا نه بچ شو۔

## حکمتونه د آیت

۱- د خپلے ډیوټئ نه بې ضرورته ډیر ایساریدل نهٔ دی پکار۔

۲- کله ادنیٰ شخص ته د داسے خبرے علم وی چه اعلیٰ شخص سره هغه نهٔ وی۔

۳- او دا په لوی عالِم باندے د الله تعالیٰ د طرفه ابتلاء وی، دے دپاره چه په خپل علم باندے تکبر ونکړی۔

٤- هُدهُد هم پدے قائل دے چه سلیمان ؑ سره د غیبو علم نشته۔
خطیب شربینیؒ په تفسیر «السراج المنیر» کښې لیکلی چه دا رد دے په شیعه ګانو باندے چه هغوی وائی چه د زمانے د امام نه په علمونو کښې هیڅ علم پټ نهٔ وی۔
او دا عقیده د بعض مبتدعینو ده په باره د نبی کریم ﷺ کښې او د عامو جاهلانو ده په باره د خپلو پیرانو کښې۔
٥- اَحَطْتُّ بِمَا لَمْ تُحِطْ بِهٖ : نه معلومه شوه چه اول اجمالی خبر بیا د هغے تفصیل کولو سره په خبره کښې وقعت او عظمت پیدا کیږی دلته اوله جمله (اَحَطْتُّ) ابهام دے او دویمه جمله (وَجِئْتُكَ مِنْ سَبَاٍ) د هغے تفصیل دے۔
سَبَا: دا د یو سړی نوم وو چه هغه ته قوم منسوب دے لکه سبأ بن یشجب بن یعرب بن قحطان بن هود۔ او دارنګه سبأ بیا د یو ښار نوم ګرځیدلے دے چه هغه په یمن کښې دے او دے ته مآرب هم وئیل کیدو۔
او حافظ ابن کثیرؒ لیکلی دی چه دا د صنعاء الیمن نه درے میله لرے وو۔
او صاحب د فتح البیان د ابن عباس ؓ نه روایت کړیدے چه د مآرب او د صنعاء ترمینځ درے شپے مزل وو۔ نو هُدهُد سلیمان ؑ ته ددے ښار نه خبر راوړو۔
بِنَبَاٍ یَّقِیْنٍ: نبأ هغه خبر ته وائی چه خطیر (لوی) شان لری۔
نو سلیمان ؑ ترے تپوس وکړو چه هغه خبر څه دے؟ نو هغه ووئیل:
اِنِّیْ وَجَدْتُّ امْرَاَةً تَمْلِكُهُمْ : دا د هغه خبر بیان دے کوم چه هُدهد ذکر کړو او دلته ئے د تعجب په طریقه سره شرعاً یا عادةً امور عجیبه ذکر کړیدی۔
او د ښځے د بادشاهئ نه تعجب کوی او دا عادةً هم د غیرت نه خلاف ده، او شرعاً هم ناجائز ده۔ دویم تعجب دے د ډیروالی د اسبابو د بادشاهئ نه چه په هغه زمانه کښې کومو اسبابو ته ضرورت وو هغه ټول ورسره موجود وو او د (وَاُوْتِیَتْ مِنْ كُلِّ شَیْءٍ) همدا مقصد دے۔
دریم تعجب دے د هغے د تخت نه څکه داسے تخت سلیمان ؑ سره نهٔ وو څکه چه انبیاء علیهم السلام اسراف نکوی۔
امْرَاَةً: ددے ښځے نوم بلقیس بنت شراحیل دے، کوم مفسرین چه وائی چه ددے د مور فارعه نوم وو او جِنِّیَه (یعنی پیرئ) وه نو دا غلط اسرائیلی واقعات دی۔ ددے پلار د یمن بادشاه وو او د هغه صرف همدا یوه لور وه نو د هغه د مرګ نه روستو دے په بادشاهئ

باندې غلبه وکړه، او دا او ددې قوم مجوسیان وو چه د نمر عبادت به ئې کولو۔
مفسرینو د دغه ښځې د فوج، شاهي تخت او خادمانو او نوکرانو تفصیلات ښودلی چه د هغې نه د هغې د عظیمې بادشاهۍ اندازه لګیږي۔
ددې شاهي تخت او شاهي محل بعض آثار اُوس هم باقي دي چه د انتهر نیت په بعض کلیپونو کښې موجود دي۔
وَّلَهَا عَرْشٌ عَظِيْمٌ: ددې تخت عظمت مفسرینو په مختلفو طریقو سره لیکلے دے، د ابن عباس ﷺ نه نقل دی چه دا د سرو زرو ډیر لوی تخت وو، خپے ئې د جواهرو او ملغلرو نه جوړې وې، په ډیر ښائسته کاریګرۍ سره جوړ وو، ډیر قیمتي وو، په هغې کښې شپږ کوټې وې او هرې کوټې ته یوه دروازه لګیدلې وه۔ (فتح البیان)
بعض وائي چه دې دا تخت په داسې شکل جوړ کړے وو چه هغه ئې د نمر د عبادت دپاره ذریعه جوړه کړې وه، پدې کښې درې سوه شپیته طاقونه داسې جوړ وو چه هره ورځ به نمر پدې کښې په جدا طاق کښې ښکاره کیدو او دوی به ورته سجدې کولے۔
او دې کښې حکمة دا دے چه الله تعالیٰ دا لویه بادشاهي د سلیمان ﷺ د علم نه بهر ساتلے وه د ډیرو مصلحتونو دپاره او دا ښکاره دلیل دے چه پیغمبران په هر شي باندې علم نهٔ لري۔ (احسن الکلام)
وَجَدْتُّهَا وَقَوْمَهَا : پدې کښې بلہ زیاته عجیبه خبره ذکر کوي چه هغه ددې او ددې د قوم شرک دے (یعني د ستورو عبادت کول)۔ هُدهُد ووئیل : ما هغه او د هغې قوم ولیدل چه د الله نه سوئ ئې نمر ته سجده کوله، او شیطان د هغوئ شرکي اعمال د هغوئ په نظرونو کښې ښائسته کړي، او دوئ ئې د حقې لارې نه بند کړي، دې وجې نه دا خلق سرګردانه شوي دي، او هغه الله ته سجده نهٔ کوي کوم چه د آسمانونو او زمکې پټ ځیزونه را وباسي، آسمان نه باران رالیږي او د زمکې نه دننه نباتات او معدنیات را اوباسي، او هر پټ او ښکاره پیژني، هغه الله چه د هغهٔ نه سوئ بل هیڅ معبود نشته، او د هغه لوی عرش رب دے، کوم چه نمر، تمام ستوري او هر شئ لره راګیرونکے دے، چه د هغهٔ د عظمت په مقابله کښې د دغه ښځې شاهي تخت هیڅ حیثیت نلري، او ددې الله د قدرت په مقابله کښې د هغې معبود یعني نمر څومره کمزورے او بے طاقته دے۔
حافظ ابن کثیرؒ لیکي : چونکه هُدهُد صرف د یو الله عبادت کولو دعوت ورکړے او غیر الله ته د سجدې کولو نه ئې منع وکړه، دې وجې نه ددهٔ وژل منع دي۔

امام احمدؒ، ابوداودؒ او ابن ماجهؒ وغیره د ابو هریره ﷛ نه روایت کړے چه رسول الله ﷺ د خلورو حیواناتو وژلو نه منع فرمائیلے: میږے، د شاتو مچۍ، هُدهُد او تیغکه۔
یَسۡجُدُوۡنَ لِلشَّمۡسِ: پدے آیت کښې ئے خلور خبرے ذکر کړیدی، یو دا چه نمر ته سجدے کول، بیا دا عمل بد نهٔ ګنړل بلکه د شیطان په وسوسه سره دا ښه ګنړل، بیا ددے په سبب سره د توحید د علم او عمل نه منع کیدل، بیا د هغے په سبب سره د هر قسم هدایت نه محروم پاتے کیدل۔ (احسن الکلام)
السَّبِیۡلِ: نه مراد ښکاره لاره ده چه هغه په الله ایمان او د هغه توحید دے۔ (فتح البیان)
فَهُمۡ لَا یَهۡتَدُوۡنَ: یعنی دوی لاره نهٔ مومی دغه ایمان او توحید ته۔ ځکه چه کله انسان د شیطان په جالونو کښې راګیر شی او ماحول ئے خراب شی نو د ګنده ماحول نه راوتل ډیر ګران وی۔
اَلَّا یَسۡجُدُوۡ: دا چه په شد سره شی نو دا بدل دے د (اَعۡمَالَهُمۡ) نه نو د (زَیَّنَ) پورے متعلق دے یعنی، زَیَّنَ لَهُمُ الشَّیۡطَانُ اَلَّا یَسۡجُدُوۡا شیطان ورته الله ته سجده نهٔ لګول ښائسته کړیدی۔ یا متعلق دے په (لَایَهۡتَدُوۡنَ) پورے نو بیا به پکښې (لا) زیاتی وی۔
یا متعلق دے د (فَصَدَّهُمۡ) پورے۔ او لام مقدر دے اَیۡ لِئَلَّا یَسۡجُدُوۡا ۔ یعنی منع ئے کړل د نیغے لارے نه ددے دپاره چه سجده ونکړی الله ته۔
الۡخَبۡءَ: مَخۡبُوۡءُ او مخفی (پټ) شوی څیز ته وئیلے شی۔ د آسمانونو پټ څیزونه نمر، سپوږمۍ، ستوری، بارانونه او وریځے وغیره دی۔ او د زمکے پټ څیزونه بوټی، ونے، خزانے، کانونه او چینے وغیره دی۔ دا دلیل د قدرت د الله تعالیٰ دے او قادر ذات د عبادت مستحق وی۔
قتادهؒ وائی: خبء: سر (یعنی راز) ته وئیلے شی۔
اَللهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ: دا په ماقبل باندے تفریع ده په ذکر د توحید الوهیت سره او بیا ئے (رب العرش العظیم) کښې توحید ربوبیت ذکر کړیدے دپاره د دلیل د توحید اُلوهیت۔
د الله تعالیٰ عرش ئے معرفه راوړو او د بلقیس عرش ئے نکره؟ وجه دا ده چه په معرفه کښې کمال زیات وی د نکرے نه۔ د الله تعالیٰ ډیر عظیم او کامل عظمت والا عرش دے په نسبت د ټولو کائناتو۔
**فائده**: د هُدهُد د بیان نه معلومه شوه چه الله تعالیٰ حیواناتو او حشراتو ته د توحید فهم او شعور ورکړیدے او د داسے باریکو خبرو ورته الله تعالیٰ الهام کړیدے چه هغه ډیرو

عقلمندو انسانانو ته نهٔ دے ورکړے شوے۔

| قَالَ سَنَنْظُرُ اَصَدَقْتَ اَمْ |
|---|
| اُووئیل سلیمان (علیه السلام) زردے چه وبه ګورو مونږ چه آیا تا رشتیا وئیلی دی یا که |
| كُنْتَ مِنَ الْكٰذِبِیْنَ ﴿۲۷﴾ اِذْهَبْ بِّكِتٰبِیْ هٰذَا فَاَلْقِهْ اِلَیْهِمْ ثُمَّ تَوَلَّ عَنْهُمْ |
| یې تهٔ د دروغژنو نه۔ ویسه خط زما چه دا دے نو وے غورزوه دوی ته بیا واوړه د دوی نه |
| فَانْظُرْ مَاذَا یَرْجِعُوْنَ ﴿۲۸﴾ قَالَتْ یٰۤاَیُّهَا الْمَلَؤُا اِنِّیْۤ |
| نو اُوګوره چه څه جواب راواپس کوی۔ ووئیل (ښځے) اے دربار والو! یقیناً ما ته |
| اُلْقِیَ اِلَیَّ كِتٰبٌ كَرِیْمٌ ﴿۲۹﴾ اِنَّهٗ مِنْ سُلَیْمٰنَ وَاِنَّهٗ |
| راغورځولے شویدے خط عزت والا۔ یقیناً دا د سلیمان د طرف نه دے او یقیناً مدد |
| بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ ﴿۳۰﴾ اَلَّا تَعْلُوْا |
| غوختل په نوم د الله دی چه عام مهربان او خاص رحمتونو والا دے۔ چه لوئی مهٔ کوئ |
| عَلَیَّ وَاْتُوْنِیْ مُسْلِمِیْنَ ﴿۳۱﴾ قَالَتْ یٰۤاَیُّهَا الْمَلَؤُا اَفْتُوْنِیْ |
| په ما باندے او راشئ ما ته تابعداری کونکی۔ ووئیل هغے اے دربار والو! خبر راکړئ |
| فِیْۤ اَمْرِیْ ۚ مَا كُنْتُ قَاطِعَةً اَمْرًا حَتّٰی تَشْهَدُوْنِ ﴿۳۲﴾ قَالُوْا |
| په باره د کار زما کښې، نهٔ یم زهٔ فیصله کونکے د یو کار تردے چه حاضر شئ تاسو۔ اُووئیل دوی |
| نَحْنُ اُولُوْا قُوَّةٍ وَّاُولُوْا بَاْسٍ شَدِیْدٍ ۙ وَّالْاَمْرُ اِلَیْكِ |
| مونږ خاوندان د طاقت یو او خاوندان د جنګ سخت یو او خبره تا ته سپارلے شویده |
| فَانْظُرِیْ مَاذَا تَاْمُرِیْنَ ﴿۳۳﴾ قَالَتْ اِنَّ الْمُلُوْكَ اِذَا دَخَلُوْا |
| نو اُوګوره تهٔ چه څه حکم کوے۔ اُووئیل هغے یقیناً بادشاهان چه کله چه داخل شی |
| قَرْیَةً اَفْسَدُوْهَا وَجَعَلُوْۤا اَعِزَّةَ اَهْلِهَاۤ اَذِلَّةً ۚ وَكَذٰلِكَ |
| یو کلی ته نو خراب کړی هغه او اُوګرځوی عزتمند اُوسیدونکی د هغه ذلیلان او دغسے |

| |
|---|
| يَفْعَلُوْنَ ﴿٣٤﴾ وَاِنِّيْ مُرْسِلَةٌ اِلَيْهِمْ بِهَدِيَّةٍ فَنٰظِرَةٌۢ بِمَ |
| دوی کوی۔ او یقیناً زهٔ لیږونکے یم دوی ته یوه هدیه (تحفه) نو کتونکے یم چه په څه |
| يَرْجِعُ الْمُرْسَلُوْنَ ﴿٣٥﴾ فَلَمَّا جَآءَ سُلَيْمٰنَ قَالَ |
| واپس کیږی لیږلے شوی (استازی) نو هرکله چه راغله ډالئ سُلیمان ته وے وئیل |
| اَتُمِدُّوْنَنِ بِمَالٍ ۫ فَمَآ اٰتٰىنِۦَ اللّٰهُ خَيْرٌ |
| آیا امداد کوئ تاسو ما سره په مال باندے نو هغه چه راکړیدے ما ته الله تعالیٰ غوره دے د |
| مِّمَّآ اٰتٰىكُمْ ۚ بَلْ اَنْتُمْ بِهَدِيَّتِكُمْ تَفْرَحُوْنَ ﴿٣٦﴾ |
| هغے نه چه تاسو ته ئے درکړیدے بلکه تاسو په ډالئ خپله باندے خوشحالیږئ۔ |
| اِرْجِعْ اِلَيْهِمْ فَلَنَاْتِيَنَّهُمْ بِجُنُوْدٍ لَّا قِبَلَ |
| واپس لاړ شه دوی ته پس خامخا به راولو مونږ دوی ته داسے لښکرے چه نهٔ به وی طاقت |
| لَهُمْ بِهَا وَلَنُخْرِجَنَّهُمْ مِّنْهَآ اَذِلَّةً وَّهُمْ صٰغِرُوْنَ ﴿٣٧﴾ |
| د مقابلے د دوی په هغے او خامخا وبه باسو دوی لره د هغے (کلی) نه ذلیله او دوی به سپك وی |

**تفسير** : سليمان عليه السلام د هدهد خبره واوریده، وے وئیل : زهٔ ستا امتحان اخلم او گورم چه تا رشتینے خبره کړے اوکه د خپل ځان بچ کولو دپاره دے زما مخے ته دروغ وئیلی۔ زما دا خط یوسه لاړ شه، او د هغوئ مخے ته ئے واچوه او بیا یو طرفته پټ شه او اوگوره چه دوئ څهٔ کوی۔ چنانچه هدهد دغسے وکړل، او د ملکے په غیږ کښې ئے خط واچولو، ملکه خوفزده شوه او هغه ئے ولوستلو او د خپل دربار خاصو خلقو ته ئے ووئیل چه زما خواته یو ډیر زیات د احترام لائق خط رالیږلے شوے، دا خط د سلیمان د اړخه دے، او ددے شروع د الله په نوم سره شوے چه بیحده رحم کونکے او انتهائی مهربان دے، او ددے مضمون دادے چه تاسو د بادشاهانو د عامے طریقے مطابق د کبر او نخرے نه کار مهٔ اخلئ، تکبر مهٔ کوئ او کوم دین چه ماله راکړے شوے، په هغے ایمان راوړئ او زما په دربار کښې حاضر شئ۔

**سَنَنْظُرُ** : دا هم دلیل دے چه سلیمان عليه السلام په غیبو نهٔ پوهیدو ځکه د حقیقت د

معلومولو دپاره يوه طريقه اختياروي۔

## حكمتونه

۱- خبر د مخلوق (د انبياء او ملائكو عليهم السلام نه علاوه) د صدق او كذب احتمال لري۔

۲- كله چه يو نامعلومه خبر راشي نو د هغې نه روستو تحقيق ضروري دے، زر منل او زر رد كول صحيح نۀ وي۔

۳- او پدے كښې د مكے مشركانو ته تنبيه وركول دي چه راشئ ددے رسول الله ﷺ په باره كښې تحقيق وكړئ او زرئے مۀ رد كوئ۔

٤- د يو تن خبر كله چه معتمد وي قبول دے، ليكن د زيات اعتماد دپاره كوشش پكار دے۔ او تقليدي انداز كښې د هغه خبره منل نۀ دي پكار۔

الْكٰذِبِيْنَ: كښې مبالغه زياته ده په نسبت د (اَمْ كَذَبْتَ) سره، ځكه كه چرے د نبيّ په وړاندے د يو تن دروغ ثابت شول نو هغه به غټ دروغجن وي يعني د دروغژنو په ډله كښې به شمار وي او د هغه خلكو نه به وي چه دروغ وئيل د هغوی صفت او اخلاق وي۔

اِذْهَب بِّكِتٰبِیْ هٰذَا: حكمتونه

۱- سليمان عليه السلام خپل خط هُدهد ته وركړو نۀ نورو مارغانو ته، وجه دا وه چه دا ددے قصے خبر وركونكے وو، او بله دا چه سليمان عليه السلام په دۀ كښې د فهم او علم آثار وليدل نو د پيغام وړلو لائق ئے وګڼړلو۔

۲- كله چه يو نبي او د حق داعي د يو مشرك او مفسد قوم نه خبر شي نو هغوی ته في الحال د حق دعوت كول ضروري دي۔

۳- دعوت كله په ژبه سره وي او كله په قلم سره۔

٤- بادشاهانو ته بالخصوص دعوت د خطونو په ذريعه پكار دے، لكه چه زمونږ رسول اكرم ﷺ هم د صلح حُدَيبيه نه روستو د دنيا مختلفو بادشاهانو ته مهر شده خطونه وليږل۔

۵- د خط د جواب راتللو انتظار پكار دے، او د جواب نه مخكښې هيڅ اقدام كول نۀ دي پكار۔

ثُمَّ تَوَلَّ عَنْهُمْ: يعني د دوی نه داسے ځاى ته واوړه چه دوی تا نۀويني او تۀ د دوی

خبرے آورے دے دپاره چه بیا مونږ ته خبر راکړے چه دوی څه وائی۔
٦- ددے نه دا معلومه شوه چه بادشاه ته د خط ورکولو نه روستو استازی له دا ادب پکار دے چه د هغه نه جدا شی او هغوی پرے ځانله سوچ یا مشوره وکړی۔
مَاذَا يَرْجِعُوْنَ : اَىْ مَاذَا يُجِيْبُوْنَ : یعنی دوی څه جواب راواپس کوی۔
٧- مفسرین لیکی چه کله هُدهُد خط ویوړو نو بلقیس په یواځې کمره کښې وه چه ځان ته ئې څوکیداران ودرولی وو، ډیره حیاناکه وه، نو هُدهد په یوه کړکۍ کښې د هغې په سینه خط ګوزار کړو، هغه په هیبت راپاځیده، چه دا خطّ چا راګوزار کړو چه وے کتل مارغه ناست وو۔ نو تعجب ئې وکړو چه مارغه څنګه خط راوړی۔
قَالَتْ يٰٓاَيُّهَا الْمَلَؤُا : بلقیس چه کله خط ولوستلو نو په دربار کښې موجودو خاصو خلقو ته ئې د هغې مضمون وښودلو، او هغوی ته ئې ووئیل چه تاسو په دے باره کښې ماله رایه راکړئ، تر څو پورے چه ما ستاسو رائے معلومه کړے نهٔ وی، صرف په خپلے پوهے باندے بهروسه کولو سره هیڅ فیصله کول نهٔ غواړم۔ نو د قوم دغه مشرانو ووئیل چه مونږ فوجی طاقت لرو او د جنګ ښه تجربه لرو، او په میدان کښې د دشمنانو سره ښهٔ جنګ کولے شو، دے وجے نه مونږ د خپل ځان او مال او د ملك او وطن نه د دفاع کولو پوره قدرت لرو، اوس تهٔ خپله فیصله وکړه، ستا په لرے نظر لګیدو او عقلمندئ باندے زمونږ پوره بهروسه ده، ستا چه څهٔ حکم وی د هغې پوره کولو ته مونږ تیار یو۔
بلقیس د تمامو حالاتو جائزه واخسته، د سلیمان ﷺ د قوت او هیبت اندازه ئې دے نه ولګوله چه مارغانو پورے څیزونه د هغهٔ د فرمان تابع دی۔ او فورًا دے نتیجے ته اُورسیده چه دا د خپل دشمن په مقابله کښې بیخی کمزورے ده، او بهتری په همدے کښې ده چه سلیمان (ﷺ) سره صلح وکړے شی، دے وجے نه هغې ووئیل چه دا بادشاهان صاحبان چه کله د قوت په ذریعه یو ملك ته داخلیږی، نو هغه تس نس کوی، او د هغه ځای معزز خلق ذلیله جوړوی، وژل کوی، قید کول کوی، او مال او متاع لوټ کوی، دے وجے نه سلیمان او د هغهٔ د فوج خلق به هم دلته همدا هرڅهٔ کوی۔
زهٔ سلیمان او د هغهٔ د قوم مشرانو ته هدیه لیږم او ګورم چه زما قاصد څهٔ جواب او تأثر راوړی۔ کله چه قاصد سلیمان ﷺ خواته د بلقیس هدیه راوړله، او د هغهٔ په خدمت کښې ئې پیش کړه، نو هغهٔ ددے د قبلولو نه انکار وکړو او وے فرمایل چه تاسو ماپه مال راکولو سره خوشحالوئ، دے دپاره چه تاسو د خپل کفر او شرك نه زما نظر

واړوئ او تاسو په خپل حال باندې پرېښودلې شئ، ماله خو چه الله څۀ راکړي هغه تاسو نه ډير زيات او بهتر ئې راکړي. علم او نبوت ئې راکړے، بادشاهي ئې راکړې او جنات، انسانان، مارغان، ځناور او هواگانې ئې زما تابع کړي. تاسو هديه واپس يوسئ او د دنيا په دې عارضي نعمتونو باندې خوشحاله شئ، مانه ستاسو هديه قبوله نۀ ده، اوکه چرې هغوئ مسلمانيدو سره زما خواله رانغلل نو په داسې فوج سره به په هغوئ حمله وکړم چه د هغې د مقابلې طاقت به په هغوئ کښې نۀ وي، او تول به د سبأ ښار نه د ذليله کيدو په حالت کښې وباسم.

کله چه قاصدينو د سليمان ﷷ دا پيغام بلقيس ته ورسولو، او د هغې يقين راغے چه سليمان څۀ دنيوي بادشاه نۀ دے بلکه د الله نبي دے، نو د ايمان راوړو دپاره را روانه شوه.

## په آيت کښې حکمتونه

۱- کله چه يو کار واقع شي نو د شورئ اراکينو ته اطلاع ورکول پکار دي.

۲- کتاب کريم: خط ته ئې عزتمند ووئيلو ځکه چه مهر پرې موجود وو او عرب وائي چه د خط کرامت په هغې مهر لگول دي لکه چه زمونږ نبي کريم ﷺ هم ددې مقصد دپاره مهر په خپله گوتمه کښې جوړ کړے وو. ❁ دارنگه کرامت ددې خط په مضمون سره هم وو چه لنډې جملې او ډير مقصد پکښې ذکر وو.

❁ دارنگه دا د عظيم شخصيت د طرفنه راغلے وو چه د بلقيس په نيز هم عظيم وو.

❁ يا الفاظ ئې ډير خواږه وو، او د خط د کمال نه د ليږونکي کمال معلوميږي او پدې کښې اشاره ده چه اے مشرکانو! تاسو له پکار دي چه ددې قرآن د وجه نه د الله تعالىٰ کمالاتو باندې يقين وکړئ. بلقيس د يو خط نه د سليمان ﷷ کمال وپيژندو.

❁ او بسم الله پکښې ليکلے شوے وه. ❁ يا هغې ته د يو بادشاه د طرفنه خط راتلل ډير ناشنا شان والا وو نو ځکه ئې ورته کريم ووئيلو. ❁ يا وجه دا وه چه مارغه راوړے وو.

أَلَّا تَعْلُوا: يعني په ما باندې علو او تکبر مۀ کوئ لکه د نورو جابرو بادشاهانو په شان.

پدې جمله کښې تفصيل د خط دے په ذکر د مُرْسِلُ (راليږونکي) او په ذکر د مضمون سره او مضمون ئې مشتمل دے په درې غټو خبرو سره د اختصار نه اول بسم الله چه پدې کښې د توحيد مکمل دعوت دے، پدې کښې توحيد الُوهيت، توحيدِ أسماء او صفات او

توحيد د استعانت ذكر دے۔ دویم (اَلَّا تَعْلُوْا) هغوی ته دعوت ورکول دی چه زما مخالفت مهٔ کوئ بلکه زما دعوت ومنئ۔ دریم : وَاْتُوْنِیْ مُسْلِمِیْنَ : ما ته منقاد او تابعدار او زما د دین منونکی مؤمنان راشئ۔ او دریے واړه د خیر خواهئ خبرے دی۔

**فائده** : خطیب شربینیؒ لیکلی دی چه (اِنَّهٗ مِنْ سُلَيْمٰنَ) د خط په آخر کښې یا په یو طرف باندے لیکلے وو د بسم الله نه وړاندے نهٔ وو لیکن عادت دا دے چه مُرْسَل الیه اول د مُرسِل نوم ته گوری۔

**فائده** : د خط د لیکلو آداب دی (۱) د مُرسِل (لیږونکی) نوم لیکل۔

(۲) د خط ابتداء به په بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ سره کوی۔

(۳) او صرف بسم الله یا باسمهٖ تعالیٰ یا په ابجدو کښې لیکل صحیح نهٔ دی۔

(٤) خپل مقصد په اختصار سره جامع مانع لیکل پکار دی۔ (احسن الکلام)

اُولُوْا قُوَّةٍ: یعنی مونږ خو جنګ ته تیار یو، که ته په مونږ هر څه کوے مونږ تیار یو۔

اَذِلَّةً : یعنی اول کښې به بادشاه وی بیا به جیل کښې ذلیله پروت وی او په کوڅو کښې به راخکلے کیږی۔

وَكَذٰلِكَ يَفْعَلُوْنَ: ۱- یعنی دا د بادشاهانو عادت دے چه دغسے کارونه کوی۔

۲- یا ضمیر سلیمان ﷺ او د هغهٔ فوج ته راجع دے یعنی او دغسے به دوی هم وکړی۔ نو ځان پرے ولے بیعزته کوو۔

وَاِنِّیْ مُرْسِلَةٌ : دا ددے بلے هوښیارتیا او سیاسی بصیرت دے، دے وویل : چه زهٔ په دوی امتحان او تحقیق کوم، که سلیمان چرته مال واخستو معلومه به شی چه دا دنیا پرست دے، بیا ورسره جنګ آسان دے۔ او که مال ئے وانخستو او دین ئے مطلب وو نو بیا به دا د الله پیغمبر وی۔ او د پیغمبرانو مقابله څوك نشی کولے نو بیا به ایمان راوړو۔ او دا ډیر ښهٔ تحقیق دے او دا د هر حق پرست په باره کښې انسان کولے شی چه دے څه غواړی، پیسے، ووټونه غواړی او که دین غواړی نو مشرکانو ته وئیلے شی چه تاسو هم د رسول الله ﷺ په باره کښې تحقیق وکړئ چه دے تاسو نه څهٔ غواړی۔

بِهَدِيَّةٍ: دے هدیه کښې مفسرینو ډیر اقوال نقل کړیدی (۱) ابن عباس ﷺ فرمائی : دے د سرو زرو یوه خخته ولیږله نو کله چه قاصدان راغلل، وے کتل چه د کلی دیوالونه د سرو زرو وو۔ (۲) د ابن عباس ﷺ یو بل روایت دے چه هلکان او جینکئ وے او په هر یو باندے یو شان لباس وو چه نر او ښځه پکښې نهٔ شو پیژندل کیدل۔

(۳) ثابت بُنانيؒ وائي : د سرو زرو تختي وې چه د وريښمو په لوښو کښې ئې تاو کړې وې۔
(٤) مجاهدؒ وائي : داسې وينځې ئې وليږلې چه لباس ئې د هلكانو وو او داسې هلكان چه لباس ئې د وينځو وو۔
(٥) عكرمةؒ وائي دوه سوه اسونه وو چه په هر اس باندې يو غلام او بله وينځه وه او په هر اس باندې داسې رنګ وو چه په بل باندې هغه نهٔ وو۔
(٦) سعيد بن جبيرؒ وائي چه دا هديه د جواهرو نه وه۔ (القرطبيؒ والبغويؒ وفتح البيان)۔
**فائده** : په نوم بدلولو سره چه رشوت له د هديه يا ډالۍ يا د چائې پانړې يا ايزى لود نوم ورکړي- يو شے نهٔ حلاليږي لکه دې زمانه هم رشوت له نوم د هديه ورکړو۔
**فَلَمَّا جَآءَ**: دلته ضمير يو قاصد ته راجع دے کوم چه مشر وو د نور جماعت۔ يا جنس رسول ته راجع دے اګرکه هغوى ډير کسان وو۔ سليمان ؑ پو هه شو چه دا ما د رشوت په ذريعه د مقصد نه اړوى نو ځکه ئې هديه رد کړه او سخت جواب ئې ورکړو۔
دے نه دا فائده معلومه شوه چه انبياء عليهم السلام د رشوت او د هديه ترمينځ د خپل بهتر فراست په ذريعه فرق کوي، که واقعي هديه وي نو انبياء عليهم السلام ئې قبلوي۔
**لَا قِبَلَ**: اَیْ لَاطَاقَةَ ۔ يعني هيڅ طاقت د مقابلے د هغوى به نهٔ وي۔قِبَل په اصل کښې مقابلے او مقاومت ته وئيلے شي۔
**وَّهُمْ صٰغِرُوْنَ** : يعني دوى به هميشه ذليله وي يعني غلامان به ترے جوړ کړم۔ يا دوى به مغلوبه کړے شي۔
**فائده** : د کافر هديه قبلول جائز دي په شرطونو سره، يو دا چه پدے کښې به د مسلمان ذليله کول نهٔ وي۔ تصويران به درله نهٔ وباسي، او خپل ځان به په مسلمانانو کښې نهٔ ښاى کوي، ګناهونه به درباندې نهٔ کوي، دعوت به درته نهٔ درکوي، د نورو مسلمانانو د خرابوالي کوشش به پکښې نهٔ وي بلکه د يو بشر دوستۍ په حيثيت سره به وي۔
رسول الله ﷺ به د مشرکانو هدايا قبلولے لکه امام بخاريؒ پدے باندې باب قائم کړيدے۔
ليکن بل طرفته حديث کښې دي : [اِنَّا لَا نَقۡبَلُ زَبَدَ الۡمُشۡرِكِيۡنَ] (احمد : ۱۷۵۱۷ باسناد صحيح) مونږ د مشرکانو خيرې نهٔ قبلوو۔ او [ نُهِيۡتُ عَنۡ زَبَدِ الۡمُشۡرِكِيۡنَ] (ابوداود : ۳۰۵۹) والترمذي (۱۵۷۷) باسناد صحيح) زهٔ د مشرکانو د خيرو نه منع شوے يم۔
نو تحقيق دا دے چه کله په هديه کښې د مشرك مقصد د مسلمان ذليله کول او بد نيت

وی یا د هغهٔ دنیا پرستی معلومه وی، یا د هغهٔ د دعوت بندولو دپاره ئے ورکوی، نو بیا به هدیه نهٔ قبلوی۔ یو ځای کښې زلزله راشی، د عامو کافرانو د طرفه هدایا راروانے وی نو جائز ده۔

| |
|---|
| قَالَ يٰۤاَيُّهَا الْمَلَؤُا اَيُّكُمْ يَاْتِيْنِيْ بِعَرْشِهَا قَبْلَ |
| اُووئیل سلیمان اے دربار والو! کوم یو په تاسو کښې به راوړی ما ته تخت د هغے مخکښې |
| اَنْ يَّاْتُوْنِيْ مُسْلِمِيْنَ ﴿۳۸﴾ قَالَ عِفْرِيْتٌ مِّنَ الْجِنِّ اَنَا |
| ددے نه چه راشی دوی ما ته تابعداری کونکی۔ اُووئیل یو طاقتور د پیریانو نه زهٔ به |
| اٰتِيْكَ بِهٖ قَبْلَ اَنْ تَقُوْمَ مِنْ مَّقَامِكَ ج وَاِنِّيْ عَلَيْهِ |
| راوړم تا ته دا مخکښې ددے نه چه پاځیږے تهٔ د ځائے خپل نه، او یقیناً زهٔ پدے باندے |
| لَقَوِيٌّ اَمِيْنٌ ﴿۳۹﴾ قَالَ الَّذِيْ عِنْدَهٗ عِلْمٌ مِّنَ الْكِتٰبِ اَنَا |
| خامخا طاقتور امانتگر یم۔ اُووئیل هغه کس چه د هغه سره علم د کتاب وو زهٔ به |
| اٰتِيْكَ بِهٖ قَبْلَ اَنْ يَّرْتَدَّ اِلَيْكَ طَرْفُكَ ط فَلَمَّا رَاٰهُ |
| راوړم تا ته دا مخکښې ددے نه چه واپس شی تا ته نظر ستا۔ نو هرکله چه اُولیدو سلیمان |
| مُسْتَقِرًّا عِنْدَهٗ قَالَ هٰذَا مِنْ فَضْلِ رَبِّيْ قف |
| تخت لره چه په آرام پروت وو د هغه په خوا کښې، وے وئیل دا د مهربانئ د رب زما نه دے |
| لِيَبْلُوَنِيْۤ ءَاَشْكُرُ اَمْ اَكْفُرُ ط وَمَنْ |
| دے دپاره چه امتحان اُوکړی په ما باندے چه آیا زهٔ شکر کوم که ناشکری کوم، او چا |
| شَكَرَ فَاِنَّمَا يَشْكُرُ لِنَفْسِهٖ ج وَمَنْ |
| چه شکر اُوکړو نو یقیناً دے شکر کوی دپاره د فائدے د خپل ځان او چا چه |
| كَفَرَ فَاِنَّ رَبِّيْ غَنِيٌّ كَرِيْمٌ ﴿۴۰﴾ |
| ناشکری اُوکړه نو یقیناً رب زما بے حاجته عزت والا دے۔ |

**تفسیر :** سلیمان علیه السلام د پیریانو په ذریعه د هغے د راتلو خبر اخستلو، اوکله چه

فلسطین ته نزدې راغې نو هغهٔ د خپل حکومت مشرانو نه تپوس وکړو چه په تاسو کښې به څوك د هغې شاهي تخت د هغوئ تولو د راتلو نه مخکښې زما خواته راوړي ؟
مفسرین لیکي : پدې تخت راوړو کښې د سلیمان ﷺ یو مقصد دا وو چه بلقیس او د هغې قوم ته د خپل نبوت د ثابتولو دپاره معجزه وښائي دې دپاره چه ایمان راوړي. او دویم د الله تعالیٰ قدرت ورته ښکاره کړي دې دپاره چه د هغهٔ په توحید ایمان ولري.
دریم دا چه [لِاخْتِبَارِ عَقْلِهَا] د هغې عقل باندې امتحان کوي لکه روستو راځي. دې دپاره چه د هغې سره د هغې د عقل په اندازه خبرې اترې او سلوك وکړې شي.
دې کښې چا دا کمزورې خبره لیکلې ده چه دا تخت ئې ورله مخکښې ځکه راوړو چه که چرې بلقیس ایمان راوړي نو بیا د هغه دپاره ددې تخت راوړل جائز نهٔ وو، ځکه چه د مسلمان مال غصب کول حرام دي. دا د یهودو خبره ده، او دا خبره د دوه وجو نه غلطه ده، یو دا چه په پخوانو امتونو باندې غنیمت حرام وو. غنیمت صرف زمونږ دې امت له حلال شویدې. دویمه وجه دا ده چه دا خو د هغې سره تګي او دهوکه ده او پیغمبران ددا سې کار نه منزه او پاك وي او د سلیمان ﷺ ددې تخت ته هیڅ ضرورت نهٔ وو هغه خو د تولې دنیا بادشاه وو، نو دا د هغه په نبوت باندې داغ لګول دي.

## حکمتونه

۱- د اسلامي مشاورت دپاره مجلس شوریٰ ضروري دې.
۲- او شوریٰ والو باندې هم د حکومت بعض کارونه اچولې شي.
۳- په نبي باندې د معجزې اظهار ضروري وي او سلیمان ﷺ چه څه کوي نو د الله په إذن سره ئې کوي.
قَالَ عِفْرِيْتٌ مِّنَ الْجِنِّ : د هغهٔ دې خبرې آوریدو سره یو قوي شکل والا پیري ووئیل چه دا کار زهٔ کولې شم، او ستا د مجلس د برخاست کیدو نه مخکښې به ئې زهٔ راوړم. تاته یقین درکوم چه زهٔ ددې طاقت لرم او هغه په حفاظت او امانت سره تاته راوړم.
عِفْرِيْتٌ: اَلْمَارِدُ الْغَلِيْظُ الشَّدِيْدُ الْقَوِيُّ. هغه سرکش چه سخت او مضبوط او قوي وي.
نحاسؒ وائي : دا هغه قوي ته وئیلې شي چه ورسره خباثت او چالاکي وي. بعض وائي : دا د پیریانو رئیس ته وائي. او دا د غر په شان وو چه یو قدم به ئې د نظر د آخري ځای لګیدو پورې کیخودو او دې د سلیمان ﷺ تابع وو. او دلته ترې سرکش نهٔ دې مراد

ځکه چه دده صفت په قوي او امين سره راغلے دے۔ او سليمان علیہ السلام په هغه باندے رد نه دے کړے۔

## حکمتونه

۱– پيريانو کښ ډير قوت والا شته چه درانه ځيزونه پورته کولے شي۔
۲– جناتو لره دا طاقت هم ورکړے شويدے چه په لږ وخت کښ ډير مسافت قطع کړي چه انسان ئے نشي کولے۔
۳– د هر کار کولو دپاره دوه صفتونه پکار دي يو قوت او بل امانت۔ هله به کمال ته رسي۔

مَّقَامِكَ: ددے نه مراد د سليمان علیہ السلام د قضاء (يعني فيصلو) مجلس دے چه هغه د غرمے وخت پورے وو۔

نو سليمان علیہ السلام هغه ته وويل: [أُرِيْدُ أَسْرَعَ مِنْ ذٰلِكَ]۔ زۀ ددے حاضرول ددے وخت نه زر غوارم۔ ځکه چه په هغے کښ تغيير او تبديل به کوو او هغوي هم زر رارسيدونکي وو۔

## الَّذِيْ عِنْدَهٗ عِلْمٌ مِّنَ الْكِتٰبِ څوك وو؟

قَالَ الَّذِيْ عِنْدَهٗ عِلْمٌ مِّنَ الْكِتٰبِ: وويل يو تن چه د هغه سره د الله تعالیٰ د کتاب علم وو۔ ددے شخص په تعيين کښ درے اقوال مشهور دي (۱) يو قول دا دے چه دده نوم آصف بن برخيا وو، چه دا د بني اسرائيلو نه وو او د سليمان علیہ السلام وزير وو، او ده ته د الله هغه اسمِ اعظم معلوم وو چه د هغے په ذريعه د الله نه په غوښتلو سره دعاء قبليږي، او ده ته د تورات علم حاصل وو۔ هغه ووئيل چه زۀ به دا د سترګے د رپ نه مخکښے ستا په خدمت کښ حاضر کړم۔ دا قول اکثرو مفسرينو ذکر کړے او امام شوکانيؒ غوره کړے۔
ليکن بعض علماؤ پدے باندے رد کړے، يو دا چه کرامت د ولي په اختيار کښ نۀ وي، نو هغه څرنګ خان ته د تخت د راوړو نسبت وکړي۔ دويم دا چه د نبي پداسے کارونو کښ ولي ته ضرورت نۀ وي ځکه چه صفت د نبوت د ولايت نه ډير غالب او قوي دے، او دلته خو د معجزے اظهار مقصد دے، نۀ د ولي کرامت۔ دريم دا چه علم د کتاب په سليمان علیہ السلام کښ د دغه شخص نه زيات قوي وو نو پدے سره غير قوي شخص څرنګ مراد کړے شي۔ (دا وو زمونږ د شيخ محترم رستميؒ کلام اسکنه الله في فسيح

الجنان)۔ (احسن الکلام)۔
او نور علماء وائی چه کرامت د ولی د رسول دپاره معجزه وی۔ پدے کښې اشاره وی چه که دا رسول حق نهٔ وے نو بیا دهٔ د ملګرو نه څرنګ داسے ناشنا کارونه صادر شی۔
او بله دا چه دا مستجاب الدعوة وو، د الله نه ئې په اسم اعظم سره سوال وکړو، نو تخت حاضر شو۔ نو ددے نه چه کوم باطل پرست مبتدعین دا دلیل نیسی چه ولی په نبی باندے غوره دے نو غلط وائی۔
او عِلْمٌ مِنَ الْكِتَابِ کښې اشاره ده چه علم انسان ته ډیرے فائدے ورکوی، انسان ډیر خیرونو ته راکاږی۔
(۲) دویم قول دا دے چه ددے نه مراد جبریل علیه السلام دے چه دا هم پدے موقعه کښې حاضر دے او هغه سره علم د کتابونو د الله تعالیٰ دے چه په انبیاء علیهم السلام ئې نازل کړیدی۔
(۳) دریم قول دا دے چه دا په خپله سلیمان علیه السلام وو، همدهٔ سره د الله تعالیٰ د کتاب علم وو، هم هغهٔ پیری ته ووئیل چه زهٔ به ئې ددینه مخکښې راوړم۔ او پدے کښې د مجلس حاضرینو ته خپله معجزه ښکاره کول مقصد وو، دے دپاره چه د دوی یقین هم مضبوط شی۔ او دلیل ئې دا دے چه روستو دهٔ پدے کار باندے شکر ویستلے دے۔ [قَالَ هٰذَا مِنْ فَضْلِ رَبِّیْ] او دا هله وئیل کیږی چه کله د یو بنده نه لوی او ناشنا کار صادر شی۔
قَبْلَ اَنْ یَّرْتَدَّ اِلَیْكَ طَرْفُكَ: د نظر راواپس کیدل دا دی چه یو شی ته وګوری او بیرته ترے نظر راواړوی۔ یا دا چه آسمان ته وګوری او بیرته نظر راخکته کړی۔ مراد ترے نه په یوه لحظه کښې راوړل دی۔
بیا دا ئې په کومه طریقه راوړو؟ نو هغه نهٔ ده ذکر، یا به ئې په هوا راوړے وی، یا به ئې په زمکه کښې راویستلے وی، خو الله تعالیٰ په خپل قدرت سره د سترګے د رپ نه مخکښې هغه تخت د سلیمان علیه السلام مخے ته راوستو، نو هغهٔ ووئیل چه دا خالص د الله فضل او کرم دے، ګنے په ما کښې ددے طاقت چرته وو، الله په ما ازمائش کول غواړی چه زهٔ د طاعت او بندګئ په ذریعه د هغهٔ شکر اداء کوم اوکه د نافرمانئ او ګناه په ذریعه د هغهٔ ناشکری کوم۔ او څوك چه د الله شکر ګذاروی نو ددے فائده دهٔ ته خپله رسیږی چه ددهٔ نعمت باقی پاتے کیږی، او څوك چه ناشکری کوی نو الله د خپلو بندګانو د شکر نه بیخی بے نیازه دے، دیته حاجت نهٔ لری۔ او هغه کریم دے چه د بندګانو د کفر باوجود خپل نعمتونه د هغوئ نه نهٔ راکاږی۔ دارنګه که ټول خلك کفر وکړی نو پدے سره د الله

په عزت کښې هیڅ کمے نهٔ راځی۔

## حکمتونه

۱- علم د کتاب الٰهی لوی قوت دے۔

۲- هر کله چه یو نعمت حاصل شی اګرچه په ظاهره کښې په قدرت د انسان سره وی خو د هغې نسبت د الله تعالیٰ فضل ته کول پکار دی او دا شکر د نعمت دے۔

۳- هر نعمتِ الٰهیه په انسان باندے ابتلاء ده۔

٤- په نعمت باندے دوه نتیجے تفریع وی، یا شکر یا ناشکری، او د هرے نتیجے فائده او نقصان انسان ته حاصلیږی۔ (احسن الکلام)

| |
|---|
| قَالَ نَكِّرُوْا لَهَا عَرْشَهَا نَنْظُرْ |
| اُووئیل سلیمان علیه السلام ناشنا کړئ دے ته تخت ددے، ګورو مونږ چه |
| اَتَهْتَدِیْ اَمْ تَكُوْنُ مِنَ الَّذِیْنَ لَا یَهْتَدُوْنَ ﴿٤١﴾ فَلَمَّا |
| آیا هدایت مونده‌لے شی که دهٔ د هغه کسانو نه چه هدایت نهٔ مومی۔ نو هر کله چه |
| جَآءَتْ قِیْلَ اَهٰكَذَا عَرْشُكِ ؕ قَالَتْ كَاَنَّهٗ هُوَ ۚ |
| راغله ورته اُووئیلے شو آیا داسے دے تخت ستا، اُووئیل هغې ګویا دا هغه دے |
| وَاُوْتِیْنَا الْعِلْمَ مِنْ قَبْلِهَا وَكُنَّا مُسْلِمِیْنَ ﴿٤٢﴾ |
| او راکړے شویدے مونږ ته علم (ستا د نبوت) مخکښې ددے نخې نه او وو مونږ تابعدار۔ |
| وَصَدَّهَا مَا كَانَتْ تَّعْبُدُ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ؕ |
| او منع کړے وه دے لره (د توحید نه) هغه څه چه بندګی به ئې کوله دے سوئی د الله نه |
| اِنَّهَا كَانَتْ مِنْ قَوْمٍ كٰفِرِیْنَ ﴿٤٣﴾ قِیْلَ لَهَا ادْخُلِی الصَّرْحَ ۚ فَلَمَّا رَاَتْهُ |
| یقیناً وه دا د قوم کافرانو نه۔ ووئیلے شو دے ته ورننوځه بنګلے ته نو هر کله ئې چه اُولیدله هغه |
| حَسِبَتْهُ لُجَّةً وَّكَشَفَتْ عَنْ سَاقَیْهَا ؕ قَالَ |
| ګمان ئې اُوکړو په هغې باندے د چپے او ښکاره ئې کړه جامه د پنډو خپلو نه، اُووئیل |

| اِنَّهٗ صَرۡحٌ مُّمَرَّدٌ مِّنۡ قَوَارِيۡرَ ۬ؕ قَالَتۡ رَبِّ اِنِّىۡ ظَلَمۡتُ |
|---|
| هغه يقيناً دا بنګله ده جوړه کړے شوے د شيشو نه. اُوئيل دے اے ربه زما يقيناً ما ظلم |
| نَفۡسِىۡ وَاَسۡلَمۡتُ مَعَ سُلَيۡمٰنَ لِلّٰهِ رَبِّ الۡعٰلَمِيۡنَ ﴿۴۴﴾ |
| کړيدے د خپل ځان سره او زهٔ تابع شوم د سليمان سره خاص الله رب العالمين ته. |

**تفسير** : سليمان ﷺ حکم وکړو چه ددے تخت ځينې صفتونه بدل کړئ، دے دپاره چه وګورو چه بلقيس دا خپلے مخے ته ووينى نو څهٔ جواب ورکوى، او د هغے د عقل او پوهے اندازه وکړے شى، نو کله چه هغه خپل تخت ته نزدے راغله نو هغے نه تپوس وشو چه آيا ستا شاهى تخت داسے دے، هغے ووئيل چه هُو بهو داسے دے.

مفسرين ليکى چه هغے دا ونهٔ وئيل چه ((همدا زما شاهى تخت دے)) او نهٔ ئے دا ووئيل چه ((نهٔ، زما تخت خو بل يو دے)) او دا جواب د هغے د عقلمندئ دليل وو دے دپاره چه د اولنى جواب په صورت کښې ځوك هغه دروغژنه ونهٔ ګنړى او د دويم جواب په صورت کښې ځوك هغے ته جاهله ونهٔ وائى.

اَتَهۡتَدِىۡ: ۱- يعنى پيژنى ئے او که نه د هغه کسانو نه ده چه نهٔ ئے پيژنى. اَىۡ تَعۡرِفُهٗ اَوۡ لَا تَعۡرِفُهٗ . نو پدے کښې فائده دا ده چه که چرته ئے وپيژندهٔ نو معلوميږى چه هوښياره او عقلمنده ده او که وے نهٔ پيژندلو نو جاهله ده نو د جاهل سره به د جاهل په شان معامله او د عالِم سره به د عالِم مطابق معامله کولے شى. نو موقعه شناسى او شخص شناسى د عقلاؤ او بلغاؤ طريقه ده.

۲- يا هدايت شرعى مراد دے يعنى هدايت مونده کوى او که هدايت نهٔ مونده کوى. يعنى که پدے پوهه شوه نو دا به عقلمنده وى او عقلمندو ته الله تعالىٰ هدايت ورکوى. او که بى عقله وى نو هدايت به نهٔ مونده کوى لکه الله فرمائى : ﴿ وَيَجۡعَلُ الرِّجۡسَ عَلَى الَّذِيۡنَ لَا يَعۡقِلُوۡنَ﴾ . (يونس: ۱۱۰) او الله تعالىٰ اچوى پليتى (کفر او شرك) په هغه خلکو چه بى عقله وى)

وَاُوۡتِيۡنَا الۡعِلۡمَ مِنۡ قَبۡلِهَا : ۱- دا يا قول د بلقيس دے او هاء ضمير دے حالت يا آية (نخے) ته راجع دے يعنى مونږ ته ددے حالت (د تخت راوړو) نه مخکښې علم راکړے شويدے په نبوت ستا باندے ځکه چه د خط د مضمون نه، بيا د هديه د واپس کولو نه

معلومه شوے وه چه سلیمان ﷺ د الله نبی دے۔
۲- یا دا قول د سلیمان ﷺ دے یعنی سلیمان ﷺ د هغے د ذهین کیدو اقرار وکړو او د خپل رب شکر اداء کولو سره ئے ووئیل چه که الله هغے له عقل او ذهانت ورکړے، نو مونږ له ئے ددے نه مخکښے د خپل حق ذات په قدرت او دینِ اسلام د رشتین والی علم راکړے، او په همدے وجه مونږ د مسلمان ژوند تیروو، یا مونږ ته د بلقیس د راتللو نه مخکښ علم راکړے شوے وو چه دا به تابعداره راځی او مونږ د الله تعالیٰ د هر حکم تابعدار یو۔ او دا قول د مجاهدؒ دے او صاحب د فتح البیان غوره کړیدے مگر اول قول د سیاق سره ډیر ظاهر دے۔
وَكُنَّا مُسْلِمِيْنَ : د اول قول مطابق معنیٰ دا ده : چه مونږ اُوس مسلمانان یو، د الله تعالیٰ دین اسلام ته منقاد او تابعدار یو۔ او د دویم قول مطابق معنیٰ ده : او وو مونږ د مخکښ نه الله تعالیٰ ته غاړه ایخودونکی، یعنی په اسلام باندے روان یو۔
وَصَدَّهَا : دا واو استینافیه دے په جواب د سوال کښ دے، چه هر کله دا عاقله او هوښیاره وه نو بیا ولے په شرك کښ مبتلا وه؟ نو په جواب کښ ئے دوه سببونه ذکر کړیدی۔ او دا قول د الله تعالیٰ دے چه د سلیمان او د بلقیس د خبرو اترو نه پس د بلقیس د مشرك کیدو سبب بیانوی۔ یو دا چه دے به شرکی عقیده ساتله او په شرکی اعمالو کښ اخته وه، فی الحال د غیر الله په بندگئ مشغوله وه، نو دے د توحید او د ایمان نه په غفلت کښ اچولے وه ځکه چه د انسان طبیعت دا دے چه په یوه نظریه یا یو مسلك او طریقه کښ مشغول وی نو د هغے نه علاوه تحقیق نهٔ کوی نو ځکه د خیر نه محروم شی دا ئے په ﴿وَصَدَّهَا مَا كَانَتْ تَعْبُدُ﴾ سره ذکر کړیدے۔
دویم سبب : ددے ټول قوم کافر او مشرك وو، یعنی ماحول ئے خراب وو او ددے په ماحول کښ د توحید او د حق آواز نهٔ وو، او ماحول لره ډیر لوی اثر وی اګرکه انسان ډیر عقلمند وی۔ په هندوانو، انګریزانو، سکهانو کښ ډیر هوښیار خلك شته چه ایمان راوړی لیکن د قوم او رواج او ماحول منع کړی وی۔ د قوم نه متأثره وی نو ایمان نهٔ راوړی۔ په ډیرو بدعتیانو کښ داسے خلك شته چه حق او سنت ئے خوښ وی لیکن د قوم نه متأثره وی۔ دا سبب ئے په ﴿إِنَّهَا كَانَتْ مِنْ قَوْمٍ كَافِرِيْنَ﴾ سره ذکر کړیدے۔ نو د غلط ماحول او رواج نه ځان ویستل د الله په رحم او فضل سره کیږی، او بنده به د الله تعالیٰ نه د هدایت سوال کوی۔

وَصَدَّهَا : اَیْ عَنِ الْاِسْلَامِ۔ یعنی د اسلام نه دے لره اړولے او منع کړے وه۔ (مَاکَانَتْ) دا (مَا) فاعل دے د صَدَّهَا دپاره۔
۲- تفسیر: صَدَّ کښې ضمیر سلیمان ﷺ ته راجع دے او (مَاکَانَتْ) ئے مفعول دے۔ یعنی سلیمان ﷺ هغې لره واړوله د عبادت د غیر الله نه۔ لیکن دا قول ظاهر نهٔ دے۔
**فائده** : ۱- د مذهب او مسلك تعصب انسان لره د نورو مذهبونو نه غافل کوی۔
۲- ماحول لره د انسان په عقیده او عمل باندے اثر وی ددے وجه نه د غلط مجلس او ناکاره ملګرو نه ځان ساتل ضروری دی۔
قِیْلَ لَهَا ادْخُلِی الصَّرْحَ: سلیمان ﷺ یو داسے محل جوړ کړے وو چه د هغې فرش د پړقیدونکے شیشے نه جوړ شوے وو، او د هغې لاندے لوی تالاؤ وو چه په هغې کښې ډیر زیات مهیان وو، او په اُوبو کښې به چپه پیدا کیدله۔ هغهٔ بلقیس او د هغې قوم ته د خپل نبوت او لوی بادشاهئ یوه بله نښه ښودل وغوښتل، چنانچه هغه دغه محل ته لاړو او کیناستهٔ، او د هغهٔ خوا اوشاته د انسانانو او پیریانو یو لوی لښکر جمع شو، او بیا هغې ته ووئیلے شو چه سلیمان ﷺ هغې سره په دے محل کښې ملاویدل غواړی۔
کله چه د محل صحن ته اورسیده نو هغې دا اوبهٔ وګڼړلے او د خپلو دواړو پنډو نه ئے کپړه پورته کړه، نو سلیمان ﷺ هغې ته ووئیل چه دا اوبهٔ نهٔ دی، بلکه د پړقیدونکے شیشے فرش دے۔
ادْخُلِی الصَّرْحَ : دے ته ئے ولے ووئیل چه دے بنګلے ته ننوزه؟ پدے کښې حکمة دا وو چه دے ته د الله تعالیٰ قدرت او خپله بادشاهی وښائی چه متأثره شی چه الله تعالیٰ مونږ ته داسے څیزونه او نعمتونه راکړیدی چه هغه ئے تا ته نهٔ دی درکړی، نو پدے وجه زمونږ ستا هدیه ته ضرورت نشته۔ دارنګه سلیمان ﷺ دننه وو نو دے ته ئے ووئیل چه دننه ډے راشی۔ دویم دا چه [لِاخْتِبَارِ فَهْمِهَا] د هغې په علم او پوهه باندے نور امتحان کول غواړی۔
بعض وائی : [لِاخْتِبَارِ سَاقِهَا] د هغې پونډئ معلومول ئے مقصد وو ځکه چه پیریانو ورته وئیلی وو چه د هغې پونډئ باندے ویښته ولاړ دی دے دپاره چه سلیمان ﷺ ئے په نکاح وانخلی۔ لیکن دا خبره مناسب نهٔ ده۔ داسے روایات یهودیانو د سلیمان ﷺ د بدنامولو دپاره جوړ کړیدی۔
الصَّرْح : دا هغه بنګله ده چه پورته وی او د لرے ځای نه ښکاره کیږی۔ (ابوعبیدة)

بعض وائي : دا هغه بنگله ده چه په زمکه ئے شیشه لګیدلے وي او لاندے ترے اُوبه او مهیان وي۔ (ابن قُتَیبَة) (فتح البیان)

وَكَشَفَتْ عَنْ سَاقَيْهَا : دا ددے زنانه کم عقلي ده چه د پردو سرو مخامخ پونډئ ښکاره کول د جامے د حفاظت دپاره کوي، جامه ادنئ ده او پونډئ ښکاره کول حرام کار دے، نو د معمولي مال د حفاظت دپاره حرام کار کول جهالت وي۔ او د هغه زنانو دا جهالت دے چه باران وشي او چقړو کښې روانے وي نو د پینڅو د حفاظت دپاره خپله پونډئ او عورت ښکاره کوي۔

مُّمَرَّدٌ: اَیْ مُسَقَّفٌ بِسَطْحٍ مِّنْ قَوَارِیْرَ۔ یعني دے ته چهت د شیشو ورکړے شویدے۔ او ممرد خوئیے، هموارہ او صفا ته هم وئیلے شي۔ دارنګه مطوّل معنیٰ ئے ده یعني اوږده کړے شوے۔ دلته ئے ((جوړه شوے)) معنیٰ ده۔

قَالَتْ رَبِّ اِنِّیْ ظَلَمْتُ نَفْسِیْ : دا آخري شے وو چه دے د بلقیس سترګے پرانستے۔ اولنے شے د سلیمان ﷺ خط وو، چه هغه مارغهٔ د هغې په غیږه کښې غورزولے وو، دویم شے د هغې هدیه وه چه هغهٔ ئے رد کړے وه، دریم شے د هغې د قاصدانو د فلسطین نه د واپس کیدو نه پس د سلیمان ﷺ د پاک ژوند ګواهي وه۔

او اوس آخري شے ذکر کوي چه بلقیس ئے د سلیمان ﷺ په نبوت باندے په ایمان راوړو مجبوره کړه چه د تمام دنیوي آرام او د ښائست د اسبابو د مهیا کیدو باوجود د سلیمان ﷺ سر هر وخت د سختے عاجزئ په وجه د الله مخے ته ښکته دے، تکبر نکوي دے وجے نه بے اختیاره ئے ووئیلے چه ما اوسه پورے د الله په ځای د نمر په عبادت کولو سره په خپل ځان ظلم کولو، زهٔ اُوس د سلیمان ﷺ پیروي کولو سره په الله رب العالمین باندے ایمان راوړم، او د خپل اسلام اعلان کوم۔

## فوائد، معارف او حکمتونه

۱- بلقیس د شرك نه توبه کړه او د سلیمان ﷺ تابع شوه۔ ډیره خوش نصیبه وه۔

۲- د بلقیس سره د سلیمان ﷺ نکاح کول په صحیح دلیل سره ثابت نهٔ دي او تاریخ کښې دوه قسمه روایات د نکاح او نهٔ نکاح دواړه راغلي دي۔ دارنګه هغه خپلے بادشاهئ ته واپس لیږل او پس د اسلام نه د هغې بادشاهي کول په هیڅ صحیح دلیل سره ثابت نهٔ دي۔

۳- عالیشان مکانات جوړول د ضرورت مطابق جائز دی۔
٤- کله د انسان نظر او فکر او رایه خطا کیږی اګرکه هوښیار وی۔
۵- د حق د دلائلو د ښکاره کیدو نه روستو باطل پریخودل ضروری دی۔
٦- شرك او كفر لوی ظلم دے۔
ظَلَمْتُ نَفْسِيْ اَیْ بِالشِّرْكِ۔ ما په خپل ځان باندے په شرك سره ظلم كړیدے۔
۷- د توحید کمال بغیر د تابعدارئ د رسول نه نشی کیدے۔
مَعَ سُلَيْمَانَ : حُکه چه د الله بندګی او د پیغمبر تابعداری په هر ځا لازمه وی۔

| وَلَقَدْ اَرْسَلْنَآ اِلٰى ثَمُوْدَ اَخَاهُمْ صٰلِحًا اَنِ اعْبُدُوا |
| --- |
| او یقیناً لیږلے وو مونږ ثمودیانو ته ورور د هغوی صالح (عليه السلام) چه بندګی خاص کړئ |
| اللّٰهَ فَاِذَا هُمْ فَرِيْقٰنِ يَخْتَصِمُوْنَ ﴿٤٥﴾ قَالَ يٰقَوْمِ |
| الله لره نو دغه وخت دوی دوه ډلے شو چه جګړه ئے کوله۔ اُووئیل صالح اے قومه زما |
| لِمَ تَسْتَعْجِلُوْنَ بِالسَّيِّئَةِ قَبْلَ الْحَسَنَةِ ۚ لَوْلَا تَسْتَغْفِرُوْنَ اللّٰهَ |
| ولے په جلتئ سره غواړئ عذاب مخکښ د نیکئ (ایمان راوړو) نه ولے بخنه نۀ غواړئ د الله |
| لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ﴿٤٦﴾ قَالُوا اطَّيَّرْنَا |
| نه دے دپاره چه په تاسو باندے رحم اُوکړے شی۔ اُووئیل دوی بد فالی نیسو مونږ (سپیرۀ |
| بِكَ وَبِمَنْ مَّعَكَ ۚ قَالَ طٰٓئِرُكُمْ |
| حالت راغلے په مونږ) په تا او په هغه چا چه ستا سره دی، اُووئیل هغه سپیرۀ والے ستاسو |
| عِنْدَ اللّٰهِ بَلْ اَنْتُمْ قَوْمٌ تُفْتَنُوْنَ ﴿٤٧﴾ |
| د الله تعالیٰ د طرف نه دے بلکه تاسو قوم ئے چه امتحان درباندے کیدیشی۔ |

**تفسیر** : په دے سورت کښې د ذکر شوو انبیاء کرامو او د هغوئ د قومونو په عجیب او غریب واقعاتو کښې دریمه واقعه د صالح عليه السلام ده۔ او په دے واقعه کښې یو غرض نبی کریم ﷺ تـه تسلی ورکول دی، او بل د مکے کافرانو ته دا خودل دی چه دا رسول رشتینی دے ځکـه داسے عجیب او غریب واقعات تاسو ته وراندے کوی چه دا ورته ما وحی کړے

ده، ګنې هغه خو لوستل نهٔ دي کړي. او پدې واقعه کښې هم ډېر حکمتونه دي.

## حکمتونه

۱- الله تعالیٰ د بندګانو ډېره خېرخواهي کړېده چه دوی ته ئې د دوی د جنس نه او د دوی د قومونو نه پیغمبران راولیږل.

۲- انبیاء علیهم السلام په سلامتیا کښې الله تعالیٰ ته محتاج دي، نو دوی بل چا لره نجات او سلامتیا نشي ورکولې.

۳- هر نبي په توحید باندې رالیږلې شوېدې. (اَنِ اعۡبُدُوا اللّٰهَ) یعنې یو اځې د الله بندګي وکړئ.

٤- فریقان: د حق مسئلې په بیان سره ضرور اختلاف پیدا کېږي.

٥- د تفرق او اختلاف نسبت داعي د حق ته نشي کیدې، بلکه خلکو ته به کېږي چه هغوی حق نهٔ مني نو اختلاف پیدا شي.

یَخۡتَصِمُوۡنَ: د دوی اختصام (جګړه) په سورة الاعراف (۷۵، ۷٦) کښې ذکر دې.

فَرِیۡقٰنِ: یعنې یو ډلې د هغهٔ دعوت قبول کړو او په هغهٔ ئې ایمان راوړو، او بلې ډلې د هغهٔ دعوت رد کړو او د بتانو په عبادت باندې ټینګ پاتې شول، لکه چه د سورت اعراف په (۷۵، ۷٦) آیتونو کښې ددې مخالفت او دشمنئ تفصیل تېر شوې.

لِمَ تَسۡتَعۡجِلُوۡنَ: دوی صالح ﷺ ته ووئیل چه که ته په خپله دعوٰی کښې رشتینې ئې نو څهٔ نښه پېش کړه، لیکن چونکه د نښې راتللو نه پس که چرې دوئ ایمان رانهٔ وړی نو دوی به هلاك کولې شي، دې وجې نه هغهٔ د هغوئ په حال باندې رحم کولو دپاره ووئیل: په ځای ددې چه تاسو ایمان راوړئ او د الله د رحمت طلبګار شئ، په عذاب طلب کولو باندې ولې ټینګ پاتې کېږئ؟ ولې الله نه بخنه نهٔ غواړئ دې دپاره چه هغه په تاسو رحم وکړي.

بِالسَّیِّئَةِ قَبۡلَ الۡحَسَنَةِ: ۱- یعنې په عذاب سره مخکښې د رحمت نه. سیئه بد حالت دې او حسنه ښه حالت. ۲- یا په شرك سره مخکښې د توحید نه. ځکه چه شرك سبب د عذاب دې او توحید سبب د رحمت دې. نو تاسو چه شرك کوئ نو ګویا که تاسو د الله عذاب غواړئ چه درباندې راشي.

لَعَلَّکُمۡ تُرۡحَمُوۡنَ: معلومه شوه چه استغفار سبب د رحمت دې.

قَالُوا اطَّيَّرْنَا بِكَ: هر كله چه په دوی باندے د كفر او د شرك په وجه مختلف عذابونه راغلل لكه قحط، خشك سالى او مرضونه وغيره نو دوى ددے نسبت صالح ؑ او د هغهٔ ملګروته وکړو چه دا بد حالى ستا د نحوست د وجه نه ده، يعنى د كوم وخت نه چه تا دا نوے خبرے شروع کړيدى او زمونږ معبودان نهٔ منے نو ستا په وجه مونږ ته دا نقصان رسيدلے دے۔

قَالَ طَٰٓئِرُكُمْ عِندَ اللهِ: صالح ؑ په جواب کښې دوئ ته ووئيل چه تاسوته چه هريو خير او شر رسيږى هغه د الله په تقدير سره رسيږى، كه هغه غواړى نو تاسو له روزى دركوى، كه نهٔ غواړى نو محروموى مو۔ ستاسو د ګناه د وجه نه۔ طائر نه مراد برخه ده يعنى ستاسو برخه د رزق د الله سره ده۔

قَوْمٌ تُفْتَنُوْنَ : ١- اَیْ یَفْتِنُكُمْ غَيْرُكُمْ] يعنى تاسو حقيقت دادے چه په تاسو باندے ستاسو د كفر او ګمراهئ جادو شوے دے، شيطان مو د حقيقت نه اړوى، كومه خبره چه ستاسو د نفس د خواهش موافق وى هغه ځان دپاره ښه ګنړئ، او كومه خبره چه ستاسو د مرضئ او خواهش موافق نهٔ وى، هغه ځان دپاره سپيرهٔ توب ګنړئ۔

تُفْتَنُوْنَ : ٢- بله معنىٰ دا ده چه تاسو باندے امتحان كيدے شى۔ يعنى دا تكليفونه چه راځى دا امتحان دے چه تاسو زما خبره منئ او كه نهٔ۔ هوښيار بنده تكليف او مصيبت امتحان ګنړى نو پدے وجه په الله باندے اعتراض نكوى بلكه ځان ته متوجه كيږى او خپلو ګناهونو ته فكر كوى او د عذاب سبب ختموى۔

٣- تاسو ته عذاب دركولے شى په سبب د ګناهونو ستاسو سره۔

**فائده** : ١- كله نا كله د بدو اعمالو سزا په دنيا كښې وركيدے شى۔

٢- بد حالات د بدو اعمالو د وجه نه وى۔

٣- طِيَرَه (بد فالى نيول) د مشركانو عقيده ده۔

وَكَانَ فِي الْمَدِيْنَةِ تِسْعَةُ رَهْطٍ يُّفْسِدُوْنَ فِي الْاَرْضِ وَلَا يُصْلِحُوْنَ ﴿٤٨﴾

او وو په ښار (د حِجر) كښې نهه كسان ورانے ئے كولو په زمكه كښې او اصلاح ئے نهٔ كوله۔

قَالُوْا تَقَاسَمُوْا بِاللهِ لَنُبَيِّتَنَّهٗ وَاَهْلَهٗ

اُووئيل دوى قسمونه اُوكړئ په الله باندے خامخا د شپے به حمله كوو په دهٔ او په كور والو

| ثُمَّ لَنَقُوۡلَنَّ لِوَلِيِّهٖ مَا شَهِدۡنَا مَهۡلِكَ |
|---|
| ددهٔ بیا به خامخا وایو مونږ وارث ددهٔ ته چه مونږ نهٔ یو حاضر شوی قتل کولو |
| اَهۡلِهٖ وَاِنَّا لَصٰدِقُوۡنَ ﴿۴۹﴾ وَمَكَرُوۡا مَكۡرًا وَّمَكَرۡنَا |
| د کور والو ددهٔ ته او یقیناً مونږ خامخا رشتینی یو۔ او چلونه جوړ کړل دوی چلونه او تدبیر |
| مَكۡرًا وَّهُمۡ لَا يَشۡعُرُوۡنَ ﴿۵۰﴾ فَانۡظُرۡ كَيۡفَ كَانَ عَاقِبَةُ مَكۡرِهِمۡ ۙ |
| اُوکړو مونږ تدبیر کول او دوی نهٔ پو هیدل۔ نو اُوګوره چه څرنګ شو انجام د چل د دوی |
| اَنَّا دَمَّرۡنٰهُمۡ وَقَوۡمَهُمۡ اَجۡمَعِيۡنَ ﴿۵۱﴾ فَتِلۡكَ بُيُوۡتُهُمۡ خَاوِيَةًۢ بِمَا |
| چه مونږ هلاك کړی دوی او قوم د دوی ټول۔ نو دغه کورونه د دوی راپرپوتی دی په سبب د |
| ظَلَمُوۡا اِنَّ فِيۡ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّقَوۡمٍ يَّعۡلَمُوۡنَ ﴿۵۲﴾ وَاَنۡجَيۡنَا |
| ظلم د دوی یقیناً پدیکښې خامخا عبرت دے دپاره د هغه قوم چه پو هیږی۔ |
| الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا وَكَانُوۡا يَتَّقُوۡنَ ﴿۵۳﴾ |
| او بچ کړل مونږ هغه کسان چه ایمان ئے راوړے وو او وو دوی چه تقویٰ ئے کوله۔ |

**تفسیر** : د ثمودیانو په (حِجر) ښار کښې نهه (۹) کسه داسے وو چه ټول خلق به ئے خرابول او د صالح علیه السلام په دروغژن ګنړلو به ئے خلق راپاړول۔ د همدوئ د سفارش په نتیجه کښې قدار بن سالف (چه په دوئ کښې یو کس وو) د صالح علیه السلام اُوښه هلاکه کړه، او خپله ئے د شپے د هغهٔ د وژلو سازش وکړو، او د الله په نوم ئے قسم وخوړلو چه ټول به په یو ځای صالح او د هغهٔ منونکی وژنو او د دوئ رشته دارانو ته به ووایو چه د دوئ د وژل کیدو مونږ ته هیڅ خبر نشته، او مونږ په خپله خبره کښې رشتینی یو۔

رَهۡطٍ: اسم جمع دے ځکه چه په دوی کښې د هر یو شخص ډیر تابعدار وو نو ځکه ئے ورته رهط ووېل۔

يُفۡسِدُوۡنَ فِي الۡاَرۡضِ وَلَا يُصۡلِحُوۡنَ : یعنی د دوی کار ټول فساد وو، یواځے په دغه ښار کښې نهٔ بلکه همیشه هر ځای کښې به ئے فساد کولو چه هیڅ اصلاح ئے په عمل کښې نهٔ وه۔ دوی به د خلکو عیبونه لټول او په هغوی به ئے پردے نهٔ اچولے۔ دارنګه خپله به ئے ظلمونه کول او نور خلك به ئے د ظلمونو نه نهٔ منع کول۔

قَالُوۡا تَقَاسَمُوۡا: دا ددوی د فساد یوه نمونه ده، یعنی د صالح ؑ د قتل دپاره تدبیرونه جوړول او په قسمونو کښې حیلے او دهوکے کول او دروغ وئیل۔

تَقَاسَمُوۡا بِاللّٰهِ: ١- دا یا صیغه د فعل ماضی ده د باب تفاعل نه او دا حال واقع دے او قَدۡ پکښې پټ دے۔ یعنی «دوی وویل پداسے حال کښې چه قسمونه ئے وکړل په الله»۔

٢- یا دا صیغه د فعل امر ده د باب تفاعل نه۔ معنیٰ دا ده:

«وویل دوی یو بل ته قسمونه وکړئ په الله باندے»۔ مطلب دا چه دوی عزم وکړو چه په صالح ؑ او د هغهٔ په اهل باندے به د شپے حمله کوو او هغه به قتل کوو۔

مَهۡلِكَ اَهۡلِهٖ: ١- ددے یو مطلب دا دے چه مونږ ځای د هلاکت یا د هلاکت د اهل ددهٔ ته نهٔ یو حاضر شوی، او هرکله چه ددهٔ د اهل خوا ته نهٔ یو راغلی نو قتل مو په طریق اولیٰ سره نهٔ دے کړے۔ نو پدے کښې زیات تاکید دے په دروغو د دوی کښې، یعنی دروغ به ورته وواېو او دا به هم ورته وواېو (وَاِنَّا لَصٰدِقُوۡنَ) چه مونږ پدے خبره کښې رشتینی یو۔ لکه جاهلان وائی چه دروغ د چا د پلار دی۔

٢- دویم مطلب توریه کول او حیله کول دی په قسم کښې۔ یعنی داسے به وواېو چه مونږ ددهٔ د اهل هلاکت ته نهٔ یو حاضر شی۔او دا خبره خو رشتینی ده ځکه چه مونږ خو صالح او د هغه اهل دواړه وژلی دی۔

دا په قسم کښې حیله کول دی، لکه بعض باطل پرست مُلیان خلکو ته د قسم داسے طریقه بنائی چه مدعی په هغے باندے دهوکه شی او حال دا چه قسم کونکے دروغژن وی۔ د حدیث نه معلومیږی چه داسے قسم هم انسان هلاکوی۔ قسم به د مدعی د تصدیق مطابق وی، اګرکه قسم خوړونکے هرڅنګه حیله وکړی۔

## حکمتونه

١- مشرکان هم په الله تعالیٰ باندے قسم کوی، خو دا کارئے د شرك نه نهٔ وباسی کله چه پکښې نور شرك او په غیر الله باندے قسم موجود وی۔

٢- په هره زمانه کښې د حق پرستو د قتل ارادے شوی او کیږی۔

٣- په قسمونو کښې حیلے او دهوکے کول او ناجائزه قسمونه کول د مفسدانو عمل دے۔

وَمَكَرُوۡا مَكۡرًا: حافظ ابن کثیرؒ لیکلی دی چه د دغه حیلو جوړولو نه روستو دوی د

صالح علیه السلام په کور باندے د شپے حمله وکړه لیکن الله تعالیٰ د صالح علیه السلام حفاظت د ملائکو په ذریعه سره وکړو، آه۔ او الله تعالیٰ د خپلو پیغمبرانو حفاظت د ملائکو په ذریعه سره په ډیرو اوقاتو کښې کریدے۔

وَمَكَرُوا: یعنی دوی سازش جوړ کړو دپاره د وژلو د صالح علیه السلام او مونږ تدبیر جوړ کړو د هغه د بچ کولو او د منکرینو د عذاب ورکولو دپاره۔

عَاقِبَةُ مَكْرِهِمْ: یعنی اے زما نبی! ته وګوره چه د دوی د سازش انجام څه شو، هغه دا چه دوی ته بیرته راواپس شو او ددے په نتیجه کښې دوی او د دوی قوم هلاك شول۔

أَنَّا دَمَّرْنَاهُمْ: نه معلومه شوه چه ددے نهه کسانو عذاب جدا جدا وو او د نور قوم عذاب جدا وو۔ مفسرین لیکی چه د نهه کسانو عذاب دا وو چه د کاڼړو باران پرے وشو او په نور قوم باندے صیحه (چغه) د جبریل علیه السلام راغله او ټول په ټوله هلاك شول۔

فَتِلْكَ بُيُوتُهُمْ : دا د هغوی د هلاکت بیان دے۔ یعنی مونږ دا ټول د دویٔ د ظلم او کفر په وجه په یو ځای هلاك کړل، او اوس د هغویٔ مکانات او کورونه خالی او غورزیدلی پراته دی، هیڅوك نشته چه دا آباد کړی۔ بیشکه پو هه خلقو دپاره د دویٔ په دے واقعه کښې د عبرت لوی خبرے دی۔ او کومو خلقو چه په صالح علیه السلام باندے ایمان راوړے وو او د تقوٰی لاره ئے اختیار کړے وه، مونږ هغویٔ ددے عذاب نه خلاص کړل۔

صاحب د فتح البیان لیکی چه صالح علیه السلام او مؤمنان حضرموت ته لاړل نو کله چه هلته ننوتل، صالح علیه السلام وفات شو نو دوی دغه ځای ته د حضرموت نوم ورکړو۔

ضحاك وائی: بیا هغه څلورو زرو کسانو چه د صالح علیه السلام سره ئے ایمان راوړے وو یو ښار جوړ کړو چه د هغے نوم حاضوراء دے۔

فَتِلْكَ: کښې اشاره ده هغه شی ته چه محسوس او موجود وی نو کنډرات د مدائن صالح موجود دی۔

خَاوِيَةً: یعنی خالی د وسیدونکو نه/ یا غورزیدلے شوی۔

لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ : کوم خلك چه علم لری نو دوی دپاره پدے کلو کښې لویه نښه موجوده ده ځکه چه ددے قوم خالی کنډرات د تبوك په لاره اُوس هم په مدائن صالح کښې موجود دی چه عرب مشرکان به پدے باندے ورتیریدل۔ نو پکار ده چه دوی ترے عبرت واخلی چه دا خلك ولے هلاك شول؟۔بیا ئے علم لفظ راوړو اشاره ده چه عبرت د علم سره تعلق لری۔

وَلُوۡطًا اِذۡ قَالَ لِقَوۡمِهٖۤ اَتَاۡتُوۡنَ الۡفَاحِشَةَ

او (یاد کړئ) لوط علیه السلام کله چه اُووئیل هغه قوم خپل ته آیا راتلل کوئ تاسو بے حیایئ ته

وَاَنۡتُمۡ تُبۡصِرُوۡنَ ﴿۵۴﴾ اَئِنَّكُمۡ لَتَاۡتُوۡنَ الرِّجَالَ شَهۡوَةً

او تاسو پوهه یئ۔ (چه دا کار ناروا دے)۔ آیا تاسو راتلل کوئ نارینو ته په شهوت سره

مِّنۡ دُوۡنِ النِّسَآءِ ؕ بَلۡ اَنۡتُمۡ قَوۡمٌ تَجۡهَلُوۡنَ ﴿۵۵﴾ فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوۡمِهٖۤ

سِوئ د زنانو نه بلکه تاسو قوم یئ چه ناپوهه کار کوئ۔ نو نۀ وو جواب د قوم د هغه

اِلَّاۤ اَنۡ قَالُوۡۤا اَخۡرِجُوۡۤا اٰلَ لُوۡطٍ مِّنۡ قَرۡيَتِكُمۡ ۚ اِنَّهُمۡ اُنَاسٌ

مگر دا چه ووے وئیل اُویاسئ کورنئ د لوط لره د کلی ستاسو نه یقیناً دوی څه خلق دی

يَّتَطَهَّرُوۡنَ ﴿۵۶﴾ فَاَنۡجَيۡنٰهُ وَاَهۡلَهٗۤ اِلَّا امۡرَاَتَهٗ ر

چه ځان پاك پاك کوی۔ نو بچ کړو مونږ هغه لره او کور والا د هغه سوئ د ښځے د هغه

قَدَّرۡنٰهَا مِنَ الۡغٰبِرِيۡنَ ﴿۵۷﴾ وَاَمۡطَرۡنَا عَلَيۡهِمۡ مَّطَرًا ۚ

نه، مقرر کړے وه مونږ هغه د پاتے کیدونکو نه۔ او را اُووروَل مونږ په دوی باندے باران (د

فَسَآءَ مَطَرُ الۡمُنۡذَرِيۡنَ ﴿۵۸﴾

کاڼو) نو بد وو باران د ویره ورکړے شوو۔

**تفسیر** : څلورمه عجیبه او ناشنا واقعه د لوط علیه السلام او په سدوم او عموریه کښ د وسیدونکے خلقو ده، چه د هغوئ د هدایت دپاره هغه پیغمبر کړے شو۔

دا واقعه ئے ددے دپاره راوړیده چه کوم خلك د جهالت نه کار اخلی او د شهوت صحیح ځای نۀ پیژنی نو هغوی به هلاکیږی۔ نو د بی علمئ د وجه نه دا خلك هلاك شول۔

وَلُوۡطًا: اَیۡ وَاذۡكُرۡ لُوۡطًا ۔ الله تعالیٰ وفرمایل چه اے زما نبی ! تۀ د لوط واقعه هم خلقو ته بیان کړه، هغۀ خپل قوم ته ووئیل : ستاسو اخلاقی پریوتل آخر سر ته رسیدلی دی چه خپلو کښ بدکاری کوئ، تول یو بل ته گورئ۔

وَاَنۡتُمۡ تُبۡصِرُوۡنَ: ۱- [اَیۡ يَنۡظُرُ بَعۡضُكُمۡ بَعۡضًا] ۔ (یعنی بعض ستاسو بعضو ته گوری) او دا د قیامت د علاماتو نه ده [يَتَهَارَجُوۡنَ فِيۡهَا تَهَارُجَ الۡحُمُرِ] چه خلك به د خرو

په شان په لارو کښې بې حیائي کوي. (مسلم: ٧٥٦٠)
٢- [تَعۡلَمُوۡنَ قُبۡحَهَا] یعنې چه دا دې بدکار د بدئ او خرابئ پیژندو باوجود دا کوئ. تاسو څومره خراب شوي یئ چه د خپل حیواني شهوت پوره کولو دپاره د زنانو په ځائے نارینه ؤ سره بدکاري کوئ، تاسو خو د حیواناتو نه هم بدتر شوي یئ، او تاسو دا کار ځکه کوئ چه تاسو خالص ناپوهه او کم عقل یئ، تاسو ته معلومه نهٔ ده چه ستاسو د پیدا کونکي په تاسو حق دے، او د کفر او سرکشئ انجام څنګه خراب وي.
نو تُبۡصِرُوۡنَ پدے معنیٰ سره د بَصَرُ الۡقَلۡب نه دے په معنیٰ د بصیرت او علم سره. او په اوله معنیٰ سره په معنیٰ د نظر سره دے.
٣- تُبۡصِرُوۡنَ آثَارَ الۡعُصَاةِ قَبۡلَكُمۡ. تاسو د پخوانو نافرمانو آثار وینئ چه هغوي الله پدے ګناهونو هلاك کړل.

## حکمتونه

١- سړو او هلکانو سره شهوت پوره کول هم فاحشه ده.
٢- او دا د جاهلانو عمل دے.
٣- کفارو او مشرکانو همیشه دپاره خپل خیرخواهان او حق پرست د وطن نه ویستلي دي.
٤- او په هغوي پورے مسخرے کول د جاهلانو کارونه دي.
٥- داسے فواحش سبب د دنیاوي عذاب دي او دارنګه د آخرت.
٦- باطل پرست خلق کمال ته عیب وائي. (احسن الکلام)
٧- لوط ﷺ د اول نه د فاحشے نه منع وکړه، دے نه معلومه شوه چه کافر به هم د ګناه نه منع کولے شي اګرکه ددے سره سره به ورته د ایمان دعوت هم ورکولے شي. په اسلام کښې دا قاعده ده چه په منکر به رد کیږي اګرکه د کافر په بدن کښې وي، د الله تعالیٰ منکر بدي شي که د هر چا په بدن کښې وي.
تَجۡهَلُوۡنَ: جاهل هغه انسان ته وائي: اَلَّذِيۡ لَا يَعۡلَمُ النَّافِعَ وَالضَّارَّ وَالۡحَلَالَ مِنَ الۡحَرَامِ. چه فائده مند او ضروري څیز او حلال او حرام نهٔ پیژني. هر عالم چه په خپل علم عمل نکوي هغه جاهل دے. كُلُّ مَنۡ عَصَى اللّٰهَ فَهُوَ جَاهِلٌ وَاِنۡ كَانَ عَالِمًا. هر هغه څوك چه د الله نافرماني کوي هغه جاهل دے اګرکه عالِم وي.

اُنَاسٌ یَّتَطَهَّرُوْنَ : دا په طریقه د مسخرې سره دي۔ یعنی دوی چه ځان ته پاك وائی او مونږ ته پلیت نو بیا خو پاك د پلیت نه لرې کیدل پکار دی۔
دارنګه دا قانون دې چه بدان همیشه کوشش کوی چه خلك د دوی په شان بدان شی۔ لکه څنګه چه نیك عمله غواړی چه نور خلك ددهٔ په شان نیکان شی۔ پدې وجه په بدانو باندې پاك خلك بد لګی۔
دې دپاره چه دوی د بد عمل نه منع نکړی۔ او د دوی سره پاك خلك نهٔ چلیږی ځکه چه دوی غواړی چه په دوی څوك ملامتیا ونهٔ وائی، او یو ناکاره بد عمله په بل ناکاره بد عمله باندې ملامتیا نهٔ وائی۔
قَدَّرْنٰهَا : یعنی دا مونږ اندازه کړې وه / مقرر کړې وه۔ یعنی هر شے د الله په کنټرول کښې دې، داسې نهٔ ده چه دا ترې غیر اختیاری بچ پاتې شوه۔ او دا ځکه هلاکه شوه لِشِرْکِهَا وَنِفَاقِهَا۔ ځکه چه مشرکه او منافقه وه۔
اَلْمُنْذَرِیْنَ: مُنْذَر هغه انسان ته وائی چه هغهٔ ته خبر ورکړې شی مګر بیا هم عمل نهٔ کوی ځکه چه انذار اعلام مع التخویف ته وئیلې شی۔ یعنی خبر سره د یرې نه۔

| قُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ وَسَلٰمٌ |
|---|
| اُووایه ! صفتونه د اُلوهیت خاص الله لره دی اوسلامتیا ده (د عذابونو او مصیبتونو نه) |
| عَلٰی عِبَادِهِ الَّذِیْنَ اصْطَفٰی ءٰٓاللّٰهُ خَیْرٌ |
| په بندګانو د هغه باندې هغه کسان چه غوره کړیدی الله، آیا الله غوره دې |
| اَمَّا یُشْرِکُوْنَ ﴿۵۹﴾ |
| که هغه څوك چه دوی ئې (د الله سره) برخه داران جوړوی۔ |

**تفسیر : قُلِ الْحَمْدُ : مضمون** : ددې نه روستو تفریع ده په مخکنو قصو د انبیاء علیهم السلام او ددې تفریع لنډ حاصل دا دې چه څوك خپل الله پیژنی او د هغه بندګی کوی نو هغه خپلو عابدانو له نجات ورکوی لکه انبیاء علیهم السلام او د هغوی تابعدار، چه دوی سره پوهه وه او الله ئې پیژندلو نو الله خلاص کړل۔
او مشرکان جاهلان وو د بتانو پسې روان وو نو کله چه عذاب راغلو، هغوی ورله هیڅ فائده ورنکړه، دا د جهل او ناپوهۍ نتیجه ده او شرك لوی جهالت دې، چه عاقبت به ئې

هلاکت وی. دوی د داسې څيز پسې انبنتي دي چه هيڅ فائده به ورنکړي، پدې وجه الله تعالیٰ به دلته تفرقه بيانه کړي ﴿ آللهُ خَيْرٌ اَمَّا يُشْرِكُوْنَ﴾ چه آيا الله غوره دې چه خلك ئې بندګي وکړي او که نور معبودان؟ نو پو هه خلکو ته معلومه ده چه [بَلِ اللّٰهُ خَيْرٌ وَّاَکْرَمُ وَاَجَلُّ وَّاَبْقٰى] بلکه الله غوره او عزتمند او لوی او هميشه ذات دې. او نورو معبودانو کښې دا کمالات نشته.

نو تر (٦٤) آيت پورې به تفرقه په مابين د إله حق او إله باطل کښې بيانيږي په دلائلو سره او د باطلو معبودانو عجز به بيانيږي. بيا هم چه څوك د دوی عبادت کوی نو ددې خلکو سره علم نشته لوی جاهلان دی. نو پدې رکوع کښې دا خبره ذکر کيږي چه حقيقي علم د الله تعالیٰ معرفت دې. او د الله دوه قسمه تعارفونه دی، يو قدرت د الله تعالیٰ او بل علم د الله تعالیٰ په هر شي باندې. او د مخلوق عاجز والې بيانيږي نو عاجز مخلوق ته متوجه کيدل او لوی خالق پريخودل لوی ظلم او جهالت دې، او ددې وجه به بيانه کړي چه ددې لوی جهالت وجه دا ده چه دوی د آخرت نه منکر دی ﴿ بَلِ ادّٰرَكَ عِلْمُهُمْ﴾ کله چه بنده د آخرت منکر شي او په هغې کښې شك وکړي نو بيا نۀ الله پيژني او نۀ غير الله، او نۀ ښه او نۀ بد بلکه صرف د خپل خواهش موافق ژوند به تيروی. د هغې نه روستو به د آخرت تخويفات بيانوی، د قرآن متعلق خبرې به وی. چه دوی اُوس دا کتاب نۀ مني او پدې پو هه نۀ حاصلوی خو داسې يوه ورځ به راشي چه الله به ترې ددې تپوس کوی چه تاسو بغير د علم نه ددې تکذيب ولې کولو، بيا رتنه ورکوی په انکار د دلائل آفاقيه ؤ چه وګوره نۀ دوی قرآن مني او نۀ دلائل مني.

نو بيا به د آخرت هيبت بيان شي ﴿ وَنُفِخَ فِي الصُّوْرِ﴾ سره. چه داسې ورځ راتللو والا ده چه ټول کائنات به په هيبت کښې شي. هلته به په حسناتو او سيئاتو بدله وی. حسناتو والا به جنت ته داخل کړې شي او سيئاتو والا به پر مخې اُور ته ګوزار کړې شي. او په آخر د سورت کښې بيا ترغيب دې قرآن ته، د اول سره ئې موافق کوی چه زما کار د قرآن لوستل دی تاسو ئې منئ او که نۀ، نو څوك به پدې خان پو هه کړي هدايت به قبول کړي او څوك به پرې خان نۀ پو هه کوی نو ګمراه به شي خپل تاوان ئې دې. او په آخر کښې الله خبر ورکړيدې چه زۀ به داسې دلائل پيدا کړم چه د قرآن خبرې به د دوی په علم کښې راشي او بيا به ئې ومني ليکن وخت به تيروی او هلته به ددې تفصيل راځي.

قُلِ: پدې آيتونو کښې الله تعالیٰ د معبودِ حق او معبودِ باطل فرق بيان کړيدې او دا د

قُلِ الْحَمْدُ لِلّٰہِ نه شروع دے۔ دا ددے ټولو آیتونو یو عنوان دے۔
بله طریقه دا ده چه په علم کښې دلته د ټولو نه بهتر علم بیانیږی چه هغه معرفت د الله دے یعني چه بنده الله تعالیٰ لره وپیژني او د هغه سره شریکان نهٔ جوړوی۔ او د معبود حق او باطل فرق پیژندل بهتر علم دے۔
مناسبت ددے جملے د ماقبل سره دا دے چه الله تعالیٰ مخکښې واقعات بیان کړل نو اُوس دلته خبر ورکوی چه [اِنَّهٗ نَجّٰی عَابِدِیْهِ وَلَمْ تُغْنِ الْاَصْنَامُ عَنْ عَابِدِیْهَا] الله تعالیٰ خپل عابدان د عذابونو نه خلاص کړل او بتانو خپلو عبادت کونکو ته هیڅ فائده ورنکړه۔ نو څوك چه د الله پورے ونښلی، هغهٔ اصلی مرکز وپیژندلو۔ توحید حقیقی علم دے او کوم انسانان چه مشرکان دی، هغوی غټ جاهلان دی، ځکه چه د داسے څیز پسے انبښتی دی چه نهٔ ترے خبر دے او نهٔ ورته فائده ورکولے شی او نهٔ ضرر، او نهٔ پکښې طاقت شته۔ نښه ئے دا ده چه عذابونه کله راغلل نو الله تعالیٰ خپلو انبیاؤ او د هغوی ملګرو ته نجات ورکړو او مشرکان هلاك شول نو دا نښه ده چه د دوی معبود په باطله وو۔
**اَلْحَمْدُ لِلّٰہِ:** دلته حمد په دوه څیزونو دے، یو حمد دے په نجات د مؤمنانو او هلاکت د کافرانو۔ دویم حمد دے د الله په ټولو نعمتونو۔
بیا ئے دلته حمد ولے راوړیدے؟ نو ددے فائده دا ده چه پدے سره دا خبره راښکاره کوی چه الله تعالیٰ چه دا کافران کول نو دا ظلم نهٔ دے بلکه هغه محمود دے پدے هلاکولو۔ الله لره حمدونه دی چه داسے ظالمان او ګنده خلك ئے د دنیا نه ورك کړل۔
**وَسَلٰمٌ عَلٰی عِبَادِهِ الَّذِیْنَ:** ١- دا یا عطف دے په (اَلْحَمْدُ لِلّٰہِ) نو د قُلْ د لاندے دے، یعني داسے ووایه چه سلامتیا دے وی په بندګانو د الله تعالیٰ چه هغهٔ غوره کړیدی۔ نو دا جمله دعائیه ده۔ یعني اے الله! سلامتیا ورکړه خپلو هغه بندګانو ته چه تا غوره کړیدی۔ ددے وجه نه مونږ د پیغمبرانو د نومونو سره داسے وایو، نوح علیه السلام، ابراهیم علیه السلام او دغه شان نور۔ او نورو مؤمنانو ته (اَلسَّلَامُ عَلَیْکُمْ) وایو۔ دا ددے آیت د وجه نه۔
بیا دا دعاء ئے دلته د څه دپاره راوړے ده؟ نو پدے کښې اشاره ده چه اے الله! ستا قانون دا دے چه تهٔ خپلو نیکانو بندګانو ته سلامتیا ورکوے نو اے الله! ورله ورئے کړه، نو مونږ چه دا دعا کوو نو وایو چه اے الله! دا بندګان د سلامتیا مستحق دی۔ او انسان د سلامتیا مستحق کیږی په صحیح بندګئ باندے (عَلٰی عِبَادِهِ) کښې ورته اشاره ده۔ دویم اشاره ده چه الله خپلو عابدانو ته سلامتیا ورکړه او باطلو معبودانو خپلو عابدانو ته

سلامتيا ورنكره.

۲- دویم قول دا دے چه دا مستقله جمله ده او دا د الله تعالیٰ د طرفنه کلام دے یعنی الله فرمائی چه سلامتیا دِے وی. او سلام نکره مبتداء واقع شویده ځکه چه دا (سلام من جانب الله) دے. تخصیص په ظرف سره شویدے. یعنی الله فرمائی چه زهٔ په دغه خپلو غوره بندګانو باندے سلام اچوم او سلامتیا ورکوم او زما د طرفنه دِے په دغه خلکو سلام وی او زهٔ به ئے د عذابونو نه بچ کوم ځکه چه دوی ما د خپلے بندګئ او نبوت دپاره غوره کړیدی. او مشرکان دغه شان نهٔ دی نو دوی دپاره سلامتیا نشته.

دا دواړه قولونه حافظ ابن القیمؒ په «بدائع التفسیر» او «بدائع الفوائد» کښې ذکر کړیدی او دواړو دپاره ئے د ترجیح دلیلونه ذکر کړیدی.

عَلٰى عِبَادِهِ الَّذِيْنَ اصْطَفٰى: ددے نه مراد چا صرف پیغمبران مراد کړیدی، چا صرف مؤمنان مراد کړیدی لیکن راجح دا ده چه دواړه جمع کړے شی. ځکه چه دلته الله تعالیٰ رسل او انبیاء لفظ نهٔ دے ذکر کړے.

اصْطَفٰى : اَیْ لِلرِّسَالَةِ وَالْاِیْمَانِ . یعنی څه کسان ئے د رسالت او څه د ایمان دپاره غوره کړیدی. نو دے دواړو ته به نجات ورکوی. لکه مخکښې ﴿لَا يَخَافُ لَدَيَّ الْمُرْسَلُوْنَ اِلَّا مَنْ ظَلَمَ ثُمَّ بَدَّلَ حُسْنًا﴾ کښې ذکر شو. چه درے قسمه خلکو ته به نجات او سلامتیا ورکوی، انبیاء علیهم السلام او صالحین او ګناهګارو ته چه توبه ویستونکی وی. نو پدے آیتونو کښې ډیرے نیے عقیدے او نظریئے ذکر شوے او د الله او د معبود باطل فرق پکښې ذکر شو. او د مشرکانو هلاکت او د ایمان والو نجات.

الله چه کوم کار کوی د هغه شکر پکار دے هغه صحیح په ځای باندے وی. الله بے ځایه کارونه نهٔ کوی.

**فائده**: دلته الله تعالیٰ حمد او سلام دواړه جمع کړیدی، پدے کښې حکمة دا دے چه پدے کښې په تولو باطلو پرستو باندے رد دے هغه پدے طریقه چه الله تعالیٰ اول د خپل ځان پاکی بیان کړه چه الله پاك دے د هغه خبرونه چه ظالمان ئے وریسے وائی، شریکان نهٔ لری، اولاد نهٔ لری، ظلم او زیاتے نهٔ کوی. او په پیغمبرانو او مؤمنانو ئے سلامتیا ووئیله. [لِسَلَامَةِ مَا قَالُوْهُ فِيْ رَبِّهِمْ] ځکه چه دوی چه د رب په باره کښې کومے خبرے وکړے نو هغه روغے وے، چه الله یو دے، د عبادت حقدار دے، او باطل پرست مخالفین چه د دوی پسے څه وائی د هغے نه دوی په سلامتیا کښې دی، نو ددے نه دا لازمه شوه چه دوی

كومے خبرے راوړيدى هغه تولے د دروغو او فساد نه روغے او سلامتيا والا دى۔ نو كوم خلك چه د الله سره شريكان جوړوى، د پيغمبرانو خبرے نۀ منى نو دوى په باطله دى۔ نو ډير عجيب راز شو چه حافظ ابن القيمؒ ددے راز تفصيل په «بدائع التفسير» كښ ذكر كړيدے۔

**فائده** : په دے آيتِ كريمه كښ الله تعالىٰ نبى كريم ﷺ او د هغۀ امت له دا تعليم وركړے چه د دعوت په ميدان كښ چه كله د آوريدونكو مخے ته څۀ تقرير كول غواړى يا څۀ تحرير پيش كوى نو د الله د بركت حاصلولو دپاره دے د هغے شروع د الله په حمد او ثناء او په انبياء كرامو - چه د الله غوره بندگان دى، په دوئ باندے - په درود او سلام سره وكړى۔ دے وجے نه د نبى كريم ﷺ د زمانے نه را واخله د هر دور علماؤ، خطيبانو او وعظ كونكو همدا طريقه را روانه ده۔ (محاسن التاويل للقاسمىؒ)

**آللّٰهُ خَيْرٌ اَمَّا يُشْرِكُوْنَ** : دلته الله تعالىٰ د بندگانو نه د دوه واضح څيزونو په باره كښ تپوس كوى پدے كښ زجر او توبيخ دے مشركانو ته۔ يعنى آيا الله غوره او فائدے وركونكے دے او كه د مشركانو باطل معبودان؟ لكه دغه شان توبيخ په سورة الفرقان (١٥) آيت كښ ذكر شو ﴿قُلْ اَذٰلِكَ خَيْرٌ اَمْ جَنَّةُ الْخُلْدِ الَّتِیْ وُعِدَ الْمُتَّقُوْنَ﴾۔

(آيا دا جهنم غوره دے او كه هغه جنت د هميشوالى چه د متقيانو سره ئے وعده شويده)

ښكاره خبره ده چه په دے باطلو معبودانو كښ هيڅ خير نشته، او دا خبره د مكے كافرانو ته معلومه ده، او بيا هم دوئ د هغوئ عبادت كوى، دا څنگه بے عقلى، څنگه ناپوهى، او څنگه نفس پرستى ده؟ چه دا پيژنى چه په دوئ كښ هيڅ خير نشته، بيا هم هغه خپل معبودان گنړى، په هغوئ نذرونه او منختے اچوى، او د هغوئ مخامخ سر ښكته كوى۔ دلته به داسے جواب كيږى : [بَلِ اللّٰهُ خَيْرٌ وَّاَبْقٰى وَاَجَلُّ وَاَكْرَمُ] بلكه الله تعالىٰ غوره، او هميشه دے، لوى شان والا عزتمند دے۔ او مفسرينو ليكلى دى چه رسول الله ﷺ به دغسے جواب وركولو۔

نو الله څكه غوره دے چه د خپلو عابدانو سره څومره احسانات كوى۔

**خَيْرٌ**: دے كښ د تفضيل معنىٰ نشته څكه چه په مقابل كښ هيڅ خير نشته، يا د تفضيل معنىٰ پكښ شته ليكن د مشركانو د عقيدے مطابق ئے وئيلے دے څكه چه هغوى به په خپلو معبودانو كښ خير گنړلو۔

دے كښ تاويلى تفسير ابن جريرؒ دا ذكر كړيدے چه [اَعِبَادَةُ اللّٰهِ خَيْرٌ اَمْ عِبَادَةُ مَا يُشْرِكُوْنَ]

آیا د الله عبادت غوره دے او که د مشرکانو د معبودانو۔

نو معلومه ده چه د الله بندګی ځکه غوره ده چه پدے سره نجات ملاویږی۔ او مشرکان په شرك سره تباه کیږی۔

﴿وَمَازَادُوْهُمْ غَيْرَ تَتْبِيْبٍ﴾ (هود:۱۰۱) او زیات نکړو دے معبودانو دوی لره مګر هلاکت)

أَمَّنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَاَنْزَلَ لَكُمْ مِّنَ السَّمَآءِ

آیا هغه څوك چه پیدا کړی ئے دی آسمانونه او زمکه او راوروله ئے دی تاسو لره د آسمان

مَآءً ج فَاَنْۢبَتْنَا بِهٖ حَدَآئِقَ ذَاتَ بَهْجَةٍ ج مَا كَانَ

د طرف نه اوبه نو رازرغون کړیدی مونږ په هغے سره باغونه تازګئ والا، نشی کیدے

لَكُمْ اَنْ تُنْۢبِتُوْا شَجَرَهَا ط ءَاِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ

تاسو لره دا چه رازرغون کړئ ونے د هغے، آیا بل معبود شته سره د الله نه (چه دا کارونه

بَلْ هُمْ قَوْمٌ يَّعْدِلُوْنَ ﴿۶۰﴾

اوکړی) بلکه دوی داسے قوم دے چه اوړی (د حق نه)۔ (یا د الله سره مخلوق برابروی)

اَمَّنْ جَعَلَ الْاَرْضَ قَرَارًا وَّ جَعَلَ

آیا هغه څوك چه ګرځولے ئے ده زمکه آرام والا (ټینګه) او ګرځولی ئے دی

خِلٰلَهَآ اَنْهٰرًا وَّجَعَلَ لَهَا رَوَاسِيَ وَجَعَلَ بَيْنَ

په مینځ ددے کښې نهرونه او ګرځولی ئے ددے دپاره کلك غرونه او ګرځولی ئے په مینځ د

الْبَحْرَيْنِ حَاجِزًا ط ءَاِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ ط بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۶۱﴾ اَمَّنْ

دریابونو کښې پرده آیا بل معبود شته د الله سره، بلکه ډیر د دوی نه نۀ پوهیږی۔ آیا هغه څوك

يُّجِيْبُ الْمُضْطَرَّ اِذَا دَعَاهُ وَيَكْشِفُ السُّوْٓءَ

چه قبلوی دعا د ډیر محتاج کله چه دعا اوغواړی د هغه نه او لرے کوی تکلیف

وَيَجْعَلُكُمْ خُلَفَآءَ الْاَرْضِ ط ءَاِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ ط قَلِيْلًا مَّا

او ګرځوی تاسو د یو بل خلیفګان په زمکه کښې، آیا معبود شته د الله سره، ډیر لږ

تَذَكَّرُوْنَ ﴿٦٢﴾ اَمَّنْ يَّهْدِيْكُمْ فِيْ ظُلُمٰتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ

نصيحت اخلئ تاسو۔ آيا هغه څوك چه لار ښائي تاسو ته په تيارو د اُوچه او درياب كښ

وَمَنْ يُّرْسِلُ الرِّيٰحَ بُشْرًا بَيْنَ يَدَيْ رَحْمَتِهٖ ؕ ءَاِلٰهٌ

او هغه څوك چه رالېږي هواګانې زيرے وركونكې مخكښ د رحمت خپل نه آيا واكدار

مَّعَ اللّٰهِ ؕ تَعٰلَى اللّٰهُ عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ﴿٦٣﴾ اَمَّنْ

شته د الله سره، لوى دے الله د هغې نه چه دوى ورسره برخه داران جوړوى۔ آيا هغه څوك

يَّبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيْدُهٗ وَمَنْ يَّرْزُقُكُمْ مِّنَ

چه ابتدائي پيدائش كوى بيا به ئے دوباره كوى او څوك دے چه رزق دركوى تاسو ته د

السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ ؕ ءَاِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ ؕ قُلْ هَاتُوْا بُرْهَانَكُمْ اِنْ كُنْتُمْ

آسمان او د زمكے نه آيا معبود شته د الله سره، اُووايه ! راوړئ دليل خپل كه يئ تاسو

صٰدِقِيْنَ ﴿٦٤﴾ قُلْ لَّا يَعْلَمُ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ الْغَيْبَ

رشتينى۔ اُووايه ! نۀ پوهيږى هغه څوك چه په آسمانونو او زمكه كښ دى په پټو

اِلَّا اللّٰهُ ؕ وَمَا يَشْعُرُوْنَ اَيَّانَ يُبْعَثُوْنَ ﴿٦٥﴾

څيزونو سوئ د الله تعالىٰ نه، او نۀ پوهيږى دوى چه كله به دوباره راپورته كولے شي۔

**تفسير** : اَمَّنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ: دا د مخكښ سره متعلق دے ابو حاتم وائي : اَيِ الْآلِهَةُ خَيْرٌ اَمْ مَّنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ ۔ آيا باطل معبودان غوره دى او كه هغه ذات چه آسمانونه او زمكه ئے پيدا كړيدى......الخ۔

## مناسبت

مخكښ د باطلو معبودانو نه په عمومى طور سره نفى د خيريت وشوه نو اُوس الله تعالىٰ د خپل قدرتِ مطلقه مثالونه وركوى او د مكے د مشركانو نه الزامى سوالونه كوى چه ووايئ دا د چا د قدرت كرشمے دى، دا څيزونه چا پيدا كړى، دا نعمتونه چا وركړى ؟ او هر كله چه د هر سوال جواب ستاسو سره ددے نه سوئ بل هيڅ نۀ دے چه دا تول د الله كرشمه ده، نو بيا ولے تاسو دا پريدئ او نور لره معبودان جوړوئ۔

او پدې کښې هم فرق دے په مابین د معبودِ حق او معبودِ باطل کښې.
الله تعالیٰ د مکے د مشرکانو نه اولنے الزامی سوال دا کړے چه آسمانونه او زمکه چا پیدا کړی، او آسمان نه ستاسو دپاره باران چا را اورولے؟ چه ددے په ذریعه مونږ ستاسو دپاره ښائسته باغونه راتوکولی، تاسو ددے وُنو راتوکولو طاقت نهٔ لرلو. ښکاره ده چه ددے نه سوئ هیڅ جواب نشته چه دا ټول کارونه د الله دی. نو بیا تاسو ولے د الله نه سوئ د بل چا عبادت کوئ.
ذَاتَ بَهْجَةٍ: اَىْ ذَاتَ مَنْظَرٍ حَسَنٍ وَرَوْنَقٍ. چه د ښائسته او تازګئ والا دی. بهجه هغه حسن ته وائی چه انسان ئے وینی نو په هغه کښې تازګی پیدا کړی.
مَا كَانَ لَكُمْ اَنْ تُنْبِتُوْا شَجَرَهَا: دا خطاب دے ټول مخلوق ته چه اولیاء هم پکښې داخل دی چه هیڅوك دا طاقت نهٔ لری چه د زمکے نه وُنے او بوټی زرغون کړی.
ءَ اِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ: اَىْ يَفْعَلُ ذٰلِكَ. آیا د الله سره بل معبود شته چه دا کارونه وکړی؟ نهٔ، نهٔ بیخی نشته.
**فائده** : پدے آیتونو کښې د اِلٰه معنیٰ ته اشاره وشوه چه اِلٰه هغه ذات دے چه دا کارونه کولے شی کوم چه پدے پنځه آیتونو کښې ذکر شویدی او هغهٔ ته متصرف او کار ساز وئیلے شی نو معلومه شوه چه پدے آیتونو کښې اِلٰه په معنیٰ د معبود سره هم دے او په معنیٰ دِ متصرف او واکدار سره او دا د اِلٰه عامه معنیٰ ده.
بَلْ هُمْ قَوْمٌ : دلته ئے د خطاب نه غیبت ته انتقال وکړو دا دلیل د مقت او غضب او توبیخ دے. او د دوی بد حال بیانول دی.
يَّعْدِلُوْنَ: ١-عدل په معنیٰ د مساوات سره اَىْ يَعْدِلُوْنَ بِاللّٰهِ غَيْرَهٗ. د الله سره نور څوك په عبادت او محبت کښې برابروی.
٢- یا د عُدُول نه دے میلان او اوړیدو ته وئیلے شی. [اَىْ يَعْدِلُوْنَ عَنِ الْحَقِّ اِلَى الْبَاطِلِ] دوی د حق نه باطل ته اَوړی بی دلیله. یا د حق معبود نه باطل معبود ته اَوړی.
اَمَّنْ جَعَلَ الْاَرْضَ قَرَارًا : دویم سوال دادے چه دا زمکه ستاسو دپاره چا پیدا کړے چه دا خوزیږی نهٔ، او تاسو په ښهٔ آرام سره په دے ژوند تیروئ، او په زمکه نهرونه چا روان کړی، او په دے کښې غرونه چا خخ کړی دے دپاره چه ونهٔ خوزیږی، او د خوږو او ترخو اُوبو ترمینځه پرده چا ودرولے، چه دا دواړه یو بل سره نهٔ یو ځای کیږی (په سورتِ فرقان (٥٣) آیت کښې ددے تفصیل تیر شوے) ددے نه سوئ تاسو سره هیڅ جواب نشته

چه دا ټول کارونه د الله د قدرت کرشمې دي. نو بیا تاسو ولې د هغهٔ نه سوئ بل څوك خپل معبود جوړوئ ؟!

قَرَارًا: یعنې الله داسې طریقې سره زمکه خوره کړې او برابره کړیده چه په هغې باندې استقرار (وسیدل) د انسان او د حیواناتو ممکن دې چه د زمکې بعض حصه ئې د اُوبو نه خالي کړیده دپاره د حاصلیدو د فائدو د دوی. که زمکه همیشه خوزیدلې نو انسانان او حیوانات به څومره پریشانه وې، د زلزلې په وخت خپل حالت رایاد کړه.

بیا سائنسدانانو چه دا خبره کړیده چه زمکه ګرځي او نمر په ځای ولاړ دې، نو دا خبره د ظاهر د قرآن خلاف ده، الله فرمائي : ﴿وَالشَّمۡسُ تَجۡرِیۡ لِمُسۡتَقَرٍّ لَّهَا﴾ (نمر روان دې) (یس:۳۸) او دلته فرمائي : ﴿جَعَلَ الۡاَرۡضَ قَرَارًا﴾ زمکه ئې آرام والا ګرځولې ده. نو نمر حرکت کوي او زمکه په ځای ولاړه ده. او سائنس چونکه تجرباتي علم دې، کله صحیح خیژي او کله غلط هم. لکه د قدیم سائنسدانانو ډیرې خبرې جدید سائنسدانانو رد کړیدي. نو دا هم یو قسم جهالت دې چه بعض خلك سائنس په قرآن او حدیث مقدم کړي. بلکه صحیح خبره دا ده چه ددې په باره کښې د سائنسدانانو اختلاف دې، یوه رایه د قرآن مطابق هم ده. لکه پدې باره کښې کتابونه هم لیکلې شویدي د دوران الارض په نوم. او دارنګه شیخ خالد بن صالح یو کتاب لیکلې دې «جریان الشمس والقمر وسکون الارض» او په هغې کښې ئې (۲۳۳) آیتونه راجمع کړیدي چه دلالت کوي په سکون د زمکه او بیا ئې وئیلي دي چه د علماء الفلك او علماء الهیئة خبرې په درې قسمه دي یو هغه دي چه علمي دلیلونه د هغې د صحت ګواهي ورکوي نو دا به مقبول وي او دویم هغه دي چه علمي دلیلونه د هغې د بطلان ګواهي ورکوي نو دا به مردود وي او دریم هغه دي چه علمي دلیلونو کښې د هغې د قبول او رد دپاره څه دلیل نهٔ وي معلوم نو دې کښې به توقف کولې شي تردې چه د ماهر نه د هغې د رد یا د قبول دلیل معلوم کړي. بیا ئې د سائنسدانانو دا قول غلط ثابت کړیدې، آه.

او دې کښې داسې تطبیقي قول هم کولې شي چه زمکه په داسې آرام طریقې سره حرکت کوي چه انسانانو ته په هغې کښې ضرر نشته او انسانان د هغې په حرکت نهٔ پوهیږي ځکه چه عظیم جسم دې. او هسې تجرباتي خبره هم دا ده چه که زمکې حرکت کولې نو بیا چه کله جهازونه په هواء کښې الوزي او بیرته زمکې ته رجوع کوي نو پکار ده چه ددې مدار کښې فرق راتللې او حال دا چه فرق نهٔ راځي.

لَا يَعْلَمُوْنَ: اَیْ تَوْحِیْدَ رَبِّهِمْ وَقُدْرَتَهٗ وَ كَمَالَهٗ ۔ يعني اكثرو خلكو د خپل رب توحيد او د هغهٔ قدرت او كمال او عظمت ونهٔ پيژندلو ۔ د علم تقاضا دا ده چه الله وپيژندلے شي ځكه چه اصلي علم د الله تعالىٰ معرفت ته وئيلے شي، پدے وجه د علم لفظ بار بار راوړي۔

اَمَّنْ يُّجِيْبُ الْمُضْطَرَّ : دا بل فرق او دريم سوال دے چه هر كله انسان ته څهٔ پريشاني اورسي، په څهٔ بيمارئ كښې مبتلا شي، يا څهٔ مصيبت كښې آخته شي، يا پرے څهٔ ظلم وشي، نو هغه بے اختياره ځوك رابلي، او ځوك دے چه ددهٔ فرياد رسي كوي، او ددهٔ مصيبت لرے كوي؟ او ځوك دے چه چالره مرګ وركوي او د هغهٔ نسلونه د زمكے وارثان جوړوي؟ جواب معلوم دے چه دا الله دے۔ نو اے د مكے مشركانو! بيا تاسو ولے دا پريدئ او د خپلو باطلو معبودانو مخے ته سجده كوئ؟ حقيقت دا دے چه تاسو ډير كم نصيحت حاصلوئ۔

د مضطر (پريشان حاله انسان) د دعاء په مناسبت سره حافظ ابن القيمؒ په خپل كتاب «الجواب الكافي» كښې ليكلي چه كه د دعاء كولو په وخت په پوره توګه د زړهٔ حضور حاصل شي، د خپل ضرورت او حاجت سخت احساس ئے وي، او د رب العالمين په حضور كښې انتهائي عاجزي او انكساري او غايتِ درجه خشوع او خضوع حاصله شي، او په زړهٔ باندے نرمي راخوره شي، او په دے حال كښې بنده د خپل رب پاكيزه نومونه او اعلىٰ صفتونه وسيله كړي او دعاء وغواړي، نو داسے دعاء ډيره كمه رد كيږي۔

## د مضطر دعاء ولے قبليږي؟

مضطر هغه چا ته وائي چه سخت پريشانه شي او ظاهري اسباب او ذرائع ئے ختم شي نو ددهٔ دعاء قبليږي اګر كه كافر وي۔ دا ولے زر قبليږي؟ نو يو خو د الله مهرباني ده چه بنده ئے په سخت تكليف كښې وي نو رحم پرے وكړي۔ دويمه وجه دا ده چه مضطر پدے وخت كه سخت موحد وي، ددهٔ ذهن بل هيچا ته نهٔ ځي بغير د الله نه، نو الله ته پوره متوجه وي او صرف په هغه باندے ئے نظر لګي او كله چه د بنده نظر صرف په الله لګي نو په هغه باندے الله رحم كوي لكه الله فرمائي: ﴿ إِنَّ رَحْمَتَ اللَّهِ قَرِيبٌ مِّنَ الْمُحْسِنِينَ ﴾ (اعراف:٥٦) د الله رحمت محسنينو ته نزدے دے۔ او په عامو اوقاتو كښې دعاء يو پدے وجه زر نهٔ قبليږي چه انسان ئے په سستئ سره كوي، دويم دا چه د انسان ذهن په اسبابو باندے وي، او الله ته ئے توجه كمه وي۔ كه يو انسان په عام حالت كښې هم د مضطر په

شان دعاء وكړي نو هره دعاء به ئے قبليږي.

خُلَفَآءَ الْاَرْضِ: يعني يوه ډله بو ځي او بله راولي. د يو بل جانشين كوي ئے.

دا ټول احسانات د رب العالمين دي، د هغهٔ بندګي پكار ده.

اَمَّنْ يَّهْدِيْكُمْ فِيْ ظُلُمٰتِ الْبَرِّ: څلورم الزامي سوال الله تعالىٰ د مشركانو نه دا كړے چه د صحراء او د سمندر په تيارو كښې ستاسو لارښودنه څوك كوي كله چه تاسو په وچه يا په درياب كښې سفر كوئ، او څوك د باران اُورولو نه مخكښې هواګانے راليږي، چه هغې سره خلقو ته معلومه شي چه اُوس باران كيږي. څوك په دے خبرو قادر دے؟ جواب معلوم دے چه دا الله دے، نو بيا ولے تاسو هغهٔ سره نور څوك شريكوئ. الله ستاسو ددے دروغژنو معبودانو نه ډير اوچت او بالا دے.

الرِّيٰحَ بُشْرًا بَيْنَ يَدَىْ رَحْمَتِهٖ: د هواګانو نورے فائدے هم شته لكه پدے سره كشتيانے روانے شي، مرضونه ورسره ختميږي، ونے ورسره حاملے كيږي، بدبويانے ختميږي، ډيره ګرمي ورسره ختمه شي.

اَمَّنْ يَّبْدَؤُا الْخَلْقَ: پنځم سوال ئے دا اُوكړو چه څوك دے چه هغهٔ انسانان اول ځل پيدا كړي، او د قيامت نه مخكښې به ئے دوباره ژوندي كوي. او ددے بل مطلب دا هم دے چه څوك دے چه د څيزونو ابتدائي پيدائش كوي لكه دانے او فصلونه وغيره او بيا ئے په كال كښې دوباره هم پيدا كوي.

ددے جواب ددے نه سوئ بل څهٔ نهٔ دے (كه تاسو ئے منئ اوكه نهٔ) چه دا د الله ذات دے چه دوئ لره دوباره ژوندي كوي. او څوك دے هغه ذات چه هغه د آسمان نه باران وروي او زمكے نه بوټي راوخكلو سره تاسو له روزي دركوي؟ جواب معلوم دے چه دا د الله ذات دے چه ددے قدرت لري. نو بيا تاسو چه هغهٔ سره بل څوك شريكوئ او دعوىٰ كوئ چه تاسو رشتينې يئ نو د خپل رشتين والي څهٔ عقلي يا نقلي دليل خو پيش كړئ؟ او مشرك د دليل راوړو نه عاجز دے نو لوی جاهل دے، ځكه چه څوك بې دليله روان وي، هغه جاهل وي.

**فائده**: ددے ترتيب او تقسيم حكمة دا دے چه د اول دليل جواب د ټولو عقلاؤ په نيز ښكاره دے چه نشتوالے دے. او سره ددے نه دوی ئے بيا هم نهٔ مني نو د زجر مستحق دي. (بَلْ هُمْ قَوْمٌ يَّعْدِلُوْنَ) او په دويم دليل كښې داسے امور ذكر دي چه دوی د هغے د علم دعوے كولے ليكن هر كله چه په علم باندے ئے عمل نكولو نو ووئيلے شو چه دوی بے

علمه دی. او دریم دلیل کښې اشاره ده چه هر کله د انسان نه دا مصیبتونه لرے شی او حاجت ئے پوره شی نو حق ترے هیر شی ددے وجه نه ئے هلته (قَلِيلًا مَّا تَذَكَّرُونَ) وفرمایل. او څلورم دلیل کښې اشاره ده چه په ظلماتو د اُوچه او دریاب کښې او په سیلئ او طوفانونو کښې به دوی الله ته آواز کولو او هر کله چه به د دوی نه تکلیف لرے کړے شو نو دوی به شرك کولو نو ددے وجه نه هلته ووئیل شو چه (تَعَالَى اللَّهُ عَمَّا يُشْرِكُونَ)

او پنځم دلیل سره په دوی باندے دلیل او حجت قائم شو نو په آخر کښې ئے د مشرکانو نه دلیل طلب کړو او کله چه دوی سره دلیل نشته نو سراسر د دروغو پسے روان دی. (احسن الکلام).

قُلْ لَّا يَعْلَمُ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ الْغَيْبَ : اُوس په آخره کښې الله تعالیٰ د مکے مشرکانو سره الزامی خبره دا کړے چه د غیبی خبرو علم په آسمانونو او زمکه کښې وسیدونکو مخلوقاتو کښې هیچاته نشته، ددے علم صرف الله ته دے. لکه څنګه چه الله د سورتِ انعام په (۵۹) آیت کښې فرمائیلی : ﴿ وَعِنْدَهُ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهَا إِلَّا هُوَ ﴾ (او صرف الله سره د غیبو چابیانے دی، دے لره د هغهٔ نه سوئ بل هیڅوك نهٔ پیژنی).

دے وجے نه د هغهٔ ذات په حقه سره معبود دے، او ستاسو معبودان چونکه د غیبو هیڅ علم نهٔ لری، دے وجے نه دوئ معبودان نشی کیدے، ځکه د عبادت لائق ذات دپاره په تمامو غیبی خبرو باندے علم لرل پکار دی، دے دپاره چه هغه د تمامو جهانونو او په دے کښې د موجودو تمامو کائناتو تربیت وکړے شی.

بخاریؒ او مسلمؒ او ترمذیؒ د عائشے صدیقے رضی الله عنها نه روایت کړے، چه هغے ووئیل : چا چه دا دعویٰ وکړه چه هغه خلقو له د صبا د خبرو خبر ورکوی، هغهٔ په الله دروغ جوړ کړل. الله خو وائی : ﴿ قُلْ لَّا يَعْلَمُ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ الْغَيْبَ إِلَّا اللَّهُ ﴾ (ورته اووایه : په آسمانونو او زمکه کښې اوسیدونکو مخلوقاتو کښې هیڅوك د غیبو په خبرو نهٔ پوهیږی، دا صرف الله پیژنی).

پدے آیت کښې د الله تعالیٰ د علم بیان دے. او د نورو مخلوقاتو بی علمی بیانوی.

مناسبت دا دے چه مخکښې ئے د نورو معبودانو بی علمی بیان کړه نو اُوس د الله تعالیٰ کامل علم بیانوی، ځکه چه مشرکان چه نور معبودان د الله سره شریکوی نو دوی الله تعالیٰ په هرڅه باندے پوهه نهٔ ګنړی پدے وجه غیر الله ته غائبانه د رامدد شه آوازونه کوی.

مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ کښې ملائك او مارغان او ټول مخلوق داخل دي. نو الله په هر څه پوهه دے او ستاسو معبودان په هر څه نۀ پوهیږي نو د ناپوهه عبادت کول – چه ستا د حال نه خبر نۀ وي، او عبادت ئے کوے – دا څومره جهالت دے. پوهه لا څه کوے چه (وَمَا يَشْعُرُوْنَ): دوی د ځان نه هم خبر نۀ دي چه کله به دوباره راپورته کولے شي او کله به د خپل خالق مخے ته د حساب دپاره ودریږي. یا قیامت به کله راځي او د قبرونو نه به خلك کله پورته کیږي. نو دا څنګه معبودان جوړیدے شي که دوی معبودان وے نو دوی ته به خامخا د هر څه علم وے، هر کله چه هغه ستا د حال نه خبر نۀ دے نو ستا مدد به څه وکړي.

يُبْعَثُوْنَ : کښې اشاره ده چه په دوی باندے مرګ راځي نو څکه د الوهیت او عبادت حقدار نۀ دي او بیا یے علمه هم دي.

| بَلِ ادّٰرَكَ عِلْمُهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ ۗ بَلْ هُمْ فِيْ |
|---|
| بلکه غائب شویدے (بند شویدے) علم د دوی په باره د آخرت کښې بلکه دوی په |
| شَكٍّ مِّنْهَا ۗ بَلْ هُمْ مِّنْهَا عَمُوْنَ ﴿٦٦﴾ |
| شك کښې دی ددے نه بلکه دوی ددے نه ړاندۀ دي. |

**تفسیر** : بعض مفسرینو دا د (وَمَا يَشْعُرُوْنَ) سره لګولے دے نو د آیت مطلب ئے ډیر ګډوډ کړیدے لکه ابن عاشورؒ په ((التنویر)) کښې کړیدے.

صحیح دا ده چه دا متعلق دے د ﴿ قُلْ هَاتُوْا بُرْهَانَكُمْ ﴾ سره یعنی تاسو په خپل شرك باندے دلیل راوړئ نو په (بَلْ) سره بیرته اضراب کوی. چه د دوی سره دلیل نشته خو دوی چه شرك کوی نو ددے وجه دا ده چه دوی آخرت نۀ مني او د هغے نه په شك کښې پراتۀ دي. که دوی د آخرت منکر نۀ وے نو دوی به دا ګدے وډے نۀ وئیلے او دلیل به ئے پیش کولے او د الله بندګی به ئے یواځے کولے.

بیا پدے آیت کښې الله تعالیٰ د مشرکانو د آخرت په باره کښې درے احوال بیان کړیدی اول دا چه د آخرت د ورځے په باره کښې د دوی علم نشته، دائے په علم کښې نشته چه په دوی به داسے ورځ راځي چه دوی سره به پکښې حساب کتاب کیږي. کله چه انسان نۀ پوهیږي چه داسے یوه ورځ راتللو والا ده، نو په هغه انسان کښې ډیر جهالتونه راجمع

کیږي۔
دویم دا چه کـه څـوك ورلـه تـنبیه ورکړي چه آخرت راروان دے او الله به درسره حساب وکړي نـو د دوي شك پیدا شي، او پکار دا وه چه د دوي یقین پیدا شوے وے چه نبي یا د حق داعي راتـه دا خبره وکـړه نو منل ئے پکار دي۔ لیکن د دوي ظن مرجوح پیدا شي۔ دلتـه شك تساوي الطرفین ته نهٔ وائي بلکه هسے خیال او گمان راتلل مراد دي چه خلك وائي قیامت به راځي نو کیدے شي چه راشي لیکن د هغے مطابق عمل نهٔ اختیاروي۔ نـو پدے شك سره هم دے د گناه او شرك نه نهٔ خلاصیږي چه راشي او توبه وباسي ځکه چه یقین ئے نشته، په آخرت باندے یقین د انسان نه شرك او کفر او گناهونه ختموي۔
دریمه درجه دا ده (بَلْ هُمْ مِنْهَا عَمُوْنَ) د آخرت نه ړاندهٔ دي، ځان په زوره غافله کوي۔ که څـوك ئے رابیـداروي نو وائي چه دا خبرے پریده، نو دلته ئے ترقي د ادنیٰ نه اعلیٰ ته کړے ده۔ اول جهالت دے بیا د دوي بیدارول دي بیا ځان په زوره غافل کول دي۔
نـو ددے آیت مناسبت د مضمون د سورت سره دا شو چه په آخرت باندے د چا علم راشي نو په دهٔ کښې به ټول کمالات راځي لکه ایمان بالله او نیك عملونه، او په آخرت چه د چا یقین نهٔ وي، په هغهٔ کښې به کفر او شرك بالله او فساد او ټول گناهونه راځي۔
مفسرینو د اِدّٰرَكَ ډیرے معنے کړیدي (١) غوره معنیٰ دا ده : (غَابَ عِلْمُهُمْ)۔ یعني غائب شویدے علم د دوي او اِدّٰرَكَ په اصل کښې تَدَارَكَ دے، او تَدَارك دے ته وائي چه یو شے د بل دپاسه راشي نو هغه لاندے کړي او غائب ئے کړي نو د دوي علم د آخرت په باره کښې خکته کړے شوے غائب کړے شویدے۔ یعني علم ئے هغے ته نهٔ رسیږي۔ او دا یو روایت دے د ابن عباس رضی الله عنه نه۔
(٢) دے تـه نزدے معنیٰ دا ده : چه تَدَارَكَ په معنیٰ د تَسَاقَطَ سره دے۔ یعني پریوتے دے علم د دوي د آخرت په باره کښې چه دا ئے زړهٔ ته نهٔ کوزیږي او نهٔ پرے پوهیږي۔
او نور تفسیرونه تاویلات دي او هغه دا دي :
(٣) تَتَابَعَ قَوْلُهُمْ۔ بلکه پرله پسے شویدے وینا د دوي په انکار د آخرت کښې۔ یعني ټول کافران پرلـه پسے د آخرت منکر شویدي۔ او دا وائي چه دا به کله وي؟۔ علم په معنیٰ د قول سره اخستل بعید دي۔
(٤) چا دا د آخرت سره لگولے دے او اِدّٰرَكَ ئے په معنیٰ د تَکَامَلَ سره اخستے او بیا ئے ماضي په معنیٰ د مضارع سره اخستے ده۔ او معنیٰ ئے داسے کړیده (بلکه پوره به شي

علم د دوی په آخرت کښې چه کله آخرت او په هغې کښې عذابونه وینی لیکن دغه وخت به دوی ته خپیمانتیا فائده نهٔ ورکوی او (بَلْ هُمْ فِیْ شَكٍّ مِّنْهَا) د دنیا سره متعلق دے یعنی دوی په دنیا کښې ددے ورځې نه په شك کښې وو بیا ترقی کوی (بَلْ هُمْ مِّنْهَا عَمُوْنَ) بلکه دوی د آخرت نه ړانده وو چه هیڅ دلائلو ته ئې نهٔ کتل ځکه چه د دوی سترګې خرابے شوے وے کوم باندے چه اِدْرَاكُ (علم) حاصلیږی۔ یعنی په هره طریقه سره د دوی علم آخرت ته نهٔ رسیدو او لوی ناخبره وو۔

(۵) زجاجؒ وغیره وئیلی دی چه په دے آیت کښې د انکار معنیٰ موندلے کیږی، لکه روستو (بل هم منها عمون) پرے دلیل دے، معنیٰ به داوی [لَمْ يُدْرِكْ عِلْمُهُمْ عِلْمَ الآخِرَةِ] چه د مشرکانو علم د آخرت ادراك ونهٔ کړو، بلکه په دے باره کښې همیشه په شك کښې پاتے شو، بلکه د زړهٔ د ړندیدو په وجه دوئ ته په دے باره کښې هیڅ علم حاصل نشو۔ ډیرو مفسرینو دیته ترجیح ورکړے۔ (فتح البیان) لیکن اول تفسیر غوره دے۔

| وَقَالَ الَّذِیْنَ كَفَرُوْٓا ءَاِذَا كُنَّا تُرٰبًا وَّ اٰبَآؤُنَآ |
|---|
| او وائی هغه کسان چه کفرئے کړیدے آیا کله چه شو مونږ خاورے او مشران زمونږ |
| اَئِنَّا لَمُخْرَجُوْنَ ﴿۶۷﴾ لَقَدْ وُعِدْنَا هٰذَا نَحْنُ |
| آیا مونږ به خامخا راویستلے کیږو (د قبرونو نه) یقیناً وعده کړے شویده مونږ سره |
| وَاٰبَآؤُنَا مِنْ قَبْلُ ۙ اِنْ هٰذَآ اِلَّآ اَسَاطِیْرُ الْاَوَّلِیْنَ ﴿۶۸﴾ قُلْ |
| او زمونږ مشرانو سره مخکښې ددے نه، نهٔ دی دا مګر قصے دی د پخوانو۔ اُووایه |
| سِیْرُوْا فِی الْاَرْضِ فَانْظُرُوْا كَیْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُجْرِمِیْنَ ﴿۶۹﴾ وَلَا تَحْزَنْ |
| اُوګرځئ په زمکه کښې نو اُوګورئ چه څنګه شو انجام د مجرمانو۔ او مهٔ غمژن کیږه |
| عَلَیْهِمْ وَلَا تَكُنْ فِیْ ضَیْقٍ مِّمَّا یَمْكُرُوْنَ ﴿۷۰﴾ |
| په دوی باندے او مهٔ کیږه په تنګسیا کښې د هغې نه چه دوی کوم چلونه جوړوی۔ |
| وَیَقُوْلُوْنَ مَتٰی هٰذَا الْوَعْدُ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِیْنَ ﴿۷۱﴾ قُلْ عَسٰٓی |
| او وائی دوی کله به وی دا وعده (د قیامت) که یئ تاسو رښتینی۔ اُووایه نزدے ده |

| اَنۡ یَّکُوۡنَ رَدِفَ لَکُمۡ بَعۡضُ الَّذِیۡ |
|---|
| چه ویه رسی تاسو ته (یا رانژدے به وی تاسو ته) بعض هغه عذاب چه |
| تَسۡتَعۡجِلُوۡنَ ﴿۷۲﴾ وَاِنَّ رَبَّکَ لَذُوۡ فَضۡلٍ عَلَی النَّاسِ |
| تاسو ئے په جلتئ غواړئ. او یقیناً رب ستا خامخا خاوند د مهربانئ دے په خلقو باندے |
| وَلٰکِنَّ اَکۡثَرَهُمۡ لَا یَشۡکُرُوۡنَ ﴿۷۳﴾ |
| لیکن زیات د دوی نه شکر نهٔ کوی. |

**تفسیر** : پدے آیت کښې د مشرکانو د شلك او د رونډوالی بیان دے. یعنی مشرکان خو د آخرت دلیلونو ته نهٔ ګوری او د هغے نه ئے ځانونه ړاندهٔ کړیدی نو پدے وجه اوُس داسے شبهات کوی او د مړو دوباره ژوندی کیدل بعید ګنړی، او انکار کوی او وائی آیا کله چه مونږ او زمونږ پلرونه او نیکونه د مړهٔ کیدو نه پس خاورے شی، نو آیا د خپلو قبرونو نه به دوباره راژوندی کیدو سره راپاسیږو ؟ دا نهٔ کیدونکے خبره ده، او محمد نه مخکښے دغسے نور خلق هم په مخکنو زمانو کښې پیدا شوی، او خلقو ته ئے دا خبره کړے، لیکن اوسه پورے خو داسے نهٔ دی شوی. ددے خبرے هیڅ حقیقت نشته، دا قِسم خلق همیشه دروغژنے خبرے خلقو ته آوروی. مطلب ئے دا وو چه د خاورے نه بیرته انسان نشی جوړیدے، او بله دا ده که چرته داسے کیدے شوے نو اوُسه پورے خو به داسے شوی وے.

او دا آیت دلیل دے چه مسئله د بعث بعد الموت ډیره زړه خبره ده، هر نبی خپل قوم ته بیان کړیده. لیکن مشرکان ورته اساطیر (دروغژنے بے حقیقته قصے) وائی. لکه پدے زمانه کښې کمیونسټ او سیکولر خلك د قیامت خبرے د ملیانو ډکوسلے ګنړی.

اِنۡ هٰذَآ : دا اشاره ده وعده د بعث ته. یعنی ددے خبرے هیڅ حقیقت نشته.

**فائده** : داسے آیت په سورة المؤمنون (۸۲) آیت کښې هم راغلے دے. فرق دا دے هلته د آباؤ منکرینو ذکر ډیر مخکښې تیر شوے وو ځکه د آباء لفظ ئے په هٰذَا باندے مخکښې راوړو او پدے سورت کښې دا انکار قریب ذکر شو نو هٰذَا ئے مخکښې راوړو.

قُلۡ سِیۡرُوۡا : دا جواب دے مشرکانو ته د هغوی د کفر او عناد او د آخرت نه د انکار. خپل نبی ته فرمائی : دوی ته ووایه چه تاسو لړ په دنیا کښې اوګرځئ او د هغه خلقو انجام وګورئ چه هغوئ زمونږ انبیاء او آخرت دروغژن وګنړلو چه مونږ څنګه هغوئ

تباه کړل، او خپل انبیاء او په دوئ باندې ایمان راوړونکی مونږ بچ کړل.
که چرې دغه انبیاء دروغژن وے نو بیا دغه قومونه ولې تباه کړے شول. او کوم حق ذات چه هغوئ مخکښې پیدا کړی وو او بیائې هلاك کړل، هغه یقینًا د دوئ په دوباره ژوندی کولو قادر دے.
لنډ جواب دا شو چه که قیامت حق نهٔ وے نو بیا د آخرت په انکار سره الله تعالیٰ پخوانی قومونه ولې هلاکول. ځکه چه یو شے حق نهٔ وی او څوك ترې انکار وکړی نو په هغې خو عذاب نهٔ راځی. نو که دا مشرکان د آخرت نه انکار کوی، د پخوانو په شان به هلاکیږی.
وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ : نبی کریم ﷺ له تسلی ورکولے کیږی چه که د مکے مشرکان تا دروغژن گنړی او ایمان نهٔ راوړی، نو غم مهٔ کوه، زر دے چه الله تعالیٰ به داسے خلق راښکاره کړی چه هغوئ به په تا ایمان راوړی، او کافران به د خس او خشاکو پشان نیست او نابود شی، او دا کافران چه ستا په خلاف کوم سازشونه کوی، دے سره دے هم ستا زړهٔ تنگ نشی، الله به ستا حفاظت کوی، خپل بیان جاری ساته. او ددے آیت تفسیر په سورة النحل آیت (۱۲۷) کښې ذکر شویدے.
وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا الْوَعْدُ : پدے آیت کښې مشرکانو ته د آخرت په انکار زورنه ورکړے کیږی او د هغوی د رسول الله ﷺ نه د قیامت د راتللو په باره کښې په طریقه د تیوقو او مسخرو تپوس باندے زورنه ورکړے کیږی. دوی به وئیل چه د آخرت د وعدے هیڅ حقیقت نشته، که وی نو بیا ولې نهٔ راځی.
قُلْ عَسَىٰ : نو الله د خپل نبی ﷺ په ژبه هغوئ له جواب ورکړو چه کوم عذاب تاسو په جلتئ سره غواړئ، د هغې څهٔ برخه نزدے په تاسو نازلیدونکے ده، لکه د بدر په میدان کښې د کاؤرو او مُولو غونته پریکړے شو او کوم چه باقی پاتے شو هغوئ قید کړے شو.
نو د بَعْضُ الَّذِي نه مراد د دنیا عذاب دے. او بعض وائی چه د قبر عذاب ته اشاره ده. دواړه مراد دی.
رَدِفَ: رَدِفَ روستو پیوست راتللو او رسیدو ته وئیلے شی لکه ردیف په سورلئ باندے د بل پسے پیوسته سور ته وئیلے شی. دلته مراد زر رسیدل او پیوسته کیدل او انختل دی.
وَإِنَّ رَبَّكَ لَذُو فَضْلٍ : دا هم زجر دے چه الله تعالیٰ د دوی نه عذاب روستو کوی په

خپل فضل او کرم سره لیکن دوی ددے فضل شکر نهٔ کوی۔ یعنی الله تعالیٰ په خپلو بندگانو څومره لوی فضل او کرم کړے چه دویٔ د خپلو گناهونو په وجه نهٔ هلاکوی او مومن او کافر ټولو له روزی ورکوی۔

او د بندگانو حال دادے چه په دویٔ کښې زیاتره خلق د هغهٔ شکر نهٔ کوی، بلکه کفر کوی او د آخرت نه انکار کوی او دعذاب د راتلو جلتی کوی۔ ددے باوجود الله تعالیٰ دویٔ له د توبے مهلت ورکوی۔

| وَإِنَّ رَبَّكَ لَيَعْلَمُ مَا تُكِنُّ صُدُوْرُهُمْ وَمَا |
|---|
| او یقیناً رب ستا خامخا پوهیږی په هغه خبرو چه پټوی ئے سینے د دوی او په هغے |
| يُعْلِنُوْنَ ﴿٧٤﴾ وَمَا مِنْ غَآئِبَةٍ فِي السَّمَآءِ |
| چه دوی ئے ښکاره کوی۔ او نشته یو پټیدونکے (خبره، خصلت او شے) په آسمان |
| وَالْأَرْضِ إِلَّا فِيْ كِتٰبٍ مُّبِيْنٍ ﴿٧٥﴾ إِنَّ هٰذَا الْقُرْاٰنَ يَقُصُّ |
| او زمکه کښې مگر په کتاب (لوح محفوظ) ښکاره کښې دے۔ یقیناً دا قرآن بیانوی |
| عَلٰى بَنِيْٓ إِسْرَآئِيْلَ أَكْثَرَ الَّذِيْ هُمْ فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ ﴿٧٦﴾ وَإِنَّهٗ |
| په بنی اسرائیلو باندے ډیرے هغه خبرے چه دوی په هغے کښې اختلاف کوی۔ او یقیناً دا |
| لَهُدًى وَّرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ ﴿٧٧﴾ إِنَّ رَبَّكَ يَقْضِيْ |
| خامخا هدایت او رحمت دے دپاره د مؤمنانو۔ یقیناً رب ستا به فیصله اُوکړی |
| بَيْنَهُمْ بِحُكْمِهٖ ۚ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْعَلِيْمُ ﴿٧٨﴾ فَتَوَكَّلْ عَلَى |
| په مینځ د دوی کښې په حکم خپل سره، او هغه زورور دے، پوهه دے۔ نو ځان سپاره په |
| اللّٰهِ ۖ إِنَّكَ عَلَى الْحَقِّ الْمُبِيْنِ ﴿٧٩﴾ إِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتٰى |
| الله باندے، یقیناً تهٔ په حق ښکاره باندے ئے۔ یقیناً تهٔ اَوروِل نشے کولے مړو ته |
| وَلَا تُسْمِعُ الصُّمَّ الدُّعَآءَ إِذَا وَلَّوْا مُدْبِرِيْنَ ﴿٨٠﴾ وَمَآ أَنْتَ بِهٰدِي |
| او نهٔ اَوروِلے شے کڼرو ته آواز لره کله چه واوړی شا کوونکی۔ او نهٔ ئے تهٔ لار خودونکے |

الْعُمْيِ عَنْ ضَلٰلَتِهِمْ ؕ اِنْ تُسْمِعُ اِلَّا مَنْ يُّؤْمِنُ

ړندو ته د ګمراهۍ د دوی نه، ته اَوروَل نشې کولے مګر هغه چا ته چه ایمان لري

بِاٰيٰتِنَا فَهُمْ مُّسْلِمُوْنَ ﴿۸۱﴾

په آیتونو زمونږ نو دوی غاړه کیخودونکي دي. (تابعداري کوي)۔ (نو دوی تابعدار وي)

**تفسیر** : پدے آیت کښ د الله تعالیٰ د علم بیان دے چه هغه په هرڅه پو هیږي، د بندګانو په ګناهونو او تولو احوالو پو هیږي، د عذاب مستحقین او د عذاب وخت راتلل پیژني، هغه د عذاب دپاره د خپل علم مطابق خپل وخت مقرر کړیدے چه په هغه وخت کښ به راځي. او پدے آیت کښ نبي کریم ﷺ ته تسلي او مشرکانو دپاره زبردسته دهمکي ده چه الله تعالیٰ د دوئ په زړونو کښ د اسلام او د خپل نبي په خلاف پټه دشمني او د هغوئ ظاهري کفر او شرك ښهٔ پیژني، او په آسمان او زمکه کښ چه چرته هم څهٔ شے یا څهٔ عمل د مخلوقاتو د نظرونو نه پټ دے نو هغه ئے په لوح محفوظ کښ لیکلے دے او الله دا ښهٔ پیژني. او کله چه قیامت راشي نو الله به دوئ له د دوئ د تمام کفر او عناد او د یو یو بد عمل بدله ورکړي.

وَمَا مِنْ غَآئِبَةٍ: د قرآن کریم د عادت مطابق کله چه د علم تخصیص وشي نو د هغے نه روستو د علم تعمیم کوي، دے دپاره چه څوك دا ګمان ونکړي چه د الله تعالیٰ توجه به صرف انسانانو ته وي او نورو کائناتو ته به نهٔ وي نو الله عموم کوي.

یعني په آسمان او زمکه کښ چه څومره پټ څیزونه دي چه انسانانو ته هغه نهٔ ښکاره کیږي پدے ټولو الله تعالیٰ پو هه دے، بیا دویم هغه ئے په لوح محفوظ کښ لیکلي هم دي او دریم دا چه هغه د خپل مشیت مطابق په خپل خپل وخت کښ موجوده وي او راښکاره کوي ئے.

غَآئِبَةٍ: کښ تاء د مبالغے ده لکه د رَاوِيَةٌ او دَاعِيَةٌ او عَلَّامَةٌ په شان، مراد ترے نه ډیر سخت غائب شے دے. مقاتلؒ وائي : دوی چه کوم عذاب په جلتئ غواړي دا د الله تعالیٰ په نیز ښکاره دے اګر که د مخلوق نه غائب دے. (فتح البیان)

اِنَّ هٰذَا الْقُرْاٰنَ:　　ربط او مناسبت :

الله تعالیٰ ته د تیرے شوے زمانے احوال هم معلوم دي او د راتلونکي زمانے هم. نو د

هغه د عالم الغیب کیدو یو دلیل دادے چه بنی اسرائیلو چه په کومو تاریخی واقعاتو کښې خپلو کښې سخت اختلاف کولو، هغے سره متعلق هغهٔ صحیح خبره د خپل اُمی نبی په ژبه په قرآن کریم کښې نازله کړے ده. دارنګه بنی اسرائیل پخوا تیر شویدی او پدے قرآن کښې د هغوی د اعمالو او ګناهونو تذکره ده چه ګوره بنی اسرائیلو د سختې عبادت وکړو او په دریاب باندے پورے وتل. نو پدے آیت کښې د الله تعالیٰ علم په مَا کَانَ او مَا یَکُوْنُ باندے بیانیږی ځکه د بنی اسرائیلو خبره راوړی.

دویمه فائده پکښې دا ده چه بنی اسرائیلو ته الله تعالیٰ کتاب ورکړو لکه څنګه ئے چه تاسو له قرآن درکړو نو هغوی پکښې اختلاف وکړو، د هغه کتاب خبرے ئے ونهٔ منلے، نو دوی د سخت عذاب حقدار وو لیکن الله تعالیٰ آخرت ته پریخودل، الله تعالیٰ به په قیامت کښې د دوی فیصله کوی نو دارنګه تاسو په قرآن کښې اختلاف وکړو نو ستاسو فیصله به هم الله تعالیٰ په آخرت کښې کوی. د الله نه خلاصیدے نشیٔ، ددے کتاب نه تاسو ولے اعراض کویٔ.

نو پدے آیت کښې ډیرو خبرو ته اشاره ده، ❁ بیان د علم د الله تعالیٰ،

❁ رد په بنی اسرائیلو، ❁ رد په موجوده مشرکینو، ❁ د الله په کتاب کښې اختلاف کول او د هغے نه د مخ اړولو نحوست او بدی، ❁ او د الله کتاب ته د توجه کولو هدایت او رحمت والے ذکر دے.

یَخْتَلِفُوْنَ : یعنی اختلاف ئے پکښې کړیدے او د حق نه اوړیدلی دی. لکه د جنت او جهنم او د الله په باره کښې او د عُزیر او مسیح علیهما السلام په باره کښې دوی ته سیده لاره ښائی. او دوی د سلیمان ﷺ په باره کښې دروغ وئیلی وو نو په دے سورت کښې د هغے صحیح بیان وشو. او بنی اسرائیل خپل مینځ کښې په ډیرو ډلو ټپلو تقسیم شوی وو چه په یو بل به ئے طعنونه وئیل او د یو بل نه به ئے بیزاری کوله نو دے قرآن کښې د هغوی اختلاف بیان شو او حق ئے ورته ښکاره کړو نو پدے کښې هغوی ته ترغیب دے که هغوی پدے قرآن ایمان راوړو او پدے ئے عمل وکړو نو د هغوی اختلاف او تفرق به ختم شی.

وَاِنَّهٗ لَهُدًى وَّرَحْمَةٌ: دا قرآن هغه خلقو دپاره د هدایت چینه او سرنه خپو پورے رحمت ثابت شوے چه هغویٔ په دے ایمان لری. په دے کښې د عربو د ګډو بزو او اوښانو څرونکی او د یهودو او نصاراو هغه خلق شامل دی چه هغویٔ د اسلام دعوت قبول

کړي.

د قرآن کريم دعوت قبلول د هغوئ دپاره د دنيا او آخرت د کاميابيو سبب جوړ شو، او همدا عرب چه د ډاکوانو په نوم سره پيژندل کيدل د روم او فارس حکمرانان جوړ شول.

بِحُكۡمِهِ : په خپله عملي فيصله سره. ځکه چه په دنيا کښ قولي فيصله شويده ليکن نتيجه ئې ډيره نۀ ده راوتې او په آخرت کښ به عملي فيصله وي چه څوك به جنت ته داخلوي او څوك جهنم ته.

الۡعَزِيزُ الۡعَلِيمُ: يعني هغه داسې غالب دې چه هيڅ باطل پرست به د هغۀ د فيصلې نه تښتيدلې نشي، او هغه داسې علام الغيوب دې چه حق او ناحق ښۀ پيژني، د هغۀ په فيصله کښ غلطي نشي راتلې.

پدې کښ اشارات دا دي: څوك چه د قرآن نه اوري او پدې کتاب ايمان نۀ راوړي او ددې شکر نۀ کوي نو دا کتاب به د دوي ترمينځ عملي فيصله وکړي او د قرآن مخالفين دشمنان به الله تعالیٰ ړاندۀ راپاڅوي لکه لاندې راروان دي، او توبيخ به ورکړي (اَكَذَّبۡتُمۡ بِاٰيٰتِيۡ) (آيا تاسو زما آيتونه دروغژن ګنړلي وو) نو هغه خلك د ډيرو خطراتو سره مخامخ دي چه د الله تعالیٰ د کتاب نه اعراض کوي او ايمان پرې نۀ راوړي.

فَتَوَكَّلۡ عَلَى اللّٰهِ: پدې آيت کښ الله تعالیٰ خپل نبي ته يو ادب ورکوي چه قرآن بيانوه، که خلك اختلاف کوي او فائده ترې نۀ اخلي نو نۀ دې اخلي پرواه مۀ کوه، تا ته الله تعالیٰ واضح حق درکړيدې.

فَتَوَكَّلۡ: کښ فاء د تفريع ده په مخکنو څيزونو يعني هرکله چه قيامت حق دې، او دا قرآن د اختلافاتو ختمولو دپاره راغلې دې او الله به ددې په باره کښ تپوس کوي نو ددې بيانول لازم دي او ددې په بيان کښ د هيڅ لحاظ او هيچا نه يره نۀ ده پکار بلکه په الله باندې ځان سپاره ځکه چه هغه عزيز او عليم دې، هغه به ستا مدد کوي.

عَلَى الۡحَقِّ الۡمُبِيۡنِ: مفسرين ليکي: دې آيتِ کريمه نه دا سبق ملاويږي چه حق پرست له ددې خبرې يقين ساتل پکار دي چه الله به ددۀ خامخا مدد کوي، او باطل به مغلوبه کيږي ځکه چه هميشه د حق سره الله تعالیٰ ملګرې وي.

پدې دوه جملو کښ داسې فائدې او قاعدې دي چه ټول دين ئې راګير کړيدې.

١ - اوله دا ده چه [اَنۡ يَّكُوۡنَ الۡعَبۡدُ عَلَى الۡحَقِّ عَقِيۡدَةً وَّعَمَلًا] چه بنده له پکار دي چه هغه به په حق روان وي په عقيده او عمل کښ. [وَمُتَوَكِّلًا عَلَى اللّٰهِ] او په الله باندې به ځان

سپارونکے وی۔ نو پدے سره په بنده کښې تول دین راځي۔ او دا د رسول الله ﷺ حال وو چه په دین باندے عقیدةً او عملاً روان وو او بیا ئے الله ته ځان سپارلے وو۔

اِنَّكَ عَلَى الْحَقِّ: یعنی که خلك ئے نهٔ مني نو دا گمان مهٔ کوه چه دا به ستا نقصان وی بلکه تهٔ په ښکاره حق روان ئے۔ چه ددے په رشتین والي کښې د ذرے هومره شك نشته۔

اِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتٰى: پدے آیت کښې نبي کریم ﷺ له تسلي ورکوي چه ستا د اسلامي دعوت نه به هغه خلق نفع اخلي کوم چه په قرآن کریم ایمان راوړي، او د الله دین د زړهٔ نه قبلوي، تهٔ په دے فکر کښې هیڅ کله مهٔ پریشانه کیږه چه تول خلق ستا دعوت ولے نهٔ قبلوي۔

مفسرین لیکي چه د مکے کافرانو به قرآن کریم په خپلو ظاهري غوږونو آوریدلو، لیکن په هغوئ به د وُرِی د دانے هومره هم ددے اثر نهٔ کیدلو، دے وجے نه د هغوئ تشبیه ئے د مړو او کڼرو سره ورکړے۔

نو دلته دوه تشبیهات دي (۱) یو دا چه دلته الله تعالیٰ کافران د مړو سره مشابه کړیدي، مړي آوریدل نشي کولے او کافر خبره آوري لیکن قبلوي ئے نهٔ، نو دلته عدم قبول په منزله د عَدَم سَمَاع دے (یعني نهٔ قبلول داسے دي لکه نهٔ آوریدل)

(۲) دویمه تشبیه د کافرو ده د کڼرو سره چه کوم شا ته روان وي، نو هغه په خبره په هیڅ شان نهٔ پوهیږي، نو دغه شان کافران دي چه دومره ضد کښې راغلي دي چه خبره پرے هیڅ اثر نکوي نو دا داسے دي لکه چه دوي د سَره خبره نهٔ وي آوریدلې نو نهٔ قبلول په منزله د نهٔ آوریدو دي۔

وَمَآ اَنْتَ بِهٰدِي الْعُمْيِ عَنْ ضَلٰلَتِهِمْ: دلته ئے د کافرانو تشبیه د ړندو سره ورکړه چه کله د هغوي نه لاره ورکه شوي وي، نو که یو تن هغوي ته ډیر آوازونه وکړي چه په دے لاره راشئ نو هغوي ته لاره نهٔ معلومیږي، نو دا کافران د ړوندو په شان دي، او بیا په ړوندوالي کښې گمراه شوي هم دي۔ او د هغوئ گمراهي همیشه وه، په سمه لاره باندے د هغوئ د راړولو هیڅ امید نهٔ وو، دے وجے نه ړندو سره د دوئ تشبیه ورکړے شوه۔ او په هر دور کښې چه د چا دپاره ضلالت او گمراهي ولیکلے شي، او د چا په زړونو چه د کفر مهر لگولے کیږي، د هغوئ دغسے حال وي۔

معنیٰ دا ده: تهٔ هدایت نشے کولے هغه چاته چه الله تعالیٰ د حق نه راندهٔ کړي وي داسے

هدايت چه مقصد ته ئے ورسوے چه هغه ايمان دے، دا ستا په وس کښې نشته.

(فتح البيان)

إِنْ تُسْمِعُ: سوال پيدا شو چه هركله چه نبي ﷺ چا ته هدايت نشي كولے نو بيا بيان څه له كوى؟ نو فرمائي : چه څوك زما په آيتونو ايمان لرى نو دا اهل خلك دے، دوى ته ستا د بيان فائده رسيږى، او په دوى كښې د تابعدارئ ماده پيدا كيږى. او كافرانو كښې اهليت نشته او دوى د ځان نه خپله اهليت ختم كړيدے.

او ددے نه معلومه شوه چه كامل ايمان والا د قرآن كريم نه پوره فائده اخستے شي.

يُؤْمِنُ كښې د زړهٔ تصديق ته ايمان وويل شو (اطلاق د ايمان په جزء باندے وشو) او (فَهُمْ مُسْلِمُوْنَ) كښې ظاهرى اعمالو ته اشاره ده.

تُسْمِعُ كښې اسماع د فائدے وركولو مراد ده.

## اشكال او د هغے ازاله

سوال دا دے چه يو تن د مخكښې نه د الله تعالىٰ آيتونه منى نو د رسول الله ﷺ بيان به څه فائده وركړى، آيتونو ته ئے مخكښې څنگه ومنل، بيا خو د رسول الله ﷺ بيان روستو شو او د دوى ايمان او اسلام مخكښې شو نو دوى دا ايمان او اسلام په څه سره راوړو؟

(۱) يو جواب دا دے چه يُؤْمِنُ مضارع ده مراد ترے نه اراده د ايمان او د اسلام ده. او كافرانو ته څكه هدايت نهٔ كيږى چه د هغوى اراده د ايمان او اسلام نشته، نو پدے وجه د نبي خبره په هغوى باندے اثر نكوى. دا هم ښهٔ تفسير دے.

(۲) دويم دا چه د آيتونو نه مراد كَوْنى او عقلى دليلونه دى نهٔ قرآنى آيتونه، او د (مُسْلِمُوْنَ) نه مراد انقياد دے، نهٔ شرعى معنىٰ د اسلام. يعنى څوك چه په عقلى دليلونو تصديق كوى او په كائناتو كښې سوچ كوى چه دا ضائع نهٔ دى پيدا، او د انقياد او خبرو منلو ماده پكښې وى، ضدى او عنادى نهٔ وى نو هغه ته د رسول الله ﷺ بيان فائده وركوى او خبره منى څكه چه ددهٔ فطرت روغ دے.

او دا تقسيم په هره زمانه كښې واقع دے، تهٔ خپل كلى كښې وگوره دوه قسمه خلك به وى، يو ضديان، عناديان چه د ړندو كنړو په شان وى كه هغوىٰ ته هر څومره دليلونه بيان كړے په هغوى به هيڅ اثر نهٔ كوى، او دويم قسم هغه خلك چه د هغوى په زړونو كښې نرموالے او د الله لوى والے پروت دے، او عاجز او منقاد خلك وى نو هغوى ته چه حق

بیان کړے شي، سمدست وائي چه دا خو صحیح خبرے دي، منل ئے پکار دي، نو په یو بیان به جوړ شي څکه چه په دوی کښ د مخکښ نه خیر موجود دے۔

## مسئله د سماع موتیٰ – آیا مړی آوری او که نهٔ؟

دا مسئله پدے زمانه کښ د اِفراط او تفریط ښکار شویده، چا دا د کفر او اسلام مسئله جوړه کړیده، او دا وائي چه څوك د سَمَاعِ مَوتیٰ قائل وی، هغه مشرك او کافر دے۔ دا د بعض نوی مبتدعینو نظریه ده۔

او بلـه ډله وائي چه سَمَاع موتیٰ څوك نهٔ مني، هغه د قرآن منکر دے او په غلطه روان دے۔

صحیح خبره دا ده چه دا د کفر او د اسلام مسئله نهٔ ده، بلکه یوه شرعی اختلافی مسئله ده، د بعض دلائلو نه د مړو آوریدل او د بعضو نه نهٔ آوریدل معلومیږی۔ ددے وجه نه د ائمه کرامو پکښ اختلاف دے (۱) د جمهورو اهل علمو رایه دا ده چه مړی نهٔ آوری۔ قرآن کریم کښ ډیر آیتونو نه ثابتیږی لکه ﴿اِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتٰى﴾ (النمل: ۸۰) والروم (۵۲) ﴿وَمَا اَنْتَ بِمُسْمِعٍ مَنْ فِی الْقُبُوْرِ﴾ (فاطر: ۲۲) ﴿اَمْوَاتٌ غَيْرُ اَحْيَاءٍ وَمَا يَشْعُرُوْنَ اَيَّانَ يُبْعَثُوْنَ﴾ (النحل: ۲۱) او دا رایه احنافو او نورو محققینو ته منسوب ده۔ او پدے باندے نُعمان آلوسیؒ کتاب لیکلے دے [اَلْآيَاتُ الْبَيِّنَاتُ فِیْ عَدَمِ سَمَاعِ الْاَمْوَاتِ عِنْدَ الْحَنَفِيَّةِ السَّادَاتِ] په هغے باندے د شیخ البانیؒ تحقیق هم شته۔

دویمه رایه امام شافعیؒ ته منسوب ده او هغهٔ سره د نورو ډیرو اهل علمو ده لکه شیخ الاسلام ابن تیمیةؒ او ابن قیمؒ وغیره۔ چه مړی آوری۔ دلائل دا دي چه قلیب بدر کښ چه کوم مشرکان د بدر په ورځ گوزار شو نو هغوی د رسول الله ﷺ خبرے آوریدلے۔

او حدیث د بخاری کښ دی چه [اِنَّهُ لَيَسْمَعُ قَرْعَ نِعَالِهِمْ] یعنی مړے د خلکو د خپو کشارے آوری چه سمدست ورته ملائك راورسیږی۔ (بخاری: ۱۳۳۸) مسلم: (۷۳۹۵)

او په یو حدیث کښ دی: [مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَمُرُّ بِقَبْرِ اَخِيْهِ الْمُسْلِمِ كَانَ يَعْرِفُهٗ فِی الدُّنْيَا فَيُسَلِّمُ عَلَيْهِ اِلَّا رَدَّ عَلَيْهِ السَّلَامَ] چه کوم مسلمان د بل مسلمان ورور په قبر تیر شي چه په دنیا کښ ئے پیژنی او په هغه سلام واچوی نو هغه د سلام جواب ورکوی۔ (طبرانی)

دریم تطبیقی قول دا دے چه د عامو مړو آوریدل د قرآن او حدیث نه ثابت نهٔ دی چه مړی هره خبره آوری او په خاصو مقاماتو کښ آوریدل راغلی دی په بدر کښ ئے آوریدل

کړیدی ځکه چه د رسول الله ﷺ معجزه وه لکه د قتادةؒ نه امام بخاریؒ نقل کړیدی.

او په قرع النعال حدیث کښې کنایه ده د سرعة اتیان الملائکه نه یعنی مړے چه خخ شي نو ملائك ورته دومره زر رارسیږي چه دے لا د خلکو د خپو کشارے آوري. یعنی که دۀ آوریدل کوے نو دۀ به لا د خلکو د خپو کشارے آوریدے او ملائك به ورته رارسیدلی وی.

نو پدے کښې د مړي د آوریدو خبره نشته. یا بالفرض که واوري نو صرف د خپو کشارے آوري او خبرے نۀ آوري او پدے به قیاس نۀ کوے ځکه چه دا د قبر خبرے دی چه قیاس پکښې کار نۀ ورکوی. او محققین علماء د سلام جواب ورکولو والا حدیث ته ضعیف وائي، ددے په یو سند کښې فاطمه بنت الریان په نوم محدثه مجهوله ده، دارنګه د ابن عبد البر استاذ ابو عبد الله عبید بن محمد مجهول دے. (شرح الموطأ د ابن عبد البر ۱/۱٤٧) او کوم چه د ابو هریره ﷺ نه نقل دے د هغے سند موقوف، منقطع ضعیف دے. زید بن اسلمؒ د ابو هریره ﷺ نه آوریدل نۀ دی کړي. او محمد بن قدامه الجوهری ته ابن معین او ابوداود ضعیف وئیلے دے. او ذهبیؒ په (الضعفاء) کښې ذکر کړیدے. تفصیل دپاره الضعیفه رقم (٤٤٩٣) و (٥٢٢١)

نو عبد الحق اشبیلیؒ چه ورته په «الاحکام الکبری» کښې صحیح وئیلے دے نو هغه خطاء شویدے او حافظ ابن رجب الحنبلیؒ پرے په خپل کتاب «اهوال القبور» ۲/ ۸۳) کښې رد کړیدے.

نو که څوك دا عقیده وساتي چه مړي په دغه خاص مقاماتو کښې آوریدل کوي او په نورو ځایونو کښې نص نشته نو ددے نه هیڅ شرك او کفر نۀ ثابتیږي بلکه څوك چه د مړي نه مدد غواړي هغه مشرك دے. او ددے مسئلے تحقیق په «الحق الصریح شرح مشکاة المصابیح» کښې تفصیلاً وګوره.

| وَإِذَا وَقَعَ الْقَوْلُ عَلَيْهِمْ |
|---|
| او کله چه پوره شي فیصله د عذاب (واقع شي وینا د الله) په دوی باندے |
| أَخْرَجْنَا لَهُمْ دَابَّةً مِّنَ الْأَرْضِ تُكَلِّمُهُمْ لا |
| را اُویاسو به مونږ دوی ته یو حیوان د زمکے نه چه خبرے به کوی دوی سره |

اَنَّ النَّاسَ كَانُوْا بِاٰيٰتِنَا لَا يُوْقِنُوْنَ ﴿۸۲﴾

چه بیشکه خلق وو چه په آیتونو زمونږ ئې یقین نهٔ کولو۔

**تفسیر** : پدے سورت کښې عجائبات زیات ذکر شو نو څکه الله تعالیٰ پکښې بل د ناشنا څیز تذکره وکړه چه هغه دابة الارض ده چه دا هم یو ناشنا حیوان دے او خبرے به کوی۔

پدے آیت کښې تخویف دنیوی دے په سبب د ایمان نهٔ راوړو په آیتونو او قرآن باندے۔

## دابة الارض څه شے دے؟

بعض مفسرینو د دابة الارض نه عمر ﷺ مراد کړیدے، دا ډیر غلط تفسیر دے چه تفسیر قرطبیؒ پرے سخت رد کړیدے۔ او کوم چه د حدیثو منکرین دی، هغوی د دابة الارض راوتل نهٔ منی، او بعض تفسیر لیکونکو هم د دابة الارض راوتل نهٔ دی منلی او دائے وئیلی دی چه دا کلام په تعلیق بناء دے، یعنی که دا موجوده کافران قرآن نهٔ منی او ایمان نهٔ راوړی نو زهٔ کولے شم چه د زمکے نه یو حیوان راوباسم او هغه دوی سره خبرے وکړی چه تاسو ئے نهٔ منئ؛ مګر دا قرآن حق کتاب دے۔ لکه دا کار امین احسن اصلاحی په تفسیر «تدبر قرآن» کښې کړیدے۔ لیکن دا خبره د احادیثو خلاف ده۔

ابن جریرؒ، ابن ابی حاتمؒ، حاکمؒ او ابن مردویهؒ اوداسے نورو ددے آیت په تفسیر کښې د ابن عمر ﷺ قول نقل کړے چه کله د قیامت وخت نزدے راشی، او په زمکه باندے څوك د نیکئ حکم کونکے او د بدئ نه منع کونکے باقی پاتے نشی، نو الله تعالیٰ به د زمکے نه یو حیوان را اوباسی چه هغه به خلقو ته وائی چه تاسو په هغه آیتونو ایمان نهٔ راوړو چه په هغے کښې د قیامت خبر ورکړے شوے وو، نو زهٔ د قیامت د نزدے کیدو نښه یم، ماله هغه الله د خبرو کولو طاقت راکړے، کوم چه د قیامت په قائمولو باندے قادر دے۔

په صحیح مسلم کښې د عبد الله بن عمر ﷺ نه نقل دی چه نبی کریم ﷺ وفرمایل : د قیامت په ابتدائی نښو کښې یوه نښه داده چه نمر به د مغرب نه را اوخیژی، او د صبا (څابښت) په وخت به ناڅاپه یو حیوان را اوځی او خلقو ته به رابښکاره شی۔ او دواړه نښے به یو بل ته نزدے وی۔ (اخرجه مسلم فی الفتن، حدیث ۱۲۸، ۱۲۹)

مفسرین لیکی چه یا خو به دا څناور صرف یو وی، چه خلقو سره به پورتنئ خبره

کوی۔ یا مقصد د ځناور یو قِسم دے، چه د هغے یوه لویه شماره به یو په ځای او بل په بل ځای د زمکے په مختلفو حصو کښې راښکاره شی، او ټول به د الله په حکم سره هغه خبره کوی چه مخکښے ذکر شوه۔ لیکن ظاهر د آیت او احادیثو نه دا ده چه دا یو حیوان دے، او د قیامت حالات د عقل نه ډیر عجیب دی۔

دا ځناور به څنګه وی، چرته به راښکاره کیږی، او ددے سره متعلق د نورو ډیرو تفصیلاتو ذکر په داسے اخبارو او آثارو کښې راغلے، چه هغه قابلِ اعتبار نهٔ دی، او نهٔ د اصل موضوع په پیژندلو کښې دیته ضرورت شته، دے وجے نه د هغے د ذکر کولو نه ډډه کول بهتر دی۔ علامه قرطبیؒ په «کتاب التذکره فی امور الآخره» کښې د هغے تفصیل کړیدے۔

عبد الله بن عمرو بن العاص ﷺ فرمائی: چه دا به په مکه کښې د صفا غونډئ نه راوځی چه هغه به چوی۔ عبد الله بن عباس ﷺ ته منسوب ده چه دا به د تِهامه (مکے) د بعض کندو نه راوځی۔ بعضو د کوفے مسجد خودلے دے د کوم ځای نه چه تنور د طوفان نوح په وخت کښې جوش وهلے وو۔

بعض جبل ابی قُبَیس، او بعض د اَجیَاد په طرف کښې د یو کانړی نه راوتل ذکر کړیدی، (اجیاد په حرم مکی کښې یو ځای دے چه په محله جیاد باندے مشهور دے) او بعض طائف یادوی۔ (فتح البیان) لیکن ددے ټولو خبرو پوره یقین الله ته دے۔

دابة الارض سره به اَمسا هم وی او تاپه هم، او دا به په ټوله دنیا ګرځی او د خلکو په تندو به تاپه وهی او مؤمن او کافر به په دنیا کښې معلوموی او په مؤمن چه تاپه ووهی نو هغه به هیڅکله نهٔ ګمراه کیږی۔ او په بل به تاپه ووهی نو هغه به هیڅکله مؤمن کیږی نهٔ، نو په یو دسترخوان به ناست وی او کافر او مؤمن به جدا جدا پیژندلے شی۔ او ددے په باره کښې روایتونه تواتر ته رسیدلی دی۔ (ترمذی فی التفسیر سورة ۲۷ وابن ماجه فی الفتن باب ۳۱ واحمد فی المسند ۲/۲۹۵، ۴۹۱) واسنادهم ضعیف)

د دابة الارض بل کار به دا وی چه [تُبطِلُ الْاَدْیَانَ كُلَّهَا سِوَى الْإِسْلَامِ] د اسلام نه علاوه به ټول دینونه باطلوی۔

## فوائد الآیة

وَإِذَا وَقَعَ الْقَوْلُ: ددے قول نه څه مراد دے؟

(۱) نو عبد الله بن مسعود ﷛ چه ددے سورت په موضوع پوهه شویدے ښه مصداق بیان کړیدے چه [إِذَا مَاتَ الْعُلَمَاءُ وَرُفِعَ الْقُرْآنُ].
یعنی کله چه علماء مړهٔ شی او قرآن کریم د خلکو نه پورته کړے شی.
یعنی د علم والا خلك او د علم والا کتاب ختم شی او صرف جهل والا خلك پاتے شی نو پدے وخت کښې به د خلکو یقین په الله باندے خراب شی او آخرت به نهٔ منی، صحیح بیان کونکی به پاتے نشی، زناگانے او فسادونه به شروع شی نو پدے وخت کښې به الله تعالیٰ دابة الارض راوباسی چه د مؤمن او کافر تمییز وکړی.
(۲)- دے ته قریب قول دا دے چه [إِذَا ثَبَتَ الْعَذَابُ وَذٰلِكَ حِيْنَ لَا يَنْفَعُ الْأَمْرُ بِالْمَعْرُوْفِ وَالنَّهْيُ عَنِ الْمُنْكَرِ] یعنی کله چه فیصله د عذاب ثابته شی او دا به هغه وخت وی چه امر بالمعروف او نهی عن المنکر به فائده نهٔ ورکوی. نو الله به ئے د دابة الارض په وجه دنیا کښې ښکاره کړی او ویه ئے شرموی. او ددے بل تعبیر دا دے: [إِذَا لَمْ يُرْجَ صَلَاحُهُمْ] کله چه د خلکو د نیك عملیٔ امید ختم شی.
(۳) دے ته قریب قول دا هم دے: [إِذَا تَمَّ الْحُجَّةُ عَلَيْهِمْ] کله چه په دوی باندے دلیل قائم شی او بیا هم ایمان نهٔ راوړی. ظاهر معنیٰ دا ده چه کله عذاب واقع شی.
**تُكَلِّمُهُمْ أَنَّ النَّاسَ**: ۱- د تُكَلِّمُهُمْ دپاره مفعول پټ دے أَيْ بِبُطْلَانِ الْأَدْيَانِ كُلِّهَا سِوَى الْإِسْلَامِ]. خلکو سره به دا خبرے کوی چه د اسلام نه سوئ ټول دینونه باطل دی.
او (أَنَّ النَّاسَ): دا علت دے د راوتلو د دابة الارض یعنی په دنیا کښې خلك د الله په آیتونو یقین نهٔ لری پدے وجه الله تعالیٰ ورته دابة الارض راوباسی او په دنیا کښې پرے ټاپه وهی چه دا جهنمیان دی نو پدے کښې دعوت دے چه اے خلکو! جلتی وکړئ، راشئ د الله آیتونه ومنئ چه په دنیا کښې ستاسو جهنمی والے ختم شی.
۲- یا تُكَلِّمُهُمْ دپاره مفعول (أَنَّ النَّاسَ) دے، او بِآيَاتِنَا کښې تقدیر دے [أَيْ بِآيَاتِ رَبِّنَا] یعنی دابة الارض به خبرے کوی د خلکو سره چه بیشکه خلك زمونږ د رب په آیتونو یقین نهٔ لری نو پدے وجه ئے زهٔ راوليږلم.
**فائده**: ددے آیت نه یوه اشاره معلومیږی چه وخت په وخت به د یقین کښې کمزوری پیدا کیږی، په ابتداء د اسلام کښې یقین ډیر زیات مضبوط وو. لکه په یو روایت کښې دی: [صَلَاحُ أَوَّلِ هٰذِهِ الْأُمَّةِ بِالزَّهَادَةِ وَالْيَقِيْنِ وَهَلَاكُ آخِرِهَا بِالْبُخْلِ وَالْأَمَلِ]
ددے امت د ابتدائی خلکو صلاحیت د دنیا په بی رغبتئ او یقین سره وو او ددے امت

د آخری خلکو هلاکت به په بخل او امیدونو سره وی۔

(طبرانی فی الاوسط (۷۶۵۰) وفیه عصمة بن المتوکل وقد ضعفه غیر واحد ووثقه ابن حبان)۔

وَيَوْمَ نَحْشُرُ مِنْ كُلِّ أُمَّةٍ فَوْجًا مِّمَّنْ

او په کومه ورځ چه راجمع به کړو مونږ د هر امت نه یوه ډله د هغه چا نه

يُكَذِّبُ بِآيَاتِنَا فَهُمْ يُوزَعُونَ ﴿٨٣﴾

چه دروغژن کنړی آیتونه زمونږ نو دوی به تقسیم کړے شی۔ (دوی به بند کړے شی).

حَتَّىٰ إِذَا جَاءُوا

(دوی به صف صف کړے شی)۔ ترڅو چه کله راشی دوی (د اُور غاړے ته، یا د الله مخے

قَالَ أَكَذَّبْتُم بِآيَاتِي وَلَمْ تُحِيطُوا بِهَا

ته)، وبه وائی الله آیا دروغژن کړی وو تاسو آیتونه زما او نهٔ وو راګیر کړے تاسو هغه

عِلْمًا أَمَّاذَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٨٤﴾ وَوَقَعَ الْقَوْلُ عَلَيْهِم

په علم کښې بلکه څه دی هغه چه تاسو کول۔ او واقع به شی وینا د عذاب په دوی باندے

بِمَا ظَلَمُوا فَهُمْ لَا يَنطِقُونَ ﴿٨٥﴾ أَلَمْ يَرَوْا أَنَّا

په سبب د ظلم د دوی نو دوی به خبرے نشی کولے۔ آیا نهٔ ګوری دوی چه بیشکه مونږ

جَعَلْنَا اللَّيْلَ لِيَسْكُنُوا فِيهِ وَالنَّهَارَ مُبْصِرًا ۚ إِنَّ

ګرځولے ده شپه دے دپاره چه آرام اُوکړی دوی په هغے کښې او ورځ رڼړا والا۔ یقیناً

فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴿٨٦﴾ وَيَوْمَ يُنفَخُ

پدے کښې خامخا نخښے دی دپاره د هغه قوم چه ایمان لری۔ او په کومه ورځ چه پوکے به

فِي الصُّورِ فَفَزِعَ مَن فِي

اُوکړے شی په شپیلئ کښې نو هیبت کښې به شی (وېره یریږی) هغه څوک چه په

السَّمَاوَاتِ وَمَن فِي الْأَرْضِ إِلَّا مَن شَاءَ اللَّهُ ۚ

آسمانونو کښې دی او هغه څوک چه په زمکه کښې دی مګر هغه څوک چه غواړی الله (د

| وَكُلٌّ اَتَوْهُ دٰخِرِيْنَ ﴿٨٧﴾ |
| --- |
| هغوی ټول) او (دا) ټول به راځي هغه ته ذلیله. (عاجزي کونکي). |

**تفسیر**: اُوس د آیتونو تکذیب کونکو ته د آخرت یرے بیانیږي. یعنی کوم خلق چه په دنیا کښې قرآن کریم دروغژن ګنړي، د قیامت په ورځ به د هغوئ څۀ حال وي، او الله به هغوئ ته څۀ وائي، همدا خبرے پدے آیتونو کښې بیانولے شي، چه د دوئ شماره به زیاته وي، او دا ټول به په یو ځای راګیر کړے شي، او الله تعالیٰ به د تمام محشر والو مخامخ د دوئ د ذلیله کولو او رسوا کولو دپاره دوئ ته ووائي چه تاسو زما د قرآن هغه آیتونه دروغژن ګنړلی وو چه په هغے کښې د قیامت خبر ورکړے شوے وو ؟ او په دے کښې مو د غور او فکر کولو زحمت هم برداشت نۀ کړو. تاسو د فساد خورولو او خلقو لره د نیغے لارے نه د اړولو نه سِوئ په دنیا کښې څۀ کړي وو.

**فَهُمْ يُوْزَعُوْنَ**: اَیْ یُحْبَسُ اَوَّلُهُمْ عَلٰی آخِرِهِمْ حَتّٰی یَجْتَمِعُوْا. یعنی اول به ئے په آخر باندے راښند کړے شي دے دپاره چه ټول راجمع شي.

**اِذَا جَآءُوْ**: اَیْ بَیْنَ یَدَیِ اللهِ. یعنی د الله مخے ته به راشي ﴿وَلَوْ تَرٰى اِذْ وُقِفُوْا عَلٰى رَبِّهِمْ﴾ (الانعام: ٣٠) ٢- یا جَآءُوْا اِلَى النَّارِ. د اُور خوا ته به راشي. ﴿وُقِفُوْا عَلَى النَّارِ﴾ (انعام: ٢٨) دواړه خبرے صحیح دي.

**اَمَّا ذَا**: اَیْ مَا الَّذِیْ. یعنی دا په کومه خبره تاسو عمل کولو چه په یو شي پو هیدئ نۀ او تکذیب مو کولو. پدے آیت کښې دا مسئله ده چه [اَلنَّاسُ اَعْدَآءٌ لِمَا جَهِلُوْا] خلك د هغه شي دشمنان دي چه په څه نۀ پو هیږي.

ددے نه معلومه شوه چه د قرآن نه وړاندے کیدل د بې یقینئ سبب دے، او قرآن ته رانږدے کیدل او ددے علمونه حاصلول د یقین او د مضبوطوالی سبب دے نو څومره چه په قرآن باندے اِحاطه راتلله نو په قرآن به دے یقین زیاتیږي.

**وَوَقَعَ الْقَوْلُ عَلَيْهِمْ**: دلته د قول نه مراد فیصله د عذاب ده. یعنی د الله عذاب به پرے راپریوزي او ټول به جهنم ته ګوزار کړے شي.

**فَهُمْ لَا يَنْطِقُوْنَ**: یعنی په خپله دفاع کښې به هیڅ خبره د ژبو نه نشي ویستلے. او حجت او دلیل به نشي پیش کولے. یا مراد دا دے چه په خوله به ئے مهر ووهلے شي.

**اَلَمْ يَرَوْا**: اُوس فرمائي چه دوی کتاب مکنون (قرآن) کښې هم سوچ نکوی نو دغه

شان په کتاب مفتوح (دلائلو) کښې هم دوی سوچ نکوی.
نو پدې آیت کښې د قیامت منکرینو ته د غور او فکر دعوت ورکولے کیږی چه الله تعالیٰ شپه پیدا کړې، چه په دې کښې تاسو سکون حاصلولو دپاره خوب کوئ، چه دا د مرګ یو قِسم دے، او د ورځې پاسیږئ او کارونه کوئ. دا را پورته کیدل د مرګ نه پس یو قِسم ژوند دے. او تر څو پورې چه انسان ژوندے وی، د خوب او بیدارئ او د مرګ او ژوند سلسله به روانه وی، او دا هر څهٔ د الله په قدرت سره کیږی. که چرې یو عقلمند انسان په دې کښې غور وکړی نو هغه به یقینًا مرګ نه پس په بل ژوندون باندې ایمان راوړی، ځکه کوم الله چه په اُودهٔ کولو او ویښولو باندې قادر دے، هغه الله یقینًا د مرګ نه پس په دوباره ژوندی کولو هم قادر دے. (ابوالسعودؒ)
وَالنَّهَارَ مُبْصِرًا: پدې آیت کښې یو یو څیز په هر جانب کښې پټ دے (اللَّيْلَ) سره مُظْلِمًا او د مُبْصِرًا سره (لِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ) پټ دے لکه هغه په سورة الروم کښې ذکر دے.
لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ: یعنی په خوب او د بیدارئ په دې کار کښې ایمان والو دپاره نښې دی، ځکه چه د دوئ زړونه ژوندی وی، او هم دوئ په دې کښې د غور او فکر کولو په وجه د مرګ نه پس په ژوند باندې ایمان راوړی. او د چا زړونه چه د کفر په وجه مړهٔ دی، هغوئ ته د غور او فکر کولو توفیق نهٔ ملاویږی.
یا يُؤْمِنُوْنَ نه مراد دا دے چه که څوك د ایمان اراده لری نو دا نښې ورله کافی دی. او څوك چه د کائناتو دلیلونو کښې سوچ وکړی نو هغه به ضرور د الله تعالیٰ کتاب هم منی.
وَيَوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّوْرِ: ددې آیت نه روستو د آخرت تخویف شروع دے او پدې آیت کښې ئې درې حالات ذکر کړیدی. او دلته اولنئ نفخه ذکر ده، او پدې سره به عالَم فناه کیږی ځکه چه روستو ئې وروسته د غرونو حال ذکر کړیدے او بیا به دویمه نفخه وهلے کیږی او په هغې سره به انسانان راپورته کولے شی.
د بعضِ علماؤ وینا ده چه اسرافیل علیه السلام به درې ځله په ښکر کښې پوکے کوی. او بعضِ وائی چه دوه ځله به په ښکر کښې پوکے کیږی. او همدا خبره صحیح ده.
ما وردیٰ وائی: په دې آیت کښې هغه شپیلئ مراد ده چه د هغې نه پس به مړی د قبرونو نه پاځیږی او د محشر میدان طرفته به روانیږی. کله چه دا ښکر وپو کلے شی نو په آسمان او زمکه کښې وسیدونکی د الله تعالیٰ تمام بندګان به د ښکر د سخت آواز په وجه ګهبراؤ شی او تول به ویریږی.

فَفَزِعَ: په سورة الزمر (٦٨) آیت کښې ئې صَعِقَ (بې هوشي) لفظ ذکر کړیدے دواړه یو شے دے۔

اِلَّا مَنْ شَآءَ اللّٰهُ: ددے نه مراد ځوک وائي شهداء او انبیاء علیهم السلام دی، او بعض ملائك لکه اسرافیل علیه السلام شو۔ او په دے کښې کامل مؤمنان هم داخل دی لکه روستو آیت (٨٩) کښې راځي چه ﴿وَهُمْ مِنْ فَزَعٍ يَوْمَئِذٍ آمِنُونَ﴾۔

لیکن صحیح خبره دا ده چه هغه امن د فزع نه په ورځ د قیامت کښې مراد دے، او هرچه په ابتداء د قیامت کښې یرے او بې هوشیانی دی نو دا په مؤمنانو هم راځي۔

اَتَوْهُ دٰخِرِيْنَ: یعنې ټول به الله تعالیٰ ته ذلیله راځي او دا د هیبت ذلت دے نو نیکان او نافرمان دواړو ته شامل دے۔

| |
|---|
| وَتَرَى الْجِبَالَ تَحْسَبُهَا جَامِدَةً وَّهِيَ تَمُرُّ |
| او وینې به ته غرونه، گمان به کوے ته په هغې باندے ولاړ په ځائے او هغه به روان وی |
| مَرَّ السَّحَابِ ۚ صُنْعَ اللّٰهِ الَّذِيْٓ اَتْقَنَ |
| په شان د روانیدو د وریځو۔ جوړ ځ د الله دے هغه ذات چه مضبوط ئې جوړ کړیدے |
| كُلَّ شَيْءٍ ۚ اِنَّهٗ خَبِيْرٌ بِمَا تَفْعَلُوْنَ ﴿٨٨﴾ مَنْ جَآءَ بِالْحَسَنَةِ |
| هر شے، یقیناً هغه خبردار دے په هغه کارونو چه تاسو ئې کوئ۔ هغه چا چه راوړه نیکی |
| فَلَهٗ خَيْرٌ مِّنْهَا ۚ وَهُمْ مِّنْ فَزَعٍ يَّوْمَئِذٍ اٰمِنُوْنَ ﴿٨٩﴾ |
| نو دهٔ لره به غوره (جزا) وی د هغې نه، او دوی به د یرے د دغه ورځې نه په امن کښې وی۔ |
| وَمَنْ جَآءَ بِالسَّيِّئَةِ فَكُبَّتْ وُجُوْهُهُمْ فِي النَّارِ ۚ |
| او هغه چا چه راوړه بدئ لره نو اَلټه (پړمخې) به واچولے شی مخونه د دوی په اُور کښې، |
| هَلْ تُجْزَوْنَ اِلَّا مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿٩٠﴾ اِنَّمَآ اُمِرْتُ |
| بدله نهٔ درکړے کیږی تاسو ته مگر د هغې عملونو چه تاسو کول۔ یقیناً حکم شویدے |
| اَنْ اَعْبُدَ رَبَّ هٰذِهِ الْبَلْدَةِ الَّذِيْ حَرَّمَهَا |
| ما ته چه بندگی اُوکړم د رب ددے ښار هغه چه عزت ئې ورکړیدے دے ته |

| وَلَهٗ كُلُّ شَیْءٍ وَّاُمِرْتُ اَنْ اَكُوْنَ مِنَ الْمُسْلِمِیْنَ ﴿۹۱﴾ |
|---|
| او د هغه په اختیار کښې هر شے دے۔ او ما ته حکم شویدے چه زهٔ شم د تابعدارو نه۔ |
| وَاَنْ اَتْلُوَا الْقُرْاٰنَ ۚ فَمَنِ اهْتَدٰى فَاِنَّمَا |
| او (دا حکم شویدے چه) زهٔ اُولولم قرآن، پس چا چه هدایت اُوموندلو نو یقیناً |
| یَهْتَدِیْ لِنَفْسِهٖ ۚ وَمَنْ ضَلَّ فَقُلْ اِنَّمَاۤ اَنَا مِنَ |
| هدایت مومی دپاره د فائدے خپلے او هغه څوك چه ګمراه شو نو اُووایه ! یقیناً زهٔ د |
| الْمُنْذِرِیْنَ ﴿۹۲﴾ وَقُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ |
| یرے ورکونکو نه یم۔ او اُووایه ټول صفتونه د اُلوهیت خاص الله لره دی، |
| سَیُرِیْكُمْ اٰیٰتِهٖ فَتَعْرِفُوْنَهَا ۚ |
| زر دے چه وُبه ښائی تاسو ته دلائل د قدرت خپل نو تاسو به هغه وپیژنئ |
| وَمَا رَبُّكَ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ﴿۹۳﴾ |
| او نهٔ دے رب ستا ناخبره د هغے عملونو نه چه تاسو ئے کوئ۔ |

**تفسیر**: ۱- یعنی د شپیلئ وهلو نه پس به غرونه په ظاهر کښې په خپل ځای ولاړ وی، لیکن هغه به د وریځو غونتته تیزئ سره روان وی۔ ځکه چه یو لوی شے چه کله تیز روان وی، هغه داسے ښکاره کیږی لکه ولاړ۔ اکثرو مفسرینو ددے آیت همدا تفسیر بیان کړے چه دا کار به د قیامت په ورځ هغه وخت کیږی کله چه الله تعالیٰ پوره کائنات هلاك کړی۔

۲- یا اُوس په دنیا کښې خو تهٔ غرونه په ځای ولاړ وینے لیکن د قیامت په ورځ به دا د وریځے په شان روان وی۔

صُنْعَ اللّٰهِ: دا په اصل کښې داسے دے: صَنَعَ اللّٰهُ ذٰلِكَ صُنْعًا ۔ یعنی الله تعالیٰ دغه مخکنی کارونه وکړل چه ککلك غرونه او زمکه او آسمانونه ئے پیدا کړل۔ بیا د اختصار دپاره لنډ عبارت ووئیل شو۔ یا مطلب دا دے: [اُنْظُرُوْا صُنْعَ اللّٰهِ] وګورئ د الله کارونو ته چه هر شے ئے مضبوط پیدا کړے د خپل حال مناسب۔ هر شے په خپل خِلقت کښې مضبوط دے۔ دا د ﴿مَا تَرٰى فِیْ خَلْقِ الرَّحْمٰنِ مِنْ تَفٰوُتٍ﴾ (تبارك: ۳) (نهٔ وینے تهٔ په پیدائش

رحمٰن کښې څه فرق)۔
او دارنګه ﴿ اَلَّذِيْٓ اَحْسَنَ كُلَّ شَيْءٍ خَلَقَهٗ وَبَدَاَ خَلْقَ الْاِنْسَانِ مِنْ طِيْنٍ ﴾ (الم السجده : ۷)
(هغه ذات دے چه هر شے ئے ښائسته پیدا کړیدے او د انسان پیدائش ئے د خټې نه شروع کړیدے) په شان دے۔
مَنْ جَآءَ بِالْحَسَنَةِ: په قیامت کښې اصلی مقصودی شے په اعمالو باندې حساب دے پدے وجه هغه ذکر کوی، او زیرے ورکوی ایمان او عمل صالح والو ته۔ په دنیا کښې چه څوک د ایمان او عملِ صالح ژوند تیر کړی، په هغه ورځ به دۀ ته هیڅ ویره نۀ رسیږی، او الله تعالیٰ به ورله جنت ورکوی، او کوم خلق چه شرك او ګناهونه کوی، هغوئ به پرمخې جهنم ته دیکه کړے شی۔
فَلَهٗ خَيْرٌ مِّنْهَا: ۱- یعنی وی به دۀ لره بدله غوره او زیاته د نیکئ نه، ځکه چه نیکی به یوه وی، او اجرونه به ئے لس چنده، یا په اویا او یا په بیشماره چندونو سره وی۔
۲- یا چا چه راتلل وکړل په کلمه د توحید یا په نیکئ نو د هغه دپاره به غوره بدله وی چه هغه جنت دے د وجه د کلیمې توحید او نیکئ نه۔
وَهُمْ مِّنْ فَزَعٍ يَّوْمَئِذٍ اٰمِنُوْنَ: دلته د فزع نه مراد دخول النار دے (یعنی اُور ته داخلیدل) چه ددے نه به ایمان والا په امن وی او مخکښې چه (فَفَزِعَ) ذکر شو نو هغه د قیامت د شپیلئ په وخت دے۔
وَمَنْ جَآءَ بِالسَّيِّئَةِ: د سیئه نه مراد دلته شرك دے ځکه چه روستو جزاء ﴿ فَكُبَّتْ وُجُوْهُهُمْ ﴾ د کافرانو سزا ده۔
فَكُبَّتْ: چونکه دوی د الله تعالیٰ دین اُلټه کړے وو نو د عمل مطابق جزاء ورکړے شوه چه دوی هم اُور ته پرمخې ګوزار کړے شول۔
هَلْ تُجْزَوْنَ اِلَّا مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ: یعنی مونږ دریاندے ظلم نۀ دے کړے بلکه په دے ورځ چه څۀ کیږی دا به ستاسو د عملونو نتیجه وی۔
اِنَّمَآ اُمِرْتُ: د مکی سورتونو په آخر کښې رسول الله ﷺ ته آداب ذکر کیږی۔ او دلته قُلْ مقدر دے۔ یعنی خلکو ته داسے ووایه۔

## مناسبت

۱- مخکښې آیتونو کښې د قیامت څۀ نښے او د هغې ځینې خطرے بیان شوے بیا

قریشو کافرانو ته په دے باندے د ایمان راوړو دعوت ورکړے شو.
نو اُوس نبی کریم ﷺ ته حکم کوی چه هغه د دغه کافرانو په مخکښے خپله عقیده او عمل بیان کړی، او خپل مقصد واضح کړی.
۲- دارنگه حسنه ذکر شوه نو اُوس ددے حسنے تشریح کوی چه حسنه د الله تعالیٰ یواځے بندگی کولو ته وئیلے شی.
۳- دارنگه مخکښں د قیامت هیبت ذکر شو نو اُوس د هغے نه د بچ کیدو دپاره طریقه ذکر کوی چه هغه د الله تعالیٰ یواځے بندگی کول دی. (احسن الکلام)
٤- دارنگه مخکښں د دنیا او د آخرت احوال بیان شو نو اُوس الله تعالیٰ خپل رسول ته حکم وکړو چه دوی ته دا خبره وکړی. پدے کښں به دوی ته خبردارے ورکول وی چه اُوس د دعوت خبره پوره شوه او زما دپاره صرف د الله بندگی پاتے شوه چه د هغه په بندگئ مشغول شم او د الله په مراقبه کښں ورننوزم، او ددے نه روستو به زما دا پرواه نۀ وی چه دا خلك گمراه کیږی یا هدایت والا، دوی اصلاح کوی او که فساد. او پدے کښں به دوی ته دعوت وی چه تاسو هم د خپلو ځانونو غم کوئ ما تاسو ته پوره دعوت وکړو.
(فتح البیان)
یعنی ماته خو دا حکم شوے چه زۀ صرف د مکے د ښار د رب عبادت وکړم، هغۀ سره هیڅوك شریك جوړ نۀ کړم، هغه مکه چه الله تعالیٰ حرم او د امن ځای جوړ کړے، چرته چه نۀ څوك وژلے شی، نۀ په چا ظلم کیږی، نۀ د هغے ځناور ښکار کیږی، او نۀ د هغے وُنے پریکیږی.
الْبَلْدَةِ: ددے بلدے نه مراد مکه ده (ابن عباس ﷺ)
مفسرین لیکی چه د مکے ښار او ددے د امن او سکون ذکر کولو نه مقصد د قریشو کافرانو ته احساس ورکول دی چه ددے نعمتونو تقاضا خو دا وه چه کوم الله تاسو له دا نعمتونه درکړی د هغۀ په بندگئ کښں مو هیڅوك نۀ شریکولے، او د هغۀ په قرآن او د هغۀ په رسول مو ایمان راوړے وے.
او مکے ئے پدے وجه هم خاص ذکر کړه چه پدے کښں د الله د بندگئ کور جوړ دے، د حسناتو او د عبادتونو دپاره جوړ ځای دے. او بل رسول الله ﷺ ته محبوب ځای وو. اگر که د الله په اختیار کښں ټول څیزونه دی او هر شے د هغه په ملکیت کښں دے.
وَاُمِرْتُ اَنْ اَكُوْنَ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ: او ماته خو همدا حکم شوے چه زۀ به د الله د

حکمونو منقاد او تابعدار یم او د خپل ناز تندے به صرف د هغهٔ مخے ته ښکته کوم.
د (اَکُوْن) مطلب دا دے : اَیْ اَثْبُتُ عَلٰی مَا اَنَا عَلَیْهِ.
یعنی زهٔ چه په کوم اسلام روان یم پدے باندے مضبوط پاتے شم. پدے کښې اشاره ده چه کافرانو ورته وویل چه دا خبرے پریده نو هغه جواب وکړو چه زهٔ ددے خبرو پریخودو والا نهٔ یم بلکه د الله د حکم پابند یم.
وَاَنْ اَتْلُوَ الْقُرْاٰنَ : او ماته دا حکم هم شوے چه زهٔ تاسو ته قرآن واوروم او په دے باندے د ایمان راوړو دعوت درکړم، ځکه چه د دواړو جهانو د نیك بختیا راز په همدے کښې دے. نو څوك چه زما د توحید دعوت قبول کړی، او شرك نه توبه گار شی نو ددے نفع به هم دهٔ ته رسیږی، او څوك چه گمراه شی، ددے وبال به صرف ددهٔ په سر وی. زما کار خو صرف پیغام په پوره توگه خلقو ته رَسَول دی.
ددے مناسبت دا دے چه عبادت او اسلام به د کوم ځای نه زده کولے شی نو الله فرمائی چه ددے دپاره قرآن ولوله.
اَتْلُوَ الْقُرْاٰنَ : دے نه معلومه شوه چه د الله تعالیٰ سره تعلق د قرآن په لوستلو سره حاصلیږی ځکه چه د قرآن په لوستلو سره وخت په وخت بنده ته مزیدار حقائق او پټ رازونه ښکاره کیږی. پدے لوستلو کښې ځانله تلاوت او په قرآن سره دعوت دواړه داخل دی، مگر دویم په اوله درجه کښې داخل دے لکه د روستو (فَمَنِ اهْتَدٰی) نه هم معلومیږی.
اَتْلُوَ: د تِلُو نه هم صحیح دے په معنیٰ د تابعداریٔ سره. یعنی ما ته حکم شویدے چه زهٔ د قرآن تابعداری وکړم او ددے د امرونو پابند شم لکه ﴿وَاتَّبِعْ مَا اُوْحِیَ اِلَیْكَ مِنْ رَّبِّكَ﴾ (الانعام : ۱۰۶) کښې ورته دا حکم کړے شویدے.
وَقُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ سَیُرِیْكُمْ : پدے آیت کښې دوه غرضه دی (۱) د مَنْ ضَلَّ سره لگی یعنی الله چه کوم گمراه ته عذاب ورکوی نو پس د حجت قائمولو نه عذاب ورکوی. نو معنیٰ دا ده : ووایه چه الله لره حمدونه دی [فَاِنَّهٗ لَایُعَذِّبُ اَحَدًا اِلَّا بَعْدَ اِقَامَةِ الْحُجَّةِ] ځکه چه الله تعالیٰ هیچا ته عذاب نهٔ ورکوی مگر پس د قائمولو د حجت نه ځکه چه الله تعالیٰ تاسو ته خپلے نښے او دلیلونه درښائی او تاسو به ئے ښهٔ وپیژنئ او چه بیا مو انکار وکړو نو عذاب به درکوی. (۲) یا حمدونه دی په نعمتونو باندے. [اَیْ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ عَلٰی هٰذَا الدِّیْنِ /او اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ عَلٰی هٰذَا الْكِتَابِ] . الله لره حمدونه او شکرونه دی پدے دین او

پدے کتاب باندے څکه چه نزدے زمانه راروانه ده چه الله تعالیٰ به تاسو ته نښے د حقانیت خپل او د هغه د کتاب د حقانیت دروښائی او تاسو به ئے وپیژنئ چه الله او د هغه کتاب حق وو۔ او دا نښے الله تعالیٰ دوه قسمه ښائی، یو نښے د غلبے د اسلام، چه قرآن ته به وخت په وخت غلبه ورکوی او مشرکان به مغلوبه کیږی نو دا به نښه وی چه دا قرآن حق دے۔ او غلبه د قرآن نښه ده چه الله تعالیٰ حق دے، د هغهٔ رسول حق دے او د هغه اسلام حق دے۔

دویم قسم نښه دلائل آفاقیه دی چه الله تعالیٰ به په آفاقو (اطرافو) کښ تاسو ته خپلے نښے وښائی لکه الله فرمائی: ﴿سَنُرِيهِمْ آيَاتِنَا فِي الْآفَاقِ وَفِي أَنْفُسِهِمْ﴾۔ (الشوریٰ:۵۳)

(زر دے چه وبه ښایو دوی ته نښے خپلے په اطرافو کښ او د دوی په نفسونو کښ)

او دا نښے الله تعالیٰ اُوس زمانه کښ پوره پیدا کړیدی چه د دین د زیاتے پوهے دپاره د هر شی نمونه په دنیا کښ موجوده ده۔ لکه معتزله ؤ به د هغه حدیث نه انکار کولو چه رسول الله ﷺ ته په مانځه کښ مخامخ جنت او جهنم په دیوال کښ وخودلے شو نو دوی به وئیل چه دا څنګه کیدے شی حال دا چه جنت او جهنم د آسمانونو نه غټ دی، نو مونږ ته الله تعالیٰ ددے د وضاحت دپاره تی وی او ویډیو راوخوده چه پدے کښ لوی لوی غرونه په وړه شیشه کښ ښکاره کیږی۔ موبائل د الله د قدرت لویه نښه ده چه کله ددے سګنل وی نو کار کوی او چه سګنل کټ شی نو یو ضائع شے دے، نو دغه شان ددے ټول عالَم سګنل د الله په لاس کښ دے کله چه ترے الله تعالیٰ لاس واخستو نو دا ټول به تباه وی، هیڅ حرکت به پکښ نهٔ وی۔

الله په قرآن کښ فرمائی چه تاسو ته به په قیامت کښ عملونه درخودلے شی نو معتزله وائی چه عمل خو چه موجود شی، بیا ختم شی، ددے خودل به څنګه کیږی؟! نو ددے نه انکار کوی نو ویډیو ددے مثال دے۔ او دارنګه داسے آلات تیار شویدی چه تبه، د هواء یخنی ګرمی او نور اعراض تلی۔ داسے نورے نښے واخله۔

او بعض علماؤ ددے نه نورے نښے مراد کړیدی هغه دا چه الله تعالیٰ دوئ ته خپله رومبئ نښه د بدر په میدان کښ وښودله، او دویمه: د مکے د فتح په ورځ، او آخرئ نښه به د مرګ په وخت ورښائی هر کله چه ملائک د دوئ مخونه او شاګانے وهی او ورته به وائی چه اُوس د جهنم عذاب اوڅکئ۔

وَمَا رَبُّكَ بِغَافِلٍ: اے زما نبی! ستا رب د خلقو د عملونو نه غافل نهٔ دے، او هغه به

هر يو ته د هغهٔ د عمل بدله خامخا ورکوی۔ مفسرين ليکی چه په دے کښ د الله تعالیٰ له خوا تمامی انسانانو دپاره ډيره لويه دهمکی ده۔ والله المستعان ولا حول ولا قوة الا بالله۔

## خصوصيات د سورة النمل

١- د علم تفصيل او د علم فائدے بيان شوے۔

٢- د سليمان ﷺ او د بلقيس خصوصي واقعه ذکر شوه۔

٣- د معبود حق او د معبود باطل ترمينځ د فرق دليلونه ئے بيان کړل۔

٤- د دابة الارض تذکره پکښ خصوصي راغلے ده۔

ختم شو تفسير د سورة النمل په توفيق د الله تعالیٰ سره په اسريت کالام روډ سوات کښ په تاريخ ١٨ جون اول رمضان (١٨/٦/٢٠١٥) موافق (اول رمضان/ ١٤٣٦ هـ)

وکتبه بيده ابوزهير بعد الافطار من اول صوم رمضان۔ الساعه : ٨:٤٩)

وبالله التوفيق۔

❁❁❁❁❁

بسم الله الرحمن الرحيم

| آياتها (۸۸) | (۲۸) سورة القصص مكية (٤٩) | ركوعاتها (۹) |
|---|---|---|

سورة القصص مکی دے، په دے کښې اته اتيا آيتونه، او نهه ركوع دی

## تفسير سورة القصص

**نوم :** په (۲۵) آيت کښې د مرد مومن شعیب خواته د موسیٰ ﷺ د راتللو ذکر په دے الفاظو کښې راغلے : ﴿ فَلَمَّا جَاءَهُ وَقَصَّ عَلَيْهِ الْقَصَصَ قَالَ لَا تَخَفْ نَجَوْتَ مِنَ الْقَوْمِ الظَّالِمِينَ ﴾ د همدے آيت نه اخستے شوے۔ او چونکه د دعوت الی الله په تاريخ کښې د موسیٰ ﷺ، فرعون او د بنی اسرائيلو قيصو له ډير اهميت دے، دے وجے نه ددے د اهميت له مخه ددے سورت نوم [اَلْقَصَصُ] کيښودے شوے، يعنی هغه سورت چه په هغے کښې ډيرے اهمے تاريخی او دعوتی قيصے راغلی۔

**د نازليدو زمانه :** ابن مردويهٔ او بيهقیؒ په کتاب «الدلائل» کښې د ابن عباس ﷺ نه روايت کړے چه سورتِ قصص په مکه کښې نازل شوے۔ طبرانیؒ د ابن عباس ﷺ نه روايت کړے چه (۵۲، ۵۳) آيتونه د نجاشی د هغه ملګرو په باره کښې نازل شوی چه هغویٔ د اُحد په معرکه کښې شهيدان شوی وو، اهـ۔ دارنګ د (۸۵) آيت په باره کښې راځی چه دا د جُحفے په مقام کښې د هجرت په سفر کښې نازل شوے وو۔

### مناسبت

١- مخکښې نفی د علم الغيب بيان شو د غير الله نه۔ نو پدے سورت کښې تشجيع علی التبليغ (په تبليغ باندے بهادری) بيانوی چه دا قِسم مسئلے بيانول پکار دی لکه څنګه چه موسیٰ ﷺ بيان کړيدی۔

٢- هلته ئے ووئيل ﴿ سَيُرِيكُمْ آيَاتِهِ ﴾ چه زما نښے به راشی او تاسو به ئے وپيژنئ نو دلته ئے د هغے نه يوه نښه بيان کړه چه لکه څنګه چه موسیٰ ﷺ ته الله تعالیٰ د فرعون د هلاکت نښه وخودله۔

۳- موضوعي: هلته علم ته ترغیب وو، نو دلته وائي چه د علو او فساد نه ځان بچ کړئ ځکه چه دا دواړه د علم منافي څیزونه دي۔

٤- سورة الشعراء او النمل کښ د موسیٰ علیه السلام د قصے ابتداء نه وه ذکر نو اُوس پدے سورت کښ د موسیٰ علیه السلام د ولادت د حال نه شروع کوی، دے دپاره چه قصه پوره شي او د هر جانب نه ئے عبرت واخستے شي۔

موضوع د سورت

۱- زمونږ مشائخ وائي چه پدے سورت کښ تشجیع علی التبلیغ ده (په تبلیغ باندے بهادري او تیزي ورکول دي) چه د موسیٰ علیه السلام په شان دعوت وکړه۔ او رسول الله ﷺ او هر حق پرست ته تسلي ده په کامیابۍ سره روستو د تیرولو د مصیبتونو نه په دعوت د توحید کښ، او ددے دپاره مثال نعمتونه دي په بني اسرائیلو، او عذابونه دي په دشمنانو باندے یعني فرعون، هامان او قارون۔

اوله خبره په ابتداء او په آخر کښ بیان شویده ﴿وَلَا يَصُدُّنَّكَ عَنْ آيَاتِ اللهِ بَعْدَ إِذْ أُنْزِلَتْ إِلَيْكَ وَادْعُ إِلَىٰ رَبِّكَ﴾ دا موضوعات پدے سورت کښ شته۔

۲- لیکن ددے سره پدے سورت کښ دا موضوع هم شته [اَلرَّدُّ عَلَى الْعُلُوِّ وَالْفَسَادِ] په علو (تکبر) او فساد باندے رد کول دي۔ یا داسے ووایه: قباحت د علو او فساد۔ یعني چا کښ چه علو او فساد راغلے دے، هغه ئے تباه کړیدے۔ لکه اول نه وائي (عَلَا فِي الْأَرْضِ) (٤ آیت) (إِنَّهُ كَانَ مِنَ الْمُفْسِدِينَ﴾ (٤ آیت) ﴿بَطِرَتْ مَعِيشَتَهَا﴾ (۵۸ آیت) او قارون کښ تکبر وو۔ او په آخره رکوع کښ وائي: ﴿تِلْكَ الدَّارُ الْآخِرَةُ نَجْعَلُهَا لِلَّذِينَ لَا يُرِيدُونَ عُلُوًّا فِي الْأَرْضِ وَلَا فَسَادًا﴾ (آیت: ۸۳)

علو والا خلك به په دنیا کښ هم هلاکیږي او په آخرت کښ هم۔ نو الله مؤمنان ددے دوه صفاتو نه منع کوي چه دا ځان کښ پیدا نکړئ۔ او تسلي ورکوي چه ستاسو په مخالفینو کښ دا دوه صفاته دي نو تاسو له به الله تعالیٰ په هغوي باندے غلبه درکوي ځکه چه تاسو کښ ایمان او عاجزي ده۔ بیا علو او فساد په بنده کښ په څه پیدا کیږي؟ نو دا سورت به ئے وجه بیانه کړي چه هغه د دنیا محبت او د هغے زیب وزینت او فراخي ده چه ددے په وجه د حق او د حق پرستو مقابله کوي، ددے وجه نه دا سورت به د دنیا زهد هم زیات پیش کوي ﴿أَفَمَنْ وَعَدْنَاهُ وَعْدًا حَسَنًا فَهُوَ لَاقِيهِ كَمَنْ مَتَّعْنَاهُ مَتَاعَ الْحَيَاةِ

الدُّنۡيَا﴾ (آیت ٦١)

## خلاصه د سورت

اول کښې قرآن کریم ته ترغیب دے، بیا مقصد د واقعے دے چه ﴿لِقَوۡمٍ يُّؤۡمِنُوۡنَ﴾ بیا اوږده واقعه د موسیٰ ﷺ ده تر (٤٠) آیت پورے، بیا تفریعات دی په واقعه۔ اوله تفریع بیان حقانیت د رسول الله ﷺ او دا په ډیرو طریقو سره دے، او حکمة د رالیږلو د رسولانو به بیانوی، مشرکانو د قرآن او د تورات نه انکار وکړو کله چه په هغوی باندے دلیل قائم شو نو الله به ورته ووائی چه ددے دواړو نه غوره کتاب راوړئ چه هغه ومنو، بیا به قرآن ته ترغیب ورکړی، بیا به د پخوانو اهل کتابو نه دلیل راوړی په منلو د قرآن۔ او په ﴿اِنَّكَ لَا تَهۡدِيۡ﴾ کښې به رسول الله ﷺ ته تسلی ورکړی چه الله ته دوی معلوم دی چه د هدایت قابل نهٔ دی۔ بیا د هغوی دپاره د دنیا تخویف دے، بیا د آخرت تفصیلی تخویف دے، بیا توبے ته ترغیب دے، بیا به واقعه د قارون راوړی چه په هغے کښې رد دے په علو او فساد باندے، او په آخری رکوع کښې تفریع ده په واقعه د موسیٰ ﷺ چه تفصیل به ئے هلته راځی۔

| طٰسٓمٓ ﴿١﴾ تِلۡكَ اٰيٰتُ الۡكِتٰبِ الۡمُبِيۡنِ ﴿٢﴾ |
|---|
| ددے حروفو په مراد الله پوهیږی۔ دا آیتونه د کتاب ښکاره (کونکی د حق او د باطل) |
| نَتۡلُوۡا عَلَيۡكَ مِنۡ نَّبَاِ مُوۡسٰى وَفِرۡعَوۡنَ بِالۡحَقِّ |
| دی۔ لولو مونږ په تا باندے د خبر د موسیٰ (ﷺ) او د فرعون نه په حق سره |
| لِقَوۡمٍ يُّؤۡمِنُوۡنَ ﴿٣﴾ اِنَّ فِرۡعَوۡنَ عَلَا فِى الۡاَرۡضِ وَجَعَلَ |
| دپاره د هغه قوم چه ایمان لری۔ یقیناً فرعون لوئی کړے وه په زمکه کښې او کرځولے ئے |
| اَهۡلَهَا شِيَعًا يَّسۡتَضۡعِفُ طَآئِفَةً مِّنۡهُمۡ يُذَبِّحُ |
| وو اُوسیدونکی د هغے ډیرے ډلے، کمزوری کوله ئے یوه ډله د دوی نه، حلالول به ئے |
| اَبۡنَآءَهُمۡ وَيَسۡتَحۡيٖ نِسَآءَهُمۡ ؕ اِنَّهٗ كَانَ مِنَ الۡمُفۡسِدِيۡنَ ﴿٤﴾ |
| ځامن د هغوی او بے حیاء کولے به ئے زنانه د هغوی، یقیناً هغه وو د فساد کونکو نه۔ |

**تفسیر**: طٰسٓمٓ: دا حروفِ مقطعات دی، ددے معنیٰ او مفهوم الله ښهٔ پیژنی او پدے کښې ددے سورت ډیرو رازونو ته اشاره ده۔

[ تِلۡكَ ] اسمِ اشاره بعید راوړو نه مقصد د قرآن کریم عظمت طرفته اشاره ده، چه دا د یو ډیر لوی مرتبے والا کتاب آیتونه دی چه هغه حق او باطل، خیر او شر، هدایت اوګمراهي د انسانانو د خیر خواهئ دپاره واضحه بیان کړی دی۔

الۡمُبِيۡنِ: کښې د موسیٰ ؑ ښکاره واقعے ته اشاره ده چه نصیحت ترے زر اخستے کیږی۔

نَتۡلُوۡا عَلَيۡكَ: الله تعالیٰ خپل نبی ﷺ ته فرمائی چه په آینده آیتونو کښې مونږ تاته د موسیٰ او فرعون رشتینې واقعه آوره وو چه هغه د ایمان والو دپاره نفع ورکوی، د دوئ په ایمان کښې پخوالے راځی، او د الله د نصرت او تائید په وعده سره د هغوئ زړونه مضبوط کیږی۔ دارنګه دوی ته تسلی او بشارت دے چه تکبر او لوئی او ډیر والے د مال او جاه د عذاب نه بچ کول نشی کولے او حق پرستو باندے به مصیبتونه راځی او الله به کامیابی ورکوی۔

نَتۡلُوۡا نه معلومه شوه چه الله تعالیٰ ددے کتاب تلاوت کړیدے څنګه چه د هغه د لوی شان سره لائق وی۔

بِالۡحَقِّ: یعنی رشتینی واقعه ده۔ / یا دپاره د ښکاره کولو د حق۔

لِقَوۡمٍ يُّؤۡمِنُوۡنَ: ۱ - لِانۡتِفَاعِ قَوۡمٍ مُّؤۡمِنِيۡنَ۔ یعنی دپاره د فائدے اخستو د قوم مؤمنانو۔ چه چا کښې د فرعون په شان لوئی او تکبر وی نو هلاکیږی به، ځکه چه الله تعالیٰ همغه دے، نهٔ بدلیږی۔ ۲ - لِعَزَاءِ قَوۡمٍ مُّؤۡمِنِيۡنَ۔ دپاره د تسلئ د مؤمنانو۔

اِنَّ فِرۡعَوۡنَ: د قیصے شروع داسے کیږی چه د مصر بادشاه (ولید بن ریّان) چه د فرعون په لقب سره پیژندے کیدهٔ، د خپل حکومت او بادشاهئ په نشه کښې ډیر مخکښے تلے وو، تردے چه د رب او معبود کیدو دعویٰ ئے کړے وه، او بنی اسرائیل ئے په مختلفو ډلو کښې تقسیم کړی وو او د هغوئ نه ئے د غلامانو پشان خدمت اخستهٔ۔

د هغوئ هلکان به ئے وژل، او د هغوئ ښځے به ئے ژوندئ ساتلے۔ او ددے وجه دا وه چه ددهٔ قبطی مُشیرانو دهٔ ته وئیلی وو چه که د بنی اسرائیلو نسل دغسے زیاتیږی نو دوئ ورځ په ورځ قوی کیږی، تردے چه دوئ به یوه ورځ د مصر په حکومت باندے قبضه وکړی۔ دوئ هغهٔ ته د خپلو پلرونو او نیکونو په حواله سره د ابراهیم ؑ دا پیغمبرانه

خبر هم آورولے وو چه د فرعون د حکومت ختمیدل به د یو داسے هلك په لاس سره کیږی چه هغه به ددهٔ (یعنی ابراهیم) د نسل نه وی۔

دے وجے نه فرعون د بنی اسرائیلو د نسل زیاتیدنه بندوله او د هغه هلك د ختمولو دپاره د کوم په لاس چه به د فرعون تخت ختمیږی، د بنی اسرائیلو ځامن وژل شروع کړل، او د هغوئ بنځے ئے وینزے او خادمانے جوړے کړے وے او د هغوئ نه به ئے خدمت اخستهٔ۔

عَلَا فِي الْاَرْضِ : علو (لوئی) د الله په حقوقو کښ وه چه هغه ئے نهٔ منل، دعوه د ربوبیت ئے کړے وه، او د رب بندگی ئے نهٔ کوله۔ علو حق له دیکه ورکول دی۔ او فساد په حقوقو د بندگانو کښ وو، چه ظلمونه ئے کول او خلك به ئے د دین نه اړول۔

وَجَعَلَ اَهْلَهَا شِيَعًا : دا ئے نښه د علو وه چه د زمکے د مصر خلك ئے په ډلو تقسیم کړی وو۔ دا فرعونی سیاست وو چه اُوس د عامے دنیا حکومتونو په بنهٔ شان قبول کړیدے چه د ووټونو په ذریعه ډلے تقسیمول او اختلافات پیدا کول، دے دپاره چه د دوی خپل مینځ کښ اختلاف راځی نو بادشاه ته به رجوع کوی، او پدے طریقه به هیځکله اسلام نهٔ راځی۔ یوه ډله قبطیان وو چه د هغوی لحاظ به ئے کولو او بله ډله د بنی اسرائیلو وه چه دوی نه ئے خادمان جوړ کړل او حکومت کښ ئے هیڅ برخه نهٔ ورکوله بلکه ظلمونه ئے پرے کول۔

او اسلامی سیاست دا دے چه ټولو عوامو ته به په یو نظر کتلے شی تردے چه کافر چه ستا په ملك کښ وسیږی په هغه به هم ظلم نشی کولے بلکه احسان به ورسره کوی۔

يَّسْتَضْعِفُ: کمزورے کوله ئے۔ او ددے کمزورتیا تشریح په يُذَبِّحُ اَبْنَآءَهُمْ سره کوی۔

الْمُفْسِدِيْنَ: فساد ئے دا وو چه کفر او شرك ئے کولو او د توحید او د تابعدارئ د موسیٰ ﷺ نه ئے خلك منع کول۔

| وَنُرِيْدُ اَنْ نَّمُنَّ عَلَى الَّذِيْنَ اسْتُضْعِفُوْا فِي الْاَرْضِ |
|---|
| او اراده لرو مونږ چه احسان اُوکړو په هغه کسانو چه کمزوری کړے شوی وو په زمکه |
| وَنَجْعَلَهُمْ اَئِمَّةً وَّنَجْعَلَهُمُ الْوٰرِثِيْنَ ﴿٥﴾ |
| کښ او اُوګرځوو دوی لره امامان (مشران د دین) او اُوګرځوو دوی لره وارثان د زمکے (باقی |

وَنُمَكِّنَ لَهُمْ فِي الْأَرْضِ

پاتے کیدونکی د فرعونیانو نه روستو) او چه طاقت ورکړو مونږ دوی ته په زمکه کښې

وَنُرِيَ فِرْعَوْنَ وَهَامَانَ وَجُنُودَهُمَا مِنْهُمْ مَا كَانُوا يَحْذَرُونَ ﴿٦﴾

او اوښایو فرعون او هامان او لښکرو د دواړو ته د دوی نه هغه شے چه دوی ترے یریدل۔

**تفسیر**: پدے کښې په بنی اسرائیلو باندے د انعاماتو ذکر دے، او دا درے انعامات دی او دیته انقلابی انعامات وئیلے کیږی، اول دا چه ضعف او کمزوری د دوی بدلوی په قوت سره۔ دے ته په (اَنْ نَمُنَّ) کښې اشاره ده۔

دویم: وَنَجْعَلَهُمْ اَئِمَّةً: اَیْ قَادَةً فِی الْخَیْرِ وَدُعَاةً اِلَیْهِ یُقْتَدٰی بِهِمْ وَوُلَاةً عَلَی النَّاسِ وَمُلُوْکًا فِیْهِمْ بَعْدَ اَنْ کَانُوْا اَتْبَاعًا مُسَخَّرِیْنَ مُهَانِیْنَ۔

یعنی دوی نه د خیر قائدین جوړوم او حق ته دعوت کونکی چه نور خلك د دوی اقتداء کوی او په خلکو مشران وی او په دوی کښې بادشاهان راولم پس د هغے نه چه دوی تابعدار او کمزوری وو۔ لکه په زمانه د یوسف ﷺ او د هغه د اولادو کښې ئے دا کار وکړو۔

لکه دا خبره په سورة الم السجده (٢٤) آیت ﴿وَجَعَلْنَا مِنْهُمْ اَئِمَّةً یَّهْدُوْنَ بِاَمْرِنَا لَمَّا صَبَرُوْا﴾ کښې راغلے ده۔ (یعنی مونږ د دوی نه امامان د دین جوړ کړل چه خلکو ته به ئے زمونږ دین خودلو هرکله چه دوی صبر وکړو)

او دا دلیل دے چه په دین کښې امام او مقتدیٰ جوړیدل د الله تعالیٰ لوی انعام دے۔

دریم: وَنَجْعَلَهُمُ الْوٰرِثِیْنَ: دوی ته د زمکے وراثت او مشری ورکوم پس د هلاکت د فرعون او د هغهٔ د لښکرو نه۔ لکه ددے تشریح په سورة الاعراف (١٣٧) آیت کښې ذکر ده۔

وَنُمَكِّنَ لَهُمْ فِی الْاَرْضِ: پدے آیت کښې دوه انعامات دی، اول دا چه د مصر د وراثت نه علاوه نورو ملکونو کښې قدرت ورکول لکه د شام زمکه هم د دوی د تسلط لاندے راغله۔

دویم: وَنُرِیَ فِرْعَوْنَ: یعنی فرعون چه د کومے خبرے نه یریدو نو هغه ئے پرے واقع کړه چه د یو بنی اسرائیلی هلك د لاسه د هغهٔ بادشاهی لاړه۔

او پدے آیتونو کښې بعینهٖ د صحابه کرامو ﷺ حال ته اشاره ده چه په مکه کښې

کمزوری کړے شوی وو، او ظلمونه به پرے کیدل لیکن د نیکو صفاتو د وجه نه الله تعالیٰ وغوښتل چه دوی ته قوت ورکړی او د دوی نه د دین مشران جوړ کړی، او دوی ته د زمکے خلافت ورکړی، او همدغه شان وشوه. مدینے ته هجرت وشو او خلافتِ اسلامی قائم شو او د زمکے عامه حصه د دوی د قبضے لاندے راغله. ابوجهل او ولید او عتبه او شیبه د هغهٔ وزیران او فوجونه وو دا ټول د یو قریشی هلاك (محمد رسول الله ﷺ) د لاس نه هلاك شو.

دا هر څهٔ څنګه اوشو، آینده آیتونو کښې الله تعالیٰ دا بیان کړی.

| وَاَوْحَیْنَا اِلٰی اُمِّ مُوْسٰی اَنْ اَرْضِعِیْهِ ج فَاِذَا |
|---|
| او په زړه کښې واچوله مونږ مور د موسیٰ (علیه السلام) ته چه تے ورکړه دهٔ ته نو کله چه |
| خِفْتِ عَلَیْهِ فَاَلْقِیْهِ فِی الْیَمِّ وَلَا تَخَافِیْ وَلَا تَحْزَنِیْ ج |
| یریږے تهٔ په دهٔ باندے نو ګوزار کړه دا په دریاب کښې او مهٔ یریږه او مهٔ خفه کیږه |
| اِنَّا رَآدُّوْهُ اِلَیْكِ وَجَاعِلُوْهُ مِنَ الْمُرْسَلِیْنَ ﴿۷﴾ |
| یقیناً مونږ راواپس کونکی یو دهٔ لره تا ته او ګرځونکی یو دهٔ لره د پیغمبرانو نه. |
| فَالْتَقَطَهٗ اٰلُ فِرْعَوْنَ لِیَكُوْنَ لَهُمْ عَدُوًّا وَّ حَزَنًا ط اِنَّ فِرْعَوْنَ |
| پس را اُوچت کړو دهٔ لره کور والو د فرعون دے دپاره چه شی دوی لره دشمن او غم، یقیناً فرعون |
| وَهَامٰنَ وَجُنُوْدَهُمَا كَانُوْا خٰطِئِیْنَ ﴿۸﴾ وَقَالَتِ امْرَاَتُ فِرْعَوْنَ قُرَّتُ عَیْنٍ لِّیْ |
| او هامان او لښکرے د دواړو وو خطاکار. او ووئیل ښځے د فرعون یخوالے د سترګو زما |
| وَلَكَ ط لَا تَقْتُلُوْهُ ق عَسٰی اَنْ یَّنْفَعَنَآ اَوْ نَتَّخِذَهٗ وَلَدًا |
| او ستا دے، مهٔ وژنئ دهٔ لره، کیدے شی چه فائده به راکړی مونږ ته یا به ئے اُونیسو خوی، |
| وَّهُمْ لَا یَشْعُرُوْنَ ﴿۹﴾ وَاَصْبَحَ فُؤَادُ اُمِّ مُوْسٰی فٰرِغًا ط |
| او دوی نهٔ پوهیدل. او اُوګرځیدو زړه د مور د موسیٰ (علیه السلام) خالی د هر څه نه (سوا |
| اِنْ كَادَتْ لَتُبْدِیْ بِهٖ لَوْلَا اَنْ رَّبَطْنَا |
| د فکر د بچی نه) یقیناً نزدے وه چه هغے ښکاره کړے وے، کچرته کلکوالے نهٔ وے راوستے |

عَلٰی قَلْبِهَا لِتَكُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِیْنَ ﴿۱۰﴾ وَقَالَتْ لِاُخْتِهٖ

مونږ په زړهٔ د هغې، دے دپاره چه شي د ایمان والو نه. او اُووئیل دے خور د هغه ته،

قُصِّیْهِ ز فَبَصُرَتْ بِهٖ عَنْ جُنُبٍ وَّهُمْ لَا یَشْعُرُوْنَ ﴿۱۱﴾ وَحَرَّمْنَا

روانه شه ددهٔ پسے نو کتل هغې دهٔ ته د لرے نه او دوی نهٔ پو هیدل. او منع کړے مونږ

عَلَیْهِ الْمَرَاضِعَ مِنْ قَبْلُ

په دهٔ باندے پئ ورکونکے (ښځے) مخکښ ددینه (یعنی د راتللو د مور د هغه نه)

فَقَالَتْ هَلْ اَدُلُّكُمْ عَلٰی اَهْلِ بَیْتٍ یَّكْفُلُوْنَهٗ

نو اُووئیل خور ددهٔ آیا نهٔ ښایم تاسو ته یو کور والا چه کفالت به اُوکړی هغوی دهٔ لره

لَكُمْ وَهُمْ لَهٗ نٰصِحُوْنَ ﴿۱۲﴾

ستاسو دپاره او دوی به ددهٔ دپاره خیرخوا هی کونکی وی.

**تفسیر:** ددے آیت نه تفصیل د قصے د موسیٰ علیه السلام دے او پدے کښ ډیر مقامات دی اول مقام تر (۱٤) آیت پورے دے چه پدے کښ ذکر د مصیبت دے په مور د موسیٰ علیه السلام باندے سرهٔ د بشارتونو او کرامتونو د هغے نه، او د موسیٰ علیه السلام دریاب ته گوزارل او د فرعون کور ته رسیدل، او بیا واپس د مور غیږے ته راتلل او دیرش کاله د فرعون په کور کښ تیرول. بیا د (۱٤) نه بل مقام دے چه په هغے کښ مدین ته هجرت او د هجرت سبب او هلته وخت تیرول او بیا د هغه ځای نه واپسی او په لاره کښ نبوت ملاویدل او فرعون ته راتلل او هغه ته دعوت ورکول او د فرعون انکار او بیا د فرعونیانو تباهی او هلاکت ذکر دے.

**وَاَوْحَیْنَا:** چونکه فرعون د بنی اسرائیلو ماشومان دے دپاره وژل چه چرته هغه هلك ژوندے پاتے نشی چه د هغهٔ دلاسه به ددهٔ حکومت ختمیږی، دے وجے نه موسیٰ علیه السلام چه کله پیدا شو نو د هغهٔ مور پریشانه شوه، الله تعالیٰ هغے ته په زړهٔ کښ په طریقهٔ د اِلهام دا واچوله چه الله به ددهٔ حفاظت کوی نو دهٔ له تے ورکوه او کله چه په ماشوم یریدے نو بیا ئے دریاب ته گوزار کړه. او ددهٔ په هلاکت مهٔ یریږه، مونږ به ئے درته راواپس کوو. دے وجے نه هغے دے بچی له پئ ورکول، او په کومه ورځ چه هغے ته پته ولگیده چه

اُوس د فرعون جاسوسان د هغې په کور کښې د هلك پيدا کيدو نه خبر شوی دی، نو هغه دے په غير د څۀ خوف او خطرے نه په دريائے نيل کښې واچوی، او د هغۀ په باره کښې دے ويره نۀ کوی او نۀ دے پريشانه کيږی، قادر مطلق الله به د هغې خوی هغې ته بيا رسوی، او هغې لـه ئے دا زيرے هم ورکړو چه د هغې دغه بچے به غټيږی او نبی مُرسَل بـه جوړيږی. چنانچه کله چه هغه ويريده چه جاسوسان ئے رانه وړی نو هغې په يوه مضبوطه او محفوظه توکرئ کښې موسیٰ ( ) واچولو او په سمندر کښې ئے پريښودلو.

وحی دلته په معنیٰ د الهام (زړه کښې اچولو) سره دے، يا دا وحی وه په طريقه د راليږلو د ملائك سره په شکل د انسان لکه څنګه ئے چه د بنی اسرائيلو نورو درے کسانو ته راليږلے وو چه هغه ګنجے، برګی مرض والا، او ړوند، چه دا په حديث د صحيحينو کښې راغلی دی.

**فائده ۱**: اصمعیؒ د يوے اعرابيه (باندِ چئ) ښځے نه ډير فصيح شعرونه واوريدل نو دا ئے ورته ووېل چه [مَا أَفْصَحَكِ] تـه خو ډيره فصيحه ئے. نو هغې ووېل: [أَوَبَعْدَ هٰذِهِ الْآيَةِ فَصَاحَةٌ - وَأَوْحَيْنَا إِلَى أُمِّ مُوسَىٰ] آيا ددے آيت نه روستو به هم فصاحت وی؟ او هغه داسے چه پدے کښې الله تعالیٰ دوه امرونه او دوه نهی (وَلَا تَخَافِيْ وَلَا تَحْزَنِيْ) او دوه خبرونه او دوه بشارتونه جمع کريدی. نو په يو آيت کښې دومره ډيرے خبرے راجمع کړے شويدی.

۲- **فائده**: پدے آيت کښې د رسول الله ﷺ حال ته اشاره ده چه اے زما نبی! چه تا پسے به هم خلك د قتل په اراده روان شی، او تا به الله تعالیٰ په هجرت مجبوره کړی، او هيڅ يره به دِ درباندے نۀ وی، نۀ تا نيولے شی او نۀ دے وژلے شی بلکه تا به الله تعالیٰ بيرته مکے ته راواپس کوی لکه ددے سورت کښې روستو راځی ﴿إِنَّ الَّذِيْ فَرَضَ عَلَيْكَ الْقُرْآنَ لَرَادُّكَ إِلَىٰ مَعَادٍ﴾ (آيت: ۸۵) او رسالت به درکړی او خلکو کښې به ئے مشهور کړی.

**فَالْتَقَطَهُ آلُ فِرْعَوْنَ**: کله ئے چه توکرئ په درياب کښې پريخوده نو هغه په اُوبو کښې سيده د فرعون په محل راتيره شوه نو پدے کښې د فرعون خادمانو هغه راونيوله چه دا څنګه روانه ده چه وے کتل انسان پکښې وو.

**لِيَكُوْنَ لَهُمْ عَدُوًّا**: يعنی الله اراده وکړه چه خپل کامل قدرت او حکمة فرعون ته رابنکاره کړی چه تـه خو خلك وژنے ددے دپاره چه ستا بادشاهی محفوظه شی ليکن

ستا په کور کښې ستا دشمن لوئی کوم او تا پرې هلاکوم، نو معلومه شوه چه د الله تعالىٰ بغاوت مهٔ کوه ګنې هغه به دې په خپل کور کښې ښهٔ په امن کښې هلاك کړی او په غنته بادشاهی کښې به ئې تباه کړی.

لِيَكُونَ کښې لام د عاقبت دے یعنی انجام د راخستو ئے دا شو چه د دوی دپاره به دشمن جوړیږی. لیکن دوی ته پته نهٔ وه چه دا به زمونږ دپاره دشمن جوړیږی. کله ناګله بنده د خپل ځان دپاره هلاکت په خپل لاس راواخلی.

كَانُوا خٰطِئِيْنَ : خطاء دلته په معنیٰ د سهوے سره نهٔ دے بلکه خطاء دلته په معنیٰ ګناهګارو او مشرکانو سره دے. یعنی غلط کار کونکی وو. نو ځکه ورله الله تعالىٰ دشمن پیدا کړو، اشاره ده چه څوك خطاکار وی، په غلطه لار روان وی، الله هغه ته په خپل کور کښې دشمن پیدا کوی، او هغه پرے ذلیله کوی. ددے ضعیفه معنیٰ دا ده : خَاطِئِيْنَ فِي الْتِقَاطِهٖ. دوی خطاء وو په راخستو د موسیٰ ؑ کښې.

وَقَالَتِ امْرَاَتُ فِرْعَوْنَ: کله چه فرعون هلك ولیدو نو هغهٔ ووئیل چه دا زمونږ د یرے ته چا غورزولے دے نو راځئ چه مړئے کړو، نو الله تعالىٰ په هغه کښې محبت واچولو نو د فرعون ښځے آسیه بنت مُزاحم د ماشوم لیدو سره سم ووئیل چه دا خو ډیر مزیدار ماشوم دے، د وژلو لائق نهٔ دے. دا به زما او د فرعون د سترګو یخوالے جوړیږی، دے وجے نه د نورو ماشومانو غونته به دا هرګز نشی وژلے. کیدے شی چه مونږ دواړه دا خپل ځوی جوړ کړو، (ځکه چه د فرعون نارینه ځامن نهٔ وو). کیدے شی چه دا ماشوم آینده زمونږ دپاره نفع مند ثابت شی.

نو هغے ته ئے واقعی فائده ورکړه چه روستو زمانه کښې الله تعالىٰ دے ته د ایمان توفیق ورکړو او د فرعون په قتل سره شهیده شوه او سیده جنت ته ورسیدهٔ.

لَا تَقْتُلُوْهُ : دے ته فِراست وائی چه الله تعالىٰ د یو بنده په زړه کښې هوښیارتیا او رڼا پیدا کړی او ښهٔ او بد وپیژنی، رسول الله ﷺ چه کله مدینے ته هجرت وکړو نو عبد الله بن سلام ؓ فرمائی زهٔ راغلم : [فَلَمَّا تَبَيَّنْتُ وَجْهَهٗ عَرَفْتُ اَنَّ وَجْهَهٗ لَيْسَ بِوَجْهِ كَذَّابٍ]

هر کله چه ما د رسول الله ﷺ مخ مبارك ولیدو نو ما ته پته ولګیده چه دا دروغژن مخ نهٔ دے. په اول ملاقات کښې ئے د هغهٔ حقانیت وپیژندلو.

فرعون ځان ته اِلٰه وئیلو او حال دا چه د نارینه اولادو د پیدا کولو طاقت ئے نهٔ وو.

وَهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ: یعنی دوی ته پته نهٔ وه چه ددهٔ په لاس به د فرعون هلاکت وی. یا

نهٔ پو هیدل چه دوی ددهٔ په رانیولو کښې په خطاء دی۔

وَاَصۡبَحَ فُؤَادُ اُمِّ مُوۡسٰى فٰرِغًا : اَیۡ فَارِغًا مِنۡ کُلِّ شَیۡءٍ اِلَّا مِنۡ ذِکۡرِ مُوۡسٰی ۔ د موسیٰ علیه السلام د مور زړهٔ د هر شي نه خالي وو سوئ د ذکر د موسیٰ علیه السلام نه چه د هغهٔ غم ورسره وو، ځکه چه دا د مور دپاره انتهائي گرانه خبره ده چه یو ماشوم بچے په دریاب کښې واچوي او بیا د دشمن کور ته لاړ شي، ددے حالت نه صرف د مور زړهٔ خبریدے شي۔

۲- حسنؒ، ابن اسحاقؒ او ابن زیدؒ وائي : [فَارِغًا مِمَّا اَوۡحَی اللّٰهُ اِلَیۡهَا مِنۡ قَوۡلِهٖ ﴿ وَلَا تَخَافِیۡ وَلَا تَحۡزَنِیۡ ﴾] یعني د موسیٰ د مور زړه د مخکنئ وحي نه خالي شو چه هغے ته الله تعالیٰ وئیلی وو چه مهٔ یریږه او مهٔ غمژنه کیږه۔ لیکن هغه د بې اختیاره غم په وجه نزدے وه چه خبره ئے راښکاره کړے وے۔

اِنۡ کَادَتۡ لَتُبۡدِیۡ بِهٖ : نزدے وه چه دے دا غم بې اختیاره راښکاره کړے وے چه دا زما بچے دے او ما ته ئے راکړئ۔ لیکن الله تعالیٰ د هغے په زړهٔ باندے د صبر پټئ واړولے۔

لِتَکُوۡنَ مِنَ الۡمُؤۡمِنِیۡنَ : یعني موږ دا ربط او مضبوطوالے ددے په زړهٔ ولے راوستو؟ دا ددے دپاره چه هغه د الله تعالیٰ په وعدو باندے یقین کونکې شي چه الله به ئے واپس کوي، ځکه که دے خبره ښکاره کړے وے، خلکو به هغه وژلے وے نو دا وعده به پوره شوے نهٔ وے نو ددے ایمان به خراب شوے وے۔

وَقَالَتۡ لِاُخۡتِهٖ : هغے خپل لس کلنئ یا دولس کلنئ لور ته ووئیل چه ددے تو کرئ پسے روانه شه او د لرے نه گوره چه دا تو کرئ چرته ځي۔ نو هغے دغسے وکړل چه د لرے نه ئے ورته کتل۔

قُصِّیۡهِ : قَصَّ : تَتَبَّعُ (وروسے کیدل) او تالاش کولو ته وئیلے شي۔ یعني ددے پسے روانه شه۔

عَنۡ جُنُبٍ: اَیۡ عَنۡ مَکَانٍ جُنُبٍ۔ یعني د وړاندے ځای نه۔

وَهُمۡ لَا یَشۡعُرُوۡنَ: هغوی نهٔ پو هیدل چه دا ئے خور ده، یا گنے هغه وروسے راروانه ده او تالاش کوي ئے۔

وَحَرَّمۡنَا عَلَیۡهِ الۡمَرَاضِعَ: موسیٰ علیه السلام لره د پئ ورکولو دپاره د فرعون ښځے آسیه دایانے (تے ورکونکے زنانه) را وغوښتلے، لیکن هغهٔ د هغوئ پئ نهٔ رودل نو یوه بله دائی ئے را وغوښتلـه، د هغے پئ رودلو نه ئے هم انکار وکړو، دغسے ئے ډیرے دایانے را اوغوښتلے، لیکن ماشوم به د هرے یوے دائي د پئ رودلو نه انکار کولو۔ او الله د فرعون

او آسیه او په محل کښې د نورو وسیدونکو خلقو په زړونو کښې هغهٔ سره دومره سخت محبت واچولو چه ټول پریشانه شو، او خبره کیده کیده د محل نه بهر اووتله۔
د هغې خور ددې ټولو حالاتو په خاموشۍ سره جائزه اخستله۔ هغې همت وکړو او رامخکښې شوه (ځکه چه دا شاهي محل وو هر څوك به دې ته په آزادۍ سره رانوتې شو) او محل والو ته ئې ووئیل چه ماته یوه دائي معلومه ده، کیدې شي چه ماشوم د هغې پې رودلو ته مائله شي، او هغه خلق دومره ښهٔ دي چه هغوئ به د ماشوم ډیره ښه پالنه وکړي۔ محل والو فوراً دغه دائي را اوغوښتله چه دا د موسیٰ علیه السلام مور وه۔
ماشوم د هغې په غیږه کښې ورتلو سره سم د هغې پې رودل شروع کړل، او په دې طریقه الله تعالیٰ هغه د دریائے نیل نه را اُوخکلو او د فرعون په ذریعه ئې د هغې مور ته اُورسولو، چرته چه هغهٔ د هغې د محبت په سوري کښې پالنه وموندله، او د هغې سترګې پرې یخې شوې، او الله چه د موسیٰ علیه السلام د مور سره کومه وعده کړې وه هغه پوره شوه، او خلقو ته ددې هیڅ پته ونهٔ لګیده۔
اَلْمَرَاضِعَ : جمع د مُرضِع ده، تې ورکونکې زنانه۔ یا جمع د مَرْضَع ده۔ په معنیٰ د رضاع (تې ورکولو) سره، یا ځاې د تې چه هغه سینه ده۔ او حرام دلته په معنیٰ د بندولو سره دې۔
مِنْ قَبْلُ: اَیْ مِنْ قَبْلِ مَجِیْءِ اُمِّ مُوْسیٰ۔ مخکښې د راتللو د مور د موسیٰ علیه السلام نه۔
یَکْفُلُوْنَهٗ لَکُمْ : یعنی په کفالت مشهور دي۔
وَهُمْ لَهٗ نٰصِحُوْنَ: او دوی به ددې ماشوم دپاره خیرخواه وي۔ یا د فرعون خیرخواه به وي۔
تاریخي روایت کښې دي چه هامان ووئیل چه دا جینۍ ددې هلك خپلوانه ده نو فرعون پرې رد وکړو چه غلطه خبره ډې وکړه، دې خو داسې ووئیل چه (وَهُمْ لَهٗ نَاصِحُوْنَ) دوی به د فرعون خیرخواه وي، یعنی ضمیر ئې ما ته راجع کړیدې۔ او بل دا چه (یَکْفُلُوْنَهٗ لَکُمْ) ئې وئیلي دي یعنی تاسو له به ئې کفالت او پرورش وکړي۔

| فَرَدَدْنٰهُ اِلٰٓى اُمِّهٖ كَیْ تَقَرَّ عَیْنُهَا وَلَا تَحْزَنَ |
| --- |
| نو راواپس کړو مونږ دهٔ لره مور ددهٔ ته دې دپاره چه یخې شي سترګې د هغې او غمژنه |
| وَلِتَعْلَمَ اَنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ وَّلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ |
| نشي او دې دپاره چه دې ته پته اُولګي چه وعده د الله رشتینې ده لیکن ډیر د دوی نه |

| لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿١٣﴾ وَلَمَّا بَلَغَ اَشُدَّهٗ وَاسْتَوٰى |
|---|
| نهٔ پو هیږي. او هر کله چه اُورسیدو ځوانئ خپلے ته او برابر شو (عقل د هغه) |
| اٰتَيْنٰهُ حُكْمًا وَّ عِلْمًا ؕ وَكَذٰلِكَ نَجْزِى الْمُحْسِنِيْنَ ﴿١٤﴾ |
| ورکړو مونږ دهٔ ته د فیصلو علم او پو هه، او دارنګه بدله ورکوو مونږ نیکی کونکو ته. |
| وَدَخَلَ الْمَدِيْنَةَ عَلٰى حِيْنِ غَفْلَةٍ مِّنْ اَهْلِهَا |
| او داخل شو کلی د مصر ته په وخت د غفلت د اُوسیدونکو د هغے کښ |
| فَوَجَدَ فِيْهَا رَجُلَيْنِ يَقْتَتِلٰنِ ۫ هٰذَا مِنْ شِيْعَتِهٖ |
| نو وے موندل په هغے کښ دوه سړی چه یو بل سره ئے جنګ کولو دا یو د ډلے دهٔ نه |
| وَهٰذَا مِنْ عَدُوِّهٖ ۚ فَاسْتَغَاثَهُ الَّذِىْ مِنْ شِيْعَتِهٖ |
| او دا بل د (ډلے) د دشمن دهٔ نه وو، نو مدد طلب کړو هغه سړی چه د ډلے دهٔ نه وو |
| عَلَى الَّذِىْ مِنْ عَدُوِّهٖ ۙ فَوَكَزَهٗ مُوْسٰى |
| په مقابله د هغه سړی کښ چه د دشمن دهٔ نه وو نو په سوك اُووهلو دهٔ لره موسیٰ |
| فَقَضٰى عَلَيْهِ ۫ قَالَ هٰذَا مِنْ عَمَلِ الشَّيْطٰنِ ؕ |
| نو مرګ ئے راوستو په هغه باندے، اُووئیل موسیٰ دا د کار د شیطان نه دے |
| اِنَّهٗ عَدُوٌّ مُّضِلٌّ مُّبِيْنٌ ﴿١٥﴾ |
| یقیناً دا دشمن دے ګمراه کونکے ښکاره. |

**تفسیر** : بعض مفسرین وائی چه آسیه ورته ووئیل چه زما ضرورت نشته، تاسو ماشوم راولئ نو فرعون ووئیل چه هغے له ئے کور ته ورولئ خو چه اُوس ماشوم قلار شی، او ددے تنخواه ئے هم مقرر کړه، هره ورځ به ئے یو دینار ورکولو۔ (فتح البیان)

نو الله فرمائی چه ما خپل مور ته راواپس کړو دے دپاره چه د هغے سترګے پرے یخے شی او غم ئے ختم شی، او د الله په وعده ئے یقین پیدا شی چه راواپس کوم به ئے، نو راواپس ئے کړو، دغسے الله تعالیٰ وعده کړے ده چه رسول الله ﷺ به مکے ته واپس کوی نو دغسے الله یوه بله وعده کړے ده چه قیامت به راځی لیکن اکثر خلك نهٔ پو هیږی، هغوی د الله په

وعدو یقین نهٔ لری او هغه ورته ګپ ښکاري.

وَلَمَّا بَلَغَ اَشُدَّهٗ: ددې ځای نه دویم مقام دې چه پدې کښې د ځوانئ مصائب او احوال د موسیٰ ؑ دي، یعنې قبطي وژل او بیا الله ته عاجزي کول او د فرعونیانو د هغهٔ د قتل دپاره مشوره کول، او بیا د موسیٰ ؑ مدین ته هجرت کول ذکر دي.

موسیٰ ؑ به پدې طریقه د فرعون په کور کښې وسیدو او خدمت به ورله د هغه خپلې مور کولو او خلکو به ئې هم اکرام کولو ځکه چه د بادشاه ځوی حسابیدو.

هر کله چه موسیٰ ؑ پوره ځوانئ ته اورسیدهٔ، او په هغهٔ کښې پوخ والې راغې، نو الله تعالیٰ هغهٔ له د عمر سره سره حکمت او پوهه ورکړه. د خپل مور او پلار په کور کښې پاتې شو او د خپل پلرونو او نیکونو ابراهیم، اسحاق، یعقوب او یوسف (علیهم السلام) وغیره د دعوت او عزیمت تاریخ ئې واوریدهٔ، او د هغهٔ روح ته ترقي ملاؤ شوه، او د شاهي قصر سره د رابطې په وجه د دنیوي عِلمونو او حکمتونو نه برخه ور شو. او لکه ځنګه چه د نیکې مور نیک ځوی له الله تعالیٰ خپل نعمتونه ورکړل، الله تعالیٰ د خپلو نیکو بندګانو سره همیشه داسې سلوك کوي.

وَاسْتَوٰی: اَیْ کَمُلَ عَقْلُهٗ - یعنې عقل ئې پوره شو. او عقل د دیرشو نه تر څلویښتو پورې زمانه کښې پوره کیږي. او پدې وخت کښې لا نبي شوې نهٔ دې لیکن الله تعالیٰ د نبوت نه مخکښې هم پیغمبرانو ته ډیره پوهه او حکمتونه ورکوي.

حُکْمًا وَّعِلْمًا: حکم په معنیٰ د اَلْحُکْمُ النِّیَابِیُّ سره دې، یعنې په فیصلو او سیاست پوهه شو. او (عِلْمًا) په شریعت هم پوهیدو. یا حکم د دین پوهې ته وئیلې شي، او علم عامه پوهه ده چه په دنیاوي کارونو هم پوهه شو.

الْمُحْسِنِیْنَ: دې نه معلومیږي چه په بنده کښې څومره احسان وي هغومره به پرې الله تعالیٰ علمونه راکولاووي. نو احسان سبب د علم دې. پدې وجه الله تعالیٰ عامه خبره وکړه.

وَدَخَلَ الْمَدِیْنَةَ: یوه ورځ موسیٰ ؑ د صبا په وخت یا د غرمې په وخت هر کله چه خلقو آرام کولو یا د مانښام او ماسخوتن ترمینځه د شاهي قصر نه را اووتو او ښار ته راغلو چرته چه عام خلق وسیدل. د الله کار ته ګوره چه یو ځای کښې یو اسرائیلي او یو قبطي خپلو کښې په جنګ وو. اسرائیلي مظلوم وو، هغهٔ موسیٰ ؑ لیدو سره د ظالِم قبطي نه د خلاصي دپاره هغهٔ ته آواز اوکړو، موسیٰ ؑ قبطي په یو سوك وهلو سره

هغهٔ خلاصول غوښتل ليکن د الله کار ته گوره چه په دغه يو سوك سره هغه مړ شو.
موسیٰ ﷺ بيقراره شو، او فوراً د هغهٔ په دماغو کښې دا خبره راغله چه دا څهٔ چه وشو، يقيناً دا د هغهٔ په خلاف د شيطان د سازش نتيجه ده، چه هغه د اسلام ښکاره او گمراه کوونکے دشمن دے. او د ډير سخت تاثر د وجے نه ئے خپلے دے غلطئ ته ظلم ووئيلو، او د خپل رب نه ئے بخښنه وغوښته، نو الله تعالیٰ د هغهٔ دا غلطي معاف کړه، او د هغهٔ په زړهٔ کښې ئے په يوه خاصه واسطه دا خبره واچوله چه الله تعالیٰ زهٔ معاف کړے يم. نو دهٔ دعاء وکړه چه اے زما ربه ! تا چه په ما دا احسان وکړو، نو زهٔ تا سره وعده کوم چه اُوس به زهٔ د فرعون او فرعونيانو سره نهٔ وسيږم، چه د هغوئ ظالمانه سلوك د اسرائيليانو په خلاف د تمامو حدودو نه تجاوز کړے، او نهٔ به هيڅ کله د بل کوم مجرم مدد کوم. (فتح البيان)

**يَقْتَتِلٰنِ:** قبطي د فرعون لنگري وو نو يو غټ پيټے د لرگو ئے اسرائيلي ته ورپيشا کړو چه دا به لنگر ته رسوے نو هغه نهٔ منلو نو پدے کښې ورسره په جنگ شو.

**فَاسْتَغَاثَهُ الَّذِیْ :** يعني اسرائيلي موسیٰ ﷺ ته شکايت وکړو چه دا سړے په ما باندے ظلم کوي. اِستغاثه : طَلَبُ الْغَوْث (مدد طلب کولو) ته وئيلے شي.

**فَوَكَزَهٗ مُوْسٰی:** وَکز په سينه کښې په زړهٔ باندے وهلو او سوك ورکولو ته وئيلے شي او لگز په جامه باندے وهل دي.

**فَقَضٰی عَلَيْهِ:** يعني فيصله د مرگ ئے راوسته په هغه باندے، ډير قوي لاسونه ئے وو. د قَضٰی ضمير الله تعالیٰ ته يا موسیٰ ﷺ ته يا وكز (گوزار) ته راجع دے.

**قَالَ هٰذَا :** کوم علماء چه دے عمل ته صغيره گناه هم نهٔ وائي نو هغوی داسے تاويل کوی چه (هٰذَا) اشاره ده دغه قتال ته يعني دا جگړه کول د شيطان عمل دے، او دا شيطان سړے وو نو څکه مے مړ کړو نو گويا که پدے کښې موسیٰ ﷺ د خپل ځان دپاره يو عذر لټوی په وژلو د قبطي کښې. ٢- دويم تاويل : هٰذا اشاره ده سړی ته او عمل نه مراد عمله (جند/ لښکر) مراد دے. يعني دا سړے (قبطي) د شيطان د عملے او لښکر نه وو. يعني فرعون شيطان دے او دا د هغه فوجي دے نو څکه مے مړ کړو.

٣- بل تاويل : هٰذا کښې اشاره ده عمل د مقتول ته يعني دا عمل د مقتول عمل د شيطان وو يعني دا مقتول کافر انسان وو نو څکه مے مړ کړو. ليکن دا تاويلات ظاهر نهٔ دي.

٤- ظاهر دا ده چه هٰذا کښې اشاره ده عمل د موسیٰ ﷺ ته او پدے سره په خپل عمل

باندے رد کوی یعنی دا ما چه کوم کار وکړو نو دا د شیطان عمل وو او د هغه لغزش او وسوسه وه، شیطان پدے خوشحالیږی، ځکه روستو وائی چه ما ظلم وکړو، ما معاف کړه۔ لیکن دا دے لره مستلزم نهٔ ده چه دا دِے گناه شی، وجه دا ده چه یو خو په خطائی کښې شوے دے۔ دویم دا چه ډیر کرته یو شے کار د شیطان وی لیکن انسان پرے گناهگار نهٔ وی لکه حدیث کښې استحاضه ته ئے ونیلی دی: [إِنَّ هٰذِهٖ رَكْضَةٌ مِنْ رَكَضَاتِ الشَّيْطَانِ] دا استحاضه بیماری د شیطان د لتو نه یوه لته ده) لیکن زنانه پرے گناهگاره نهٔ ده۔ او دے ته ئے د شیطان عمل ځکه وونیلو چه د الله تعالیٰ امر ورته پدے کار باندے نهٔ وو شوے، او شیطان پداسے کار باندے خوشحالیږی۔

| قَالَ رَبِّ إِنِّيْ ظَلَمْتُ نَفْسِيْ فَاغْفِرْ لِيْ فَغَفَرَ |
| --- |
| اُوونیل هغه اے ربه زما یقیناً ما ظلم کړے د خپل خان سره نو بخنه اُوکړه ما ته نو بخنه |
| لَهٗ ؕ إِنَّهٗ هُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ ﴿١٦﴾ قَالَ رَبِّ |
| اُوکړه الله هغه ته، یقیناً الله هغه بخنه کونکے رحم کونکے دے۔ اُوونیل دهٔ اے ربه زما |
| بِمَا أَنْعَمْتَ عَلَيَّ فَلَنْ أَكُوْنَ ظَهِيْرًا |
| په وجه ددے چه احسان کړیدے تا په ما باندے نو هیچرے به نهٔ کیږم مددگار |
| لِّلْمُجْرِمِيْنَ ﴿١٧﴾ فَأَصْبَحَ فِي الْمَدِيْنَةِ خَآئِفًا يَّتَرَقَّبُ فَإِذَا |
| دپاره د مجرمانو۔ نو صبا ئے کړو په ښار کښې یریدونکے، انتظار ئے کولو، نو ناڅاپه |
| الَّذِي اسْتَنْصَرَهٗ بِالْأَمْسِ يَسْتَصْرِخُهٗ ؕ قَالَ لَهٗ مُوْسٰى |
| هغه سړے چه مدد ئے غوختے وو ددهٔ نه پرون چغے ئے وهلے دهٔ ته، اُوونیل هغه ته موسیٰ |
| إِنَّكَ لَغَوِيٌّ مُّبِيْنٌ ﴿١٨﴾ فَلَمَّا أَنْ أَرَادَ أَنْ يَّبْطِشَ بِالَّذِيْ |
| یقیناً تهٔ خامخا سرکش ښکاره ئے۔ نو هرکله ئے چه ده اراده اُوکړه چه راونیسی هغه سړے |
| هُوَ عَدُوٌّ لَّهُمَا ۙ قَالَ يٰمُوْسٰٓى أَتُرِيْدُ أَنْ تَقْتُلَنِيْ |
| چه هغه دشمن د دواړو دے، اُوونیل هغه اے موسیٰ آیا تهٔ اراده لرے چه ما قتل کړے |

كَمَا قَتَلْتَ نَفْسًا بِالْاَمْسِ ق اِنْ تُرِيْدُ اِلَّا اَنْ تَكُوْنَ جَبَّارًا فِى

لکه څنګه چه قتل کړے وو تا یو نفس پرون، نه اراده نه لرے مګر دا چه شے زوروړ په

الْاَرْضِ وَمَا تُرِيْدُ اَنْ تَكُوْنَ مِنَ الْمُصْلِحِيْنَ ﴿۱۹﴾ وَجَآءَ رَجُلٌ مِّنْ اَقْصَا الْمَدِيْنَةِ

زمکه کښ او اراده نه لرے چه شے د اصلاح کونکو نه. او راغے یو سړے د آخر سر د ښار

يَسْعٰى قَالَ يٰمُوْسٰٓى اِنَّ الْمَلَاَ يَاْتَمِرُوْنَ بِكَ

نه چه منډے ئے وهلے، ووئیل هغه اے موسیٰ یقیناً مشران د مصر مشوره کوی ستا په

لِيَقْتُلُوْكَ فَاخْرُجْ اِنِّىْ لَكَ مِنَ النّٰصِحِيْنَ ﴿۲۰﴾ فَخَرَجَ مِنْهَا

باره کښ چه قتل کړی تا لره نو اُوځه یقیناً زه تا لره د خیر خواهانو نه یم. نو اُووتلو د هغے

خَآئِفًا يَّتَرَقَّبُ قَالَ رَبِّ نَجِّنِىْ مِنَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۲۱﴾

نه یریدونکے، انتظار ئے کولو، اُووئیل دهٔ اے ربه زما بچ کړے ما د قوم ظالمانو نه.

**تفسیر** : **فَغَفَرَ لَهٗ** : موسیٰ علیه السلام ته یا خبر ملاؤ چه ما ته بخنه وشوه یا ورته خبر نهٔ وو ورکړے شوے ځکه چه دے وخت کښ لا نبی شوے نهٔ دے.

ددے نه دا خبره هم معلومیږی چه د کافر هر وخت وژل جهاد نهٔ دے، او صحیح کار نهٔ دے دا به هله جهاد وی چه کله کافر حربی وی، او کله چه په ملك د مسلمانانو کښ یو کافر وسیږی او جزیه ئے قبوله کړیده او مسلمانانو ته ضرر نهٔ ورکوی او هغوی په دین باندے د عمل کولو نه نهٔ منع کوی نو ددے وژل حرام دی، احادیثو کښ ترے منع راغلے ده.

**ظَلَمْتُ نَفْسِىْ** : یو نقصان رانه دا وشو چه په خطاء رانه قتل وشو، بل دا چه د خلکو دشمنی ته مے ځان مخامخ کړو ځکه چه فرعون به رانه ددے بدله اخلی.

**بِمَآ اَنْعَمْتَ عَلَىَّ** : ډیر احسانات دی یو دا چه کله دهٔ ته د مغفرت پته وی نو بیا مطلب دا دے چه یو دے راته مغفرت وکړو، او بل دے زهٔ د فرعون په کور کښ روغ راغتے کړم او بښه خوراکونه دے راباندے وکړل.

**فَلَنْ اَكُوْنَ ظَهِيْرًا لِّلْمُجْرِمِيْنَ** : ظهیر مددګار ته وائی. ۱- نو پدے کښ اشاره ده چه د مجرمانو ملګرتیا او مدد به نهٔ کوم او مظلومانو سره به ودریږم. یعنی اُوس اګر که ددے

مظلوم په مدد کښې ما قتل وکړو او تا راباندې د مغفرت انعام وکړو نو آینده کښې به هم د مظلومانو مدد کوم۔

۲- یا دا دعاء ده او مطلب دا دے چه اے ربه! تا ما سره ډیر احسانات وکړل پس دا احسان هم راسره وکړه چه چرته د مجرمانو مددګار نشم۔

[اَیْ اِعْصِمْنِیْ بِسَبَبِ مَا اَنْعَمْتَ بِهٖ عَلَیَّ]

یعنی ما د مجرمانو د ملګرتیا نه بچ وساته پدے وجه چه تا په ما باندے ډیر انعامات کړیدی۔

او د مجرمانو د ملګرتیا دوه قسمونه مخکښې بیان شو یعنی د فرعونیانو سره وسیدل، او دویم په ظلم کښې د مجرمانو ملګرتیا ده۔ او دریم دا چه د مجرمانو ډله ډیره کړی، یا د هغوی سره په ګناه کښې مدد وکړی۔ (فتح البیان)

پدے آیت کښې مکے والو ته اشاره دا ده چه مکے والا ظالمان دی، رسول الله ﷺ او د هغهٔ ملګری تنګوی او د وطن نه ئے شړی نو اے ظالمانو! تاسو ولے ددے ظالمانو سره ملګرتوب کوئ۔ دا ډیر عجیب آیت دے، عبد الله بن عمر رضی الله عنه به په سجده کښې هم لوستلو۔

تفسیر قرطبیؒ د عطاء رحمه الله نه نقل کړیدی چه حلال نهٔ دی چه څوك د ظالم سره مدد وکړی او نهٔ دے د هغه دپاره کاتب (منشی) جوړ شی او نهٔ دے د هغه ملګرتیا وکړی۔

فَاَصْبَحَ فِی الْمَدِیْنَةِ خَآئِفًا: ددے بے ارادے او ناګهانه قتل د حادثے نه پس موسیٰ علیه السلام اُویریدهٔ چه معلومه نهٔ ده که فرعون ته ددے حادثے پته ولګی نو دهٔ سره به څهٔ کوی، اُوس لا په دغه یره کښې دے چه په بله ورځ بیا دغه اسرائیلی د یو بل قبطی سره نښتے دے، او د موسیٰ علیه السلام لیدو سره سمدست ئے هغه د خپل مدد دپاره را اوغوښتلو۔ موسیٰ علیه السلام ورته ووئیل چه تهٔ خو ډیر غټ جګړالو معلومیږے، طاقت هم نهٔ لرے او هر چاسره نښتے ئے او خلقو دپاره د مصیبتونو سبب جوړیږے۔ بیا قبطی نیولو دپاره ور وړاندے شو چه هغه کافر وو او ددهٔ او د اسرائیلی دشمن وو، نو هغهٔ ورته ووئیل چه پرون تا یو قبطی وژلے دے، او نن ما وژل غواړے، تهٔ په زمکه باندے ظالم او جابر وسیدل غواړے، اصلاح خوښونکے جوړیدل نهٔ غواړے۔

امام شوکانیؒ او جمال الدین قاسمیؒ د محاسن التنزیل مؤلفؒ همدا رائے غوره ګڼلے

ده چه ددے خبرے قائل قبطی وو۔ اهـ
د قرآن کریم ظاهري عبارت په همدے باندے دلالت کوی۔
دارنګه ددے هیڅ دلیل موجود نهٔ دے چه د تیر شوے ورځے د قتل واقعه هیڅ یو قبطی ته معلومه نهٔ وه۔ بلکه معلومه وه، او ددے خبر فرعون ته هم شوے وو، ځکه خو هغهٔ فوری طور سره خپل مجلس منعقد کړو او د موسیٰ علیه السلام د وژلو فیصله ئے صادره کړه۔
یا (كَمَا قَتَلْتَ نَفْسًا) بناء دے په قیاس باندے یعنی پرون چه کوم مړے شوے، دا به هم تا وژلے وی۔ ځکه چه ددے سری د یو قبطی سره جنګ وو او هغه چا وژلے دے نو نن چه ما داسے مضبوط نیسے، معلومیږی چه هغه به هم تا وژلے وی۔ او بطش مضبوط نیولو ته وئیلے شی۔ دارنګه (اِلَّا اَنْ تَكُوْنَ جَبَّارًا فِى الْاَرْضِ) الفاظ د مسلمان نه نهٔ صادریږی۔
دویم تفسیر دا دے چه دلته موسیٰ علیه السلام اسرائیلی رانیولے وو او (عَدُوٌّ لَّهُمَا) نه مراد پرونے او ننے قبطی دے۔ نو بنی اسرائیلی وویل چه تا زما مخامخ یو تن مړ کړو، نن ما وژل غواړے نو دے قبطی دا خبره واوریده او سیده لاړو فرعون ته ئے خبر ورکړو چه پرونے مړے خو موسیٰ کړیدے، دا تفسیر هم جائز دے، احتمال شته لیکن اول تفسیر غوره دے۔
يَتَرَقَّبُ: ۱- انتظارئے کوو چه اُوس به زهٔ د فرعون دربار کښں طلب کړے شم۔
۲- یا دا چه حالات ئے معلومول۔
قَالَ لَهٗ مُوْسٰٓى اِنَّكَ لَغَوِيٌّ مُّبِيْنٌ: موسیٰ علیه السلام خپل بنی اسرائیلی ته وویل چه تهٔ خو ډیر لوی ښکاره سرکش ئے چه طاقت دے نشته او زورورو سره جنګونه کوے، او د هغوی امر نهٔ منے، یا ددے وجه نه چه ستا په وجه پرون زما د لاسه سړے قتل شو۔ تهٔ د قتلونو سبب جوړیږے۔
اَنْ يَّبْطِشَ: موسیٰ علیه السلام پدے ورځ د جنګ خلاصولو دپاره احتیاط وکړو چه د وکز په ځای ئے بطش (رانیول) وکړل ځکه چه حدیث کښں دی: ((مؤمن د یوے سوړے نه دوه کرته نهٔ چیچلے کیږی))۔ (بخاری: ۶۱۳۳) مسلم (۷۶۹۰)
جَبَّارًا: جبار هغه چاته وائی چه د ځان دپاسه د هیچا قانون نهٔ منی۔ زمخشری وائی: جبار هغه دے چه په ظلم سره کوم وهل او قتلول غواړی هغه کوی او عاقبت ته نهٔ ګوری۔ (قاسمی)
وَجَآءَ رَجُلٌ: هرکله چه فرعون د موسیٰ علیه السلام د وژلو دپاره مشوره وکړه نو دا خبر یو اسرائیلی واخستهٔ او موسیٰ علیه السلام خواته لاړ چه دا په پټه توګه مسلمان وو، او د فرعون

په مجلس کښې شریك شوے وو. دده نوم حزقیل یا شمعون یا شمعان یا سمعان وو.
وئیلے کیږي چه دا د موسیٰ علیه السلام د تره خوی وو. او ده ته مؤمن مِنْ آلِ فِرْعَوْن (او رجل مؤمن) هم وائي. ورته ئے ووئیل چه د فرعون په مجلس کښې ستا د وژلو سازش کیږي، دے وجے نه ته فوراً په هره طریقه چه وی ددے ښار نه اُوځه. نو موسیٰ علیه السلام فوراً په پټه پټه هلته نه ووتلو، دے دپاره چه ونهٔ نیولے شي، ونهٔ وژلے شي. ښار نه چه اووتلو، دعاء ئے اوکړه چه اے زما ربه ! ماله د فرعون او فرعونیانو او هر قِسم ظالمانو نه نجات راکړے، او دوئ ماته مهٔ را رسوے.

يَسْعٰى: دے نه معلومیږي چه پکار ده چه د یو مسلمان د خلاصولو دپاره به منډه وهي، او د مسلمان دفاع به کوی لکه دے شخص چه کړیده.

يَأْتَمِرُوْنَ بِكَ: یعنی مشوره کوی تا ته.

فَاخْرُجْ : پدے کښې د رسول الله ﷺ او د صحابه کرامو رضي الله عنهم هجرت ته اشاره ده.

فَخَرَجَ مِنْهَا خَآئِفًا يَّتَرَقَّبُ: ۱- انتظار ئے کولو د راتیولو د فرعونیانو دهٔ لره. ددے وجه نه په شاړو شاړو لارو باندے روان شو چه څوك ئے ونهٔ نیسي.

۲- یا رَاجِیًا غَوْثَ اللّٰهِ اِیَّاهُ. د الله د مدد امید ئے ساتلو.

مفسرینو د عبد الله بن عباس رضي الله عنه نه روایت کړیدے چه موسیٰ علیه السلام د مصر نه مدین ته روان شو چه په لاره کښې ئے اته شپے مزل وکړو او دده سره هیڅ طعام نهٔ وو سوئ د ونو پاڼو نه، او خپے ایبله وتلے وو تردے چه مدین ته ورسیدو او د هغه د قدمونو خپره پریوتے وه. او په یو بل روایت کښې دی چه په یره او په لوږه وتلے وو چه د هغه سره هیڅ توښه نهٔ وه تردے چه د مدین اُوبو ته ورسیدو او پدے سفر کښې په موسیٰ علیه السلام باندے دا اولنے امتحان وو.

خَآئِفًا: د کافر نه د یو مؤمن یریدل د ایمان خلاف خبره نهٔ ده بلکه دا د دنیا اسباب دی.

**فائده** : ابن عاشورؒ لیکی : کله چه الله تعالیٰ په بندګانو باندے د خیر اراده وکړی نو د هغه دپاره داسے حالات راپیدا کړی چه دوی پکښې کمال حاصل کړی، او دے ته ابتلاء وائی لکه موسیٰ علیه السلام ته ئے د قبطی وژل بهانه جوړه کړه چه هغه مدین ته هجرت وکړو دے دپاره چه د نفس ریاضت او تیاری حاصله کړی دے دپاره چه مشکلاتو برداشت کولو دپاره چمتو شي او د خپل سخر شعیب علیه السلام نه تهذیب زده کړی.

قَالَ رَبِّ نَجِّنِيْ: دا د هجرت دعاء ده چه مهاجر دپاره ډیره ضروری ده.

او ددے نه معلومه شوه چه د ظالم قوم نه د ځان د حفاظت دپاره هجرت کول د انبیاء علیهم السلام سنت دی لکه رسول الله ﷺ هم داسے هجرت کړے وو. او دلیل دے چه همیشه دپاره دا عادت راروان دے چه حق پرست د خپلو کلو نه په وتلو مجبوره شویدی.

| |
|---|
| وَلَمَّا تَوَجَّهَ تِلْقَآءَ مَدْيَنَ قَالَ عَسٰى رَبِّيْٓ اَنْ يَّهْدِيَنِيْ |
| او هرکله ئے چه مخ کړو طرف د مدین ته اُووئیل دهٔ امید دے چه رب زما به اُوښائی ما ته |
| سَوَآءَ السَّبِيْلِ ﴿۲۲﴾ وَلَمَّا وَرَدَ مَآءَ مَدْيَنَ وَجَدَ عَلَيْهِ |
| نیغه لاره (د مدین). او هرکله چه اُورسیدو اُوبو د مدین ته موندهٔ ئے کره په هغے باندے |
| اُمَّةً مِّنَ النَّاسِ يَسْقُوْنَ ۥ وَوَجَدَ مِنْ دُوْنِهِمُ امْرَاَتَيْنِ |
| یوه ډله د خلقو نه چه اُوبه کول ئے ځاروی خپل او موندهٔ ئے کرل اخوا د دوی نه دوه ښځے |
| تَذُوْدٰنِ ۚ قَالَ مَا خَطْبُكُمَا ۭ قَالَتَا |
| چه منع کولے ئے (ګډے بزے). اُووئیل موسیٰ څه دے لوئی کار ستاسو، اُووئیل دوی |
| لَا نَسْقِيْ حَتّٰى يُصْدِرَ الرِّعَآءُ ۫ وَاَبُوْنَا شَيْخٌ كَبِيْرٌ ﴿۲۳﴾ |
| نهٔ اُوبه کوو مونږ تردے چه واپس شی شپونکیان او پلار زمونږ بوډا زوړ دے. |
| فَسَقٰى لَهُمَا ثُمَّ تَوَلّٰٓى اِلَى الظِّلِّ فَقَالَ رَبِّ اِنِّيْ |
| نو اُوبه ئے کرل دواړو لره (ځاروی) بیا واوړیدو سوری ته نو وے وئیل اے ربه زما یقیناً زهٔ |
| لِمَآ اَنْزَلْتَ اِلَيَّ مِنْ خَيْرٍ فَقِيْرٌ ﴿۲٤﴾ |
| هغه څه ته چه تهٔ ئے رالیږے ما ته د خوراك نه محتاج یم. |

**تفسیر**: موسیٰ علیه السلام د مصر نه اُووتلو او مدین طرفته روان شو چه هغه د فرعون د بادشاهئ د حدودو نه بهر وو، او خپل رب نه ئے دعاء غوښتله چه په لاره کښې د هغهٔ دشمن هغه راګیر نهٔ کړی، او دهٔ ته لاره وښائی ځکه چه هیڅکله ئے مدین نهٔ دے لیدلے.

او مدین ته اته ورځے مزل دے او دا عجیب مشابهت دے د رسول الله ﷺ د موسیٰ علیه السلام سره چه د مکے نه مدینے ته هم اته ورځے مزل دے. او موسیٰ علیه السلام مدین ته او رسول الله ﷺ

مدینے ته هجرت وکړو. د مدین او مدینے مناسبت دے، او روستو (ثَمَانِيَ حِجَجٍ) کښې اشاره ده چه اته کاله روستو به مکه فتح کیږی لکه څنګه چه موسیٰ علیه السلام د مدین نه اته یا لس کاله تیرولو نه روستو بیرته مصر ته راغلو۔

عَسٰى رَبِّيْٓ اَنْ يَّهْدِيَنِيْ: کله چه د چا نه لاره خطاء شی او دا دعاء ووائی نو الله به ورته لاره برابره کړی۔

چنانچه په حفاظت سره د مصر د حدودو نه ووتلو او د مدین علاقے ته اُورسیدهٔ، او په لاره کښې د یو کوهی خواته اورسیدهٔ نو وے لیدل چه د خلقو بیړه ده، او تول خپل خپل څناور خړوبه کوی، او دوه جینکئ اخوا جدا ولاړے دی، د هغوئ خواله ورغے او تپوس ئے وکړو چه تاسو لرے ولے ولاړے یئ، په موسیٰ علیه السلام کښې ډیر غیرت وو دا ورته بده ښکاره شوه چه جینکو سره داسے معامله کیږی۔ نو هغوئ جواب ورکړو چه کله ټول شپونکیان خپلے خپلے ګډے بزے خړوبه کړی او ددغه ځای نه اخوا شی نو مونږ خپل څناور خړوبه کوو، ځکه چه زمونږ پلار بوډا دے، هغه دا کار نشی کولے، او زمونږ په کور کښې بل کوم سړے هم نشته او مونږ نهٔ غواړو چه دغه سړو سره ټیل وکړو۔

دا دواړه خبرے چه موسیٰ علیه السلام واوریدے نو فوراً مخکښې شو او د هغوئ ګډے بزے ئے خړوبه کړے، او بیا ئے بوقه راویستله چه دا به ډیرو کسانو راویستله۔ بیا د یوے وُنے سوری لاندے کیناستهٔ، او دعاء ئے وغوښته چه اے زما ربه ! د روزئ حاصلولو کومه ذریعه چه اُوس زما مخے ته ښکاره شوے ده، زهٔ د هغے محتاج یم یعنی د دواړو جینکو پلار له د یو مزدور ضرورت دے، او ماته د روزئ ضرورت دے۔

يَسْقُوْنَ: اَیْ يَسْقُوْنَ غَنَمَهُمَا۔ چارپیان ئے خړوبه کول۔

تَذُوْدٰنِ: اَیْ تَمْنَعَانِ غَنَمَهُمَا مِنَ الْمَاءِ۔ منع کولے ئے ګډے بزے خپلے د اُوبو نه۔

۲- تَطْرُدَانِ۔ شړلَ ئے ګډے بزے۔

مَا خَطْبُكُمَا: یعنی تاسو له څه حالت دے؟ په (مَاخَطْبُكَ): سره تپوس کیږی د یو مصیبت زده یا مجبوره یا د هغه چا نه چه ناشنا کار کونکے وی۔ یعنی آیا تاسو ته تکلیف دے یا تاسو باندے د چا زور دے یا څوك ناروا کار کوی۔ (فتح البیان)

سوال دادے چه د پردو ښځو نه څنګه تپوس کوی؟ جواب دادے چه دا د ډیر غیرت د وجه نه چه دا خلك څومره بے غیرته دی چه زنانه ولاړی دی او دوی خپلے ګډے بزے مخکښې کوی او هغوی ئے روستو کړیدی، نو اول ئے د ښځو نه تپوس وکړو چه آیا

نقصان د دوی دے او که د خلکو دے، که د خلکو نقصان وی چه د هغوی سره خبره وکړی او که د زنانو وی نو د هغوی سره ئے وکړی۔
پدے آیتونو کښې مظلومانو سره مددونو کولو ته اشاره ده، ښهٔ اخلاق د نبوت او اُوچتو مرتبو حاصلولو سبب ګرځی۔
لَانَسۡقِیۡ : یعنی مونږ ګډے بزے نهٔ خرویه کوو مګر چه کله خلك واپس شی څکه چه د هغوی سره د ګډون نه یریږو، هغوی سره تیل نشو کولے، یا د هغوی سره په یوځای خرویه کولو نه عاجز یو څکه چه خلك مونږ له اُویه نهٔ راوباسی او د دوی نه چه کومے اُویه پاتے شی نو هغه استعمالوو۔
یُصۡدِرَالرِّعَآءُ : رِعَاءُ فاعل دے او مَوَاشِیَهُمۡ ئے مفعول دے۔ یعنی تردے چه واپس کړی شپونکیان ګډے بزے خپلے۔ دلته سکته ئے کړیده د وجه د ډیرے حیاء نه څکه چه پردی سړی سره آزادے خبرے نهٔ کوی۔
وَاَبُوۡنَا : سوال پیدا شو چه آیا ستاسو پلار یا وروړ نشته چه هغه دا کار سنبال کړی؟ نو جواب کوی چه وروړ مو نشته او هرچه پلار دے، هغه بوډا ضعیف دے، او ګډو بزو ته مو ضرورت دے۔ او د قوم د مخالفت د وجه نه دوی ز مونږ مزدوری نهٔ کوی او نهٔ راسره مدد کوی۔
ددے نه معلومه شوه چه زنانه ګډے بزے څرولے شی او بهر ته ددے دپاره وتلے شی، او پتهی ته تللے شی، کله چه حیاء او پرده کښې وی۔ او معلومه شوه چه د پردو زنانو آواز عورت نهٔ دے۔ کوم علماء چه دا عورت ګڼړی، د قرآن او د ډیرو احادیثو خلاف دے۔ د رسول الله ﷺ بیبیانو به مؤمنانو ته تعلیم ورکولو، احادیث به ئے بیانول، او کریمهٔ د صحیح بخاری راویه ده چه ډیر محدثین ئے شاګردان وو۔
فَسَقٰی لَهُمَا : د موسیٰ علیه السلام عادت دا وو چه مظلومانو اوبے کسو سره به ئے مددونه کول نو دوی سره ئے هم مدد وکړو۔ مفسرین لیکی چه د کوهی بوقه به لسو کسانو راویستله او موسیٰ علیه السلام په یواځے تن راویستله او ددے زنانو څاروی ئے اُویه کړل ا ودوی ته ئے د خپلے لوړے هیڅ ذکر ونکړو څکه چه کاملان خلق خپل حاجتونه مخلوق ته نهٔ ښکاره کوی۔
رَبِّ اِنِّیۡ لِمَاۤ اَنۡزَلۡتَ اِلَیَّ مِنۡ خَیۡرٍ فَقِیۡرٌ : اَیۡ اِنِّیۡ فَقِیۡرٌ لِمَا اَنۡزَلۡتَ اِلَیَّ مِنۡ خَیۡرٍ ۔ یعنی تهٔ چه ما ته کوم خیر نازلوے هر خیر چه وی زهٔ هغے ته محتاج یم۔ او دا ئے ډیر ناشنا ادب

کړیدے چه الله تعالیٰ نه ئے د خپل حاجت صراحةً سوال نهٔ دے کړے۔

عبد الله بن عباس رضی الله عنه فرمائی: موسیٰ علیه السلام دا خبره وکړه او حال دا چه هغه د ټول مخلوق نه په الله بانديے ډير عزتمند دے او هغه نيمے کجورے ته محتاج وو او خيټه ئے د سختے لوږے په وجه د شا سره يو ځای شوے وه.

او ددے جملے دويم مطلب مخکښې په حاصل کښې بيان شو.

| فَجَآءَتْهُ اِحْدٰىهُمَا تَمْشِيْ عَلَى اسْتِحْيَآءٍ ز قَالَتْ اِنَّ اَبِيْ |
|---|
| نو راغله دهٔ ته يوه د دواړو (زنانو) نه چه روانه وه په حياء بانديے وے وئيل يقيناً پلار زما |
| يَدْعُوْكَ لِيَجْزِيَكَ اَجْرَ مَا سَقَيْتَ لَنَا ط |
| غواړی تا دے دپاره چه بدله درکړی تا ته مزدوری د هغے چه اُوبه کړل تا موږ لره |
| فَلَمَّا جَآءَهٗ وَقَصَّ عَلَيْهِ الْقَصَصَ لا قَالَ |
| نو هرکله چه راغے موسیٰ هغه ته، او بيان ئے کړو په هغه بانديے بيان، اُووئيل هغه، |
| لَا تَخَفْ قف نَجَوْتَ مِنَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۲۵﴾ قَالَتْ اِحْدٰىهُمَا يٰٓاَبَتِ |
| مهٔ يريږه، راخلاص شوے تهٔ د قوم ظالمانو نه. اُووئيل يوے د دواړو نه اے پلاره زما |
| اسْتَاْجِرْهُ ز اِنَّ خَيْرَ مَنِ اسْتَاْجَرْتَ الْقَوِيُّ |
| په مزدوریٔ اُونيسه دا يقيناً غوره د هغه چا نه چه تهٔ ئے په مزدوریٔ سره نيسے (دا)طاقتور |
| الْاَمِيْنُ ﴿۲۶﴾ قَالَ اِنِّيْٓ اُرِيْدُ اَنْ اُنْكِحَكَ اِحْدَى ابْنَتَيَّ |
| امانتدار دے. ووئيل هغه يقيناً زهٔ غواړم چه په نکاح سره درکړم تا ته يوه دوه لونړو زما نه |
| هٰتَيْنِ عَلٰٓى اَنْ تَاْجُرَنِيْ ثَمٰنِيَ حِجَجٍ ج فَاِنْ اَتْمَمْتَ عَشْرًا |
| چه دا دی پدے شرط چه ته به مزدوری کوے ما سره اته کاله نو که پوره دے کړل لس |
| فَمِنْ عِنْدِكَ ج وَمَآ اُرِيْدُ اَنْ اَشُقَّ عَلَيْكَ ط |
| نو ستا د طرفنه به وی (احسان) او زهٔ نهٔ غواړم چه سختی راولم په تا بانديے |

سَتَجِدُنِیْٓ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ مِنَ الصّٰلِحِیْنَ ﴿۲۷﴾ قَالَ ذٰلِكَ

زردے چه ته به مونده کړے ما لره که الله اُوغواړی د نیکانو نه۔ اُووئیل موسیٰ دا

بَیْنِیْ وَبَیْنَكَ ؕ اَیَّمَا الْاَجَلَیْنِ قَضَیْتُ

زما او ستا مینځ کښې (فیصله) ده، کوم یو د دواړو نیتو نه چه پوره کړه ما

فَلَا عُدْوَانَ عَلَیَّ ؕ وَاللّٰهُ عَلٰی مَا نَقُوْلُ وَكِیْلٌ ﴿۲۸﴾

نو نۀ به وی زیاتے په ما باندے، او الله تعالیٰ په هغه خبرو چه مونږه ئے وایو ذمه وار دے۔

**تفسیر:** د اکثرو مفسرینو رائے داده څنګه چه امام شوکانیؒ لیکلی دی چه دا دواړه د شعیب ؑ لونړه وے ځکه چه مدین ته شعیب ؑ رسول لیږلے شوے وو او همدا ظاهر د قرآن دے۔ او اګرکه شعیب ؑ ډیر پخوانے پیغمبر دے لیکن د هغوی عمرونه زیات وو او د ﴿وَمَا قَوْمُ لُوْطٍ مِّنْكُمْ بِبَعِیْدٍ﴾ (هود:۸۹) نه هم معلومیږی۔ او بعض وائی چه دا بل یو نیك سړے وو، لیکن ددے خبرو نه معلومیږی چه دا شعیب ؑ دے۔

هر کله چه دا دواړه د عادت خلاف څاروی اوبۀ کولو سره زر کور ته اُورسیدے، نو د دوئ پلار د دوئ نه حیرانتیا سره سبب وتپوسلو۔ هغوئ ورته قصه بیان کړه۔ نو پلار په دے دواړو کښې یوه واپس را اولیږله چه لاړه شه او دغه ځوان ته ووایه چه زما پلار تالره ستا د مزدورئ درکولو دپاره رابلی۔ جینئ په ډیر شرم او حیاء سره را اووته چه په لوستونړی سره ئے مخ پټ کړے وو، او د موسیٰ ؑ خواله راغله (لکه څنګه چه د عمر بن خطاب ؓ د روایت نه ثابت دی، کوم چه ابن المنذرؒ، ابن ابی حاتمؒ او حاکمؒ روایت کړے) او د خپل پلار پیغام ئے اُورسولو، نو موسیٰ ؑ د خپلے بے سر وسامانئ او د سخت ضرورت د وجے نه موقع غنیمت وګنړله او هغے سره روان شو۔

بعض وائی چه د دوی ددے بوډا پلار سره د ملاقات په نیت روان شو۔

خپله مخکښے روان وو او جینئ د شانه هغۀ ته لاره ښودله روانه وه۔ شعیب ؑ خواله چه اُورسیده نو لږ ساه اخستو نه پس ئے ورته خپله ټوله واقعه بیان کړه، هغۀ اطمینان ورکړو، ورته ئے ووئیل: تۀ د ظالمانو د حکومت د حدودو نه بهر راغلے ئے، اوس دلته په آرام سره اُوسه۔

اِحۡدٰهُمَا: د مشرې لور نوم صَفُورا یا صَفُراء وه او د کشرې نوم لیا یا صَفِیُراء وه۔
(فتح البیان)

عَلَی اسۡتِحۡیَآءٍ: عَلٰی د تمکن دپاره ده یعنی د حیاء دپاسه راروانه وه۔ الله چه د چا صفت وکړی معلومیږی چه په دے انسان کښې کمال وی۔ او دا د ښځې ډیر ښکلے صفت دے چه په لاره په حیاء روانه وی او د اُوښے په شان نهٔ وی چه ټول خلك ځان ته متوجه کوی، بلکه د دیوال غاړے ته په پردے سره به روانه وی۔

پدے الفاظو سره الله تعالیٰ زمونږ تربیت کوی۔

په سنن دارمی کښې د ابو حازمؒ په روایت کښې راغلی دی چه زنانه مخکښې روانه وه او موسیٰ علیه السلام روستو وو نو پدے کښې هواء راغله، د هغې جامه به ئې پورته کوله [وَ کَانَتُ ذَاتَ عَجُزٍ] نو د هغې شا به ښکاره کیده نو موسیٰ علیه السلام به خکته کتل لیکن دا ورته بار بار گرانه شوه نو هغې ته ئې آواز وکړو چه [یَا اَمَةَ اللّٰهِ! کُوُنِیُ خَلُفِیُ وَاَرِیُنِی السَّمُتَ بِقَوُلِكِ] اے د الله وینځې! زما نه روستو شه او ما ته په خبره سره لاره راښایه۔ (دا د موسیٰ علیه السلام انتهائی امانت او تقویٰ ده) (وفی اسناده مجاهیل)

قَالَتُ اِحۡدٰهُمَا: هر کله چه موسیٰ علیه السلام څهٔ ورځې هلته تیرے کړے، او شعیب علیه السلام او د هغهٔ د کور والو د هغهٔ د چال چلن نه ډیر حده پورے خبر شول، نو یوه ورځ په دغه دوارو جینکو کښې یوے جینئ خپل پلار له مشوره ورکړه چه اے پلاره! موسیٰ علیه السلام په تنخواه باندے د ګډو بزو څرولو او د کور د نورو کارونو دپاره ملازم او مزدور ونیسه، ځکه چه بهتر مزدور هغه وی چه طاقتور او امانتدار وی۔ او د کوهی سره د اولنی ملاقات نه واخله تر اوسه پورے چه ددهٔ کوم کردار زمونږ مخے ته راغلے، نو د هغې نه همدا معلومیږی چه دا سړے طاقتور دے، او امانتدار دے چه اوسه پورے دهٔ مونږ طرفته کتلی هم نهٔ دی۔

اِنَّ اَبِیُ یَدۡعُوۡكَ: موسیٰ علیه السلام دا اِجابت پدے وجه وکړو چه د نبی د دعوت اجابت ضروری وی، او دا په نیك عمل (خرویه ولو) باندے مزدوری اخستل نهٔ دی لکه په روایت د ابو حازم کښې راغلی دی کله چه موسیٰ علیه السلام ته طعام رامخکښې کړے شو نو هغه اعوذ بالله ووئیله، هغه ورته ووئیل چه دا ولے؟ موسیٰ علیه السلام وفرمایل: په الله پناه غواړم طلب کوم چه دا طعام زما د نیك عمل مزدوری شی۔ او بیا ئې دا ووئیل [اِنَّا اَهۡلُ بَیۡتٍ لَانَبِیۡعُ دِیۡنَنَا بِمِلۡءِ الۡاَرۡضِ ذَهَبًا] مونږ داسے کورنئ یو چه خپل دین په ډکه زمکه سرو زرو

هم نهٔ خرخوو. نو هغه ورته ووېل چه دا اجرت د سَقی (خړوبه ولو) نهٔ دے بلکه عادت زمونږه مېلمستیا ورکول دی، بیا موسیٰ علیه السلام خوراك شروع کړو.
او بله دا چه د سختې فاقې او لوږې په وخت کښې مزدوری طلب کول حرام نهٔ دی. موسیٰ علیه السلام خپله خضر علیه السلام ته ویلی وو چه ﴿لَاتَّخَذْتَ عَلَيْهِ أَجْرًا﴾ (الكهف:۷۷)ددے خلکو د دیوال جوړولو بدله به دې اخستې وے.
قَالَ إِنِّيٓ أُرِيدُ: شعیب علیه السلام هم د هغهٔ د حالاتو، کردار او چال چلن جائزه اخستله، او په (۱٤) آیت کښې تیر شو چه الله تعالیٰ موسیٰ علیه السلام له حکمت او پوهه د دیرشو کالو په عمر کښې ورکړے وه. نو ښکاره خبره ده چه ددے پوهې او حکمت آثار به هم په هغهٔ باندے راښکاره وو، دے وجې نه شعیب علیه السلام د هغهٔ د طرفه خاطر جمع شو، نو یوه ورځ ئے هغهٔ ته ووېل چه زهٔ په دے دواړو لونړو کښې یوه تاله په نکاح درکول غواړم، ددے په عوض کښې به ته آتو کالو پورے ماسره مزدور پاتې کېږے او ګډے بزے به څروے، او که چرے تهٔ د خپل طرفه دوه کاله زیاتی زما کار کوے نو دا به ستا د طرفه ما سره تعاون وی، دا څه الزامی خبره نهٔ ده. او تهٔ به ان شاء الله ما د خپلې وعدے پابند، او ښهٔ سلوك کونکے وموے. موسیٰ علیه السلام جواب ورکړو چه کومه خبره زما او ستا ترمینځه فیصله شوه، ددے به مونږ دواړه پابند یو، او په دواړو مودو کښې چه په کومه باندے هم ما عمل وکړو، ماته به اختیار حاصل وی، نهٔ به مانه د آتو کالو نه د زیات، اونهٔ ددے مطالبه کېږی چه (زما د خواهش نه خلاف) د لسو کالو نه مخکښې خپله ښځه واخلم او دے ځائے نه لاړ شم، او مونږ دواړه الله لره ګواه جوړوو.

## فوائد او معارف د آیت

امام شوکانیؒ لیکی چه دا آیتِ کریمه دلیل دے چه د هغویٔ په دین کښې په اجرت باندے ملازم ساتل جائز وو.
❁ دارنګه پلار کولے شی چه یو نیك سړی ته خپله لور د نکاح دپاره پیش کړی. د صحابه کرامو رضی الله عنهم هم دا طریقه وه، او د عمر بن خطاب رضی الله عنه واقعه مشهوره ده چه هغهٔ ابو بکر او عثمان رضی الله عنهما ته خپله لور حفصه د نکاح کولو دپاره پیش کړے وه. او یو صحابیئې رسول الله ﷺ سره د واده کولو پیشکش کړے وو. دا واقعات په صحیح روایاتو سره ثابت دی، آه.

❁ په نکاح کښې چه کوم شرط مقرر شي نو په هغې باندې پابندي لازم ده، دلته د اتو کالو شرط پوره کول لازم وو. او حديث کښې هم دي: ډير لائق شرطونه چه تاسو ئې پوره کوئ هغه دي چه تاسو پرې ځان دپاره زنانه حلالوئ. (بخاري: ۲۷۲۱) مسلم (۳۵۳۷)

❁ او پدې آيت کښې عرض (پيشکش) د نکاح دے، او نکاح نۀ ده ځکه چه تعيين پکښې نشته، کله چه موسیٰ عليه السلام دا عرض قبول کړی نو بيا به ورته يوه جينۍ متعينه کړي او نکاح به وکړي.

❁ بعض خلکو (اَنۡ تَاۡجُرَنِيۡ ثَمٰنِيَ حِجَجٍ) نه دليل نيولے دے چه د لور خور په سر پيسے اخستل جائز دي. شعيب عليه السلام د لور په سر اجرت (وَلوَر) اخستے دے.

جواب دا دے چه دا اجرت د نکاح نۀ دے بلکه مطلب دا دے چه ما سره به مزدوري هم کوے او لور به هم درله درکړم. يعني دلته (عَلٰى) يا د عوض دپاره دے، يا د شرط دپاره که د عوض دپاره شي نو بيا به د (تَاۡجُرَنِيۡ) معنیٰ د اجرت اخستو ده نو معنیٰ داده چه ته به ما نه اجرت اخلې او د هغې نه به ستا د ښځې مهر او نفقه پوره کيږي. يا عَلٰى د شرط دپاره دے، يعني پدے شرط به درله لور درکوم چه ته به ما سره مزدوري کوے لس کاله او داسے شرط په نکاح کښې لګول جائز دي چه مثلاً زما خدمت وکړه نو لور به درکړم يا که لور مے درکړه نو ددے وطن نه به ئې بل وطن ته نۀ بوځې. نو پدے معنیٰ دا خدمت عوض د نکاح نۀ دے، بلکه د نکاح په عوض کښې خو به مهر مقرروي.

**فائده:** دلته الله تعالیٰ موسیٰ عليه السلام ته د هجرت په بدله کښې مزدوري هم ورکړه او کور او امن هم، او ښځه ئې هم ورکړه نو د الله دپاره چه څوک هجرت وکړي، الله به ضرور فراخي ورکوي.

**ثَمٰنِيَ حِجَجٍ:** کښې اشاره ده د رسول الله ﷺ حال ته چه تۀ به مدينے ته لاړ شے او تا له به الله تعالیٰ اته يا لس کاله پس په مکه غلبه درکوي نو بيا په اتم کال باندے ئې فتح وکړه.

| فَلَمَّا قَضٰى مُوۡسَى الۡاَجَلَ وَسَارَ بِاَهۡلِهٖۤ |
|---|
| نو هر کله چه پوره کړه موسیٰ (عليه السلام) نيتے لره او روانه ئې کړه کوروالا خپل |
| اٰنَسَ مِنۡ جَانِبِ الطُّوۡرِ نَارًا ۚ قَالَ لِاَهۡلِهِ امۡكُثُوۡۤا اِنِّیۡۤ اٰنَسۡتُ |
| وے ليدل د طرف د طور غر نه اُور وے ونيل خپل کوروالا ته ايسار شئ يقيناً ما ليدلے دے |

نَارًا لَّعَلِّيْٓ اٰتِيْكُمْ مِّنْهَا بِخَبَرٍ اَوْ جَذْوَةٍ مِّنَ النَّارِ لَعَلَّكُمْ

اُور شاید چه زهٔ به راوړم تاسو ته ددے نه څه خبر یا سکروټه د اُور دے دپاره چه تاسو ورته

تَصْطَلُوْنَ ﴿۲۹﴾ فَلَمَّآ اَتٰىهَا نُوْدِيَ مِنْ شَاطِئِ الْوَادِ الْاَيْمَنِ

گرم شئ۔ نو هرکله چه راغے هغے ته آواز اُوکړے شو هغه ته د غاړے د کندے ښی طرف

فِي الْبُقْعَةِ الْمُبٰرَكَةِ مِنَ الشَّجَرَةِ اَنْ يّٰمُوْسٰٓى اِنِّيْٓ اَنَا اللّٰهُ رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۳۰﴾

نه په زمکه برکتی کښې د ونے د طرفنه چه اے موسیٰ یقیناً زهٔ الله یم رب د مخلوقاتو۔

وَاَنْ اَلْقِ عَصَاكَ ؕ فَلَمَّا رَاٰهَا تَهْتَزُّ كَاَنَّهَا جَآنٌّ

او گوزار کړه امسا خپله نو هرکله ئے چه اُولیدله چه خوزیږی گویا کښې دا نرے مار دے

وَّلّٰى مُدْبِرًا وَّلَمْ يُعَقِّبْ ؕ يٰمُوْسٰٓى اَقْبِلْ

واوړیدو شاگونکے، او شا ته ئے نهٔ کتل (الله ورته اُوفرمایل) اے موسیٰ رامخامخ شه

وَلَا تَخَفْ ۫ اِنَّكَ مِنَ الْاٰمِنِيْنَ ﴿۳۱﴾ اُسْلُكْ يَدَكَ فِيْ جَيْبِكَ

او مهٔ یریږه یقیناً تهٔ د امن والو نه ئے۔ داخل کړه لاس خپل په گریوان خپل کښې

تَخْرُجْ بَيْضَآءَ مِنْ غَيْرِ سُوْٓءٍ ؗ وَّاضْمُمْ اِلَيْكَ جَنَاحَكَ مِنَ الرَّهْبِ

راوبه وځی سپین په غیر د څه عیب نه او یوځائے کړه ځان سره اړخ خپل د وجے د یرے نه

فَذٰنِكَ بُرْهَانٰنِ مِنْ رَّبِّكَ اِلٰى فِرْعَوْنَ وَمَلَا۟ئِهٖ ؕ

نو دا دواړه یقینی دلیلونه دی د طرف د رب ستا نه فرعون ته او غټانو د قوم د هغهٔ ته

اِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمًا فٰسِقِيْنَ ﴿۳۲﴾

یقیناً دوی وو قوم نافرمان۔

**تفسیر** : د موسیٰ علیه السلام وادهٔ د دواړو جینکو نه د یوے جینئ سره اوشو، او د لوظنامے مطابق د شعیب علیه السلام په کور کښې اوسیدهٔ۔ ابن ابی شیبهؒ او بخاریؒ او نورو محدثینو د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت کړے چه هغهٔ د لسو کالو پورے خدمت وکړو۔ (ځکه چه یو نبی چه کله وعده وکړی نو په اعلیٰ بانډے عمل کوی)۔

موده پوره کولو نه پس ئې اراده وکړه چه د خپلې مور او ورور (هارون) ملاقات ته لاړ شي نو ځان سره ئې خپل بال بچ واخستهٔ او مصر طرفته روان شو، کوهِ طور ته نزدې شو نو د شپې په وخت ترې لاره ورکه شوه، او بالکل د غرهٔ لمنې ته اورسیدل. ډیره یخنی وه، وې لیدل چه د غرهٔ د طرفنه رنړا راځي، گمان ئې وکړو چه هلته څهٔ خلق دي چه هغوئ اُور بل کړے. دې وجې نه خپل اهل ته ئې ووئیل چه تاسو دلته ایسار شئ، زهٔ د لارے تپوس کوم، یا کم از کم تاسو ته د گرمئ رسولو دپاره اُور راوړم. کله چه هلته ورسیدهٔ نو خبره بل شان وه. دغه ځای د الله تعالیٰ د تجلی او رنړا په سبب سره یو مبارك میدان جوړ شوے وو، چه د هغې بنی طرفته د موجودې وُنې د مینځ نه آواز راغے چه: اے موسیٰ! زهٔ الله یم چه د ټول جهان پالونکے دے. ستا په لاس کښې چه کومه همسا ده، هغه په زمکه وارتوه. غورزولو سره سَمدست هغه یو خوفناك مار جوړ شو چه تیزئ سره خوزیدهٔ. موسیٰ ﷺ ددې کیفیت په لیدو سره ویریدلو او شاته ئې منډه کړه او واپس راتلل ئې نهٔ غوښتل، نو آواز راغے چه اے موسیٰ! واپس راشه، ویرېږه مهٔ، تهٔ د هر شر او بلا نه محفوظ او بچ ئې. دا لویه معجزه وه چه هغهٔ له ورکړے شوې وه.

حافظ ابن کثیرؒ لیکي: ددې معجزې د ښکاره کولو مقصد دا وو چه دهٔ ته یقین وشي چه دا د هغه الله تعالیٰ سره خبرې کونکے دے چه هغه کوم شئ ته وغواړي چه شه، نو هغه شے موجود شي.

کله چه واپس راغے او خپل اولنی ځای کښې ودریدهٔ، نو بیا آواز راغے چه تهٔ خپل لاس په خپل گریوان کښې ننباسه او بیا ئې را اوباسه، هغه به د نُور پشان ښائسته ځلیدونکے ښکاره کیږي، او د خپل زړهٔ نه د مار ویره لرے کولو دپاره خپل لاس خپلې سینه سره ولگوه.

حافظ ابن کثیرؒ لیکي چه په ظاهره کښې دا خوبي هغهٔ له هر وخت دپاره ورکړے شوې وه چه کله هم هغه د فرعون نه یرېږي نو هغه دې دا کار کوي دې دپاره چه ویره ئې ختمه شي. ابن کثیرؒ وائي: که چرې بل څوك هم د هغهٔ په پیروئ کښې داسې وکړي نو ان شاء الله ددهٔ د زړهٔ نه به ویره ختمه شي، آهـ.

بیا آواز راغے چه ستا د رب له خوا دا دوه معجزې دي، چه دا ستا د نبی مرسل کیدو دلیل دے، دا واخله او فرعون او فرعونیانو ته ورشه چه هغوئ د کفر او سرکشئ لاره اختیار کړے، مانه سوئ د بل چا عبادت کوي، او هغوئ بنی اسرائیل خپل غلامان جوړ

کړی دی۔

## فوائد د آیت

وَسَارَ بِاَهْلِهٖٓ: ۱- دا دلیل دے چه خاوند خپله ښځه بغیر د ګناه نه هر چرته بوځی نو هغه به ئے تابع وی او انکار به نهٔ کوی۔ ۲- دلته شعیب ؑ یو مسافر ته لور ورکړے ده، د هغه دینداری او تقویٰ ئے سود کړیده او د هغه قوم او نسب او مالدارئ ته نهٔ ګوری۔ او خپله لورئے پرے پیش کړیده، او دا سنت طریقه هم ده چه خپله خور لور به په نیکانو پیش کوی لکه امام بخاریؒ پدے باندے باب ایخودے دے [بَابُ عَرْضِ الرَّجُلِ اُخْتَهٗ وَابْنَتَهٗ عَلَى الرَّجُلِ الصَّالِحِ] خپله لور خور نیك سړیٔ ته پیش کول)۔

زمونږ پښتانهٔ په خپله دا خبره نهٔ پیش کوی، دا کار ورته د عزت کمے ښکاره کیږی او پدے شرمیږی نو خور لورئے په کور کښ زاړهٔ شی او رشته پرے رانشی، د هر چا کور د جینکو نه ډك دے، ډیر خلك ستا د خور لور نه څه خبریږی۔

مِنَ الشَّجَرَةِ: الله تعالیٰ د عرش نه خبرے کوی، او هغه د ونے د طرفنه راوځی ددے مثال د ټیلفون دے چه انسان په یو ځای کښ خبرے کوی، او بل ځای آوریدل شی۔ او نور خلق به ئے نهٔ آوری، صرف ټیلفون غوږ ته نیونکے به ئے آوری۔ دا په ﴿سَنُرِيْهِمْ اٰيٰتِنَا فِى الْاٰفَاقِ﴾ کښ داخل دے۔

او دا عقیده د وحدة الوجود غلطه ده چه څوك وائی چه الله تعالیٰ راغلے دے او په ونه کښ داخل شویدے او د هغے نه آوازونه کوی۔ نهٔ بلکه الله تعالیٰ په عرش دے لیکن آواز ئے د ونے نه آوریدلے کیږی۔

الْبُقْعَةِ الْمُبٰرَكَةِ: زمکه مبارکه وه ځکه چه الله تعالیٰ پکښ خبرے کړے وے۔ او دغه شان الله تعالیٰ زمونږ رسول الله ﷺ هم په مبارکه زمکه (مکه) کښ رسول جوړ کړے وو۔

وَلَمْ يُعَقِّبْ: یعنی شا ته ئے نهٔ کتل او روستو راتلل ئے نهٔ غوښتل د ډیر هیبت د وجه نه۔

وَّاضْمُمْ اِلَيْكَ جَنَاحَكَ: ۱- دا کنایه ده د قوت راجمع کولو نه لکه څنګه چه مارغه دواړه وزرے ځان سره یو ځای کړی او بیا والوزی۔ ۲- یا ددے نه مراد دا دے چه کله په تا باندے یره راشی نو لاس خپلے سینے سره یو ځای کړه، ستا خوف به ختمیږی لکه تفصیل ئے مخکښ ذکر شو۔ ۳- یا مطلب دا دے چه کله تهٔ د لاس د سپینوالی نه

يريږي او بيرته خپل اصلي حالت ته ئې راواپس كول غواړي نو بيرته ئې سينې سره يوځاى كړه، همغه شان به شي. گويا كه دا يوه بټن وه ددې بلپ او رڼا د بندولو او لگولو دپاره.

د پخوانو انبياء عليهم السلام معجزاتو دپاره الله تعالىٰ اُوس په دنيا كښې وجود وركړيدې، او انسانان د هغې نه چلونه زده كوي او ژوند پرې روانوي لكه د رسول الله ﷺ د شق الصدر (سينې څيرى كولو) نه خلكو آپريشن زده كړو چه دې سره ډير علاجونه كوي او د بدن نه گندونه لرې كوي.

رسول الله ﷺ او سليمان عليه السلام په هواء آلوتلې وو، نو ددې نه ئې معلومه كړه چه د انسان دپاره په هواء كښې آلوتل ممكن دي، نو ددې وجه نه ئې جهازونه جوړ كړل.

بُرْهَانٰنِ : يو يد بيضاء او بل عصا دوه معجزې شوې.

| قَالَ رَبِّ اِنِّيْ قَتَلْتُ مِنْهُمْ نَفْسًا فَاَخَافُ اَنْ يَّقْتُلُوْنِ ﴿۳۳﴾ |
|---|
| ووېل هغه اې ربه زما يقيناً ما وژلې دې د دوى نه يو نفس نو يريږم چه دوى به قتل كړي |
| وَاَخِيْ هٰرُوْنُ هُوَ اَفْصَحُ مِنِّيْ لِسَانًا فَاَرْسِلْهُ مَعِيَ رِدْاً |
| ما. او ورور زما هارون ډير فصيح دې زما نه په ژبه كښې نو اُوليږه دهٔ لره ما سره مددگار |
| يُّصَدِّقُنِيْٓ اِنِّيْٓ اَخَافُ اَنْ يُّكَذِّبُوْنِ ﴿۳۴﴾ قَالَ |
| چه تصديق كوي زما يقيناً زهٔ يريږم چه دوى به ما ته دروغژن اُووائي. اُووئيل الله |
| سَنَشُدُّ عَضُدَكَ بِاَخِيْكَ وَنَجْعَلُ لَكُمَا |
| زردې چه زهٔ به مضبوط كړم مټ ستا په ورور ستا سره او وبه گرځوو تاسو دواړو لره |
| سُلْطٰنًا فَلَا يَصِلُوْنَ اِلَيْكُمَا ۚ بِاٰيٰتِنَآ ۚ اَنْتُمَا وَمَنِ |
| رعب (غلبه) نو دوى به نهٔ شي رسيدلې تاسو ته (لاړ شئ) په معجزاتو زمونږ تاسو او هغه څوك |
| اتَّبَعَكُمَا الْغٰلِبُوْنَ ﴿۳۵﴾ فَلَمَّا جَآءَ هُمْ مُّوْسٰى |
| چه تابعدار دي ستاسو به غالب يئ. نو هركله چه راغې دوى ته موسىٰ عليه السلام |

| |
|---|
| بِاٰیٰتِنَا بَیِّنٰتٍ قَالُوْا مَا هٰذَآ اِلَّا سِحْرٌ مُّفْتَرًی |
| په معجزاتو زمونږ ښکاره، اُووئیل دوی نهٔ دے دا مګر جادو د ځان نه جوړ کړے شویدے |
| وَّمَا سَمِعْنَا بِهٰذَا فِیْٓ اٰبَآئِنَا الْاَوَّلِیْنَ ﴿۳۶﴾ وَقَالَ مُوْسٰی |
| او نهٔ دی آوریدلی دی مونږ دا په پلارانو زمونږ پخوانو کښې۔ او اُووئیل موسیٰ (علیه السلام) |
| رَبِّیْٓ اَعْلَمُ بِمَنْ جَآءَ بِالْهُدٰی مِنْ عِنْدِهٖ |
| رب زما ښه پوهه دے په هغه چا چه راوړے ئې دے هدایت د طرف د هغه نه |
| وَمَنْ تَکُوْنُ لَهٗ عَاقِبَةُ الدَّارِ ط اِنَّهٗ لَا یُفْلِحُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿۳۷﴾ |
| او په هغه چا چه وی به هغه لره انجام د کور (د آخرت) یقیناً نهٔ کامیابیږی ظالمان۔ |

**تفسیر:** موسیٰ علیه السلام چه د الله دا حکم واوریدهٔ نو وے وئیل: اے زما ربه ! ما یو قبطی وژلے وو، دے وجے نه زهٔ یریږم چه د دغه ځای خلق به ما قتل کړی، او زما وروړ هارون مانه زیات فصیح او په خبرو زیات قدرت لری، هغه هم خپل رسول او زما معاون او مددګار جوړ کړه، کـه چرے زهٔ یـواځے لاړ شم نـو مـا سره ویره ده چه دغـه خلق بـه ما دروغژن وګڼړی۔ نو بیا به زما ژبه کار نهٔ کوی نو هغه به ماسره وی، زهٔ چه څهٔ فرعون ته وایم، دا به هغه په خپله فصیحه ژبه کښې د زیاتی تشریح او تفصیل سره د هغهٔ مخے کښې پیش کړی۔

رِدْاً: رِدْء مُعِین او مددګار ته وئیلے شی۔ او کله چه رسول الله ﷺ راغـے نـو الله تعالیٰ ورسره سمدست ابوبکر صدیق رضی الله عنه ملګرے کړو۔ دے کښې هم مشابهت دے۔

الله تـعـالیٰ د هغهٔ طلب منظور کړو او وے وئیل چه مونږ به ستا وروړ ستا مددګار جوړ کړو، او تاسو دواړه زمونږ معجزات واخلئ او فرعون ته ورشئ، بهر حال غلبه به تاسو او ستاسو تابعدارو ته حاصلیږی۔

سَنَشُدُّ عَضُدَكَ: د مټ مضبوطولو نه مراد د هغه تعاون او مدد کول دی ځکه چه د مټ په وجه انسان مضبوطیږی۔

وَنَجْعَلُ لَکُمَا سُلْطٰنًا: ۱ – اَیْ حُجَّةً وَّبُرْهَانًا۔ یعنی تاسو لره به قوی دلیل درکړم۔

۲ – اَوْ تَسَلُّطًا وَّغَلَبَةً وَّهَیْبَةً فِیْ قُلُوْبِ الْاَعْدَاءِ۔ یعنی تاسو لره به تسلط او غلبه درکړم او د

دشمنانو په زړونو کښې به ستاسو هيبت واچوم. او دغسې وشوه چه موسیٰ او هارون عليهما السلام غريبان او کمزوري، بې کسه او بې ياره او مددګار دي مګر د الله نصرت ورسره ملګرې دې نو پدې وجه د فرعون په بادشاهۍ کښې دي او هغه ورته څه نشي وئيلې بلکه هغه خپله د دوی نه په رعب کښې دې.

او دا رعب الله تعالیٰ رسول الله ﷺ ته هم ورکړې وو چه که چا کښې به لږه حياء هم وه نو هغه به رسول الله ﷺ ته مخامخ ضرر نشو ورکولې مګر ډير لئيم او رذيل انسان به ضرر ورکولو. ډيرو کافرو به پټې شا د قتل او وهلو مشورې وکړې ليکن کله چه به رامخامخ شو نو بيا به ترې خپل کار هير شو.

اَنۡتُمَا وَمَنِ اتَّبَعَكُمَا الۡغٰلِبُوۡنَ: اشاره ده چه رسول الله ﷺ او مؤمنانو ته به الله غلبه ورکوی او د کفر ګرګې به الله تعالیٰ راګوزاري. او پدې کښې موسیٰ عليه السلام ته زيرې او د هغوی مضبوطول دي.

بِاٰيٰتِنَا: دلته د آيات نه دغه دوه معجزې مراد دي يعني امسا او سپين لاس، او جمع ئې ورله استعمال کړه ځکه چه په هر يو کښې ډيرې نښې پرتې وې.

بِهٰذَا: ۱- يعني دا د توحيد خبرې او د نبوت دعوىٰ مونږ نۀ ده آوريدلې يعني چه يو انسان دې وي او الله دې ئې پيغمبر جوړ کړي او نورو انسانانو ته دې ئې وليږي.

۲- يا داسې جادو مونږ د پخوانو نه هم نۀ دې آوريدلې. اول قول غوره دې. ځکه چه عام اقوام د عالَم د الله تعالیٰ د توحيد او د نبي د رسالت نه منکر وو.

مفسرين ليکي چه فرعون خالص د کبر او عناد په وجه د نبوتونو نه انکار وکړو او دروغ ئې ووئيل، ځکه چه يوسف عليه السلام اُوس يو څو ورځې مخکښې په مصر کښې تير شوې وو، او دا خبره هر چاته معلومه وه چه هغه نبي وو، يا دا چه هغه د هغۀ د نبوت نه منکر وو.

وَقَالَ مُوۡسٰى رَبِّىۡۤ اَعۡلَمُ: پدې آيت کښې دوه خبرې دي (۱) يو دا چه هدايت چه چا راوړيدې چه هغه زۀ يم په ما الله ښۀ پوهه دې، که زۀ دروغژن يم او ساحر يم نو ساحرانو او دروغژنو ته الله تعالیٰ دومره مهلت نۀ ورکوی بلکه نزدې زمانه کښې به مې هلاك کړي ستاسو وهلو ته به ضرورت نۀ وي، ځکه چه الله تعالیٰ د مجرمانو ملګرې نۀ وي. او که چرته ما د الله د طرفنه هدايت راوړې وي نو الله به ما ته غلبه راکوی ځکه چه الله تعالیٰ د هدايت ملګرې دې.

وَمَنْ تَكُوْنُ لَهٗ عَاقِبَةُ الدَّارِ: یعنی که ما ته الله تعالیٰ ښهٔ انجام راکړو نو دلیل به وی چه زهٔ په حقه یم او که زما انجام ئے خراب کړو نو دلیل به وی چه زهٔ په باطله وم۔

نو پدے کښې اشاره ده چه وخت په وخت الله تعالیٰ دے نبی (محمد رسول الله ﷺ) ته غلبه ورکوی نو دا نښه ده چه دا حق نبی دے، او دا استدلال په قرآن کریم کښې الله تعالیٰ بار بار کړیدے۔

اِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الظّٰلِمُوْنَ: لنډه دا ده چه ظالمان ناکام دی، که زهٔ ظالم یم او دروغ وایم نو زهٔ به ناکام یم او که تاسو د الله سره شریکان جوړوئ او د هغه د نبی رسالت نهٔ منئ نو تاسو به ناکام شئ، نو پدے طریقه په آرام آرام فرعون راګیریدو تردے چه هلاکت کندے ته ورسیدو، دلیل وو چه موسیٰ علیه السلام په حقه وو۔ او دغه شان حال د ابوجهل او د هغه د ملګرو وو۔

| وَقَالَ فِرْعَوْنُ يٰٓاَيُّهَا الْمَلَاُ مَا عَلِمْتُ لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرِيْ ج |
|---|
| او ووئیل فرعون اے مشرانو د قوم نهٔ پیژنم تاسو لره هیڅ حقدار د بندګئ سوئ زما نه |
| فَاَوْقِدْ لِيْ يٰهَامٰنُ عَلَى الطِّيْنِ فَاجْعَلْ لِّيْ صَرْحًا لَّعَلِّيْٓ |
| نو بل کړه (اُور) زما دپاره اے هامانه په ختو باندے نو جوړه کړه ما لره بنګله شاید چه زهٔ |
| اَطَّلِعُ اِلٰٓى اِلٰهِ مُوْسٰى لا وَاِنِّيْ لَاَظُنُّهٗ مِنَ الْكٰذِبِيْنَ ﴿۳۸﴾ |
| به اُوخیژم په اِلٰهٖ د موسیٰ پسے او یقیناً زهٔ خامخا ګمان کوم په دهٔ باندے د دروغژنو نه۔ |
| وَاسْتَكْبَرَ هُوَ وَجُنُوْدُهٗ فِي الْاَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَظَنُّوْٓا |
| او لوئی اُوکړو دهٔ او لښکرو ددهٔ په زمکه کښې په غیر د حق نه او ګمان ئے اُوکړو |
| اَنَّهُمْ اِلَيْنَا لَا يُرْجَعُوْنَ ﴿۳۹﴾ فَاَخَذْنٰهُ وَجُنُوْدَهٗ |
| چه بیشکه دوی به مونږ ته نهٔ شی راګرځولے۔ نو راونیول مونږ دهٔ لره او لښکرو ددهٔ |
| فَنَبَذْنٰهُمْ فِي الْيَمِّ ج فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۴۰﴾ |
| نو ګوزار کړل مونږ دوی په دریاب کښې نو اُوګوره چه څنګه شو انجام د ظالمانو۔ |

**تفسیر**: شوکانیؒ وائی چه فرعون د موسیٰ علیه السلام ددے پُر اثر تقریر په آوریدو سره

ویریدهٔ چه هسې نهٔ خلق پرې ایمان راوړی، دې وجې نه هغهٔ ته ښه پته وه چه د هغهٔ رب الله دې، خالص خپل قوم له د دهوکې ورکولو دپاره ئې وویل چه اې خلقو! ماته خو معلومه نهٔ ده چه مانه سوئ ستاسو بل کوم معبود شته چه دا کس تاسو له د هغهٔ د بندګئ او طاعت دعوت درکوی۔ او د خپل کبر او لوېئ مظاهره کولو سره ئې خلقو له د خپل پوره قدرت یقین ورکولو دپاره خپل وزیر هامان ته وویل چه د پخو ښختو یو اُوچت محل جوړ کړه چه په هغې باندې زهٔ اُوخیژم او د موسیٰ د معبود سُراغ معلوم کړم، حالانکه زهٔ خو اُوس په دې حالت کښې هغه دروغژن ګڼړم۔ انتهیٰ۔

ابن کثیرؒ لیکی چه فرعون د الله د وجود نه منکر وو، دې وجې نه هغهٔ خپل قوم له یقین ورکول وغوښتل چه موسیٰ په خپله دې دعویٰ کښې بیخی دروغژن دې چه مانه سوئ بل کوم معبود هم شته۔ ددهٔ همدا خبره د سورة الشعراء په (۲۹) آیت کښې داسې بیان شوې: ﴿لَئِنِ اتَّخَذْتَ اِلٰهًا غَيْرِیْ لَاَجْعَلَنَّكَ مِنَ الْمَسْجُوْنِيْنَ﴾ (که چرې تا مانه سوئ بل څوک معبود جوړ کړو، نو زهٔ به تا په قید کښې واچوم)

او د سورة النازعات په (۲۳، ۲۴، ۲۵) آیتونو کښې راغلی دی: ﴿فَحَشَرَ فَنَادٰى ○ فَقَالَ اَنَا رَبُّكُمُ الْاَعْلٰى فَاَخَذَهُ اللّٰهُ نَكَالَ الْاٰخِرَةِ وَالْاُوْلٰى ○اِنَّ فِیْ ذٰلِكَ لَعِبْرَةً لِّمَنْ يَّخْشٰى﴾

(بیا هغهٔ یعنی فرعون ټول راجمع کړل او آواز ئې وکړو، ستاسړنُ و د ټولو رب زهٔ یم، نو الله هغه د دنیا او د آخرت په عذاب ګرفتار کړو، بیشکه په دې کښې هغه کس دپاره عبرت دې چه یریږی)۔

مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرِیْ: ددې یو مطلب دا دې چه زما نه بغیر به بل اِلٰه نهٔ نیسئ صرف ما به اِلٰه ګڼړئ۔ ۲- بِغَيْرِ اِذْنِیْ۔ زما د اجازت نه بغیر به د بل اِلٰه بندګی نهٔ کوئ، لکه فرعون د خلکو دپاره ډیر آلهه مقرر کړی وو لکه سورة الاعراف (۱۲۷) آیت کښې تیر شویدی ﴿وَيَذَرَكَ وَاٰلِهَتَكَ﴾ خلکو ته ئې وئیلی وو چه د نمر او د چیلو او د سخو عبادت کوئ۔ نو مطلب ئې دا شو چه زما عبادت او زما په امر باندې به د نورو څیزونو عبادت کوئ او د موسیٰ (عليه السلام) خبره به نهٔ منئ چه دا مو د الله تعالیٰ بندګئ ته رابلی۔

فَاَوْقِدْ لِیْ: یعنی موسیٰ (عليه السلام) چه دا خبرې کوی چه الله شته او بره په عرش باندې دې، دا خبرې ما ته دروغژنې ښکاره کیږی، آسمان کښې الله نشته۔ دې نه معلومه شوه چه څوک د الله فوقیت نهٔ منی هغه پدې عقیده کښې فرعون دې۔ نو د موسیٰ (عليه السلام) په ګمان واخله چه الله بره دې، نو زهٔ داسې کوم چه بره الله ته ورخیژم او ددهٔ د الله مقابله کوم

او دا خبره بعینه ابو جهل هم کړے وه چه رسول الله ﷺ ته ئے وویل : ستا او ستا د رب لاس دِ بے راخلاص وی، [اَنَا سَیِّدُ هٰذَا الْوَادِیْ] زهٔ ددے وادی سردار یم۔ ستا رب هم ماته څه نشی کولے او زهٔ به خپل نادی (مجلس والو) ته آواز وکړم نو الله وفرمایل : ﴿ فَلْيَدْعُ نَادِيَهُ سَنَدْعُ الزَّبَانِيَةَ ﴾ ۔ (العلق: ۱۸) (دے دِ بے خپلو مجلس والو ته آواز وکړی زر دے چه مونږ به زبانیه (سخت نیونکی) ملائك راوغواړو)۔

وَاِنِّیْ لَاَظُنُّهٗ مِنَ الْكٰذِبِيْنَ : یعنی دے ما ته دروغژن ښکاری، ددهٔ الله به بره نهٔ وی او هسے به مے په عذاب کړی۔ دائے په قوم باندے لویه دسیسه واچوله۔

سوال دا دے چه دا خو هرچا ته بلکه فرعون ته هم معلومه ده چه دومره لویه قلعه نشی جوړولے چه آسمان پورے پورته شی نو بیا ئے ولے داسے خبره وکړه؟

جواب دادے چه دا د کافرانو ناشنا فرعونی سیاست دے چه د عوامو ذهنونه مصروف کول او د حق او هدایت نه اړول، هغه دا چه فرعون قلعه شروع کړه نو پدے قلعه باندے به سل دوه سوه کاله بلکه ډیر تیرېږی، نو خلك به په انتظار کښې ناست وی چه فی الحال لا د موسیٰ علیه السلام خبره نهٔ منو بلکه د فرعون ورسره مقابله ده چه کله هغه وخیژی بره او د الله سره مقابله وکړی، او دا مقابله ختمه شی نو بیا به گورو چه د چا خبره حقه ده۔ نو پدے طریقه به د موسیٰ علیه السلام بیان ضائع لاړ شی۔

او دا اُوس هم د کافرانو سیاست دے چه کله خلك دین ته متوجه شی نو دوی زر یو داسے لانجه رامخے ته کړی چه د خلکو ذهنونه د مهمو خبرو نه په هغے مصروف کړی۔ نو معلومه شوه چه فرعون د الله د فوقیت نه منکر وو، او دارنگه بناء په یو قول دهری وو او د خلکو ذهنونه به ئے د حق نه په غلطو خبرو مصروفه کول، او د موسیٰ علیه السلام خبرے به ئے ضائع کولے۔

فَاَوْقِدْ لِیْ: نه مراد پخے خختے جوړول دی او دا طریقه د فرعون ایجاد دے۔

وَاسْتَكْبَرَ هُوَ وَجُنُوْدُهٗ فِی الْاَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ: یعنی فرعون او فرعونیانو خلکو ته ځانونه لوئی ښکاره کړل حال دا چه د هیڅ لوئی لائق نهٔ وو ځکه چه هر قسم کبریاء او لوئی خو صرف د الله دپاره ده، او دوئ د مرگ نه پس ژوند او قیامت نه انکار وکړو، او گمان ئے وکړو چه ددے ژوند نه پس به هیڅ یو ژوند نهٔ وی۔ دے وجے نه الله عز وجل دا ټول په خپله نیوکه کښې را ونیول، او په سمندر کښې ئے ډوب کړل۔ ونیلے کیږی چه د ډوبیدونکو شماره اتلس لکهه وه۔ والله اعلم۔

بِغَیْرِ الْحَقِّ : ۱- ناحقه۔ ۲- یا په باطلٔ ئې تکبر کولو۔

| وَجَعَلْنَاهُمْ أَئِمَّةً يَدْعُونَ إِلَى النَّارِ وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ |
| --- |
| او اُوګرځول مونږ دوی لره امامان چه دعوت ورکوی اُور ته او په ورځ د قیامت به |
| لَا يُنْصَرُوْنَ ﴿۴۱﴾ وَأَتْبَعْنَاهُمْ فِي هَذِهِ الدُّنْيَا لَعْنَةً وَيَوْمَ |
| د دوی مدد نشی کولے۔ او مونږ وروسته کړو د دوی پسے پدے دنیا کښې لعنت او په ورځ |
| الْقِيَامَةِ هُم مِّنَ الْمَقْبُوحِينَ ﴿۴۲﴾ وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَى |
| د قیامت به دوی د بد حاله (بد شکلو) خلقو نه وی۔ او یقیناً ورکړے وو مونږ موسیٰ ته |
| الْكِتَابَ مِن بَعْدِ مَا أَهْلَكْنَا الْقُرُوْنَ الْأُوْلَى بَصَائِرَ لِلنَّاسِ |
| کتاب روستو د هغے نه چه هلاك کړل مونږ پیړۍ مخکښۍ دپاره د پوهے د خلقو (د |
| وَهُدًى وَرَحْمَةً لَّعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُوْنَ ﴿۴۳﴾ |
| عقل خبرے وے دپاره د خلقو) او هدایت او رحمت وو دے دپاره چه دوی نصیحت واخلی۔ |

**تفسیر** : یعنی الله تعالیٰ دویٔ د راتلونکو دنیا والو دپاره د کفر او سرکشی کونکو امامان او مُقتدیٔ جوړ کړل چه روستو خلك به راځی او د دوی تقلید به کوی او د دوی په شان شرك او کفر او د نبوت او آخرت نه به انکار کوی چه دا سبب د اُور دے۔ او بیا د قیامت په ورځ به د هغویٔ هیڅ مددګار نهٔ وی، بلکه ذلت او رسوایئ سره به جهنم ته ګذار کړے شي۔

**وَجَعَلْنَاهُمْ أَئِمَّةً** : او دے ته جعل تکوینی وائی یعنی الله تعالیٰ تقدیری فیصله کړے وه چه فرعون به امام الْمُعَطِّله او امام الْمُشْرِكِیْن وی، او الله تعالیٰ داسے کار د بعض خلکو سره کوی، کله چه هغوی کښې تکبر او بغاوت وی نو الله تعالیٰ ترے د کفر او د فساد کارونه اخلی، خپله هم ګمراه وی او نور زرګونه خلك هم ددهٔ په لاس ګمراه شی، دا په دهٔ کښې دننه یو فساد وی د هغے په وجه ورته الله تعالیٰ دا سزا ورکوی۔

ددے مثال دا دے چه یو مُلا به وی چه لس دولس کاله علم به ئې کړے وی او په جمات کښې به ناست وی او خلکو ته به شرك وربنائی، د حق سره به ضد کوی او د قرآن او

حدیث نـه بـه خلك اړوی او ځان نه به ئے ګمراه جوړ کړے وی، ته به حیران شے چه دا خو ملا دے ولے خلك د الله د حقے لارے نه اړوی او په حق پرستو طعنونه وائی، نو وجه دا ده چه ددۀ پـه نـفـس کـښې یو خباثت او تکبر او تعصب او نور مرضونه وی چه الله تعالیٰ ته معلوم دی نو الله ورله سزا ورکړی چه راځه تۀ مے د ګمراهانو مشر کړے، تا نه د ګمراهئ کار اخـلـم نـو ددۀ پـه لاس ډیر خـلـك ګـمـراه کړی. او دداسے حالت نـه پـه الله پورے امان غـوښتـل پـکـار دی. او الله تـعـالیٰ داسے کار د خبیثو نفسونو سره کوی او د چا په نفس کـښې چه طیبت وی نـو الله تعالیٰ ئے د هدایت امامان جوړوی. ﴿ وَجَعَلْنَاهُمْ اَئِمَّةً يَهْدُوْنَ بِاَمْرِنَا لَمَّا صَبَرُوْا وَكَانُوْا بِآيَاتِنَا يُوْقِنُوْنَ﴾ (الم السجده : ٢٤)

وَاَتْبَعْنَاهُمْ : پـدے کـښې دنیـوی او اُخروی عذاب دواړه ذکر کوی یعنی مونږ په دے دنیا کـښې په دوئ لـعـنـت ولیـږلـو، او د خپـل رحمت نه مو لرے کړل، او په آخرت کښې به هم دوئ زمـونـږ د هـر خیـر او رحـمـت نـه لـرے کیـږی، او د اُور د عذاب په ذریعه به د هغوئ مخونه ورانولے شی، بد شکله کولے به شی.

اَلْمَقْبُوْحِيْنَ : مقبوح : ١- اَلْـمَطْرُوْدُ الْمُبْعَدُ. د الله د رحـمـت نه لرے کړے شوے، شړلے شوے. ٢- اَلْمُشَوَّهُ الْخِلْقَة : بـد حـالـه او بـد شکل. یعنی الله به پرے ناشنا داغونه وهلی وی لکه شینوالے د سترګو او توروالے د مخونو.

٣- ابـو عبیـدةؒ، ابـن کیسـانؒ وائی : مِـنَ الْـمُهْـلَكِيْنَ الْمَمْقُوْتِيْنَ. دوی بـه د هلاك شوو، غضب کړے شوو نه وی. (البحر المحیط وفتح البیان)

٤- ابـن عـاشورؒ وائی : مقبوح هغه چا ته وائی چه هغه ته په (قبح) سره کنځل وشی. یعـنی د بد وئیلے شوو نه به وی. یعنی تول خلك به ئے بدی بیانوی چه ډیر ناکاره خلك وو.

وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوْسَى الْكِتَابَ : (١) امام شوکانیؒ لیکی چه د ځینو خلقو په نیز د [قرونِ اُولیٰ ] نه مراد د نوح، عاد، ثمود او د تیرے شوے زمانے نور قومونه دی.

(٢) او بـعـض وائـی چـه دے نـه مـراد فـرعـون او د هغـهٔ کافر قوم دے. دواړه مطلبونـه صحیح دی.

د آیت معنیٰ داده چه هر کله الله تعالیٰ دغه پورتنی کافر قومونه هلاك کړل، او فرعون او فرعونیان ئے هلاك کړل، نو هغهٔ په موسیٰ ﷺ باندے تورات نازل کړو.

ابن کثیرؒ لیکی چه د تورات نازلیدو نه پس هیڅ یو قوم په استیصالی عذاب (یعنی د

ځیلې نه) نهٔ دي هلاك كړې شوي، بلكه مومنانو ته د مشركانو سره د جهاد كولو حكم وركړې شو، هان يو يو كلي باندې عذاب راغلې او راځي.

ابن جريرؒ د ابو سعيد خدري ﷺ قول نقل كړې چه د تورات نازليدو نه پس الله تعالیٰ هيڅ يو قوم په آسماني يا زميني عذاب سره د ځيلې هلاك كړي نهٔ دي، سوئ د هغه كلي والو نه چه د هغوئ شكلونه مسخ كړې شو او شادوگان جوړ كړې شو.

بيا ولې د جهاد فرض كيدو نه روستو استيصالي عذابونه ختم شو؟ نو دې كښې به ډير حكمتونه وي چه الله تعالیٰ ته معلوم دي، او دا حكمة هم كيدې شي چه په جهاد فرض كولو سره په امتونو باندې رحم وشو چه د دوي په لاس سره د دشمنانو په هلاكولو باندې د دوي سينې يخې شي. او كيدې شي چه ډيرو ته پكښې د ايمان توفيق ملاؤ شي.

مِنۢ بَعۡدِ : د مخكنو قومونو د هلاكت نه روستو ئې د تورات د نازلولو ذكر وكړو پدې كښې اشاره ده چه د الله كتاب ته سخت ضرورت پيدا شو پدې وجه الله تعالیٰ نازل كړو نو پدې كښې به اشاره وي چه قرآن كريم هم د سخت ضرورت په وخت كښې راغلې دې.

بَصَآئِرَ لِلنَّاسِ : الله تعالیٰ د تورات صفت دا بيان كړې چه دا د خلقو دپاره نُورِ بصيرت دې، او حقې لارې طرفته لاره ښائي، او نيك عمل طرفته رهنمائي كوي. او دا دې دپاره نازل شوې چه د هغه زمانې خلق د هغې نه نصيحت حاصل كړي او د هغې په تعليماتو عمل وكړي.

په بَصَآئِرَ كښې دليلونو او مثالونو ته اشاره ده او په (هُدًى) كښې عقيدې او اعمالو ته او په (رَحۡمَةً) كښې بشارتونو او ثوابونو ته اشاره ده.

يَتَذَكَّرُونَ : يعنى خبره راياده كړي. او د پخوانو خلكو نه نصيحت واخلي. د الله كتاب انسان ته هيرې شوې خبرې رايادوي، ځكه چه په انسان باندې غفلت زيات راځي نو د غفلت نه د رابيدارو ښائسته سبب د الله كتاب دې.

| وَمَا كُنتَ بِجَانِبِ ٱلۡغَرۡبِيِّ إِذۡ قَضَيۡنَآ إِلَىٰ مُوسَى |
|---|
| او نهٔ وې ته په طرف مغربي كښې كله چه فيصله اُوكړه مونږ موسیٰ (عليه السلام) ته |
| ٱلۡأَمۡرَ وَمَا كُنتَ مِنَ ٱلشَّٰهِدِينَ ﴿٤٤﴾ وَلَٰكِنَّآ أَنشَأۡنَا قُرُونًا فَتَطَاوَلَ عَلَيۡهِمُ |
| د وحي او نهٔ وې ته د حاضرو ناظرونه. ليكن مونږ راپيدا كړلې پيړئ نو اُوږد شو په دوي |

| |
|---|
| الْعُمُرُ ج وَمَا كُنْتَ ثَاوِيًا فِيْٓ اَهْلِ مَدْيَنَ تَتْلُوْا عَلَيْهِمْ |
| باندے عمر او نهٔ وے تهٔ اوسیدونکے په مدین والو کښې چه تا لوستلے په دوی باندے |
| اٰيٰتِنَا لا وَلٰكِنَّا كُنَّا مُرْسِلِيْنَ ﴿٤٥﴾ وَمَا كُنْتَ بِجَانِبِ الطُّوْرِ اِذْ نَادَيْنَا |
| آیتونه زمونږ لیکن وو مونږ رالیږونکی۔ او نهٔ وے تهٔ په طرف د طور کښې کله چه آواز |
| وَلٰكِنْ رَّحْمَةً |
| اوکړو مونږ (موسیٰ ته د پاره د کتاب ورکولو) لیکن (مونږ راولیږلے تهٔ) دپاره رحمت |
| مِّنْ رَّبِّكَ لِتُنْذِرَ قَوْمًا مَّآ اَتٰـهُمْ |
| د طرف د رب ستا نه دے دپاره چه اُویروے هغه قوم چه نهٔ دے راغلے دوی ته |
| مِّنْ نَّذِيْرٍ مِّنْ قَبْلِكَ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُوْنَ ﴿٤٦﴾ |
| څوك يره وركونكے مخكښې ستا نه دے دپاره چه دوی نصيحت واخلي۔ |

**تفسیر** : پدے درے آیتونو کښې الله تعالیٰ د رسول الله ﷺ او د قرآن کریم رشتین والے بیان کړے څکه چه موسیٰ ؑ، د مدین والو او د فرعونیانو کومے واقعے چه پورته بیان شوی دی، ددے علم خو یا په لیدلو سره حاصلیدلے شی، یا د تاریخ په پاڼرو اړولو سره، او نبی کریم ﷺ تـه دا دواړه خبرے حاصلے نهٔ وے، نهٔ په سوونه کاله مخکښې واقع کیدونکے دے واقعے پـه وخت هـغـه مـوجـود وو، او نهٔ هغه لیك لوست کول پیژنی چه د تاریخ د کتابونو نـه ئے حاصل کړے وے۔ دے وجے نه ثابته شوه چه هغهٔ ته دا خبرے الله تعالیٰ د وحی په ذریعه ښودلی دی۔

الله تـعـالیٰ فرمائی چه د کوهِ طور په هغه مغربی علاقه یا مغربی میدان کښې اے نبی ! تـهٔ مـوجـود نـهٔ وے چرته چه الله موسیٰ ؑ سـره خبـرے کـړے وے، او هـغهٔ له ئے د نبی مُرسَل کیدو خبر ورکړے وو۔ ددے بـاوجـود ددے واقعے صحیح خبر ورکول ددے خبرے دلیل دے چه دا آیتونه په تا باندے د الله د طرفه نازل شوی۔

الْاَمْرَ: د کار نه مراد اِرْسَال او اِنْبَاء ده۔ یعنی هغه ته مے رسالت او نبوت ورکولو۔

او د قَضَيْنَا معنیٰ ده کله چه مونږ مضبوطولو هغه سره کار د رسالت۔

❁ یـا حواله کولو مونږ هغهٔ ته کار د پیغمبرئ۔ ❁ یـا کله چه مونږ فیصله کوله د هغه

سره د کار د نبوت۔
مِنَ الشّٰهِدِيْنَ: یعنی د وحی په ځای کښې هم حاضر نهٔ وې چه هغه د کوهٔ طور مغربی جانب دے او په هغه علاقه کښې هم حاضر نهٔ وې۔ یا شَاهِدِيْنَ د مشاهدے نه دے کتلو ته وائی۔ یعنی ته هلته حاضر هم نهٔ وې او ددے حالت کتونکے هم نهٔ وې۔
دا آیت ښکاره دلیل دے چه نبی کریم ﷺ حاضر ناظر نهٔ دے او نهٔ وو۔ که څوك دا عقیده ساتی نو د قرآن د صریحو آیتونو او د ګڼړو احادیثو خلاف کوی۔
وَلٰكِنَّآ اَنْشَاْنَا: پدے کښې د رسول الله ﷺ د رالیږلو سخت حاجت او ضرورت بیانوی۔ د موسیٰ علیه السلام نه پس ډیر قومونه پیدا شول، په دے اوږده موده کښې د اِلٰهی وحی سلسله بنده شوه، خلقو د الله تعالیٰ سره کړے وعدے او لوظونه هیر کړل، د هدایت د لارے نښے ورانے شوے، او ګمراهی عامه شوه، نو په انسانیت باندے د الله تعالیٰ د رحمت تقاضا وشوه چه ته ئے نبی جوړ کړے او دوی ته ئے را ولیږلے، دے دپاره چه ته دوی د کفر او شرك د تیارو نه وباسے او د ایمان او یقین لاره ورته وښائے۔
د موسیٰ علیه السلام مدین ته تلل، هلته لس کاله پاتے کیدل، او د شعیب علیه السلام د لور سره هغهٔ وادهٔ کول، دا ټولے واقعے چه کله کیدلے، دغه وخت رسول الله ﷺ هلته موجود نهٔ وو، نو بیا دا خبرے هغهٔ ته څنګه معلومے شوے۔ الله تعالیٰ په قرآن کریم کښې ددے واقعو متعلق آیتونه نازل کړل، چه د هغے په ذریعه هغهٔ ته دا معلومے شوے۔ که چرے هغه نبی نهٔ وے نو دا خبرے به ورته نهٔ معلومیدلے۔
قُرُوْنًا: ددے قرون نه مراد هغه ډیرے زمانے دی چه په هغے کښې رسول نهٔ وو راغلے چه دے ته د فَتْرَةٌ زمانه وائی۔
فَتَطَاوَلَ عَلَيْهِمُ الْعُمُرُ: ددے نه روستو تقدیر د عبارت داسے دے: [فَنَسُوْا عُهُوْدَ اللّٰهِ فَاَرْسَلْنَاكَ] نو دوی د الله وعدے هیرے کړے نو مونږ ته راولیږلے چه دوی ته دغه وعدے رایادے کړے۔ ✿ یا عبارت داسے دے: [فَعَمَّ الضَّلَالُ وَانْدَرَسَتْ مَعَالِمُ الْهُدٰى فَاَرْسَلْنَاكَ] ګمراهی عامه شوه او د هدایت نښے نښانے ورانے شوے نو مونږ ته راولیږلے۔
تَتْلُوْا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِنَا: ۱ – ددے نه مراد د شاګرد لوستل دی په استاذ باندے یعنی زده کول د هغه نه۔ او ددے طریقه دا وی چه شاګرد استاذ ته ووائی چه آیا دا خبره داسے ده، آیا دا داسے ده نو استاذ وائی چه آو۔ او مطلب ئے دا دے چه ته په مدین کښې ډیره (وسیدونکے) نهٔ وې چه تا د هغوی نه دا واقعات زده کړی وی چه هغوی ته دے وئیلی

وی چه آیا دلته موسیٰ ؑ راغلے وو؟ او آیا طور کښې ورته وحی شوے وه؟ او هغوی وئیلی وی چه آو، همداسے شویدی. ۲- یا عبارت په خپل ظاهر دے او ضمیر مکے والو ته راجع دے. او مطلب دا دے چه ته په مدین کښې دیره نهٔ وے چه مکے والو ته تهٔ زمونږ هغه آیتونه لولے چه په هغے کښې د موسیٰ ؑ د مدین د حالاتو ذکر دے. (فتح البیان)

وَمَا كُنْتَ بِجَانِبِ الطُّوْرِ: کوهِ طور خواته چه کله الله تعالیٰ د موسیٰ ؑ سره خبرے وکړے، او هغهٔ ته ئے د هغهٔ د نبی کیدو خبر ورکړو، او حکم ئے وکړو چه هغه د خپل ورور هارون سره د فرعون خواته د توحید پیغام یوسی لاړ شی، دغه وخت رسول الله ﷺ هلته موجود نهٔ وو-که چرے دا نبی نهٔ وے نو دا خبرے به هغهٔ ته څنګه معلومیدلے.

اِذْ نَادَيْنَا : ۱- لِإِعْطَاءِ الْكِتَابِ - دلته نداء (آواز) د کتاب ورکولو دپاره وو. او مخکښې آواز د نبوت ورکولو دپاره وو. ۲- لِإِعْطَاءِ الرِّسَالَةِ - او دا آواز د رسالت دپاره هم صحیح کیږی لکه سورة الشعراء (۱۰) آیت کښې تیر شو ﴿وَإِذْ نَادٰى رَبُّكَ مُوْسٰى اَنِ ائْتِ الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ﴾ - دا دوه مصداقه غوره دی.

۳- چا دا وئیلی دی چه دا نداء امت محمدیه ته وه او هغوی ته ئے داسے وویل :

[يَا أُمَّةَ مُحَمَّدٍ ! قَدْ اَعْطَيْتُكُمْ قَبْلَ اَنْ تَسْاَلُوْنِىْ وَاسْتَجَبْتُ لَكُمْ قَبْلَ اَنْ تَدْعُوْنِىْ]

اے امتِ محمدیه ! ما تاسو ته ستاسو د غوښتو نه مخکښې درکړل او ستاسو د دعا غوښتو نه مخکښې مے قبولوالے وکړو. او دا آواز ئے موسیٰ ؑ ته آورولے وو نو پدے وجه موسیٰ ؑ وئیلی وو چه اے الله ! داسے غوره امت به دے ما ته راکړے وے.

نو هغه ورته فرمایل: تِلْكَ أُمَّةُ اَحْمَدَ - دا د محمد (ﷺ) امت دے، ستا نهٔ دے. دا تفسیر دومره ښکاره نهٔ دے.

وَلٰكِنْ رَّحْمَةً: ددے نه مخکښې عبارت پټ دے اَىْ وَلٰكِنْ اَرْسَلْنَاكَ رَحْمَةً مِنْ رَّبِّكَ - یعنی لیکن مونږ تهٔ راولیږلے چه دا رحمت دے د طرفه د رب ستا نه په تا او په نور امت باندے.

قَوْمًا: ددے نه مراد مکے والا دی. او دوی ته د عیسیٰ ؑ نه روستو کوم رسول نهٔ وو راغلے چه دا د پنځه سوه پنځوس کاله زمانه وه (فتح البیان)

او بعض شپږ سوه لس کاله ذکر کوی. (الرحیق المختوم) او همدا راجح ده.

يَتَذَكَّرُوْنَ: دے دپاره چه دوی ستا د اِنذار نه نصیحت واخلی او خبره رایاده کړی.

وَلَوۡلَاۤ اَنۡ تُصِيۡبَهُمۡ مُّصِيۡبَةٌ ۢ بِمَا

او که چرته نهٔ وے دا خبره چه اُورسیږی دوی ته څه مصیبت په سبب د هغے عملونو چه

قَدَّمَتۡ اَيۡدِيۡهِمۡ فَيَقُوۡلُوۡا رَبَّنَا لَوۡلَاۤ اَرۡسَلۡتَ اِلَيۡنَا

مخکښې لیږلی دی لاسونو د دوی نو وائی به اے ربه زمونږ ولے تا نهٔ رالیږلو مونږ ته

رَسُوۡلًا فَنَتَّبِعَ اٰيٰتِكَ وَنَكُوۡنَ مِنَ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ ﴿۴۷﴾ فَلَمَّا

یو رسول نو تابعداری به کړے وے مونږ د آیتونو ستا او وے به د مؤمنانو نه۔ نو هرکله

جَآءَهُمُ الۡحَقُّ مِنۡ عِنۡدِنَا قَالُوۡا لَوۡلَاۤ اُوۡتِىَ مِثۡلَ

چه راغے دوی ته حق د طرف زمونږ نه اُووئیل دوی ولے نهٔ ورکړے کیږی دهٔ ته پشان د

مَاۤ اُوۡتِىَ مُوۡسٰى ؕ اَوَلَمۡ يَكۡفُرُوۡا بِمَاۤ اُوۡتِىَ

هغے چه ورکړے شوے وو موسیٰ ته، آیا کفر نهٔ دے کړے دوی په هغه څه چه ورکړے

مُوۡسٰى مِنۡ قَبۡلُ ۚ قَالُوۡا سِحۡرٰنِ

شوے وو موسیٰ (علیه السلام) ته مخکښې ددے نه وئیلی دی دوی دا دوه جادوګران دی چه

تَظٰهَرَا ۟ وَقَالُوۡۤا اِنَّا بِكُلٍّ كٰفِرُوۡنَ ﴿۴۸﴾

د یو بل مددئے کړیدے او وئیلی دی دوی چه یقیناً مونږ په هریو باندے کفر کونکی یو۔

**تفسیر:** پدے آیت کښې حکمة د ارسال الرسل بیانیږی۔ یعنی د پیغمبرانو د رالیږلو حکمة دا دے چه خلکو ته اِنذار (یره) ورکړی او د هغوی عذر او بهانه ختمه کړی۔ او الله ته د عذر ختمول ډیر خوښ دی نو ځکه رسولان رالیږی۔

نو دلته خصوصی د مکے کافرانو په باره کښې وئیلے شوی چه د دوئ کفر او شرك او د دوئ سرکشی دومره وړاندے تلے ده چه په دوئ باندے عذاب راتلل پکار وو، لیکن د رسول الله ﷺ د بعثت نه مخکښې په دوئ باندے هیڅ قِسم عذاب په دے وجه نازل نشو، دے دپاره چه دوئ دا ونهٔ وائی چه اے الله! تا دِ عذاب نازلولو نه مخکښې مونږ ته ولے خپل رسول نهٔ رالیږهٔ، دے دپاره چه مونږ ستا د احکامو اتباع کړے وے او په تا مو ایمان

لرلے وے، او ددے عذاب نه خلاص شوی وے۔
**وَلَوْلَآ اَنْ تُصِيْبَهُمْ**: دلته لَوْلَا په قول د دوی داخل دے اَیْ وَلَوْلَا قَوْلُهُمْ وَقْتَ وُصُوْلِ الْمُصِيْبَةِ اِلَيْهِمْ بِسَبَبِ الشِّرْكِ وَالْمَعَاصِيْ۔ یعنی که د دوی دا وینا نهٔ وے په وخت د مصیبت رسیدو کښې دوی ته په سبب د گناهونو او شرك د دوی۔
نو ددے جواب پټ دے۔ [اَیْ لَعَذَّبْنَاهُمْ قَبْلَ اِرْسَالِكَ] یعنی مونږ به ستا د رالیږلو نه مخکښې دوی ته عذاب ورکړے وے۔ یا [لَمَا اَرْسَلْنَاكَ اِلَيْهِمْ] مونږ به تهٔ دوی ته نهٔ وے رالیږلے۔ (چه اُوس دوی ستا بی ادبی کوی او تا رد کوی)
**فَلَمَّا جَآءَهُمُ الْحَقُّ**: چنانچه الله تعالیٰ خپل رسول را اولیږهٔ او په دهٔ سره ئے حجت پوره کړو او د کافرانو دپاره ئے هیڅ عذر باقی پرے نښود، لیکن د رسول راتللو نه پس د دوئ حالت بدل نشو، بلکه ضد ئے شروع کړو او دا وینا ئے شروع کړه چه لکه څنګه چه موسیٰ له معجزات ورکړے شوی وو، که چرے محمد (ﷺ) هم رسول دے، نو دهٔ له هم دغه معجزات ولے ورنهٔ کړے شول چه ددے په لیدو سره به مونږ په دهٔ باندے ایمان راوړے وے۔ یعنی دریاب چاودل او مرزان او ترنجبین راتلل او وریځه سورے کول وغیره۔
**اَوَلَمْ يَكْفُرُوْا**: پدے کښې الله تعالیٰ د دوئ د ضد جواب ورکوی چه دوی خو د موسیٰ ؑ د معجزاتو او تورات نه او ورسره ددے قرآن نه انکار کړیدے نو د معجزاتو طلب کولو نه د دوی مقصد دا نهٔ دے چه گنے واقعی دوی رشتینی دی او د معجزاتو په راتللو سره به دوی ایمان راوړی۔

## شان نزول

دلته مفسرینو د شان نزول په طور یوه خاص واقعه لیکلے ده چه حاصل ئے دا دے:
مکے ته د یهودو یو جماعت راغے، قریشو ورسره ملاقات وکړو، نو مشرکانو ترے تپوس وکړو چه زمونږ دے مکه کښې یو سړے پیدا شویدے او داسے خبرے کوی چه قیامت به راځی او شرك او بت پرستی ناروا کار دے، او ذبح او نذر د غیر الله په نوم حرام دے۔ آیا دا خبرے ستاسو کتاب کښې هم شته؟ نو هغوی وویل چه آؤ، دا مسئلے زمونږ په کتاب (تورات) کښې هم شته۔ نو مشرکان په غصه کښې راغلل او دا ئے وویل چه (سِحْرَانِ تَظَاهَرَا) تورات هم د جادو کتاب دے لکه څنګه چه دا قرآن جادو دے، او دے دواړو د یو بل مدد کړیدے، هغه جادو ددے جادو صفت کوی، او دا د هغه جادو صفت کوی۔ او هغه جادو په خپله زمانه کښې خلك گمراه کړل او محمد (ﷺ) مونږ په خپل

جادو سره گمراه کوي۔ ددے وجه نه مونږ د دواړو نه انکار کوو۔ نو دوی په دواړو باندے کفر وکړو لکه داسے په سورة الانعام (۹۱) آیت کښې ذکر شویدی ﴿ وَمَا قَدَرُوا اللهَ حَقَّ قَدْرِهِ إِذْ قَالُوْا مَا اَنْزَلَ اللهُ عَلٰى بَشَرٍ مِنْ شَيْءٍ ﴾ ۔ (دوی د الله لائق قدر ونکړو کله چه دوی ووېل، الله تعالیٰ په هیڅ انسان باندے هیڅ وحی نۀ ده نازله کړے)

او دغسے خبره د دوی روستو سورة سبا (۳۱) آیت کښې هم راروانه ده ﴿ وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَنْ نُؤْمِنَ بِهٰذَا الْقُرْآنِ وَلَا بِالَّذِيْ بَيْنَ يَدَيْهِ ﴾ (یعنی کافرانو ووېل چه دا قرآن هم نۀ منو او نۀ ددۀ نه مخکنی کتابونه منو)۔

او همدا تفسیر پدے آیت کښې ظاهر دے چه (يَكْفُرُوْا) کښې ضمیر مکے والو ته راجع دے لکه د روستو سیاق نه هم معلومیږی۔ او حاصل ئے دا دے چه کله چرے د قریشو کافران په خپله خبره کښې رشتینی دی نو بیا د محمد ﷺ نه مخکښے ئے په موسیٰ ﷺ باندے ولے ایمان نۀ دے راوړے۔

ضعیف تفسیر دا دے چه (يَكْفُرُوْا) کښې ضمیر فرعونیانو ته راجع دے او سِحْرَان په معنیٰ د سَاحِرَان سره دے۔ او مطلب دا دے چه کله د موسیٰ ﷺ د معجزو په شان معجزے راشی نو تاسو به داسے انکار وکړئ لکه څنګه چه فرعونیانو انکار کړے وو۔ یعنی که چرے د دوئ دا خبره صحیح وے چه کفار د معجزو لیدو نه پس ایمان راوړی، نو بیا فرعونیانو د معجزو لیدلو باوجود ولے د کفر لاره اختیار کړه، هغوئ هم د قریشو ددے کافرانو پشان انسانان وو، او د الله د الُوهیت منکر او په کفر اوسرکشئ کښې د حد نه تیر شوی وو۔ او د موسیٰ او هارون په باره کښې به ئے وئیلے چه دا دواړه جادوګر دی، او د خلقو په ګمراه کولو کښې د یو بل تعاون کونکی دی، او مونږ ددے دواړو د نبوت نه انکار کوو۔

ددے تفسیر د ضعف وجه دا ده چه د سیاق خلاف دے روستو ﴿ قُلْ فَاْتُوْا بِكِتَابٍ مِنْ عِنْدِ اللهِ ﴾ نه۔ دویم دا چه د سِحْرَان نه سَاحِرَان اخستل تاویل دے په غیر د ضرورت نه۔

| قُلْ فَأْتُوْا بِكِتٰبٍ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ هُوَ اَهْدٰى مِنْهُمَآ |
|---|
| اُووایه نو راوړئ یو کتاب د طرف د الله نه چه هغه بنه هدایت والا وی ددے دواړو نه چه |
| اَتَّبِعْهُ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿۴۹﴾ فَاِنْ لَّمْ يَسْتَجِيْبُوْا لَكَ |
| زۀ ئے تابعداری اُوکړم که یئ تاسو رشتینی۔ نو که چرته دوی قبول والے اُونکړو ستا |

فَاعْلَمْ اَنَّمَا يَتَّبِعُوْنَ اَهْوَآءَهُمْ ؕ وَمَنْ اَضَلُّ

نو پو هه شه چه بیشکه تابعداری کوی دوی د خواهشاتو خپلو او څوک دے لوئی گمراه

مِمَّنِ اتَّبَعَ هَوٰهُ بِغَيْرِ هُدًى مِّنَ اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِى

د هغه چا نه چه روان شو د خواهش خپل پسے په غیر د هدایت د الله نه، یقیناً الله هدایت

الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۵۰﴾ وَلَقَدْ وَصَّلْنَا لَهُمُ الْقَوْلَ لَعَلَّهُمْ

نهٔ کوی قوم ظالمانو ته۔ او یقیناً پرله پسے بیان کړیدے مونږ دوی ته وینا ددے دپاره چه

يَتَذَكَّرُوْنَ ﴿۵۱﴾ اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِهٖ

دوی نصیحت واخلی۔ هغه کسان چه ورکړیدے مونږ دوی ته کتاب مخکښ ددے نه

هُمْ بِهٖ يُؤْمِنُوْنَ ﴿۵۲﴾ وَاِذَا يُتْلٰى عَلَيْهِمْ قَالُوْٓا

دوی پدے باندے ایمان راوړی۔ او کله چه لوستلے کیږی په دوی باندے وائی دوی

اٰمَنَّا بِهٖٓ اِنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّنَآ

ایمان راوړیدے مونږ پدے باندے (پس د نزول نه) یقیناً دا (کتاب) حق دے د طرف د رب

اِنَّا كُنَّا مِنْ قَبْلِهٖ مُسْلِمِيْنَ ﴿۵۳﴾ اُولٰٓئِكَ يُؤْتَوْنَ

زمونږ نه یقیناً مونږ وو مخکښ ددے نه تابعداری کونکی۔ دغه کسان ورکولے به شی

اَجْرَهُمْ مَّرَّتَيْنِ بِمَا صَبَرُوْا وَيَدْرَءُوْنَ

دوی ته اجر د دوی دوه ځل په وجه ددے چه صبر ئے کړیدے او دفعه کوی دوی

بِالْحَسَنَةِ السَّيِّئَةَ وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ ﴿۵۴﴾

په نیکئ سره بدئ لره او د هغے مال نه چه مونږ ورکړیدے دوی ته خرچ کوی ئے۔

**تفسیر :** پدے کښ جواب دے ددے قول (سِحْرَانِ تَظَاهَرَا) الله تعالیٰ د نبی کریم ﷺ په ژبه کافرانو ته وفرمایل چه که تورات او قرآن د جادو د قبیلے نه دی، د الله نازل کړی کتابونه نهٔ دی، نو بیا تاسو د خپل علم مطابق د الله ددے نازل کړو دواړو کتابونو نه بل یو ښهٔ کتاب راوړئ، دے دپاره چه زهٔ په هغے عمل اوکړم۔ او چه په هغے کښ ئے شرك

جائز کړے وی خو پدے شرط چه د الله تعالیٰ د طرفنه وی، دا تحدی ده، (چیلنج دے)، او طریقه د مناظرے ده۔

فَإِنْ لَّمْ يَسْتَجِيبُوا لَكَ: دا بیان د عجز د هغوی دے د کتاب راوړو نه په خپل شرك باندے۔

الله تعالیٰ فرمائی: که چرے دویٔ داسے ونهٔ کړی، اونهٔ په دے دواړو کتابونو عمل وکړی، نو پوهه شه چه دویٔ د خپلو خواهشاتو بندګان دی، او د هغه سړی نه به غټ ګمراه څوك وی چه د الله تعالیٰ نازل کړے هدایت پریدی او د خپلو خواهشاتو تابعداری کوی۔

فَاعْلَمْ: دا دلیل دے چه څوك په خپله خبره شرعی دلیل نشی پیش کولے نو دا به د هغهٔ د خواهش خبره وی۔

بِغَيْرِ هُدًى مِّنَ اللَّهِ: دا ورسره څکه وائی چه کله یو تن د ظاهری دنیاوی خواهشاتو تابعداری کوی خو هغه د الله د طرفنه هدایت وی لکه خوراك، څکاك، د بیبیانو نه فائده اخستل او نور د دنیا مزے۔ دے کښ د الله بیان شته چه دا کارونه جائز دی۔

الظَّالِمِينَ: کښ اشاره ده چه سره د علم نه دوی عنادی کافران دی۔ او ظالمان دلته د خواهشاتو تابعدارو ته وئیل شویدی چه بغیر د دلیل نه وی۔

دلته حافظ ابن القیمؒ په ((بدائع التفسیر)) کښ لیکی: [فَمَنْ تَرَكَ اسْتِجَابَتَهُ ﷺ فَقَدِ اتَّبَعَ هَوَاهُ بَعْدَ ظُهُورِ السُّنَّةِ] چا چه د رسول الله ﷺ استجابت (د هغه د حکمونو منل) پریخودو نو یقیناً چه دے به د سنت د ښکاره کیدو نه روستو د خواهش تابعدار وی۔

وَلَقَدْ وَصَّلْنَا لَهُمُ الْقَوْلَ: مضمون: پدے آیت کښ ترغیب دے قرآن کریم ته او په روستو آیتونو کښ واقعه ده، او د قرآن کریم حقانیت پکښ ذکر دے۔ بیا رسول الله ﷺ ته تسلی ورکړے شویده بیا تخویف دے کافرانو ته۔

۱– د قول نه مراد وینا ده، [اَیْ بَیَّنَّا الْقُرْآنَ مُتَتَابِعًا] یعنی مونږ پرله پسے بیان کړے دا قرآن یعنی د قرآن مضامین وعد او وعید، دعویٰ او دلیلونه، قصص او احکام، امثال او مواعظ وغیره د یو بل سره پیوست پرله پسے مونږ بیان کړیدی۔ او دا دلیل دے چه قرآن موصول مربوط کتاب دے، د قرآن په آیتونو کښ ربط دے او بی ترتیبه کتاب نهٔ دے۔

۲– یا د اَلْقَوْلَ نه مراد وحی ده، یعنی مونږ وحی لره د رسولانو په واسطه پرله پسے رالیږلے ده دے دپاره چه د خلکو عذر ختم شی۔ نو داسے قوم نشته چه هغوی ته یو نبی نهٔ وی رالیږلے شوے۔

امام بخاریؒ د وصلنا معنیٰ په [بَیَّنَّاهُ وَاَتْمَمْنَاهُ] سره کړیده. یعنی مونږ واضح کړیدے او پوره مو بیان کړیدے دوی ته قرآن) معلومه شوه چه قرآن کامل بیانونکے کتاب دے.

لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُوْنَ: دے دپاره چه بندګان دا خبره رایاده کړه چه د الله تعالیٰ په مونږ باندے کوم حق دے، او مونږ چرته روان یو، او څه به کیږی.

اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ: اُوس په حقانیت د قرآن باندے د اهل کتابو نه دلیل نقلی پیش کوی.

دلته الله تعالیٰ خبر ورکړے چه د یهودو او نصاراؤ یوه ډله داسے ده چه قرآن کریم باندے ایمان لری چه دا د الله تعالیٰ کتاب دے او کله چه د دوئ په وړاندے ددے تلاوت کیږی نو دوئ وائی: مونږ ددے تصدیق کوو چه دا د الله تعالیٰ کتاب دے، او مونږ ددے د نازلیدونه مخکښے موحدین وو او په اخلاص سره به مو د الله عبادت کولو.

دا د یهودیانو او د نصاراؤ نه یو جماعت وو او مکے ته راغلی وو، دوی اتیا (۸۰) کسان وو، څلویښت (۴۰) د نجران او دوه دیرش (۳۲) د حبشو او اته (۸) کسان د شام نه وو، دے دپاره راغلی وو چه د رسول الله ﷺ حال معلوم کړی خپل قوم رالیږلی وو ځکه چه د رسول الله ﷺ د نبوت خبر خور شوے وو. او ډیر ښائسته خلك وو چه راتللو سره سمدست ئے ایمان زړونو ته پریوتو، او دا یوه لویه فتح وه چه رسول الله ﷺ ته الله تعالیٰ ورکړه چه بهر ملك کښ ملګری پیدا شو، کله چه دوی ایمان راوړو نو دوی دا هم وویل چه دا خبرے خو تورات کښ هم دی، او دا کتاب خو مونږ مخکښ نه اجمالًا منلو اُوس مو تفصیلًا ایمان راوړو، او په قرآن باندے ډیر خوشحاله شو.

پدے کښ د دوی سره ابوجهل ملاؤ شو او دا ئے ورته ووېل: [مَا رَاَيْنَا وَفْدًا اَحْمَقَ مِنْكُمْ] مونږ ستاسو نه غټ کم عقل وفد نۀ دے لیدلے)،

تاسو خپل قوم ددے دپاره راولیږلی چه محمد وپیژنئ چه څنګه دے او تاسو پرے بغیر د سوچ او فکر نه سمدست ایمان راوړو. او بیا ئے دوی ته سختے کنځلے وکړے چه مونږ محمد پیژنو چه جادوګر او لیونے دے او مونږ ته معلوم دے او تاسو د بهر نه راغلئ او په دۀ مو ایمان راوړو ځکه چه ابوجهل ډیر فاحش انسان وو، نو هغوی ورته جواب ورکړو چه ستا خپل کار دے او ز مونږ خپل، مونږ ته دا د الله تعالیٰ حق نبی ښکاره شو، نو مونږ پرے ایمان راوړو او که تاسو پرے ایمان نۀ راوړئ نو مۀ ئے راوړئ، او تۀ جاهل ئے مونږ تا سره بحث نۀ کوو، خپل کار کوه. نو دا آیتونه الله تعالیٰ د هغوی د وینا مطابق راولیږل

او د مکې په مشرکانو ئې رد وکړو. او ددې ایمان والو صفت ئې وکړو.

هُمۡ بِهٖ يُؤۡمِنُوۡنَ: يعنې مخکښې د نزول د قرآن نه پدې باندې اجمالًا ايمان راوړی او (آمَنَّا بِهٖ) نه مراد پس د نزول نه تفصيلًا ايمان راوړل دی.

بِهٖ: ضمير قرآن ته راجع دے. يا الكتاب ته راجع دے يعنې دوی په خپل كتاب ايمان لري نو د هغې په واسطه سره بيا په قرآن ايمان راوړی، او دا د الله تعالىٰ قانون دے چه چا د جاهليت په زمانه كښې په دين عمل كړے وی نو الله ورته د اسلام توفيق وركړيدے، كوم يهودو چه په خپل دين عمل كولو نو الله ورته په قرآن باندې د ايمان راوړو توفيق وركړو، او كوم يهوديانو چه په خپل دين كښې تنگی كوله نو الله ورله د قرآن توفيق ورنكړو. او دا قانون اُوس هم دے چه كوم بدعتی چه په گناهونو كښې غليظ وی، الله ورله په قرآن او حديث باندې د عمل توفيق نهٔ وركوی، صحيح اهل الحديث ترې نهٔ جوړيږی.

اُولٰٓئِكَ يُؤۡتَوۡنَ اَجۡرَهُمۡ مَّرَّتَيۡنِ: د يهودو د پورتنۍ ډلې نه مراد هغه اهلِ كتاب دی چه هغوئ د رسول الله ﷺ زمانه ومونده، او په هغهٔ او په قرآن كريم باندې ئې ايمان راوړو، لكه عبد الله بن سلام او سلمان فارسی او نجاشی رضی الله عنهم او داسې نور. د دوئ په باره كښې الله وفرمايل چه دوئ له به دوچنده اجر ملاويږی، يو اجر د اسلام نه مخكښې په تورات او انجيل باندې د ايمان راوړلو او په دې باندې د عمل كولو، او دويم اجر په قرآن او په نبی كريم ﷺ باندې د ايمان راوړلو او په اسلام باندې د عمل كولو په وجه.

بخاریؒ او مسلمؒ د ابو موسىٰ اشعری ﷛ نه روايت كړے، نبی كريم ﷺ وفرمايل: درې قِسمه خلقو له به دوچنده اجر ملاويږی: په دوئ كښې يو د اهلِ كتابو هغه شخص دے چه هغه په خپل اولنی كتاب او بيا په قرآن باندې ايمان راوړی.

بِمَا صَبَرُوۡا: اُوس ددې اهل كتابو مؤمنانو صفتونه بيانوی، يو دا چه دوی صبر ناك دی، په مخكنی كتاب او په روستنی دواړو ئې ايمان راوړے، يا اول نبی او روستنې نبی ئې منلے دے يا په قرآن ئې مخكښې د نزول او روستو د نزول نه ايمان راوړيدے، يا ئې د مشركانو او كافر اهل كتابو په ضررونو صبر كړيدے.

بله دا چه وَيَدۡرَءُوۡنَ بِالۡحَسَنَةِ السَّيِّئَةَ: دوی د بدئ جواب په نيكئ سره وركوی، د خلكو بد اخلاق په نيك اخلاقو دفع كوی. يا چه گناه ترې وشی نو د هغې نه پس توبه او استغفار او نيك عمل كوی.

وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ : او الله چه دوئ له کو مه روزی ورکړے د هغے څۀ برخه د نیکئ په لاره کښې خرچ کوی، او د محرومانو او محتاجو خلقو مدد کوی۔ وئیلے کیږی چه دغه اهل کتابونو مؤمنانو په صحابه کرامو باندے خرچه هم کړے وه ځکه چه دوی مالداره وو او صحابه کرام ﷺ ئے کمزوری ولیدل نو په دوی باندے ئے مال تقسیم کړو نو ځکه ورله الله تعالیٰ د اِنفاق صفت هم وکړو، لیکن دا جزوی واقعه ده، بیا به دا د هر مؤمن صفت وی۔

| وَاِذَا سَمِعُوا اللَّغْوَ اَعْرَضُوْا عَنْهُ وَقَالُوْا لَنَآ |
|---|
| او کله چه واوری دوی بے ځائے خبرے مخ اړوی د هغے نه او وائی دوی مونږ لره |
| اَعْمَالُنَا وَلَكُمْ اَعْمَالُكُمْ ز سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ ز |
| زمونږ عملونه دی او تاسو لره ستاسو عملونه دی، سلام د جدایئ دے په تاسو باندے |
| لَا نَبْتَغِي الْجٰهِلِيْنَ ﴿٥٥﴾ اِنَّكَ لَا تَهْدِىْ |
| نۀ لټوو مونږ جګړے د جاهلانو۔ ( ملګرتیا د جاهلانو۔ یقیناً تۀ هدایت نشے کولے |
| مَنْ اَحْبَبْتَ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَهْدِىْ مَنْ يَّشَآءُ ج وَهُوَ اَعْلَمُ |
| هغه چاته چه تۀ ئے خوښوے لیکن الله هدایت کوی چا ته چه اُوغواړی او هغه ښه پوهه |
| بِالْمُهْتَدِيْنَ ﴿٥٦﴾ وَقَالُوْٓا اِنْ نَّتَّبِعِ الْهُدٰى |
| دے په هدایت موندونکو باندے۔ او وائی دوی که چرته تابعداری اُوکړو مونږ د هدایت |
| مَعَكَ نُتَخَطَّفْ مِنْ اَرْضِنَا ط اَوَلَمْ نُمَكِّنْ لَّهُمْ |
| ستا په ملګرتیا کښې وُبه تختولے شو د زمکے زمونږ نه آیا ځائے نۀ دے ورکړے مونږ دوی |
| حَرَمًا اٰمِنًا يُّجْبٰٓى اِلَيْهِ ثَمَرٰتُ كُلِّ شَىْءٍ رِّزْقًا |
| ته حرم امن والا، راخکلے شی دے ته میوے د هر شی، دپاره د خوراك |
| مِّنْ لَّدُنَّا وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿٥٧﴾ |
| زمونږ د طرف نه لیکن ډیر د دوی نه نۀ پو هیږی۔ |

**تفسیر:** او کله چه دیو جاهل او ناپوهه د ژبې نه څۀ بیهوده او لغوه خبره واوري، (دلته د لغو نه مراد سبّ او شتم (کنځل او رد بد) دي) نو هغۀ سره نښلي نۀ او نۀ هغۀ طرفته متوجه کیږي، بلکه هغوی ته وائي چه زمونږ خپل عمل دے او ستاسو خپل عمل دے، مونږ ته به زمونږ د عمل او تاسو ته به ستاسو د عمل بدله ملاویږي، زمونږ عمل خو ایمان دے پدے رسول او دده په دین باندے، او که تاسو ئې نۀ منئ نو مونږ له څه ضرر. تاسو خو زمونږ په عمل باندے ذمه وار نۀ یئ چه تاسو رالگیږئ او په مونږ باندے پابندي لگوئ.

سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ: دے ته سَلَامُ الْمُتَارَكَةِ وَالْإِعْرَاضِ وَالْفِرَاقِ وائي. یعنی د پریخودو او اعراض او جدایئ سلام. یعنی مونږ تاسو نۀ چیړو او نۀ ستاسو د خبرے جواب درکوو، ځکه چه مونږ ناپوهو سره نښتل نۀ غواړو.

لَا نَبْتَغِي الْجٰهِلِيْنَ: ۱- دلته مضاف پټ دے اَیْ لَانَبْتَغِیْ جِدَالَ الْجَاهِلِیْنَ. مونږ د جاهلانو سره بحث او جگړه کول نۀ غواړو.

۲- لَانَبْتَغِیْ دِیْنَ الْجَاهِلِیْنَ. مونږ د جاهلانو دین نۀ لټوو، یعنی تاسو خو په جهالت روان یئ او مونږ رڼرا ولیدۀ نو ستاسو دین څنګه قبول کړو. ۳- لَانَبْتَغِیْ صُحْبَةَ الْجَاهِلِیْنَ وَمُخَالَطَتَهُمْ. مونږ د جاهلانو ملګرتیا او د هغوی سره ګډون نۀ لټوو.

اِنَّكَ لَا تَهْدِيْ مَنْ اَحْبَبْتَ: د ډیرو دلائلو د ذکر کیدو باوجود به مشرکانو خبره نۀ منله او ایمان به ئې نۀ راوړو نو رسول الله ﷺ به ډیر خفه وو چه دا خلك ولے ایمان نۀ راوړي ؟ نو الله تعالیٰ پدے آیت کښې هغۀ ته تسلي ورکوي چه هدایت ستا په لاس کښې نۀ دے، بلکه هدایت د الله تعالیٰ په لاس کښې دے، هغه ئې چه چا له ورکوي د هغۀ خوښه ده.

او دا آیت جواب د سوال هم دے چه هر کله دا نبي حق او رشتیني دے نو بیا پرے خپلوان ولے ایمان نۀ راوړي؟ نو جواب وشو چه هدایت د الله تعالیٰ په اختیار کښې دے.

## مناسبت

۱- لفظي مناسبت دا دے [يَهْدِى اللّٰهُ بِهٖ قَوْمًا وَّلَايَهْدِىْ بِهٖ قَوْمًا] الله تعالیٰ په قرآن سره بعض خلکو ته هدایت کوي لکه ذکر شوی اهل کتابو او نورو ایمان والو ته ئې هدایت وکړو او چا ته پدے سره هدایت نکوي. ۲- معنوي مناسبت دا دے چه پدے کښې د رسول الله ﷺ د هدایت په باره کښې خفګان زائله کوي. لکه چه مخکښې بیان شو.

رسول الله ﷺ به د قریشو په کفر باندے ډیر خفګان کولو، نو دا آیت نازل شو چه هدایت د الله په اختیار کښې دے، تهٔ خپل دعوت او بیان جاری ساته۔ او چونکه دے خلکو کښې فساد دے نو ځکه دوی ته هدایت نهٔ کیږی او هغه فساد ئے روستو آیت کښې ذکر دے ﴿وَقَالُوْا اِنْ نَّتَّبِعِ الْهُدٰى﴾ یعنی دے خلکو کښې استعداد د ایمان نشته۔

او بعض علماء وائی چه دا آیت د ابو طالب په باره کښې نازل وو۔ لکه بخاریؒ او مسلمؒ وغیره د مسیب بن حزن المخزومی او ابو هریره رضی الله عنهما نه روایت کړے چه دا آیت د رسول الله ﷺ د تره ابو طالب په باره کښې نازل شوے، هر کله چه هغهٔ د نبی ﷺ د بیحده اصرار باوجود اسلام رانهٔ وړو او د کفر په حالت کښې مړ شو۔ هغه وخت نبی ﷺ وفرمایل [لَاَسْتَغْفِرَنَّ لَكَ مَا لَمْ اُنْهَ عَنْكَ] چه تر څو پورے زهٔ منع شوے نهٔ یم، زهٔ به ستا دپاره د بخښنے دعاء غواړم، نو د سورة التوبه آیت (۱۱۳) نازل شو چه په هغے کښې نبی ﷺ مشرکانو دپاره د بخښنے دعاء غوښتلو نه منع کړے شو، او د سورة القصص دا آیت نازل شو چه تهٔ چا ته غواړے هدایت نشے کولے، بلکه الله تعالیٰ چه چاته غواړی هدایت کوی۔ (بخاری فی تفسیر سورة ۲۸، باب ۱ ومسلم فی الایمان حدیث ۳۹)

اِنَّكَ لَا تَهْدِیْ مَنْ اَحْبَبْتَ: اَیْ هِدَایَتَهٗ۔ یعنی تهٔ هدایت نشے کولے هغه چاته چه تهٔ د هغهٔ هدایت خوښوے۔ دلته د هدایت نه مراد دا دے چه ایمان د هغهٔ په زړه کښې دننه ننباسی، او هدایت په معنیٰ د بیان د دین سره مراد نهٔ دے ځکه چه هغه خو رسول الله ﷺ د هر چا دپاره کړیدے۔

وَهُوَ اَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِیْنَ: یعنی الله تعالیٰ د زړونو استعدادونه پیژنی چه دے زړهٔ کښې خباثت دے، نو دهٔ کښې ایمان نشی راتللے او دے بل زړهٔ کښې انابت دے نو دا د هدایت لائق دے۔

ابو طالب ته الله تعالیٰ ولے هدایت ونکړو؟ وجه دا وه چه هغهٔ کښې د مخلوق رعایت وو او د خالق رعایت پکښې نهٔ وو، د مخلوق د پیغور او شرم نه یریدو او د خالق نه نهٔ یریدو۔

بلال ﷺ به فرمایل چه بنه ده چه هدایت د رسول الله ﷺ په اختیار کښې نهٔ دے ځکه چه بیا خو به هغه خپلے مکے والو ته ورکړے وے او چه مونږ حبشو ته رارسیدے نو مونږ به نهٔ وے۔ نو هدایت د الله په لاس کښې دے چه مونږه ئے ورته د لرے دنیا نه راوستو او نزدے خلك ئے ترے محرومه کړل۔

وَقَالُوْآ: ربط:

دا خلك د هدايت لائق ځکه نهٔ دي چه داسې غلطې خبرې او په الله باندې بدګماني کوي او باطل عذرونه پيش کوي.

عنوان د آيت: ذِكْرُ الْعُذْرِ الْبَاطِلِ فِيْ تَرْكِ اتِّبَاعِ الرَّسُوْلِ ﷺ. د رسول الله ﷺ د تابعدارئ پرېښودو دپاره غلطه بهانه کول ذکر دي. يعنې د قريشو مشرکانو به نبي کريم ﷺ ته د خپل اسلام نهٔ راوړو دا عُذر پيش کولو چه که مونږه ستا خبره ومنو او په تا ايمان راوړو نو تمام عرب به زمونږ خلاف شي، او ټول به يو ځائې شي او په مونږ به د يوې لېندې نه حمله وکړي او مونږ به تباه کړي.

اَوَلَمْ نُمَكِّنْ لَّهُمْ حَرَمًا : ددې جواب الله تعالىٰ دا ورکړو چه د دوئ کوم خالق او مالك چه د دوئ ښار (مکه) د امن ځائې جوړه کړېده، او د دوئ د روزئ دپاره قِسما قِسم ميوې رارسوي، آيا هغه په دې قادر نهٔ دې چه د دوئ د اسلام راوړو نه پس هم د دوئ حفاظت وکړي، ليکن خبره داده چه دوئ د خپلې سختې ناپوهئ او جهالت په وجه د غور او فکر صلاحيت د لاسه ورکړې دې.

حاصل د جواب دا دې چه الله تعالىٰ تاسو ته د شرك او کفر په حالت کښې داسې نعمتونه درکړيدي او رزقونه ئې درته د ټولې دنيا نه راروان کړيدي او ستاسو وطن ئې د امن ځاى جوړ کړيدې نو که تهٔ مؤمن شې نو آيا د ايمان په حالت کښې به تا سره احسان نکوي، حقيقت دا دې چه تاسو په الله بد ګمانه يئ. لکه ټول مشرکان او يهوديان او نور کفار او مبتدعين په الله بد ګمانه دي، دوى وائي چه که مونږ ايمان راوړو، يا صحيح عقيده د کتاب او سنت اختيار کړو او پدې فلانئ سنت طريقه عمل وکړو نو عزت به مو ختم شي، څوك به رابانديسلام نهٔ اچوي او کاروبار به راسره نهٔ کوي، دکانداري به مو کمزوري شي، نو د شرك او کفر او بدعت په حالت کښې الله تعالىٰ تا ته روزي درکوي نو آيا د صحيح ايمان او عمل په وخت کښې به ئې نهٔ درکوي څه؟.

د ډاکو او رشوت خور هم دغه حال دې چه هغه وائي ما ته د ډاکې او رشوت نه بغير رزق نهٔ ملاويږي. دا په خپل غيرتي رب باندې څومره بد ګماني ده؟!.

ثَمَرٰتُ كُلِّ شَيْءٍ : په مکه کښې داسې ميوه جات ملاويږي چه ډير انسانان د هغې نومونه هم نهٔ پيژني، د ټولې دنيا نه هلته رزقونه او ميوه جات راروان دي.

اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ: ۱- فَيَنْسِبُوْنَ الْاَمْنَ اِلٰى اٰلِهَتِهِمْ. نو دوى د امن نسبت خپلو باطلو معبودانو ته کوي او حال دا چه امن الله ورکړيدې. دا د دوى جهالت شو.

۲ـ لَا يَعْلَمُوْنَ بِاَنَّ اللّٰهَ يُعْطِيْهِمُ الرِّزْقَ وَالْاَمْنَ فِى الْاِيْمَانِ ـ پدے نۀ پو هیږی چه الله به دوی ته په ایمان کښې هم رزق او امن ورکړی۔

۳ـ لَا يَعْلَمُوْنَ اَنَّ مَا نَقُوْلُهٗ حَقٌّ لِفَرْطِ جَهْلِهِمْ ـ دوی نـۀ پو هیږی چه مونږ څه وایو دا حق دی ځکه چه غټ جاهلان دی۔

وَكَمْ اَهْلَكْنَا مِنْ قَرْيَةٍۭ بَطِرَتْ مَعِيْشَتَهَا ۚ فَتِلْكَ

او ډیر هلاك کړیدی مونږ د کلو نه چه تکبر ئے کړے وو په ژوند خپل کښې نو دغه

مَسٰكِنُهُمْ لَمْ تُسْكَنْ مِّنْۢ بَعْدِهِمْ

ځایونه د اُوسیدو د دوی دی چه اُوسیدل نۀ دی شوی (په هغے کښې) روستو د دوی نه

اِلَّا قَلِيْلًا ؕ وَكُنَّا نَحْنُ الْوٰرِثِيْنَ ﴿۵۸﴾ وَمَا كَانَ رَبُّكَ مُهْلِكَ الْقُرٰى حَتّٰى

مګر لږ وخت او وو مونږ آخری مالکان۔ او نۀ دے رب ستا هلاکونکے د کلو تردے چه

يَبْعَثَ فِىْٓ اُمِّهَا رَسُوْلًا يَّتْلُوْا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِنَا ۚ وَمَا كُنَّا

اُولیږی په مینځ د هغے کښې رسول چه بیانوی په دوی باندے آیتونه زمونږ او نۀ یو مونږ

مُهْلِكِى الْقُرٰٓى اِلَّا وَاَهْلُهَا ظٰلِمُوْنَ ﴿۵۹﴾ وَمَآ

هلاکونکی د کلو مګر چه اُوسیدونکی د هغے ظالمان وی۔ او هغه څه

اُوْتِيْتُمْ مِّنْ شَىْءٍ فَمَتَاعُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَزِيْنَتُهَا ۚ

چه درکړے شویدی تاسو ته د څه شی نه نو مزدے د ژوند دنیوی دی او ډول ددے دے

وَمَا عِنْدَ اللّٰهِ خَيْرٌ وَّاَبْقٰى ؕ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿۶۰﴾

او هغه چه د الله سره دی غوره دی او همیشه دی آیا نو تاسو عقل نه کار نۀ اخلئ۔

اَفَمَنْ وَّعَدْنٰهُ وَعْدًا حَسَنًا فَهُوَ

آیا پس هغه څوك چه وعده کړیده مونږ د هغه سره وعده ښائسته (د جنت) نو هغه

لَاقِيْهِ كَمَنْ مَّتَّعْنٰهُ مَتَاعَ

ملاویدونکے وی د هغے سره پشان د هغه چا دے چه مزے ورکړیدی مونږ هغه ته مزے

الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ثُمَّ هُوَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ مِنَ الْمُحْضَرِيْنَ ﴿٦١﴾

د ژوند دنیوی بیا به هغه د قیامت په ورځ د حاضر کړے شوو نه وی (په عذاب کښ).

**تفسیر**: اُوس تخویف دنیوی بیانیږی. یعنی د قریشو مشرکانو له دهمکی ورکړے کیږی چه د دوی نه مخکښے د دوی پشان ډیرو قومونو له الله تعالیٰ نعمتونه ورکړی وو، لیکن هر کله چه هغوی د الله ناشکری وکړه، نو هغوی هلاك کړے شو، او د هغوی کورونه اُوسه پورے خالی پراته دی، د هغوی نه پس په هغے کښ هیڅوك نهٔ دی اُوسیدلی. که چرے د قریشو حالت هم دا شو او د الله تعالیٰ د ورکړو نعمتونو ناشکری ئے وکړه، نو لرے نهٔ ده چه د دوی انجام به هم دغسے وی، او د دوی وجود به هم ختم کړے شی.

**بَطِرَتْ**: بطر تکبر او د نعمت ناشکری ته وئیلے شی. یعنی پکار ده چه دا نعمتونه او د دنیا فراخی ستاسو دپاره د مستی؛ او د ایمان نهٔ راوړو سبب جوړ نشی.

قاموس لیکلی دی چه بطر ډیرے معانی دی (١) نَشَاط (خوشحالی) (٢) اَلْاَشَر (تکبر). (٣) قِلَّةُ احْتِمَالِ النِّعْمَة. (د نعمت پوره برداشت نهٔ کول).

(٤) اَلدَّهْشُ وَالْحَيْرَةُ (یره او حیرانتیا) (٥) اَلطُّغْيَانُ بِالنِّعْمَةِ. (په نعمت باندے سرکشی او ناشکری کول). (٦) وَكَرَاهَةُ الشَّيْءِ مِنْ غَيْرِ اَنْ يَّسْتَحِقَّ الْكَرَاهَةَ. یو شے بد گنړل چه د بد گنړلو مستحق نهٔ وی. (فتح البیان).

**مَعِيْشَتَهَا**: ١– دلته فِيْ پټ دے. اَیْ فِیْ مَعِيْشَتِهَا. د حد نه تیروتلی وو په ژوند خپل کښ. ٢– یا تکبر او سرکشی او ناشکری ئے کړے وه په ژوند خپل کښ.

**لَمْ تُسْكَنْ مِّنْۢ بَعْدِهِمْ اِلَّا قَلِيْلًا**: ١– یعنی پدے کورونو او کلو کښ څوك نهٔ دی وسیدلی د هغوی نه روستو مگر لږه زمانه، او هغه دا چه په حالت د سفر کښ پدے گنډراتو باندے ورتیریږی. ٢– یا مطلب دا دے چه چا پدے کلو کښ گناهونه کول نو هغوی پکښ لږ وخت دپاره ووسیدل او بیا زر هلاك کړے شول.

**وَمَا كَانَ رَبُّكَ مُهْلِكَ الْقُرٰى**: دا جواب د سوال دے چه هرکله دا مکے والا هم په بطر او تکبر کښ واقع شوی وو نو الله تعالیٰ په دوی باندے عذاب ولے نهٔ رالیږلو. جواب دا دے چه الله تعالیٰ هیڅ یو قوم هغوی ته د خپل پیغمبر لیږلو نه مخکښے نهٔ هلاکوی، چه هغه ورته د حق او باطل او د خیر او شر ترمینځه فرق بنائی او د الله د عذاب نه ئے

یروی۔ نو د رسول د رالیږلو انتظار وو، دپاره ددے چه په دوی باندے حجت قائم شی او کله چه په دوی باندے حجت قائم شی او رسول الله ﷺ راشی او بیا هم دوی کفر او ظلم (یعنی شرك) کوی نو الله به دوی لره هلاکوی۔

فِیْٓ اُمِّهَا : ام القریٰ مکه مکرمه ده چه اصل د عربو او عجمو دے۔او دے ته ام القریٰ پدے وجه وئیلے شویده چه اول کعبه پدے ځای کښې جوړه شوے ده۔ او حدیث کښې دی چه زمکه ددے ځای نه خوره کړے شویده۔ (شعب الایمان ۳۶۹۷) عن ابن عمرو ﷺ وعبد الرزاق وابن ابی شیبه) او دارنګه د ټولے دنیا نه به روستو فناء کیږی۔

وَمَا كُنَّا مُهْلِكِي الْقُرٰٓى: پدے کښې الله تعالیٰ د هلاکت سبب خودلے دے چه هر کلے الله تعالیٰ نهٔ هلاکوی بلکه کوم خلك چه ظالمان وی د الله سره شرك کوی، شرك سبب د هلاکت او د عذاب دے۔

وَمَآ اُوْتِيْتُمْ مِّنْ شَيْءٍ: پدے کښې د دنیا تزهید (بی رغبتی) بیانیږی په ذکر د فرق سره په مینځ د متاع دنیوی او ثواب اُخروی کښې۔

## مناسبت او ربط

ربط دا دے چه کافران په دنیا سره خپل ځانونه د حق نه لوی ګڼړی او پدے باندے ناز او فخر کوی او حق نهٔ قبلوی۔ او چونکه قریشو کافرانو د دنیا د ژوند او فائدو د وجه نه ایمان نهٔ راوړو چه امن او رزقونه به مو خراب شی، پدے وجه دلته د دنیا سپکوالے بیانوی چه تاسو خو پدے کار سره د دنیا عارضی ژوند په آخرت او د هغے په ثوابونو باندے غوره کړو۔

فَمَتَاعُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَزِيْنَتُهَا: د دنیا څیزونه دوه قسمه دی، یو هغه دی چه د هغے نه د خوراك، څکاك، لباس وغیره فائده اخستلے کیږی او بیا زر فناء کیږی دیته متاع وائی۔ او دویم هغه دی چه هیڅ فائده ترے نهٔ اخستلے کیږی صرف د دول ډال دپاره وی هغے ته زینت وائی۔ (احسن الکلام)

یا متاع هغه دے چه ذاتی فائده پکښې وی لکه خوراك څکاك وغیره چه ددے نه بغیر ژوند ګران وی۔ او زینت هغه دے چه عارضی او غیر ضروری فائده ئے وی لکه د دنیا زیاتی سامانونه وغیره۔

اَفَمَنْ وَّعَدْنٰهُ : پدے آیت کښې الله تعالیٰ د دنیا او د آخرت ترمینځ بون بعید (ډیر

جداوالے) بیان کړیدے۔ دویمه دا خبره بیانوی چه د مؤمن او د کافر څومره فرق دے۔
او الله تعالیٰ چه د خپلو نیکانو بندګانو سره د کوم نعمت وعده کړے، چه هغوئ ته به د مرګ نه پس ملاویږی، د هغے موازنه د دنیا د عارضی نعمتونو سره نشی کیدلے، ځکه دا نعمتونه خو د مرګ سره سَم ختمیږی، او کوم خلق چه په ایمان او اسلام باندے دا غوره کوی هغوئ دپاره به استوګنه جهنم وی۔

وَّعَدْنٰـهُ وَعْدًا حَسَنًا : اَیْ بِاِیْمَانِهٖ وَعَمَلِهِ الصَّالِحِ ۔ یعنی الله ورسره د جنت وعده کړیده په سبب د ایمان او د عمل صالح سره۔

فَهُوَ لَا قِیْهِ : او دا مؤمن ملاویږی ددے وعدے سره۔ ځکه چه الله تعالیٰ کومه وعده د مؤمن سره کړیده هغه یقیناً پوره کوی۔

مِنَ الْمُحْضَرِیْنَ : اَیْ فِی الْعَذَابِ ۔ یعنی په عذاب کښ حاضر کړے شوی۔ علامه قاسمیؒ وائی چه د قرآن اصطلاح دا ده چه مُحضر مُعَذَّبْ ته وائی۔ یعنی عذاب ورکړے شوے۔

حاصل دا چه یو تن دے چه د ایمان او عمل صالح په وجه نزدے خیرونو سره ملاویدونکے دے، او بل یو تن دے چه دنیا کښ ئے مزے وکړے لیکن صبا له په دهٔ باندے مرګ راځی او د مرګ سره سَم عذابونو سره ملاویږی نو د دواړو ترمینځ څومره غټ فرق دے۔ یو تن په همیشه لوی عذابونو واوریدو او بل په همیشه مزو باندے۔ نو پداسے مال څه فخر پکار دے او مؤمن به ولے د کافرو د مالونو نه متأثره کیږی۔

| وَيَوْمَ يُنَادِيهِمْ فَيَقُولُ أَيْنَ |
|---|
| او (رایاده کړه) په کومه ورځ چه الله به آواز اُوکړی دوی ته نو وبه وائی چرته دی |
| شُرَكَاءِيَ الَّذِينَ كُنتُمْ تَزْعُمُونَ ﴿٦٢﴾ قَالَ |
| برخه داران زما هغه کسان چه تاسو به ګمان کولو (چه دوی زما شریکان دی)۔ وائی به |
| الَّذِينَ حَقَّ عَلَيْهِمُ الْقَوْلُ رَبَّنَا هَٰؤُلَاءِ الَّذِينَ |
| هغه کسان چه ثابته شویده په دوی باندے فیصله د عذاب اے ربه زمونږ دا هغه کسان |
| أَغْوَيْنَا ۚ أَغْوَيْنَاهُمْ كَمَا غَوَيْنَا ۚ |
| دی چه مونږ ګمراه کړیدی، ګمراه کړل مونږ دوی لره لکه څنګه چه مونږ ګمراه وو، |

| تَبَرَّاْنَآ اِلَيْكَ ز مَا كَانُوْٓا اِيَّانَا يَعْبُدُوْنَ ﴿٦٣﴾ وَقِيْلَ |
|---|
| بیزاری کوو مونږ تا ته، نهٔ وو دوی چه زمونږ بندګی ئے کوله۔ او ویه ویلے شی |
| ادْعُوْا شُرَكَآءَ كُمْ فَدَعَوْهُمْ فَلَمْ يَسْتَجِيْبُوْا |
| آواز اُوکړئ برخه دارانو خپلو ته نو دوی به آواز اُوکړی هغوی ته نو قبولوالے به اُونکړی |
| لَهُمْ وَرَاَوُا الْعَذَابَ ج لَوْ اَنَّهُمْ كَانُوْا يَهْتَدُوْنَ ﴿٦٤﴾ وَيَوْمَ |
| دوی لره او ویه وینی عذاب لره آرمان چه دوی په هدایت وے۔ او په کومه ورځ چه |
| يُنَادِيْهِمْ فَيَقُوْلُ مَاذَآ اَجَبْتُمُ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿٦٥﴾ فَعَمِيَتْ |
| الله به آواز اُوکړی دوی ته نو ویه وائی څرنګه جواب ورکړے وو تاسو رسولانو ته۔ نو پټ به |
| عَلَيْهِمُ الْاَنْبَآءُ يَوْمَئِذٍ فَهُمْ لَا يَتَسَآءَ لُوْنَ ﴿٦٥﴾ |
| شی په دوی باندے خبرونه (دلیلونه) پدغه ورځ نو دوی به د یو بل نه تپوس نشی کولے۔ |

**تفسیر** : دے ځای نه روستو په قیامت کښ درے آوازونه دی د مشرکانو د خرړ کولو دپاره۔ او دا د (مِنَ الْمُحْضَرِيْنَ) سره متعلق دی۔ سوال پیدا کیږی چه مشرکان وائی چه مونږ به څنګه په عذاب کښ حاضر شو حال دا چه زمونږ شُفَعَاء (سفارشیان/ باباګان) شته، هغوی به مونږ په قیامت کښ د عذاب نه خلاصوی۔ نو الله جواب کوی چه په قیامت کښ انسان په همدے شرك رانیولے کیږی نو تاسو به خپل معبودان څنګه خلاص کړی۔

دویم دا چه مُحْضَرِين ډیر کسان دی، یعنی په قیامت کښ به د الله په عذاب کښ ډیر خلك حاضریږی چه د هغے نه یو مثال راوړی چه هغه مشرك دے، دا به په عذاب کښ حاضر وی، او چونکه شرك د الله په نیز ډیر قبیح عمل دے نو ځکه دا په مثال کښ ذکر کوی۔

دلته درے آوازونه دی، اول آواز د شرك په باره کښ دے، او آخرنے هم د شرك په باره کښ او مینځنے د اتباع رسول په باره کښ دے۔ ابو العالیة وائی : ګویا که د تولو بندګانو نه د دوه خبرو تپوس کیږی، [مَاذَا كُنْتُمْ تَعْبُدُوْنَ؟] تاسو د چا بندګی کوله؟۔ [وَمَاذَا اَجَبْتُمُ الْمُرْسَلِيْنَ]۔ او د رسولانو د خبرو مو څه قبولوالے کړیدے۔ نو د الله د بندګئ او د رسولانو

د تابعدارئ تپوس به وي۔
بیا په (٦٧) آیت کښې ترغیب دے توبے ته چه دا جواب د سوال دے۔ بیا د الله د معرفت دلائل ذکر کیږي چه د هغے مناسبت هلته راغلے۔
وَيَوْمَ : دا متعلق دے د (اُذْكُرْ) (رایاد کړه) پورے۔ یا متعلق دے د (اَلْمُحْضَرِيْنَ) پورے۔ یعنې دے به د حاضر کړے شوو نه وي په هغه ورځ چه الله به ورته آواز وکړي۔
يُنَادِيْهِمْ : یعنې د قیامت په ورځ به الله تعالیٰ په زجر او رټنے سره مشرکانو ته آواز وکړي چه چرته دي ستاسو هغه باطل معبودان چه تاسو هغوئ لره زما شریکان جوړ کړي وو؟ نو دوه قسمه خلك به خبرے اترے شروع کړي یو داعیان او بل مَدْعُوِّيْن۔ نو د هغوئ په ځاي به د کفر او ګمراهئ هغه سرداران چه په دنیا کښې د الله سره معبودان جوړ کړے شوي وو، او د کفر داعیان وو، وواٸي چه اے زمونږ ربه! مونږ دوئ ګمراه کول وغوښتل نو دوئ فوراً زمونږ دعوت قبول کړو او د ګمراهئ په لاره روان شو، دوئ هم ګمراه شو او مونږ هم ګمراه شو۔ مونږ دوئ نه د خپلے بیزارئ اعلان کوو، ځکه چه دوئ زمونږ نۀ، بلکه د خپلو خواهشاتو عبادت کولو۔
حَقَّ عَلَيْهِمُ الْقَوْلُ : یعنې ثابته شویده په هغوي باندے فیصله د عذاب چه دا د کفر مشران او داعیان وو۔
اَغْوَيْنَا: اَيْ دَعَوْنَاهُمْ اِلَى الْغِوَايَةِ۔ یعنې مونږ دوي ګمراهئ ته راوبلل۔
كَمَا غَوَيْنَا: ددے مشبه پټه ده۔ اَيْ فَغَوَوْا كَمَا غَوَيْنَا۔ یعنې دوی ته مونږ دعوت ورکړو نو دوی ګمراه او سرکش شو لکه څنګه چه مونږ ګمراهان او سرکشه شوي وو۔
٢- یا کما کښې کاف په معنیٰ د لام تعلیلي سره دے۔ یعنې پدے وجه چه مونږ ګمراهان وو۔ هر ګمراه دا خوښوي چه بل هم ګمراه شي لکه څنګه چه نیك دا غواړي چه بل هم نیك شي۔
ددے خلکو مطلب به دا وي چه دا خبره خو صحیح ده چه مونږ دوي ته د ګمراهئ دعوت ورکړیدے لیکن په زوره مو خپل عبادت ته نۀ دي رابللي چه زمونږ عبادت وکړئ۔
یا مطلب دا دے چه مونږ د دوی د کفر دپاره سبب وو او دوی زمونږه خبره قبوله کړه نو زمونږ او د دوی په ګمراهئ کښې هیڅ فرق نشته او اګرکه دوی زمونږ په دعوت کفر او شرك ته راغلل خو بل طرفته ددے په مقابله کښې د الله تعالیٰ دعوت ایمان طرفته

موجود وو او هغه دوی ته عقل ورکړے وو او په توحید باندے ئے دلیلونه قائم کړی وو نو دوی هغه پریخودل۔

۲- یا تَبَرَّأْنَا إِلَيْكَ مِنْ طَاعَتِهِمْ۔ مونږ د دوی د طاعت نه بیزاره یو۔ دوی زمونږ خبره نهٔ ده منلے بلکه دوی د خپل خواهش پسے روان وو۔

مَا كَانُوٓا إِيَّانَا يَعْبُدُوْنَ : بَلْ يَعْبُدُوْنَ أَهْوَاءَهُمْ۔ دوی زمونږ عبادت نهٔ دے کړے بلکه دوی د خپلو خواهشاتو عبادت کړے۔ نو د دوی عذاب دے په مونږ باندے نهٔ وی۔

(فتح البیان)

نو الله به ورته جواب کوی چه تاسو دواړو له عذاب دے ځکه چه تاسو داعیان د ګمراهئ وئ نو خپله هم ګمراه وئ او بل د ګمراهئ داعیان وئ نو ستاسو دوه جرمونه وو، او ددے نورو دپاره پدے وجه عذاب دے چه دوی ضد او شرك کړیدے۔ لکه روستو سورة العنکبوت (۱۳) آیت کښ راځی ﴿ وَلَيَحْمِلُنَّ أَثْقَالَهُمْ وَأَثْقَالًا مَعَ أَثْقَالِهِمْ ﴾۔

(او خامخا دوی به پورته کوی خپل بوجونه د ګناهونو او نور بوجونه د ګمراه کولو د خلکو)

وَقِيْلَ ادْعُوْا شُرَكَآءَكُمْ: مشران خو به د خپلو کشرانو تابعدارو نه براءت او بیزاری اعلان کړی نو پدے وخت به الله تعالیٰ دے تولو ته د دوی د خړ کولو دپاره ووائی چه تاسو خپل اولیاء او بزرګان او معبودان راوویلئ چه تاسو به د دوی په نوم نذر او منښتے کولے او د دوی عبادتونه به مو کول دے دپاره چه تاسو د عذابونو نه خلاص کړی۔

فَدَعَوْهُمْ: نو دوی به خپلو معبودانو ته آواز وکړی۔ ځکه چه دوی به په هر ممکن باندے د ځان خلاصولو کوشش کوی، د دوی به ګمان وی چه کیدے شی هغوی مونږ لره خلاص کړی۔

فَلَمْ يَسْتَجِيْبُوْا لَهُمْ: نو هغوی به ورله هیڅ جواب ورنکړی، یو خو به هغوی ځانونه په زوره کانړهٔ کړی، خپله به یریږی چه مونږه ئے د الله سره شریکان کړی یو، نو اُوس مونږ پرے غرق کوی او که څه وجه ده۔ خپله به په هیبت کښ وی، هیڅ انسان او پیری او شیطان کښ به دا جرأت نهٔ وی چه جواب ورکړی، آو البته دا به ورته وائی چه مونږ ستاسو د عبادت نه غافله وو۔ خو دلته د عدم استجابت نه مراد مدد نکول دی۔

وَرَاَوُا الْعَذَابَ: او هر کله چه جهنم په خپلو سترګو ووینی او یقین ئے راشی چه همدا د دوئ ځای دے نو په دے وخت کښ به د دوئ غم او افسوس آخر سرته اُورسی، او وائی به چه هائے آرمان! چه مونږ په دنیا کښ د الله رالیږلے هدایت قبول کړے وے۔

وَيَوْمَ يُنَادِيهِمْ : اُوس د رسولانو د اتباع پـه باره کښې آواز کوي. ځکـه چـه دوی بـه رسولانو په دنیا کښې د شرك نه منع کول. نو دوی راولګیدل د خپلو غلطو مشرانو پسے روان شو او رسولان ئے پـريـخـودل، خـلـك د ابـوجـهـل پسے روان شو او رسول الله ﷺ ئے پريخودو نو په هره زمانه کښې به دغه شان تپوس کوی چه تا رسول الله ﷺ پريخودو او يو عالِم او پير پسے روان شوے دا ولے؟.

مَاذَآ اَجَبْتُمُ: يعنـي تـاسو څه جواب ورکړيدے رسولانو ته. ابو العاليـة قول مخکښې ذکر شو چه [خَصْلَتَانِ يُسْئَلُ مِنْهُمَا الْاَوَّلُوْنَ وَالْآخِرُوْنَ] د دوه خبـرو تپـوس بـه د ټولو انسانانو نه کيږي، تاسو د چا عبادت کولو او د رسولانو مو څومره خبره منلے ده؟. آيا په هغوی مو ايمان راوړو او د هغوی تابعداري مو وکړه او که هغوی مو دروغژن کړل؟

فَعَمِيَتْ عَلَيْهِمُ الْاَنْبَآءُ: اَیْ خَفِيَتْ عَلَيْهِمُ الْاَنْبَاءُ اَيِ الْحُجَجُ. پټ بـه شي په دوی باندے خبرونه او دليلونه لکه د ړندو په شان به شي. يعني ددے ټولو ژبے به ګونګے شي، او د خوف او دهشت په وجه به په خپلو کښې هم خبرے نشي کولے، ځکه چه د دوئ به يقـيـن راغلـے وي چـه اُوس د دوئ د اُوسيـدو ځـائے د جهنم نه سوئ بل ځائے نۀ دے. فَلَا يَعْرِفُوْنَ مَا يَقُوْلُوْنَ. نو دوی به نۀ پو هيږی چه څه ووائي. ټول به جاهلان شي.

د دوئ دليـلـونـو تـه ئـے اَنباء (خبرونه) ووئيـل، وجـه دا ده چه د دوی په خبرو کښې هيڅ معتبـر دليـل نۀ وو بلکه ټولے قصے او حکايتونه او بکتئ او خرافات وو. او دارنګه هغه تـاويـلات او تـوجيـهـات وو چـه دوی بـه د سـنـت د رد کـولو دپاره پيش کول او اختراعی دليلونه ئے جوړ کړی وو.

فَهُمْ لَا يَتَسَآءَلُوْنَ: ١- لِفَرْطِ الدَّهْشَةِ. (ځکه چه يره به پرے زياته وی).

٢- لِعَجْزِهِمْ عَنِ النُّطْقِ.(ځکه چه د خبرو نه به عاجزه شوی وی)

٣- لِعِلْمِهٖ بِاَنَّهٗ مِثْلُهٗ . ځـکه چه پدے به پو هيږی چه دا شخص هم زما په شان جاهل او د رسول مخالف وو، او په عذاب کښې ګرفتار دے.

٤- لَا يَسْئَلُ بَعْضُهُمْ بَعْضًا عَنِ الْاَنْسَابِ (مـجـاهـد) د يو بل نه به د نسبونو په باره کښې تپوس نشي کولے.

| فَاَمَّا مَنْ تَابَ وَاٰمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا |
|---|
| نو هرچه هغه څوك دے چه توبه ئے کړيده او ايمان ئے راوړيدے او عمل ئے کړيدے نيك |

| فَعَسٰٓى اَنۡ يَّكُوۡنَ مِنَ الۡمُفۡلِحِيۡنَ ﴿٦٧﴾ وَرَبُّكَ يَخۡلُقُ مَا يَشَآءُ وَيَخۡتَارُ ؕ |
|---|
| نو خامخا وی به هغه د کامیابو نه. او رب ستا پیدا کوی څه چه اُوغواړی او غوره کوی، |
| مَا كَانَ لَهُمُ الۡخِيَرَةُ ؕ سُبۡحٰنَ اللّٰهِ عَمَّا |
| نشته دے دوی لره هیڅ اختیار، پاکی ده الله لره او اُوچت دے د هغے نه |
| يُشۡرِكُوۡنَ ﴿٦٨﴾ وَرَبُّكَ يَعۡلَمُ مَا تُكِنُّ صُدُوۡرُهُمۡ |
| چه دوی ورله شریکان جوړوی. او رب ستا پو هیږی په هغه څه چه پټوی سینے د دوی |
| وَمَا يُعۡلِنُوۡنَ ﴿٦٩﴾ وَهُوَ اللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ؕ |
| او په هغه څه چه دوی ئے ښکاره کوی. او خاص الله نشته لائق د بندگئ سوئ د هغه نه، |
| لَهُ الۡحَمۡدُ فِى الۡاُوۡلٰى وَالۡاٰخِرَةِ ۚ وَلَهُ الۡحُكۡمُ |
| خاص هغه لره صفتونه د کمال دی په دنیا او په آخرت کښ او خاص هغه لره اختیار دے |
| وَاِلَيۡهِ تُرۡجَعُوۡنَ ﴿٧٠﴾ |
| او هغه ته به تاسو واپس کړے شئ. |

**تفسیر**: سوال پیدا شو چه یو تن شرك او د رسول الله ﷺ مخالفت کړے وی نو ددے څه علاج شته او که نهٔ؟ نو جواب دا دے چه توبه او ایمان او نیك عمل ددے علاج دے. نو مخکښ د ناکامو خلکو تذکره وه (مِنَ الۡمُحۡضَرِيۡنَ والا) اُوس د کامیابو. (مِنَ الۡمُفۡلِحِيۡنَ) یعنی کوم مشرکان چه په دے دنیا کښ د شرك نه توبه کړی، او په الله تعالیٰ او د هغهٔ په رسول باندے تازه ایمان راوړی، نیك عمل وکړی، فرائض او واجبات اداء کړی، او گناهونو نه بچ شی، دوئ به الله تعالیٰ د جهنم نه بچ کړی او په خپل فضل او کرم سره به ئے جنت ته داخل کړی.

فَعَسٰٓى: یعنی تهٔ دا امید ولره چه پدے کارونو سره به کامیاب شے.

وَرَبُّكَ يَخۡلُقُ: ربط او تړون

اُوس دا فرمائی چه هدایت ته به څوك راځی او څوك نهٔ؟ نو الله فرمائی چه دا واك زما دے. دارنگه مخکښ د شرکاؤ تذکره وشوه چه مشرکانو د ځان دپاره معبودان جوړ کړی وو او هغه ئے د خپل عبادت دپاره غوره کړی وو نو الله فرمائی چه دوی سره د معبود

نیولو هیڅ اختیار نشته چه په خپله خوښه څوك معبود ونیسی.
په دے آیتِ کریمه کښں د بندګانو نه پیدائش او اختیار نفی شوے، چه نهٔ دویٔ څهٔ شے پیدا کولے شی، اونهٔ دویٔ له دا اختیار حاصل دے چه دوی څوك نبی جوړ کړی یائے د طاعت دپاره ونیسی. او په خپله خوښه د چا نه انکار وکړی بلکه دا حق د الله تعالیٰ دے چه هغه صرف د خپلے بندګیٔ حکم ورکوی، شرك نه منع کوی، او د خپلے بندګیٔ جائز طریقه ښائی. د بندګانو کار صرف د هغهٔ د حکم مطابق طاعت او بندګی دہ، دے وجے نه د آیت په آخر کښں ووئیلے شو چه د الله ذات د مشرکانو د شرك نه پاك او بالا دے.

## شان نزول

مفسرین لیکی چه دا آیت د ولید بن مغیره په رد کښں نازل شوے وو، هر کله چه دهٔ وئیلی وو چه د دواړو کلو والو نه یو لوی سړے الله تعالیٰ ولے خپل نبی جوړ نهٔ کړو.
❁ دارنګه د عامو مشرکانو په رد کښں نازل شو چه هغویٔ په خپله خوښه د الله دپاره شریکان جوړ کړی وو، او ګمان به ئے کولو چه دا باطل معبودان به د قیامت په ورځ د دویٔ سفارشیان جوړیږی. ❁ دارنګه د یهودو په رد کښں نازل وو چه هغوی به وئیل که محمد (ﷺ) ته د جبریل (ؑ) نه علاوه بل ملائك وحی راوړے وے نو مونږ به ایمان راوړے وے. (فتح البیان وغیره)
وَيَخْتَارُ: اَیْ يَصْطَفِیْ وَيَجْتَبِیْ. الله غوره کوی بعض مخلوق لره په بعضو باندے. دلته د غوره کولو معنیٰ غوره دہ او د اختیار معنیٰ ئے کمزورے دہ، هغه روستو په ﴿مَا كَانَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ﴾ کښں مراد دہ. مطلب دا چه خالق هم هغه دے او متصرف هم هغه دے.
نو پدے کښں اشاره دہ چه الله تعالیٰ بعض خلك غوره کړی د ایمان دپاره او بعض خلك پریدی د کُفران دپاره د هغوی د نا اهلیٔ د وجه نه. او پدے کښں د الله حکمتونه او علمونه دی چه هغه بندګانو ته نهٔ دی معلوم. او په يَخْتَارُ کښں دا هم داخلیږی چه الله تعالیٰ عرش د خپلے استواء دپاره غوره کړیدے نهٔ بل ځای، آسمانونه ئے غوره کړیدی د ملائکو دپاره، جنت الفردوس ئے په نورو جنتونو غوره کړیدے، محمد رسول الله ﷺ ئے په ټولو انبیاؤ غوره کړے، او ټول انبیاء ئے په ټولو انسانانو غوره کړی او کعبه او مسجد حرام ئے په ټوله دنیا غوره کړیدی، مساجد ئے په عامو بلادو غوره کړی. دارنګه عالِم ئے په جاهل غوره کړے او داسے نور مثالونه واخله.

دا ولے غوره کوی ؟ لِاقْتِضَاءِ عِلْمِهٖ وَحِكْمَتِهٖ ذٰلِكَ ۔ ځکه چه دا د الله تعالیٰ د علم او حکمت تقاضا ده۔

مَا كَانَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ : خِیَره مصدر دے په معنیٰ د تَخَيُّر سره۔ دلته د خیره نه مراد دا نهٔ دے لکه چه جبریه وائی چه د بندګانو هیڅ اختیار نشته، او دوی په خپلو کارونو کښې مجبور محض دی۔ بلکه دلته د خِیَره نه مراد اَلتَّصَرُّفَاتُ الْاِلٰهِيَّة دی۔ یعنی د بندګانو دا اختیار نشته چه چا له عزت ورکړی او چا له ذلت، چا له نبوت ورکړی او چا له نهٔ، څوك افضل کړی په بل، چا له د ایمان توفیق ورکړی او چا له نهٔ۔ او داسے اختیار خو شته چه نیك عمل یا بد عمل وکړی۔

او دا آیت دلیل دے چه نبی کریم ﷺ ته مُخْتَارِ كُلّ وئیل شرکی کلمه ده ځکه چه هغه له د ټول عالَم اختیار او تصرف نهٔ ذاتی شته او نهٔ عطائی۔

سُبْحٰنَ اللّٰهِ : پدے آیت کښې په مشرکانو رد داسے دے چه تاسو د هغه الله سره چه خالق او اختیارمند دے څرنګ هغه عاجز مخلوق شریکوئ چه هغه نهٔ خالق دے او نهٔ اختیارمند د څیزونو دے۔

وَرَبُّكَ يَعْلَمُ : دا د قرآن عادت دے چه د مشرکانو د معبودانو کمزوری بیان کړی نو الله خپل علم او قدرت او طاقت بیانوی دے دپاره چه د الله لوی والے ئے په زړونو کښې کینی۔ نو دلته د الله تعالیٰ د علم او د هغه د قدرتونو او مهربانیو بیان دے۔ درے خبرے بیانوی۔ نو د دغه ذاتِ په شان بل څوك نشته، بیا ولے تاسو مخلوق د الله سره شریکوئ چه هیڅ کمال ئے نشته؟۔ نو ددے ځای نه روستو د الله تعارف بیانیږی په عقلی دلیلونو سره۔

وَهُوَ اللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ : دا په تیر شوو دلیلونو باندے د توحید تفریع ده،

او پدے آیت کښې څلور جملے د توحید دی، توحید د اُلوهیت، توحید د صفاتو، توحید د حکم، او توحید د جزاء او حساب۔ او روستنئ درے جملے په اصل کښې د اولنئ جملے دپاره علت دے۔

وَلَهُ الْحُكْمُ : یعنی د الله فیصله په هر شی کښې نافذه ده تو هغه چه د بندګانو ترمینځ څنګه فیصله کوی د هغهٔ خوښه ده، د هغهٔ سره پدے کښې څوك شریك نشته۔

| قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ جَعَلَ اللّٰهُ عَلَيْكُمُ الَّيْلَ سَرْمَدًا اِلٰى يَوْمِ |
|---|
| اُووایه آیا خبر یئ تاسو که چرته اُوګرځوی الله تعالیٰ په تاسو باندے شپه همیشه تر ورځ |

الْقِيٰمَةِ مَنْ اِلٰـهٌ غَيْرُ اللّٰهِ يَاْتِيْكُمْ بِضِيَآءٍ ؕ اَفَلَا تَسْمَعُوْنَ ﴿۷۱﴾

د قیامت پورے څوك واكدار شته سوئ د الله نه چه راولی تاسو ته رڼا، آیا نو تاسو نهٔ

قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ جَعَلَ اللّٰهُ عَلَيْكُمُ النَّهَارَ سَرْمَدًا اِلٰى يَوْمِ

أوريٰ۔ اُووایه! خبر راکړئ کچرته اُوګرځوی الله تعالیٰ په تاسو باندے ورځ همیشه تر ورځ

الْقِيٰمَةِ مَنْ اِلٰـهٌ غَيْرُ اللّٰهِ يَاْتِيْكُمْ بِلَيْلٍ

د قیامت پورے، څوك معبود شته سوئ د الله تعالیٰ نه چه راولی تاسو ته شپه چه

تَسْكُنُوْنَ فِيْهِ ؕ اَفَلَا تُبْصِرُوْنَ ﴿۷۲﴾ وَمِنْ رَّحْمَتِهٖ جَعَلَ

آرام اُوکړئ تاسو په هغے کښ آیا نو تاسو نهٔ ګورئ۔ او د وجے د رحمت د هغه نه ګرځولے

لَكُمُ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ لِتَسْكُنُوْا فِيْهِ وَلِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ

ئے ده تاسو لره شپه او ورځ چه آرام اُوکړئ پدے کښ او دے دپاره چه اُولټوئ د فضل د هغه نه

وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿۷۳﴾ وَيَوْمَ يُنَادِيْهِمْ فَيَقُوْلُ

او دے دپاره چه تاسو شکر اُوکړئ۔ او په کومه ورځ چه الله به آواز اُوکړی دوی ته نو وبه وائی

اَيْنَ شُرَكَآءِيَ الَّذِيْنَ كُنْتُمْ تَزْعُمُوْنَ ﴿۷۴﴾ وَنَزَعْنَا مِنْ كُلِّ اُمَّةٍ

چرته دی برخه داران زما هغه چه تاسو به پرے ګمان کولو۔ او وبه باسو مونږ د هر امت

شَهِيْدًا فَقُلْنَا هَاتُوْا بُرْهَانَكُمْ فَعَلِمُوْٓا اَنَّ الْحَقَّ

نه ګواه نو وُبه وایو مونږ راوړئ یقینی دلیل خپل، نو دوی به پوهه شی چه بیشکه حق

لِلّٰهِ وَضَلَّ عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ ﴿۷۵﴾

(د اُلوهیت) خاص الله لره دے او ورك به شی د دوی نه هغه دروغ چه دوی به جوړول۔

**تفسیر**: قُلْ اَرَءَيْتُمْ : اُوس دلیل اعترافی سکوتی بیانوی چه مقصد پکښ د الله وحدانیت ثابتول او په بندګانو امتنان (احسان) هم دے۔ دے ته اعترافی سکوتی ځکه وائی چه د مخاطب نه تپوس شویدے او د هغه چپوالے ئے نقل کړیدے۔

مطلب دا دے چه که الله تعالیٰ قیامته پورے شپه تینګه کړی او ورځ غائبه کړی، نو آیا

بـل کوم معبود شته چه انسانانو دپاره د ورځې رڼرا واپس راولي، یا که قیامته پورې هغه ورځ تیـنګه کړي او شپه غائبه کړي نو آیا بل کوم معبود شته چه شپه واپس راولي چه په هغې کښې خلق آرام حاصلوي۔

ددې جـواب قطعي طور سره همدا دې چه هیڅوك نشته چه ددې قدرت ولري۔ نو بیا انسـان په دې کښې په غور او فکرکولو سره صرف د تمام جهان د خالق او یو الله په عبادت باندې ولې نهٔ ټینګیږي، دهٔ سره ولې بل څوك شریك جوړوي۔

پـدې آیت کښې د اِلـٰه یـوه معـنیٰ ذکـر شـویـده چه اِلٰه به هغه ذات ته وائي چه نمر راخیـژولے شي او پـه هـغه کښې تصرف کوي۔ نو پدې کښې رد دې په هغه مشرکانو چه وائي شمس تبریز بابا په ملتان باندې نمر راکوز کړے وو۔

دا سـو چه دروغ او مـنـکـرت قصې دي، او د شرك عقیده ده څکه چه په نمر کښې تصرف کول صرف د الله تعالیٰ شان دې۔

او پـدې کـښې هـم مشـرکـانو د الله سره شریکان جوړ کړیدي، دا غلطه قصه ئې مشهوره کـړې ده چه د پیر بـابـا او د آخـونـد درویـزه بابا یوه ورځ مناظره شوه چه تا زما نه بالکې تـختـولے دې، نو پیربابا راولګیدو او خپل کچکول ئې په شپه باندې واچولو نو بیا ورځ نهٔ راتـلـلـه، او پـه خـلـکو باندې شپـه اُوږده شوه چه پکښې تنګ شو نو بیا خلك هغهٔ ته راغـلـل او زاري ئې ورته وکړه نو هغه کچکول لرې کړو۔ دا ډکوسله ده، څکه چه هرکله په شپه باندې قادر دې، نو بیا په اخوند درویزه ولې قادر نشو چه بالکې ترې واخلي۔

په اول آیت کښې ئې تَسْمَعُوْنَ او په دویم کښې تُبْصِرُوْنَ وویلو، مناسبت دا دې چه مخکښې د شپې تـذکره وه او پـه هـغې کـښې لیـدل نهٔ کیـږي بـلـکه آوریدل کیږي او په ورځ کښې آوریدل کم کیږي او لیدل ډیر کیږي۔ یعنی د ورځې په سترګو وګوره او د شپې واوره۔

ابـن کـثیـرؒ وئیلي دي چه د (اِنْ جَعَلَ) شرط دپاره جزاء پټه ده اَیْ لَاضَرَّ ذٰلِكَ بِهِمْ۔ (ضرور به دا تکلیف ورکوي دوی ته) او (مَنْ اِلـٰهٌ) ئې هم جزاء کیدے شي۔

وَمِنْ رَّحْمَتِهٖ : اُوس دا بیـانـوي چه شپـه او ورځ راتلل صرف دلیل نهٔ دې بلکه دا د الله تعالیٰ مهرباني هم ده چه انسانانو ته پکښې الله تعالیٰ فائدې ورکوي۔

انسان د شپې آرام کوي چه د هغې په وجه ئې بدن ښه شي او ستړي والے ئې ختم شي۔ د شپې لږ خـوب او د ورځې ډیر خوب برابر نهٔ دې، خاصکر د اول د شپې یعنی د ماسخوتن مـانـخـه پسې متصل خوب صحت دپاره ډیر فائده مند دې، او همدا شرعي خوب دې، د

رسول الله ﷺ طريقه هم دا وه، او دا د فاسقانو طريقه ده چه ماسخوتن نهٔ وده کيږي تر ناوخته پورې بغير د شرعي عذر نه، او بيا چه وده شي نو نمر ختانهٔ راپاڅيږي.

په شپه کښې باطني سکون شته چه عبادات پکښې بنه کيږي، زړهٔ فارغه وي.

لِتَسْكُنُوا فِيهِ: دا متعلق دے د (اللَّيْلَ) سره او (لِتَبْتَغُوا) د (النَّهَارَ) سره متعلق دے او دواړه د دواړو سره هم متعلق کيدے شي، کله نا کله خلك د شپے د الله تعالىٰ فضل طلب کوي، سفرے کوي، او د ورځے آرام کوي. پدے وجه ئے دا دواړه د دواړو نه روستو راوړل او هر يو ئے د بل سره متصل رانهٔ وړو.

وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ: دوه قسمه شکر مراد دے (۱) بهر شکر چه الحمد لله چه شپه ئے راوسته د آرام کولو دپاره. او الحمد لله چه ورځ ئے راوسته. (۲) پدے شپه او ورځ کښې دننه د الله بندګي وکړئ، ځکه چه شپه او ورځ الله تعالىٰ ددے دپاره اړوي راړوي چه بندګان په کښې د خپل رب بندګي وکړي. که يو شان حالت وے، او انقلاب په اوقاتو کښې نهٔ راتللے نو د بنده به عبادت ته شوق نهٔ کيدلے. لکه سورة الفرقان (۶۲) آيت کښې تير شو ﴿هُوَ الَّذِيْ جَعَلَ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ خِلْفَةً لِمَنْ اَرَادَ اَنْ يَّذَّكَّرَ اَوْ اَرَادَ شُكُوْرًا﴾ نو هغه خلکو د نظام مقصد ونهٔ پيژندو چه د شپے او ورځے نه فائدے اخلي او ايمان نهٔ راوړي او د هغه په بندګئ کښې نهٔ مصروف کيږي. دے خلکو ته آسمان او زمکه او دا نظام عبث ښکاره کيږي.

وَيَوْمَ يُنَادِيهِمْ: بيا په شرك باندے رد کوي. ددے آيت د تکرار وجه (۱) يوه دا ده چه مخکښې ددے خلکو د عقيدے فساد بيان شو، او پدے آيت کښې دا بيانوي چه د دوي شرك بې دليله وو او دوي صرف خواهش او تقليد پسے روان وو.

(۲) دويم دا چه په اول ځل کښې دوي ته به آواز وشي نو دوي به بتان راوبلي او په دويم ځل چه ورته آواز وشي نو دوي به غلي شي.

(۳) دارنګه پدے تکرار کښې زيات زجر او رټنه او توبيخ دے او پدے خبره خبردارے ورکوي چه الله تعالىٰ ته د شرك نه لوي غضب والا شے بل نشته لکه څنګه چه د توحيد نه لوي بل شے د الله د رضا د حاصلولو نشته. (القرطبي، فتح البيان)

وَنَزَعْنَا: يعني کله چه دوي ته الله تعالىٰ آواز وکړي چه زما هغه برخه داران څه شو چه تاسو به ګمان کولو چه دا د الله شريکان دي. نو دوي به غلي شي نو دغه وخت به الله تعالىٰ د هر امت نه ګواه راولي په بلاغ (خبره رسيدو) باندے چه دا مشرکان الله تعالىٰ د

رسو لانو په واسطه سره پو هه کړې وو. پیغمبران، علماء او د حق داعیان به راپاڅیږی او ګواهی به ورکړی چه آؤ مونږ دے خلکو ته دین بیان کړے وو. پدے وجه علماءِ حق په امت کښې په خلکو باندے لوی حجت دے، د قیامت په ورځ به د دوی په وجه د خلکو بهانه ختمیږی.

اَنَّ الْحَقَّ: اَیْ حَقُّ الْاُلُوْهِیَّةِ لِلّٰهِ ـ یعنی د الُوهیت او بندګئ حق خو صرف د الله تعالیٰ دپاره وو او مونږ مخلوق ته ورکړے وو، دا مونږ کوم فساد کړے وو. نو خپله به ووائی چه مونږ د جهنم لائق یو.

مَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ: هر مشرك سره څه نا څه دلیل وی لیکن هغه د دروغو دلیل وی. د اولیاؤ په باره کښې شرکی قصے چه دوی د ځان نه جوړے کړے وی، هغه به ترے ورکے شی، دا به نشی وئیلے چه فلانی مُلا دا خبره کړے وه او فلانی کتاب او فلانئ حاشیه کښې راغلی وو.

| |
|---|
| اِنَّ قَارُوْنَ كَانَ مِنْ قَوْمِ مُوْسٰى فَبَغٰى عَلَيْهِمْ ۪ |
| یقیناً قارون وو د قوم د موسیٰ (علیه السلام) نه نو ظلم ئے اُوکړو په دوی باندے |
| وَاٰتَيْنٰهُ مِنَ الْكُنُوْزِ مَآ اِنَّ مَفَاتِحَهٗ لَتَنُوْٓاُ |
| او ورکړے وو مونږ دهٔ ته د خزانو نه دومره اندازه چه یقیناً د هغے چابیانے خامخا درنیدلے |
| بِالْعُصْبَةِ اُولِى الْقُوَّةِ ۗ اِذْ قَالَ لَهٗ قَوْمُهٗ لَا تَفْرَحْ |
| په یوه ډله طاقتوره باندے کله چه اُووئیل هغه ته قوم د هغه خوشحالی مهٔ کوه (په |
| اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الْفَرِحِيْنَ ﴿۷۶﴾ وَابْتَغِ |
| تکبر سره) یقیناً الله تعالیٰ نهٔ خوښوی خوشحالی کونکی (متکبران). او اُولټوه |
| فِيْمَآ اٰتٰىكَ اللّٰهُ الدَّارَ الْاٰخِرَةَ وَلَا تَنْسَ نَصِيْبَكَ مِنَ الدُّنْيَا |
| په هغے کښې چه درکړیدی تا ته الله تعالیٰ کور روستنے او مهٔ هیره وه برخه خپله د دنیا نه |
| وَاَحْسِنْ كَمَآ اَحْسَنَ اللّٰهُ اِلَيْكَ وَلَا تَبْغِ الْفَسَادَ فِى الْاَرْضِ ؕ |
| او احسان کوه څکه چه الله تعالیٰ احسان کړیدے تا سره او مهٔ لټوه فساد په زمکه کښې |

إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْمُفْسِدِيْنَ ﴿٧٧﴾

یقیناً الله نهٔ خوښوي فساد کونکي.

**تفسیر:** د قارون د واقعے یو مناسبت د (٦٠) آیت سره دے ﴿ أَفَمَنْ وَعَدْنَاهُ وَعْدًا حَسَنًا﴾، د دنیا او د آخرت فرق دپاره دلته بل مثال راوړی، نو دا د دنیا د تزهید (بی رغبتئ) مثال دے، قارون ته الله تعالیٰ مالونه ورکړل لیکن هغه ناشکره وو نو الله تعالیٰ عذاب ته ولیږلو او د هغه په مقابل کښې مؤمنانو په دنیا کښې لږ شان تکلیف تیر کړو نو الله جنت ته ولیږل. نو د چا حال ښهٔ شو؟.

دویم د سورت د موضوع سره متعلق دے چه علو او فساد مهٔ کوئ لکه چه دا دواړه مرضونه په قارون کښې موجود وو، لوی متکبر وو او د تکبر د وجه نه لوی ظالم او مفسد وو، نور خلك ئے دنیا ته مائل کول، نو الله تعالیٰ ددے په وجه په زمکه ننویستو، [وَمَنْ تَكَبَّرَ وَضَعَهُ اللّٰهُ] څوك چه ځان لوی ګنړی الله به ئے خکته کوی). په علو او فساد سره دنیا او دارنګه آخرت هم خرابیږی. او مؤمنانو ته پکښې تسلی ده چه د چا په دنیا باندے مهٔ دهوکه کیږئ، دا هیڅ شے نهٔ دے. بلکه ایمان او عمل صالح باندے شکر وکړئ.

قارون د بنی اسرائیلو نه وو. مفسرین لیکی چه قارون د موسیٰ علیه السلام د ترهٔ ځوی وو. قارون بن يَصْهُرْ بن قاهِث بن لاوی بن یعقوب علیه السلام. او موسیٰ علیه السلام ابن عمران بن قاهث وو. ابن اسحاقؒ وائی چه ترهٔ ئے وو، نو هغه قارون او عمران دواړه ورونه ګنړلی دی چه د قاهث زامن دی. او دریمه رائے داده چه د مور د خور ځوی ئے وو (خورئے). بهر حال هغه د بنی اسرائیلو یو فرد وو، لیکن د کفر او سرکشئ په وجه د فرعون سره ملاؤ وو، او الله تعالیٰ چه د کفر کومو دریے مشرانو ته په خصوصی توګه موسیٰ علیه السلام نبی رالیږلے وو، په هغوئ کښې یو دے وو، دویم هامان چه د فرعون قبطی وزیر وو، او دریم د کفر سر فرعون وو. فرعون د خپل طرف نه په بنی اسرائیلو باندے والی مقرر کړے وو، چه دهٔ به په هغوی باندے ظلمونه کول، او د هغوی حقونه به ئے بربادول، بیا چه کله موسیٰ علیه السلام هجرت وکړو نو دهٔ په ظاهره کښې د اسلام دعوه کړے وه او مینځ کښې منافق وو لکه د سامری په شان. نو دے هم ورسره لاړو، او په میدان تیه کښې د مخکنئ مالدارئ سره نور هم زیات مالداره شو څکه څه مالونه ئے ځان سره د مصر نه راوړی وو. نو په دهٔ کښې علو (تکبر) او فساد راغلو، خلك دنیا ته مائل کول او د دنیا محبت د خلکو په زړونو کښې

اچول، او په تکبر باندې ګرځېدل دده کار وو، او داسې سړي خلك دنیا ته مائل کوي، خپل لباس او اسونه خلکو ته ښکاره کوي او د عامو خلکو زړونه خو کمزوري وي نو هغوی هم مائل شي وائي چه په قارون الله ډېر فضل کړیدې، لړ مؤمنان پوهه خلك وائي چه دا د الله تعالیٰ امتحان دې.

وئیلې کیږي چه قارون به د کبر ښکاره کولو دپاره د نورو خلقو په مقابله کښې خپله کیږه یوه لیشت اوږده جوړوله.

د کفر او سرکشۍ ددې مشر تذکره دلته ددې دپاره کیږي چه قریشو تنبیه (خبرداري) ورکوي چه هغوئ په مکه کښې د خپلې سردارئ، مال او دولت او دنیوی مال او متاع د ضائع کیدو د ویرې په وجه په نبی کریم ﷺ باندې د ایمان راوړلو نه انکار کړې وو، او وئیل به ئې چه که مونږ د محمد پیروي وکړو نو د عربو تمام خلق به مونږ اُوتښتوي او زمونږ وجود به ختم شي، زمونږ تجارت به په خطره کښې پریوځي.

ګویا که په کفر او تکبر کښې د دوئ حالت د قارون پشان وو، دې وجې نه دده د واقعې او انجام په بیانولو سره هغوئ له تنبیه ورکړې شوې چه هغوئ د دولت په نشه کښې د محمد ﷺ دعوت رد نهٔ کړي لکه څنګه چه قارون د موسیٰ علیه السلام دعوت رد کړو، ګنې د دوئ انجام به هم د هغهٔ پشان شي.

**فَبَغٰى عَلَيۡهِمۡ** : یعني ظلم ئې وکړو په خپل قوم باندې.

د بغي ډېر صورتونه وو (۱) ظَلَمَهُمۡ. په هغوی ئې ظلم وکړو.

(۲) اِسۡتَطَالَ وَتَفَضَّلَ عَلَيۡهِمۡ . په هغوی ئې تکبر کولو، او ځان ئې پرې غوره ګڼړلو. او په هغوی به ئې ټیکسونه لګول، په تجارتونو ئې پابندیانې لګولې.

(۳) اِسۡتِخۡفَافُهٗ بِهِمۡ لِكَثۡرَةِ مَالِهٖ وَوَلَدِهٖ . د ډېر مال او اولاد په وجه ئې بني اسرائیل سپك ګڼړل. (ضحاك)

(٤) بِنِسۡبَةِ الۡمَالِ اِلٰى نَفۡسِهٖ لِعِلۡمِهٖ وَحِيۡلَتِهٖ] د الله ورکړي مال نسبت به ئې خپل علم او خپل چل ته کولو.

(٥) دارنګه دا ئې غوښتل چه بني اسرائیل د هغه د حکم نه لاندې ژوند تیر کړي او د موسیٰ علیه السلام سره ئې د هغه په رسالت او د هارون علیه السلام سره ئې د هغه په امامت باندې حسد او کینه شروع کړه.

**بِالۡعُصۡبَةِ** : دا د لسو نه څلویښتو کسانو جماعت ته وئیلې شي. هرکله چه چابیانې

دومره ډیرے وے نو خزانے به ئے څومره ډیرے وے۔

إِذْ قَالَ لَهُ قَوْمُهُ : دے قارون ته د هغهٔ قوم یعنی د بنی اسرائیلو مسلمانانو نصیحت وکړو چه د دنیا په چمك دمك باندے دومره زیات خوشحالیږه مهٔ چه د الله د یاد نه غافله شے، الله تعالیٰ داسے خوشحالی نهٔ خوښوی چه د هغے په وجه انسان د آخرت نه غافله شی، او دنیا هر څهٔ وګڼړی، ځکه چه د هرے بدئ او هر فساد جرړه همدا ده۔ او الله تاله دولت درکړے، هغه د خیر په کارونو کښ خرچ کړه، او د آخرت کامیابی تالاش کړه، او ددے دولت نه (بغیر د فضول خرچئ او تکبر نه) خپل ځان ته فائده رسول مهٔ هیروه، او لکه څنګه چه الله تعالیٰ په تا احسان کړے، تهٔ هم د الله تعالیٰ د بندګانو سره ښیګړه کول مهٔ هیروه او ددے مال په ذریعه په زمکه فساد مهٔ خوروه، ځکه چه الله تعالیٰ فساد خورونکی نهٔ خوښوی۔

لَا تَفْرَحْ : دلته فَرَحُ الْبَطَر مراد دے یعنی داسے خوشحالی چه انسان په تکبر کښ راشی، او په غفلت کښ واقع شی ځکه چه داسے خوشحالی زړه سختوی۔

الدَّارَ الْاٰخِرَةَ: نه مراد جنت دے۔ ځکه چه د مال په وجه جنت ګټلے کیږی۔

وَلَا تَنْسَ نَصِيْبَكَ مِنَ الدُّنْيَا : ۱- یعنی مونږ درته داسے نهٔ وایو چه ټول مال د الله په لاره کښ ولګوه (ځکه چه دا د دعوت طریقه نهٔ ده چه چا ته ووائی چه ټول مال ولګوه ځکه چه دا د مالدارو خلکو د مزاج خلاف ده او د شریعت هم خلاف ده مګر صرف په خاصو صورتونو کښ او خاص کسانو کښ اجازه شته) یعنی تهٔ ترے خپلے دنیاوی فائدے هم واخله لیکن آخرت له هم تیارے ورکوه۔ [اَیْ تَمَتَّعْ بِاللَّذَّاتِ الدُّنْيَوِيَّةِ] یعنی دنیاوی خوندونو نه فائدے هم واخله۔ دا منع نهٔ دی۔

۲- [اَیْ لَا تَنْسَ نَصِيْبَكَ مِنَ الدُّنْيَا لِلْاٰخِرَةِ] (ابن عباسؓ) یعنی د دنیا نه د آخرت دپاره برخه هیره نهٔ کړے چه صرف دنیا کښ ئے خورے او د آخرت دپاره تیارے نکوے۔ نو دا به تشریح وی د ﴿ وَابْتَغِ فِيْمَا آتَاكَ اللهُ الدَّارَ الْاٰخِرَةَ ﴾ دپاره یعنی دنیا کښ ټوله مهٔ خوره بلکه د آخرت دپاره هم تیارے وکړه، ځکه چه آخرت په دنیا باندے ګټلے کیږی۔

وَأَحْسِنْ كَمَآ أَحْسَنَ اللهُ إِلَيْكَ : ۱- کاف د تشبیه دپاره دے۔ [اَیْ اَحْسِنْ اِحْسَانًا كَاِحْسَانِ اللهِ اِلَيْكَ] ۔ یعنی داسے احسان کوه لکه څنګه چه الله تعالیٰ تا سره احسان کړیدے۔ یعنی اګرکه د الله تعالیٰ احسانات په تا ډیر دی لیکن تهٔ هم څه نا څه احسان وکړه او د الله د احسان سره مشابهت وکړه۔ الله تعالیٰ د بنده نه په لږ هم راضی کیږی۔

۲- یا کاف تعلیلی دے یعنی ددے وجه نه چه تا سره الله تعالیٰ احسان کړیدے نو ته هم احسان کوه. دواړه صحیح دی.

او دلته احسان په بندګئ کښ هم مراد دے یعنی په ښائسته شان سره د الله بندګی وکړه او د الله تعالیٰ د مخلوق سره هم احسان مراد دے. او په دعوت کښ به دواړه خبرے کولے شي.

وَلَا تَبۡغِ الۡفَسَادَ: مخکښ (لَا تَفۡرَحۡ) کښ ددهٔ تکبر بیان شو، اُوس ددهٔ فساد بیانوی.

ددهٔ فساد څه وو؟ ۱- یو صَدٌ عَنۡ سَبِیۡلِ الله. د الله د لارے نه (د موسیٰ علیه السلام) نه به ئے خلك اړول. ۲- اَلتَّرۡغِیۡبُ فِی الدُّنۡیَا. خلك به ئے دنیا ته مائله کول چه راځئ تجارتونه وکړئ، په عبادتونو څه کوئ. ۳- د موسیٰ علیه السلام سپکاوے کول. زنانه ته ئے پیسے ورکړے چه ورشه او اعلان وکړه چه ما سره موسیٰ (علیه السلام) زنا کړے. او لنډ تعبیر ئے عمل بِالۡمَعَاصِیۡ دے یعنی تول ګناهونه کول.

| قَالَ اِنَّمَآ اُوۡتِیۡتُهٗ عَلٰی عِلۡمٍ عِنۡدِیۡ ؕ اَوَلَمۡ یَعۡلَمۡ |
|---|
| ووئیل هغه یقیناً راکړے شویدی ما ته دا په علم باندے چه ما سره دے، آیا دے نه پوهیدو |
| اَنَّ اللهَ قَدۡ اَهۡلَكَ مِنۡ قَبۡلِهٖ مِنَ الۡقُرُوۡنِ مَنۡ هُوَ |
| چه بیشکه الله تعالیٰ هلاك کړیدی مخکښ ددهٔ نه د پیړو نه هغه څوك چه هغه |
| اَشَدُّ مِنۡهُ قُوَّةً وَّاَکۡثَرُ جَمۡعًا ؕ وَلَا یُسۡئَلُ |
| ډیر سخت وو ددهٔ نه په طاقت کښ او زیات وو په ډله کښ او تپوس به ونکړے شي |
| عَنۡ ذُنُوۡبِهِمُ الۡمُجۡرِمُوۡنَ ﴿۷۸﴾ فَخَرَجَ عَلٰی قَوۡمِهٖ فِیۡ زِیۡنَتِهٖ ؕ |
| د ګناهونو د دوی نه د مجرمانو نه. نو را اُوتلو هغه په قوم خپل باندے په ډول خپل کښ، |
| قَالَ الَّذِیۡنَ یُرِیۡدُوۡنَ الۡحَیٰوةَ الدُّنۡیَا یٰلَیۡتَ لَنَا مِثۡلَ |
| اُوئیل هغه کسانو چه اراده ئے لرله د ژوند دنیوی هائے ارمان چه وے مونږ لره په شان |
| مَآ اُوۡتِیَ قَارُوۡنُ ۙ اِنَّهٗ لَذُوۡ حَظٍّ عَظِیۡمٍ ﴿۷۹﴾ وَقَالَ |
| د هغے چه ورکړے شویدے قارون ته یقیناً دے خامخا خاوند د برخے لوئی دے. او ووئیل |

| الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ وَيْلَكُمْ ثَوَابُ اللّٰهِ |
|---|
| هغهٔ کسانو چه ورکړے شوے ورته علم (پوهه د دين) تعجب دے په تاسو بدله د الله |
| خَيْرٌ لِّمَنْ اٰمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا ج |
| تعالیٰ غوره ده دپاره د هغه چا چه ايمان ئے راوړيدے او عمل ئے کړيدے نيک، |
| وَلَا يُلَقّٰهَآ اِلَّا الصّٰبِرُوْنَ ﴿۸۰﴾ |
| او نهٔ ورکړے کيږی دا مګر صبر کونکو ته۔ |

**تفسير** : پدے نصيحت سره دے سرکش او نافرمانه قارون ته هيڅ فائده ملاؤ نشوه، هغه ووېل : عَلٰی عِلْمٍ عِنْدِیْ ۱ - يعنی زما د علم په وجه ما ته دا مالونه ملاؤ شويدی او دا د الله تعالیٰ احسان نهٔ دے، ددهٔ علم څه وو يعنی زهٔ د تجارت او زراعت په فن کښ مهارت لرم چه د هغے په سبب مے دا مالونه حاصل کړی۔

بعض وائی د هغه علم کيمياء وه۔

۲- ابن زيدؒ وائی چه عَلٰی عِلْمِ اللّٰهِ بِاَنِّیْ اَهْلُهٗ۔ يعنی الله ته معلومه وه چه زهٔ ددے مالونو حقدار يم، او د الله ما سره مينه ده او هغه ته زما فضيلت او مرتبه معلومه ده ځکه ئے دا مالونه راکړيدی، او په ما باندے د هيڅا احسان نشته چه زهٔ دا په خلکو باندے خرچ کړم۔

زجاجؒ همدا قول غوره کړيدے او ابن کثيرؒ ئے تائيد کړيدے چه د عبد الرحمن بن زيد بن اسلمؒ تفسير ډير کرهٔ تفسير دے۔

ددے بل تعبير دا دے : الله ماله دا مال د هغهٔ علم په وجه راکړے کوم چه ماسره دے، او زهٔ ئے ددے حقدار ګنړلے يم او دا ئے راکړے۔

**فائده** : علماؤ ليکلی دی : دړے الفاظ په هيڅ ځای کښ مهٔ استعمالوه سوئ د يو ځای نه يو اَنَا لفظ دے دا د ابليس دے، او (لِیْ) د فرعون دے، ﴿ اَلَيْسَ لِیْ مُلْكُ مِصْرَ﴾ (الزخرف: ۵۱) او (عِنْدِیْ) د قارون دے۔ دا دړے الفاظ د غټو کافرو دی، صرف يو ځای کښ وايه [وَكُلٌّ ذٰلِكَ عِنْدِیْ] دا ټول ګناهونه او کمزوری ما سره شته۔

**اَوَلَمْ يَعْلَمْ** : الله تعالیٰ ددهٔ ددے کافرانه خبرے جواب دا ورکړو چه که طاقت او مال د الله په نيز د فضيلت سبب وے، نو په تيرو شوو زمانو کښ ډير قومونه الله هلاك کړی، چه

هغویٔ د قارون نه زیات طاقتور او د هغهٔ نه زیات مالدار وو۔
د ډیرو گناهونو او د ډیرو جرمونو په وجه کله چه د کوم قوم د هلاکولو فیصله کیږی نو دوئ له مهلت نشی ورکولے، او د هغوئ نه تپوس نهٔ کیږی چه هغوئ دا گناه ولے کړے، او د دوئ سره څهٔ عذر دے۔
وَاَكْثَرُ جَمْعًا: یعنی زیات وو ددهٔ نه په راجمع کولو د مالونو کښ۔ دے نه معلومیږی چه د قارون نه هم زیات مالدار خلك تیر شویدی څکه چه نفری کمه وه او زمکے او سرهٔ او سپین زیات وو۔
یا د جَمْعًا نه مراد جماعتونه او ډلے دی۔ وئیلے کیږی چه د قارون دوه نیم سوه بنی اسرائیل ملگری وو چه دا د جماعتونو مشران وو۔ (التحریر والتنویر)
او پدے طرز د خطاب کښ موجوده خلك یره ول دی چه تاسو د قارون په شان کار ونکړئ۔
وَلَا يُسْئَلُ عَنْ ذُنُوْبِهِمُ الْمُجْرِمُوْنَ: دے کښ اضمار قبل الذکردے اَیْ لَا يُسْئَلُ الْمُجْرِمُوْنَ عَنْ ذُنُوْبِهِمْ ۔ یعنی د مجرمانو نه به د هغوی د گناهونو تپوس نهٔ کیږی۔ نو سوال پیدا شو چه قرآن کښ خو راغلی دی ﴿ فَوَرَبِّكَ لَنَسْئَلَنَّهُمْ اَجْمَعِيْنَ عَمَّا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴾ (الحجر:۹۲) ﴿ فَلَنَسْئَلَنَّ الَّذِيْنَ اُرْسِلَ اِلَيْهِمْ ﴾ (الاعراف:۶) چه د دوی نه به تپوسونه کیږی؟
(۱) جواب دا دے چه سوال دوه قسمه دے یو توبیخی او بل استعلامی۔ د توبیخ تپوس شته چه دا کار دِے ولے کړیدے او د استعلام تپوس به نهٔ وی چه الله ځان خبروی چه اے مجرمه! آیا تا دا کار کړیدے او که نهٔ؟۔ (ابن عباسؓ- القرطبی)
(۲) مجاهدؒ وائی: مجرمانو نه به تپوس نهٔ کیږی څکه چه دوی به په خاصو نخو سره پیژندلے شی چه تور مخی او شین سترگی به وی۔ (القرطبی والبغوی وفتح البیان)
(۳) یا د دنیاوی یا اُخروی عذاب راتللو په وخت کښ د مجرم نه تپوس نهٔ کیږی، دے دپاره چه څه عذر پیش نکړی څکه چه په دغه وخت کښ عذر نهٔ قبلیږی نو تپوس ته هم ضرورت نشته۔ (ابن عادل الدمشقیؒ والقاسمیؒ)
فَخَرَجَ عَلٰى قَوْمِهٖ فِىْ زِيْنَتِهٖ: د قارون کار دا وو چه بنی اسرائیل به ئے ځان ته توسه ول او هغوی ئے دنیا ته مائل کول۔ نو یوه ورځ قارون په اس باندے سور شو او ځان سره ئے ډیر تابعدار او وینځے او خادمان راروان کړل چه هغوی ته ئے د سرو او د وریښمو ښائسته سرهٔ لباسونه واغوستل او آسونو او قچرو ته ئے هم گانړے واچولے، په انتهائی ښائسته

لباس کښې د ښار په يوې لارې ته را ووتلو، پدې سره ئې خپل شان او شوکت او خپله لوئي خلکو ته خودله او خلك ئې دنيا پرست جوړول. د بنی اسرائيلو په بازارونو او کورونو باندې راتير شو. لکه د ظالمانو اکثر طريقه همدا وي چه ښائسته څيزونه ددې دپاره جوړه وي چه خلك دې ته وپسخيږي، د بعض زنانو عادت دا وي چه ډول سينګار ددې دپاره کوي چه خلك ورته مائل شي، د خلکو پريشانه کول ئې غرض وي.

بعض مالداره خلك په يو ځای کښې د خلکو د مائله کولو دپاره پيسې راښکاره کړي او فخر او تکبر کوي، ددې وجه نه مؤمن به خپل زړه ته ګوري، په بعض ځايونو کښې به خپلې پيسې هم نۀ راښکاره کوې، ځکه چه دا د انسان زړه فاسدوي، تکبر راولي، په بعض ځايونو کښې به خپل ډول او سينګار نۀ ښکاره کوې چه غټې ځنړې پريدې او لاس خوزوې او ښائسته ځواني ډې وي بلکه ساده ګی به اختياروی ځکه چه پدې کار سره تا ته ډير خلك مائله کيږي، زنانه، ماشومان او بعض انسانان متأثره کيږي او د خپل نفس نه خلك متأثره کول هم حرام دي، او دا د زړونو د علم سره تعلق لري، مؤمن به ددې خبرو لحاظ کوي. د ډيرو خلکو دې خبرو ته فکر هم نشته. غټو ګارو کښې ناست خلکو ته ټول خلك ګوري او ډير ورته پسخيږي.

قَالَ الَّذِيْنَ: کله چه خلقو ددۀ شان او شوکت وليدۀ نو د هغوئ سترګې کيرې پيرې شوې، او دنيوي ژوندون خوښونکي صاحبانو چه ددۀ دا ټيس ټپاس وليدۀ نو وې وئيل چه کاش! مونږ سره هم د قارون غونته دولت وې، او مونږ هم ددۀ پشان د عيش او عشرت ژوند تيرولې، دا خو ډير قِسمت خور دې.

وَقَالَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ: د بنی اسرائيلو نيك عمله عالمانو چه د دوئ دا خبره واوريده وې وئيل: ستاسو د نظرونو نه آخرت پورته شوې، او دنيا مو هر څۀ ګڼلې ده، حالانکه د الله تعالیٰ د جنت په مقابله کښې د دنيا د عارضی نعمتونو هيڅ حيثيت نشته، او دا جنت به هغه چاته ملاويږي چه ايمان راوړي او نيك عمل کوي، او دې نصيحت نه هغه خلق فائده پورته کوي چه د صبر او استقامت سره د الله په دين باندې ولاړ وي.

اُوْتُوا الْعِلْمَ: اَیْ بِحَقِيْقَةِ الدُّنْيَا. يعني هغه کسانو وويل چه هغوی ته د دنيا د حقيقت علم ورکړې شوې وو چه دا ختميدونکې فائدې دي. او دې نه معلومه شوه چه عالِمان د الله په نيز هغه خلك دي چه مالونه او د دنيا جاه او مرتبې له هيڅ اعتبار نۀ ورکوي او په

فناء د دنیا او په دوباره ژوندی کیدو باندے یقین لری۔

وَيْلَكُمْ: دا په اصل کښې (وَىْ لَكُمْ) دے، او وَىْ د تعجب کلمه ده۔ یعنی تعجب دے په تاسو ، او دا کلمه ئے د زورنے دپاره راوړیده او یا وَيْلَكُمْ په اصل کښې وَيْلٌ لَكُمْ دے۔ او مطلب ئے دا دے چه کـه تاسو په راتلونکی مضمون باندے یقین ونکړو نو هلاك به شئ۔ اوله معنیٰ ظاهره ده۔

ثَوَابُ اللهِ: ددے نه مراد د آخرت نعمتونه، او دارنګه د دنیا نعمتونه دی چه د ایمان او د عمل صالح په برکت سره حاصلیږی۔ ځکه چه د نیك عمل فائده په دنیا کښې هم شته او په آخرت کښې هم۔ او د قارون مال په دنیا کښې هم پریشانی او په آخرت کښې هلاکت دے۔

وَلَا يُلَقّٰهَآ: ١- ها : ضمیر خصلت د ایمان ته راجع دے۔ ٢- یا اعمال صالحه ؤ ته راجع دے۔ (معالم التنزیل) ٣- مخکنئ کلمے ته راجع دے۔

٤- ظاهر دا ده چه ها ضمیر مخکښې (ثَوَابُ الله) ته راجع دے چه د هغے نه مراد جنت او نعمتونه دی په تاویل د جنت سره ورته راجع دے۔ ټول مصداقات صحیح دی او یو بل ته نزدے دی او حاصل ئے یو راوځی۔

| فَخَسَفْنَا بِهٖ وَبِدَارِهِ الْاَرْضَ قف فَمَا كَانَ لَهٗ مِنْ فِئَةٍ يَّنْصُرُوْنَهٗ |
|---|
| نو ننباسو مونږ دهٔ لره او کور ددهٔ لره په زمکه نو نهٔ وه دهٔ لره څه ډله چه مدد اُوکړی ددهٔ |
| مِنْ دُوْنِ اللهِ ق وَمَا كَانَ مِنَ الْمُنْتَصِرِيْنَ ﴿٨١﴾ وَاَصْبَحَ الَّذِيْنَ |
| سره سوىٰ د الله تعالىٰ نه او نهٔ وو دے د بدله اخستونکو نه۔ او صبا کړو هغه کسانو |
| تَمَنَّوْا مَكَانَهٗ بِالْاَمْسِ يَقُوْلُوْنَ وَيْكَاَنَّ اللهَ يَبْسُطُ الرِّزْقَ |
| چه ارمان ئے کړے وو د حالت د هغه پرون، وئیل ئے عجیبه ده یقیناً الله تعالىٰ فراخوی رزق |
| لِمَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ وَيَقْدِرُ ج لَوْلَآ اَنْ مَّنَّ اللهُ |
| چا لره چه اُوغواړی د بندګانو خپلو نه او کموی ئے، کچرته احسان نهٔ وے کړے الله تعالىٰ |
| عَلَيْنَا لَخَسَفَ بِنَا ط وَيْكَاَنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الْكٰفِرُوْنَ ﴿٨٢﴾ |
| په مونږ باندے خامخا ځمکې ته به ئے وړے وے مونږ، عجیبه ده یقیناً نهٔ کامیابیږی کافران۔ |

| تِلْكَ الدَّارُ الْاٰخِرَةُ نَجْعَلُهَا لِلَّذِيْنَ لَا يُرِيْدُوْنَ عُلُوًّا |
|---|
| دغه کور روستنے دے کرخوو مونږ دے لره دپاره د هغه کسانو چه اراده نهٔ لری د لویئ |
| فِي الْاَرْضِ وَلَا فَسَادًا ؕ وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِيْنَ ﴿٨٣﴾ مَنْ جَآءَ |
| په زمکه کښې او نهٔ د فساد کولو، او غوره انجام متقیانو لره دے۔ هغه څوك چه راتلل |
| بِالْحَسَنَةِ فَلَهٗ خَيْرٌ مِّنْهَا ۚ وَمَنْ جَآءَ بِالسَّيِّئَةِ فَلَا يُجْزَى |
| اُوکړی په نیکئ نو وی به دهٔ لره غوره د هغې نه، او چا چه راتلل اُوکړهٔ په بدئ نو بدله |
| الَّذِيْنَ عَمِلُوا السَّيِّاٰتِ اِلَّا مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿٨٤﴾ |
| نشی ورکیدے هغه کسانو ته چه کړے ئے دی بدئ مگر د هغې عملونو چه دوی به کول۔ |

**تفسیر :** هرکله چه قارون بغاوت او تکبر ښکاره کړو نو الله تعالیٰ ورله عذاب ورکړو۔ موسیٰ ﷺ ورته ښیرے وکړے، چه اے الله ! دا په زمکه خخ کړه۔ او د ښیرو وجه ئے دا وه چه دهٔ پرے د زنا طعن لګولے وو، یوے زنانه ته ئے پیسے ورکړے وے چه تهٔ په موسیٰ (ﷺ) باندے طعن ولګوه چه ما سره ئے زنا کړے ده۔ موسیٰ ﷺ دا زنانه راوغوښته او ورته ئے وویل : ستا دے په هغه الله باندے قسم وی چه تورات ئے رالیږلے دے دا خبره تا ته چا کړیده ؟ نو هغې اقرار وکړو چه قارون راته کړے او مال ئے راکړے، نو موسیٰ ﷺ سوال وکړو چه اے الله ! ما لـه پـه دهٔ باندے قدرت راکړه، دا ظالم ما شرموی او ظلمونه او فسادونه کوی، د هلاکولو لائق دے۔

نو الله ورله اجازه ورکړه نو موسیٰ ﷺ د الله پـه امر زمکے ته حکم وکړو چه دا راخکاره نو دے او ددهٔ ملګری تول ئے رانښکل او مال ئے ورله په سر کیخودو او هغه ئے هم ورسره ورننویستو، دهٔ ډیر چغې سورے ووهلے چه ما پریدئ لیکن نهٔ ئے پریخودو۔ او موسیٰ علیـه السـلام تـه ئے ډیر آوازونه وکړل لیکن هغه ورته توجه ورنکړه۔ دے وخت کښې د قارون توجه الله ته نهٔ پیدا کیده ځکه چه دا د الله تعالیٰ اصول دی چه مخکښې نه یو بنده الله تـه متـوجـه نـهٔ وی نـو د عـذاب پـه وخت کښې ئے توجه نهٔ پیدا کیږی، نو په روایت د مستدرك کښې د عبد الله بن عباس ﷺ نه پـه اسـنـاد صحیح سره نقل دی چه الله تعالیٰ موسیٰ ﷺ تـه وفرمایل : [سَأَلَكَ عِبَادِيْ وَتَضَرَّعُوْا إِلَيْكَ فَلَمْ تُجِبْهُمْ] اے موسیٰ! ستا نه زما بندګانو سوال وکړو او تا ته ئے عاجزی وکړه خو تا ورله خبره ونهٔ منله۔

[وَعِزَّتِيْ لَوْ اَنَّهُمْ دَعَوْنِيْ لَاَجَبْتُهُمْ] زما دے په خپل عزت قسم وی که ما ته ئے توجه کړے وے او ما نه ئے دعا غوښتے وے نو ما به پرے رحم کړے وے، يعنی د عذاب نه مخکښ که دهٔ ما ته توجه کړے وے نو ما پرے رحم کولو۔ (الله داسے مهربانه دے په دومره غټ کافر هم رحم کوی) ليکن دهٔ ته توفيق ملاؤ نشو۔

پدے کښ د موسیٰ ﷺ بدی نشته ځکه چه موسیٰ ﷺ دا کار د الله په امر او د هغه په قدرت سره کړيدے، ليکن دے کښ غرض دا دے چه دا کافر انسان تا ته متوجه کيدو او الله ته نهٔ متوجه کيدو، که دهٔ الله ته توجه کړے وے نو د الله رحم د انسان د رحم نه زيات دے، د موسیٰ ﷺ دومره رحم نهٔ وو څومره چه د الله وو۔ الله به پرے رحم کړے وے۔

(پدے کښ مونږ ته دا سبق ملاويږی چه الله تعالیٰ د بندګانو نه توجه غواړی)

فَخَسَفْنَا بِهٖ وَبِدَارِهِ الْاَرْضَ : الله تعالیٰ ورله کور او د هغهٔ مالونه (سرهٔ او سپين) هم زمکے ته ننويستل دا ددے دپاره چه څوك دا ونهٔ وائی چه موسیٰ ﷺ د مال دپاره مړ کړو۔

فَمَا كَانَ لَهٗ مِنْ فِئَةٍ : يعنی په دے وخت کښ د الله تعالیٰ په مقابله کښ هيڅ يوه ډله د هغهٔ د مدد دپاره رانغله، او نهٔ هغه خپله د خپل ځان مدد وکړے شو۔

امام بخاریؒ د سالمؒ نه او هغهٔ د خپل پلار (ابن عمر ﷺ) نه روايت کړے چه نبی کريم ﷺ وفرمايل : يو سړی (د کبر په وجه) خپل څادر په زمکه راښکلو، نو الله هغه په زمکه ومنډلو، هغه به قيامته پورے په زمکه کښ دننه روان وی۔

(بخاری:۳٤٨٥) مسلم (٥٥٨٦)

وَاَصْبَحَ الَّذِيْنَ تَمَنَّوْا : کومو خلقو چه د قارون د شان او شوکت په ليدو سره د هغهٔ پشان د دولت آرزو کړے وه، کله چه هغویٔ هغهٔ لره د هغهٔ د کور سره په زمکه ښخيدونکے وليدهٔ نو په خپله آرزو خپيمانه شو او وے وئيل چه اُوس معلومه شوه چه الله تعالیٰ د خپل حکمت او ارادے مطابق په خلقو کښ روزی تقسيموی، چاله ښه روزی ورکوی، او په چا باندے د هغے دروازے تنګوی۔ په روزیٔ کښ فراخی او تنګی د نيك بختیٔ يا بدبختیٔ دليل نهٔ دے، ګنے نن به قارون د خپل مال او اسبابو سره په زمکه نهٔ ښخيدلے۔ که چرے په مونږ د الله احسان نهٔ وے، او مونږ هم د قارون غونته په کبر او غرور کښ مبتلا وے، نو مونږ به هم ددهٔ پشان په زمکه ښخ شوی وے۔ مونږ ته دا هم معلومه شوه چه کوم خلق د الله د ورکړو نعمتونو ناشکری کوی، په کبر او غرور کښ

مبتلا کیږي، او د الله د دین او د هغه د رسول نه انکار کوي، په دنیا او آخرت کښې نامرادي د هغوئ قسمت جوړیږي.

مَّنَّ اللّٰهُ عَلَيْنَا : دا خلك مسلمانان وو، خو صرف د دنیا آرزوئے کړے وه او یو کافر ته پسخیدلي وو.

## ویکأن څه معنیٰ ؟

وَيْكَأَنَّ اللّٰهَ : ١- سیبویه، خلیل او یونس او کسائي وائي چه وَيْ حرف تنبیه دے. او كَأَنَّ په معنیٰ د أَنَّ سره دے یعني «خبردار، یقینا الله» او عرب چه کله یو تن پکښې خپیمانه شي نو د خپیمانتیا په مینځ کښې (وَيْ) کلمه استعمالوي. ګویا که دے وخت کښې بیدار شي. ٢- وَيْكَأَنَّ : دا مجموعه په معنیٰ د (أَلَمْ تَعْلَمْ) سره دے یعني آیا ته نۀ پوهیږے. (مجاهدؒ- بغويؒ)

٣- ابن عباس رضی الله عنه وائي چه دا مجموعه په معنیٰ د (أَلَمْ تَرَ) سره دے یعني ته نۀ ګورے. ابن جریرؒ دا قول قتادهؒ ته منسوب کړے او دا ئے په ټولو کښې قوي ګرځولے دے.

٤- قطربؒ وائي چه دا په اصل کښې وَيْلَكَ دے، بیا ترے د تخفیف دپاره لام غورزیدلے دے. (بغويؒ وفتح البیان)

٥- ابن الاعرابيؒ او اخفشؒ وائي : دا په معنیٰ د (إِعْلَمْ) سره دے. یعني پوهه شه. (فتح البیان)

٦- ابن عاشورؒ وائي چه دا (وَيْكَأَنَّ) د درے حروفو نه جوړ دے د (وَيْ) معنیٰ ده (إِعْجَبْ) تعجب وکړه. او کاف پکښې د خطاب دپاره دے. لکه د اسماء اشاراتو پورے چه څنګه پیوسته کیږي. او (أَنَّ) د (إِنَّ) مکسوره په شان د تاکید دپاره استعمالیږي، او ددے مابعد په تاویل د مصدر سره ګرځي او هغه متعجب مِنْهُ وي. (یعني د هغه نه تعجب کیږي) نو معنیٰ دا ده : [إِعْجَبْ يَا هٰذَا مِنْ بَسْطِ اللّٰهِ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَاءُ] تعجب وکړه اے شخصه ! د فراخوالي د الله تعالیٰ نه رزق لره چا له چه وغواړي. او (وَيْكَ) هم په همدے معنیٰ استعمالیږي.

تِلْكَ الدَّارُ الْاٰخِرَةُ : پدے رکوع کښې تفریعات دي ددے سورت په مضمون باندے. لکه دا د قرآن طریقه ده چه په خاتمه کښې داسے خبرے راوړي چه د ټول سورت سره مناسبے وي. اوله خبره د موضوع د سورت سره مناسبه ده چه علو او فساد په دنیا کښې

هلاکت دے نو دغه شان دا په آخرت کښې هم هلاکت دے۔

## ربط

مخکښې د قارون او ددهٔ په شان نورو کافرانو انجام او هلاکت بیان شو نو اُوس د هر هغه چا انجام بیانوی چه په زمکه کښې د کبر او غرور ژوند نهٔ تیروی، او نهٔ د کفر او شرك په ذریعه فساد خوروی، الله تعالیٰ فرمائی چه جنت او ددے ابدی نعمتونه به همدے خلقو ته ملاویږی۔

**تِلْكَ**: کښې اشاره ده معهود ذهنی ته یعنی ستاسو په ذهن کښې چه کوم جنت معلوم دے، نو دغه اُخروی کور دے۔ اَلدَّارُ الْاٰخِرَةُ په قرآن کریم کښې جنت ته وئیلے کیږی، کومو مفسرینو ته چه دا اصطلاح نهٔ ده معلومه نو هغوی دلته اشکال کوی چه کور د آخرت خو کافرانو دپاره هم دے، نو تخصیص د مؤمنانو څنګه شویدے ؟ نو بیا په آیت کښې تاویلات کوی۔

**عُلُوًّا فِي الْاَرْضِ**: فضیل بن عیاضؒ به پدے آیت کښې وئیل : [ذَهَبَتِ الْاَمَانِيُّ هٰهُنَا] پدے مقام کښې آرزوګانے ختمے شوے۔ (مونږ د جنت آرزو کوو لیکن الله وائی چه جنت د هغه چا ځای دے چه علو او فساد پکښې نهٔ وی)

دا دواړه مرضونه د نفس نه ویستل ډیر ضروری دی، عمر بن عبد العزیز رحمه الله چه کله وفات کیدو نو دا آیت ئے بار بار لوستلو [يُرَدِّدُهَا حَتّٰى قُبِضَ] تردے چه وفات شو۔ (پدے کښې ئے ځان ته اشاره کوله، او خلکو ته ئے نصیحت کولو چه د فرعون په شان علو او فساد ونکړئ د آخرت کور به ستاسو په نصیب شی)۔ (فتح البیان)

**لَا يُرِيْدُوْنَ** : دلته الله تعالیٰ اراده د علو او فساد حرامه کړیده، پاتے لا عین علو او فساد کول۔ نن به هم دا اراده نهٔ کوے چه صبا به تکبر او فساد کوم، دا حرامه ده۔

## د علو صورتونه

١- بَطَرُ الْحَقِّ۔ حق له دیکه ورکول او هغه نهٔ منل او د هغے سره ضد کول۔

٢- تَحْقِيْرُ الْمُسْلِمِيْنَ۔ د مسلمانانو سپکاوے کول او بل څوك د ځان نه خکته ګنړل۔

٣- هغه عملونه کول او هغه خبرے کول او هغه لباسونه اغوستل چه دلالت په تکبر کوی اګرکه د انسان په زړهٔ کښې به تکبر نهٔ وی۔ لکه د سرو دپاره د ګیتهو نه پینځے خکته کول۔ ویښته ډیر اُوږده پریخودل چه انسان په عجب او تکبر کښې اخته کوی۔ لکه د

خُریم په باره کښې رسول الله ﷺ وفرمایل : [نِعْمَ الرَّجُلُ خُرَیْمٌ لَوْلَا طُوْلُ جُمَّتِهٖ وَاِسْبَالُ اِزَارِهٖ]
خُریم ښه سړے دے خو که اُوږده ویښته او د لنگ راځکل یے نه وے۔

(ابوداود: ۴۰۹۱ واحمد (۱۷۶۵۹) اسناده حسن)

❁ علی بن ابی طالب ﷺ فرمائی : [اِنَّ الرَّجُلَ لَیُحِبُّ اَنْ یَّکُوْنَ شِسْعُ نَعْلِهٖ اَفْضَلَ مِنْ شِسْعِ نَعْلِ صَاحِبِهٖ فَیَدْخُلُ فِیْ هٰذِهِ الْآیَةِ]
یو تن دا خوښوی چه د هغه د څپلۍ تسمه (مزے) د بل د څپلۍ د مزی نه غوره او ښائسته وی نو دا هم پدے آیت کښې داخلیږی۔ یعنی دا هم علو ده۔

ابن کثیرؒ ددے روایت د ذکر کولو نه روستو فرمائی چه دا حمل دے پدے چه کله انسان دا کار خوښوی او که صرف تجمل (ښائست) ئے مقصد وی نو بیا پکښې داخل نهٔ دے۔

❁ اُوږده شمله پریخودل۔ (اَلْاِسْبَالُ فِی الْاِزَارِ وَالْقَمِیْصِ) ❁ د سړی دپاره د وریښمو جامه اغوستل۔ ❁ دارنگه د سړی دپاره سرو زر گوتمه اغوستل۔ ❁۔ د سرو زرو او سپینو زرو په لوښو کښې خوراکونه کول د سړو او ښځو دپاره۔ ❁ مِیْثَرَةُ الْاُرْجُوَانِ ۔ د اس دپاسه سره کپړه اچول او په هغے کیناستل هم د متکبرانو طریقه ده۔ ❁ جُلُوْدُ السِّبَاعِ۔ د درنده گانو (د زمری او پړانگ) څرمن اچول او د هغے نه قراقل، یا جامه یا واسکټ جوړولو نه هم منع راغلے ده۔ ❁ مَدْحُ النَّفْسِ ۔ د ځان صفتونه کول چه زهٔ داسے کولے شم او ما داسے داسے کارنامے کړیدی۔ او مونږ داسے پهلوانان یو او مونږ داسے قومونه زغلولی دی۔ رسول الله ﷺ چه کله فتح د مکے کوله نو په اُوښ دپاسه ئے سر داسے خکته کړے وو چه د اُوښ د قب سره ئے گیره مبارکه لگیدله۔

❁۔ ابن مردویهؒ د عدی بن حاتم ﷺ روایت راوړیدے چه دا کله رسول الله ﷺ خواته ورغلو نو هغه ورته بالخت راگوزار کړو او خپله په زمکه کیناستو نو هغه وویل : [اَشْهَدُ اَنَّكَ لَاتَبْغِیْ عُلُوًّا فِی الْاَرْضِ وَلَا فَسَادًا فَاَسْلَمَ] زه گواهی کوم چه تهٔ په زمکه کښې لوئی او فساد نهٔ غواړے نو پدے کار سره ئے اسلام راوړو۔ (فتح البیان)

بیا به هر انسان خپلو خبرو او عملونو ته گوری چه دے په کومه خبره کښې علو او فساد کوی، کومه ناسته پاسته ئے د علو ده۔ زړونه د انسانانو مختلف دی۔

صاحب د فتح البیان لیکی : چه په حق کښې علو طلب کول یا په دین کښې مشری طلب کول یا د ښائسته جامے او د ښائسته سورلۍ او ښائسته کور سره مینه کول پدے ممنوع علو کښې داخل نهٔ دی۔

فِي الْاَرْضِ وَلَا فَسَادًا: ددې مصداقات: ١- صَدٌّ عَنْ سَبِيْلِ الله. (د الله د لارې او د نيك عمل او سنت طريقې نه خلك اړول). ٢- او عمل بِالْمَعَاصِىْ. (ګناهونه كول)

ددې آيت مفهوم دا دې چه جنت الله تعالىٰ هغه چا ته وركوى چه تواضع پكښې وى او طاعت د الله تعالىٰ پكښې وى، صلاح پكښې وى، تواضع او علو الهمة (اوچت همت) انسان لره جنت ته رسوى. معلومه شوه چه ټول يهود او نصارىٰ او هندوان او دهريه او مشركان او مبتدعين او شيعه علو او فساد والا دى.

مَنْ جَآءَ بِالْحَسَنَةِ: دا تفريع ده په (٣٧) آيت باندې. او دا آيت علت دې د مخكښې دپاره او ددې خبرې بيان دې چه جزاء د جنس د عمل نه وى نو تقوىٰ حسنه ده، او علو او فساد سيئات دى، او د هر يو جزاء د هغې مناسب ده. او بيا د الله تعالىٰ د مهربانۍ او د هغهٔ د رحمتونو راوريدو ته وګوره چه كه يو بنده يوه نيكى وكړى، نو د قيامت په ورځ به ددې په بدله كښې هغهٔ ته لس نيكۍ ملاويږى، او كله اووه سوو پورې زياتيږى هم. اوكه څوك ګناه وكړى نو ددهٔ په عملنامه كښې د يوې په ځاى صرف يوه ګناه ليكلې كيږى.

فَلَهٗ خَيْرٌ مِّنْهَا: يعنى غوره د نيكۍ نه په اعتبار د بدلې سره.

| اِنَّ الَّذِىْ فَرَضَ عَلَيْكَ الْقُرْاٰنَ لَرَآدُّكَ |
|---|
| يقيناً هغه الله چه فرض كړې ئې دې په تا باندې (رسول) د قرآن خامخا راواپس كونكې |
| اِلٰى مَعَادٍ ؕ قُلْ رَّبِّىْۤ اَعْلَمُ مَنْ جَآءَ |
| دې تا لره ځاى د واپسۍ (مكې) ته اُووايه ! رب زما ښه پوهه دې په هغه چا چه راوړې ئې |
| بِالْهُدٰى وَمَنْ هُوَ فِىْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿۸۵﴾ وَمَا كُنْتَ تَرْجُوْٓا |
| دې هدايت او په هغه چا چه هغه په ګمراهۍ ښكاره كښې دې. او تا اميد نهٔ لرلو |
| اَنْ يُّلْقٰٓى اِلَيْكَ الْكِتٰبُ اِلَّا رَحْمَةً مِّنْ |
| چه دربه كړې شى تا ته كتاب مګر (دركړيدې مونږ تا ته) د وجې د رحمت د طرف د |
| رَّبِّكَ فَلَا تَكُوْنَنَّ ظَهِيْرًا لِّلْكٰفِرِيْنَ ﴿۸۶﴾ وَلَا يَصُدُّنَّكَ عَنْ اٰيٰتِ اللّٰهِ |
| رب ستا نه نو مهٔ كيږه مددګار دپاره د كافرانو. او واړې نهٔ روى تا لره د آيتونو د الله نه |

| بَعۡدَ اِذۡ اُنۡزِلَتۡ اِلَيۡكَ وَادۡعُ اِلٰى رَبِّكَ وَلَا تَكُوۡنَنَّ مِنَ |
|---|
| روستو د هغې نه چه نازل کړې شویدی تا ته او بلنه کوه رب خپل ته او مه کیږه ته د |
| الۡمُشۡرِكِيۡنَ ﴿۸۷﴾ وَلَا تَدۡعُ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ ۘ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا |
| مشرکانو د ډلې نه. او مه رابله د الله سره بل حقدار د بندګئ. نشته حقدار د بندګئ سوی |
| هُوَ ۟ كُلُّ شَىۡءٍ هَالِكٌ اِلَّا وَجۡهَهٗ ؕ لَهُ الۡحُكۡمُ |
| د هغه نه، هر شے فنا کیدونکے دے سوی د مخ د هغه نه، هغه لره اختیار دے |
| وَاِلَيۡهِ تُرۡجَعُوۡنَ ﴿۸۸﴾ |
| او هغه ته به ورګرځولے شئ تاسو. |

**تفسیر** : دا آیت متعلق دے د (۷) آیت ﴿اِنَّا رَادُّوۡهُ اِلَيۡكِ﴾ پورے. مونږ به موسیٰ علیه السلام خپلې مور ته واپس کوو نو دغه شان خپل نبي به مکے ته واپس کوی.

او پدے آیت کښ نبی کریم ﷺ ته خطاب کوی دپاره د تشجیع (بهادری ورکولو) په دعوت باندے.

او دا هغه آیت دے چه سیدنا علی بن ابی طالب رضی الله عنه به فرمایل : زما د جابر بن عبد الله رضی الله عنه سره مینه ده ځکه چه هغه ددے آیت په تفسیر بنهٔ پو هیږی. (د صحابه کرامو رضی الله عنهم به په قرآن باندے پو هیدونکو سره مینه ساتله او ز مونږ په زمانه کښ خو د قرآن والو سره خلك دشمنی کوی او دوی سپك ګنړی).

ددے آیت تفسیر په درے طریقو سره شویدے (۱) اول دا چه ﴿فَرَضَ عَلَيۡكَ تَبۡلِيۡغَ الۡقُرۡاٰنِ وَالۡعَمَلَ بِهٖ﴾. هغه الله چه په تا باندے ئے د قرآن تبلیغ او عمل کول فرض کړیدی. پدے دوه طریقو په رسول الله ﷺ باندے قرآن فرض وو.

د معاد یو تفسیر (۱) دا دے چه ددے نه مراد مکه مکرمه ده او دا د جمهورو قول دے.
امام بخاریؒ د ابن عباس رضی الله عنه نه هم همدا روایت کړے. ددے تائید د ابن مردویهؒ د هغه روایت نه کیږی چه هغهٔ د علی بن حسین بن واقدؒ نه روایت کړے چه دا آیت د هجرت په وخت د جُحفے په مقام کښ نازل شوے وو. انتهیٰ. یعنی الله نبی ﷺ ته د هجرت کولو په وخت زیرے ورکړے چه اګر که نن تهٔ د خپل دین او د خپل ځان د حفاظت دپاره

مکه پریدے، لیکن یوه ورځ به راځي چه ته به هلته د فاتح په حیثیت سره واپس شے.
او مکے ته معاد ځکه وائی چه دے ته بار بار واپسی کیږی د حج او عمرے او طوافونو دپاره.
(۲) بعض خلقو ددے نه مراد (جنت) اخستے دے ځکه چه د جنت نه مؤمنان راوتلی دی او بیرته به ورته واپس کیږی. (قاله ابو صالح وابو مالك)
(۳) او بعضو (د قیامت ورځ) اخستے ده. (زجاج) حافظ ابن کثیرؒ همدا تفسیر غوره کړے. (٤) صاحب د محاسن التنزیل ددے نه مراد (مقامِ محمود) اخستے، چه ددے وعده الله تعالیٰ د خپل نبی سره کړے، چه د قیامت په ورځ به هغهٔ ته دا مقام ورکوی.
قُلْ رَّبِّيْٓ اَعْلَمُ: دا په (۳۷) آیت تفریع ده او داسے خبره موسیٰ علیه السلام هم کړے وه.
او پدے جمله کښ د مکے په مشرکانو باندے رد شوے چه هغوئ به نبی کریم ﷺ ته گمراه وئیلو او وئیل به ئے چه محمد د خپل پلار نیکهٔ دین پرینبے او د یو نوی دین دعوت کونکے جوړ شوے دے. الله تعالیٰ د خپل نبی په ژبه وفرمایل : الله ته ښه پته ده چه چا د الله صحیح دین راوړے، او کوم خلق په ښکاره گمراهئ کښ دی، یعنی که زهٔ په هدایت یم زما انجام به ښهٔ شی، او که تاسو په هدایت یئ ستاسو به ښهٔ شی، او که زهٔ گمراه یم زهٔ به هلاك او که تاسو گمراهان یئ نو تاسو به هلاك شئ. انتظار وکړئ نو پدے کښ یوه محاکمه غرض وی یعنی خلك متوجه کول چه دا سړے خو نهٔ هلاکیږی معلومیږی چه دا په حقه دے. او د مشرکانو گمراهی ښکاره حقیقت دے.
وَمَا كُنْتَ تَرْجُوْٓا : دا په (۷) آیت ﴿ وَجَاعِلُوْهُ مِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ﴾ تفریع ده. د موسیٰ علیه السلام مور ته خو پته وه چه دا به رسول کیږی نو دغه شان رسول الله ﷺ ته هم پته نهٔ وه چه دے به رسول کیږی او نهٔ ئے ددے تمنا وه او نهٔ ئے دے ته فکر وو.
نو پدے آیت کښ الله تعالیٰ په خپل نبی ﷺ او بیا په ټول انسانیت باندے خپل عظیم احسان ذکر کړے چه هغهٔ نبی کریم ﷺ خپل نبی جوړ کړو او دنیا ته ئے را اولیږهٔ.
د نبی کیدو نه مخکښ هغهٔ ته معلومه نهٔ وه چه الله به هغه خپل نبی جوړوی او خپل آخری کتاب به په هغهٔ نازلوی، دا د الله تعالیٰ رحمت او د هغهٔ فضل او کرم دے چه هغهٔ ددے عظیم نعمت دپاره ته غوره کړے، دے وجے نه اُوس ته په خپل زړهٔ کښ د کافرانو دپاره د تعاون هیڅ جذبه مهٔ ساته.
اِلَّا رَحْمَةً : دا استثناء منقطع ده. اَىْ لٰكِنْ اُنْزِلَ رَحْمَةً مِنْ رَّبِّكَ. لیکن الله دا کتاب

راولیږلو دپاره د مهربانۍ کولو د طرفه د رب ستا نه. او دا آیت دلیل دے چه نبوت د الله تعالیٰ په رحمت سره حاصلیږي، هغه څه کسبي شے نهٔ دے.

فَلَا تَكُونَنَّ ظَهِيرًا لِّلْكَافِرِينَ: دا په (۱۷) آیت ﴿ فَلَنْ أَكُونَ ظَهِيرًا لِّلْمُجْرِمِينَ ﴾ تفریع ده. موسیٰ علیه السلام وئیلي وو چه زهٔ به هیچرے د مجرمانو مددګار نهٔ جوړیږم نو الله خپل رسول ته فرمائي چه ته هم د مجرمانو کافرانو ملګرتیا او مددګاري مهٔ کوه. په عقیده او عمل کښې د هغوي ملګرتیا مهٔ اختیاروه. یا د دین په پریخودو کښې د دوي سره مدد مهٔ کوه.

شوکاني لیکي چه په دے کښې امتِ محمدیه ته هم تعلیم ورکړے شوے چه دوئ هم د کافرانو دپاره مددګار جوړ نشي.

کرماني په خپل کتاب (ام الغرائب) کښې ددے معنیٰ دا بیان کړے [فَلَا تَكُونَنَّ بَيْنَ أَظْهُرِهِمْ] چه اوس ته د دوئ ترمینځه مهٔ اوسیږه، یعني مکے نه لاړ شه هجرت وکړه.

او ددے ځاي نه روستو خپل نبي ته پنځه حکمونه کوي.

وَلَا يَصُدُّنَّكَ عَنْ آيَاتِ اللَّهِ: ددے عظیم نعمت تقاضا دا هم ده چه ته د قرآن کریم تلاوت، په دے باندے عمل، او ددے تبلیغ په هیڅ حال کښې پرے نږدے.

وَلَا يَصُدُّنَّكَ: یعني دا کافران دے تا منع نکړي د الله تعالیٰ د آیتونو نه. یعني د کافرانو خبرے، او د هغوي عملونه او د هغوي دروغ او ضررونه دے تا لره د دین د بیان نه منع نکړي.

بلکه ﴿ وَادْعُ إِلَىٰ رَبِّكَ ﴾ خلقو ته د خپل رب د توحید او د هغهٔ په شریعت باندے د عمل کولو دعوت ورکوه، او په مشرکانو کښې شاملیږه مهٔ، او الله سره هیڅوك په هیڅ حیثیت سره شریك مهٔ جوړوه. ځکه هغهٔ نه سوئ بل هیڅوك د عبادت لائق نشته.

قاضي بیضاوي لیکي: چونکه د نبي کریم ﷺ په باره کښې د شرك تصور هم نشي کیدے چه هغه دے ددے نه منع کړے شي، دے وجے نه ددے نه مراد مشرکان په قطعي توګه نا امیده کول دي چه نبي کریم ﷺ دے د هغوئ په شرکي کارونو کښې په هیڅ حال کښې هغوئ سره ملګرے شي. آه.

او پدے کښې تعریض دے په نور امت باندے چه دوي چرته داسے کار ونکړي. (قاسمي)

مشرکانو به د خپلو بتانو تعظیم ته خلك رابلل نو الله خپل نبي ته وفرمایل چه ته خپل طرفته دعوت ورکوه.

وَلَا تَدْعُ مَعَ اللّٰهِ: یعنی د الله سره د بل چا بندګی مهٔ کوه او هغهٔ ته رامدد شه مهٔ وایه او شرك ځکه بد شے دے چه دا معبودان یو خو فانی کیدونکی دی، او بل اختیار ئے نشته، او الله به د هغوی سره حساب کوی او چا باندے چه فناء او وفات راځی او اختیارات ئے نهٔ وي او هغه سره حساب کیږی نو هغه د الُوهیت او عبادت لائق نهٔ وی۔

کُلُّ شَیْءٍ هَالِكٌ اِلَّا وَجْهَهٗ: هالك دلته فانی او میت ته وائی۔ یعنی د الله د ذات نه سوئ هر شے فناء کیدونکے او مړ کیدونکے دے۔

سوال دا دے چه دلته وائی چه هر شے فناء کیږی مګر مخ د الله به باقی وی؟ نو مخ ئے ولے ذکر کړو؟

جواب دا دے چه وَجْهَ په عربیٔ ژبه کښ په معنیٰ د ذات سره هم استعمالیږی۔ اګرکه د الله تعالیٰ مخ شته او هغه حق دے۔ خو پداسے مقام کښ وَجْهَ په معنیٰ د ذات سره اخستل جائز دی، او دے ته جائز تاویل وائی، ځکه چه پدے کښ د الله تعالیٰ د صفت نه انکار نهٔ راځی، او وجه دا ده چه قرآن کریم د عربیٔ د محاورے مطابق نازل شویدے۔

او دا په هره ژبه کښ محاوره ده چه مخ یادوی او مراد ترے نه د هغه ټول ذات وی۔ داسے وائی ((مخ دے رانه ورك کړه))۔ ((ستا د مخ لحاظ مے وکړو))۔ او لفظی معنیٰ ئے هم صحیح ده چه د الله مخ به باقی وی او کله چه مخ باقی شو نو ټول ذات به هم باقی وی۔

(۲) مجاهدؒ، ثوریؒ او امام بخاریؒ ددے تفسیر دا بیان کړے چه [کُلُّ عَمَلٍ بَاطِلٌ اِلَّا مَا اُرِیْدَ بِهٖ وَجْهُهٗ] هر هغه عمل به ضائع کیږی چه د هغے نه مقصد د الله تعالیٰ رضا تالاش کول نهٔ وی، د الله په نیز به ددے هیڅ قیمت نهٔ وی۔

دا تاویلی تفسیر دے او دا د مخکښ شرك سره لګیږی۔ شرك مهٔ کوه ځکه چه صرف هغه عمل صحیح دے چه د الله د مخ د خاطره شوے وی۔ اوله معنیٰ ظاهر د قرآن دے۔

بیا په کُلُّ شَیْءٍ کښ چه کوم کل راغلے ده ددے نه مراد استغراق عرفی دے، یعنی کوم څیزونه چه د فناء دپاره پیدا دی هغه به فناء کیږی، نو اته څیزونه به باقی پاتے وی لکه عرش، کرسی، جنت، جهنم، لکه لمے د انسان او روحونه، لوح محفوظ او قلم د تقدیر۔

وَاِلَیْهِ تُرْجَعُوْنَ: یعنی هغه ته به تاسو ټول واپس بوتلے شیٔ او هلته به تاسو سره حساب کتاب کیږی۔ اَللّٰهُمَّ یَسِّرْ حِسَابَنَا وَیَمِّنْ صَحِیْفَةَ اَعْمَالِنَا، آمین۔

وبالله التوفیق

## امتیازات او خصوصیات د سورة القصص

۱- واقعه د موسیٰ ﷺ پکښې ډیره اُوږده ذکر ده۔
۲- د علو او فساد بیان پکښې زیات دے۔
۳- د نبی کریم ﷺ او د صحابه کرامو ﷺ مشابهت د موسیٰ ﷺ او د هغهٔ د ملګرو سره په ډیرو ځایونو کښې شویدے۔
٤- واقعه د قارون پکښې خصوصی راغله۔
٥- او د الله تعالیٰ درے آوازونه پکښې ذکر شویدی۔
٦- د جنت د ګټلو دوه اسبابه خودلے شویدی چه څوك علو او فساد نهٔ کوی بلکه تواضع او اصلاح کوی۔

ختم شو تفسیر د سورة القصص په حمدونو د رب العالمین سره په اسریت کالام روډ سوات کښې بعد صلاة الصبح وقبل طلوع الشمس په تاریخ : صباح یوم الاثنین ٥/ رمضان ١٤٣٦ هـ موافق : ٢٢/٦/٢٠١٥ وقت : ٤:٥٦ صبح۔ وبالله التوفیق

❁❁❁❁❁❁❁❁

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ ○

| آیاتها (٦٩) | (٢٩) سورة العنکبوت مکیة (٨٥) | رکوعاتها (٧) |
| --- | --- | --- |

سورة العنکبوت مکی دے، په دے کښې نهه شپیتۀ آیتونه، او اووه رکوع دي

## تفسیر سورة العنکبوت :

**نوم :** د ﴿ مَثَلُ الَّذِیۡنَ اتَّخَذُوۡا مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ اَوۡلِیَآءَ کَمَثَلِ الۡعَنۡکَبُوۡتِ ﴾ نه اخستے شوے۔ عنکبوت غنے / جولاګی، مکهړی ته وئیلے شی او دا نوم ئے پدے وجه ورکړو چه پدے کښې د مشرکانو د معبودانو د کمزورتیا مثال د جولاګی سره ورکړے شویدے، د اول نه په شرك رد دے۔

**د نازلیدو زمانه :** په دے باره کښې د علماؤ درے قوله دي : یو قول دادے چه دا ټول سورت مکی دے۔ دویم قول دادے چه ټول سورت مدنی دے۔ او دریم قول دادے چه د اولنو لسو آیتونو نه سوئ باقی ټول سورت مکی دے۔ د اکثرو علماؤ همدا رائے ده چه ټول سورت مکی دے، او د سورت په شروع کښې چه د نفاق او منافقینو کوم ذکر راغلے نو دا پدے وجه چه په مکی دور کښې هم بعض منافقان او شکیان موجود وو۔

د تفسیر بعضِ عالمانو وئیلی دی چه دا سورت حبشو ته د هجرت نه مخکښې نازل شوے وو، کله چه کفارو په مسلمانانو باندے د ژوند میدان تنګ کړے وو، دے وجے نه الله تعالیٰ په دے سورت کښې مسلمانانو ته صرف د صبر او استقامت ترغیب ورکړے، او کوم کمزوری ایمان والا مسلمانان چه د خلقو د تکلیفونو او ضررونو په وجه د تزلزل او بے استقامتئ ښکار شوی وو، هغوئ ته ئے رټنه ورکړے، او کافرانو له ئے دهمکی ورکړے چه که دوئ د مسلمانانو خلاف معاندانه او ظالمانه رویه پرے نښودہ نو د مخکنو هلاك شوو قومونو غونتنه د بد انجام انتظار دے وکړی۔

### مناسبت

١- مخکښې ئے په علو او فساد باندے رد وکړو نو دلته د علو او فساد والا صورتونه

بیانوی چه د دوی یو علو او فساد دا وو چه مسلمانانو ته ئے تکلیفونه ورکول او په هجرت ئے مجبوره کول۔

۲- مخکښې په شرك رد وشو او د غیر الله د دعا نه ئے منع وکړه ﴿وَلَا تَدْعُ مَعَ اللَّهِ﴾ نو دلته ئے وجه بیانوی چه غیر الله خو د عنکبوت د ژالے په شان کمزورے دے۔

۳- مخکښې سورت کښې تشجیع وه په مصیبتونو راتللو سره اجمالًا نو دلته د مصیبتونو تفصیل کوی۔

٤- مخکښې تشجیع وه په واقعه د موسیٰ علیه السلام او دلته تشجیع ده په واقعاتو د نورو انبیاء علیهم السلام سره یعنی نوح، ابراهیم، لوط او شعیب علیهم السلام۔ (احسن الکلام)

مقصد د سورت

۱- اَلْاِبْتِلَاءُ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ وَاَنْوَاعُ الْاِبْتِلَاءَاتِ ۔ په مؤمنانو به ابتلاء ات (امتحانات) راځی او د هغے انواع (اقسام) بیانوی، بیا هَلَاكُ الْمُبْتَلِيْنَ وَالْمُمْتَحِنِيْنَ ذکر کوی۔ ځوك چه نور خلك په ابتلاء او امتحان کښې واقع کوی د هغوی هلاکت ذکر کوی چه دوی هم د الله تعالیٰ نه نشی خلاصیدے۔

بیا ددے سره درے خبرے نورے کوی یو دا چه د ابتلاء اتو نه به بنده څان څنګه خلاصوی، د هغے لارے او اسباب ئے ذکر کړیدی، یو اَلْاِيْمَانُ وَالْعَمَلُ الصَّالِحُ وکړیٔ۔ اَلدَّعْوَةُ اِلَى اللهِ۔ دریم اَلْهِجْرَةُ۔ د الله په لاره کښې هجرت کول۔

څلورم: اَلصَّبْرُ وَالتَّوَكُّلُ۔ دے سره امتحان هم آسانیږی او هجرت هم۔

پنځم: اَلْمُجَاهَدَةُ۔ د الله د دین دپاره خپله خواری کول۔ پدے امتحانات آسانیږی او ددے په نتیجه کښې بنده ته هدایت او نصرت ورکوی۔

نو ګویا کـه په اول د سورت کښې ابتلاء ذکر ده او په مینځ کښې توکل او صبر دے او په آخر کښې هدایت او نصرت دے۔

دا سورت په مکه کښې نازل وو او په مکه کښې دا احوال وو، او داسے ابتلاء ات په هره زمانه کښې راځی، او دا د الله تعالیٰ عادت دے چه ځوك د ایمان دعوه وکړی، په هغه به امتحانات راځی۔ غالباً د کافرو او مشرکانو او مبتدعینو دلاسه دا امتحانات راځی، کله د قتل سازشونه، کله جیل او کله بدنامے لګول وی۔

پدے امتحاناتو کښې فائده د مؤمن صفا کول او منافق جدا کول وی، بصیرت والا

خلك په دين باندے كلك پاتے شي، دا حالت به په هر هغه چا راځي چه دين بيانوي، او، ځوك چه دين نهٔ بيانوي نو خير وخلاص۔
ليكن دلته دا خبره ياده كړه چه كه چا حق نهٔ بيانولو نو د الله په امتحان كښې به راځي هغه به ئے هلاكوي، او كه حق ئے بيانولو نو بيا به ئے الله تعالىٰ مدد كوي او د خلكو د طرفنه به امتحان وي۔ او د خلكو امتحان دومره اُوږد نهٔ وي۔
په سورت كښې به د آيتونو مناسبتونه په ناشنا انداز روان وي۔

## خلاصه

اول كښې ئے قانون بيان كړے چه زهٔ به ضرور امتحان راولم، بيا چه ځوك امتحان والا دي هغوي دپاره سزا بيانوي، بيا اول امتحان د مور او پلار د طرفنه دے په (٨) آيت كښې۔ بيا اذيت دے د عامو خلكو د طرفنه په (١٠) آيت كښې، بيا د كافرانو امتحان (د هغوي دعوت)، بيا امتحان دے په طول لبث۔ يعنى كله به داسے امتحان وي چه نهه نيم سوه كاله دعوت به كيږي۔ بيا د ابراهيم عليه السلام قصه كښې دي چه كله به امتحان كښې اُور ته داخليدل وي، او كله په هجرت باندے مجبوره كيدل لكه ﴿ اِنِّىْ مُهَاجِرٌ اِلٰى رَبِّىْ ﴾ او داسے نور۔

| |
|---|
| الٓـمّٓ ﴿١﴾ اَحَسِبَ النَّاسُ اَنْ يُّتْرَكُوْٓا اَنْ يَّقُوْلُوْٓا |
| ددے په معنىٰ الله پوهه دے۔ آيا گمان كوي خلق چه پريے به خودلے شي چه وائي به دوى |
| اٰمَنَّا وَهُمْ لَا يُفْتَنُوْنَ ﴿٢﴾ وَلَقَدْ |
| ايمان راوړيدے مونږ حال دا چه دوى باندے به ازميښت نشي كيدے۔ او يقيناً |
| فَتَنَّا الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ فَلَيَعْلَمَنَّ اللّٰهُ |
| ازميښت كړيدے مونږ په هغه كسانو چه مخكښې دي د دوى نه نو خامخا ښكاره به |
| الَّذِيْنَ صَدَقُوْا وَلَيَعْلَمَنَّ الْكٰذِبِيْنَ ﴿٣﴾ |
| كړي الله تعالىٰ هغه كسان چه رشتيا وائي او خامخا رابنكاره به كړي دروغژن۔ |

**تفسير** : الٓمّٓ: دا حروف مقطعات دي، ددے معنىٰ الله تعالىٰ بهتره پيژني۔
پدے آيت كښې الله تعالىٰ دا قانون ذكر كړيدے چه د ايمان د دعوے سره به امتحان

ضرور راځي.

د حبشې د هجرت نه مخکښې په مکه مکرمه کښې په مسلمانانو باندې ډېر سخت حالات تېرېدل، د مکې کافرانو د دوئ ژوند تنګ کړے وو، او د انساني فطرت د تقاضې مطابق به کله دوئ د مصيبتونو د طاقت نۀ لرلو په وجه ګهبراؤ شو، او خپلو کښې به ئې خبرې کولې چه الله به زمونږ مدد کله کوي، ددې مصيبتونو دَور به کله ختميږي.

امام بخاريؒ د خباب بن ارت ﷺ نه روايت کړے چه د پريشانيو نه تنګيدو سره يو ځل دۀ همدا سوال د رسول الله ﷺ نه وکړو، او نبي ﷺ د خانه کعبې د ديوال سورى ته تکيه وهلې ناست وو، نو نبي ﷺ هغۀ ته وفرمايل چه تاسو نه د مخکني امت مومنانو له ددې نه زيات تکليفونه ورکړے شوي وو، هغوئ په آره باندې څيرلے شوي وو، د وسپنې په ګمنزو سره د هغوئ غوښې ګمنز شوې وې، ليکن هغوئ د خپل دين نه نۀ وو اوړيدلي. بيا نبي ﷺ قسَم خوړلو سره وفرمايل: چه خامخا به اسلامي دين غالبه کيږي، تردې چه يو مسافر به د (صنعاء) نه (حضرموت) پورې روان وي او د الله نه سوئ به د هيچا نه نۀ يريږي، ليکن تاسو خلق جلتي کوئ. (بخاري:٣٦١٢)

الله تعالىٰ په دې آيتِ کريمه کښې د مکې دغه مسلمانانو ته وئيلي دي چه که تاسو مسلمانان يئ، نو په تاسو به آزمائش کيږي، تاسو به په صبر او ثابت قدمئ سره ددې نه تيريږئ او د خپل ايماني قوت ثبوت به ورکوئ. د الله تعالىٰ هميشه راسې د خپلو مومنانو بندګانو سره همدا دستور را روان دے چه هغوئ آزمائي، دې دپاره چه په عملي توګه ثابته شي چه په دوئ کښې رشتينې ايمان والا څوک دي او دروغژن او منافقان څوک دي.

په دې معنىٰ او مفهوم باندې په قرآن کريم کښې ډير آيتونه دي. د سورتِ آل عمران په (١٤٢) آيت کښې راغلي دي: ﴿ أَمْ حَسِبْتُمْ أَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَعْلَمِ اللَّهُ الَّذِينَ جَاهَدُوا مِنْكُمْ وَيَعْلَمَ الصَّابِرِينَ ﴾ (آيا تاسو دا ګمان کوئ چه جنت ته به داخل شئ، حالانکه اوسه پورې الله په تاسو کښې هغه خلق لا ښکاره کړي نۀ دي چه هغوئ جهاد کړے، او چاچه د صبر نه کار اخستے). او د سورتِ بقره په (٢١٤) آيت کښې راغلي: ﴿ أَمْ حَسِبْتُمْ أَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَأْتِكُمْ مَثَلُ الَّذِينَ خَلَوْا مِنْ قَبْلِكُمْ مَسَّتْهُمُ الْبَأْسَاءُ وَالضَّرَّاءُ وَزُلْزِلُوا حَتَّىٰ يَقُولَ الرَّسُولُ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ مَتَىٰ نَصْرُ اللَّهِ أَلَا إِنَّ نَصْرَ اللَّهِ قَرِيبٌ ﴾ (آيا تاسو ګمان کوئ چه جنت ته به داخل شئ حالانکه په تاسو باندې هغه حالات نۀ دي تير شوي کوم چه ستاسو نه

مخکښې خلقو ته را پیښې شوی وو، هغوئ ته سختئ او تکلیفونه رسیدلی وو، او داسې اوجړ قولې شو چه د الله رسول او مومنانو دا آواز اوکړو چه د الله مدد به کله راځی، خبردار ! د الله مدد نزدې دے)۔

اَنۡ یُّتۡرَکُوۡۤا : دلته تقدیر دے (اَیۡ مِنَ الۡاِفۡتِتَانِ) چه پرېے به خودې شی د امتحان نه، او روستو ﴿وَھُمۡ لَا یُفۡتَنُوۡنَ﴾ د هغې تشریح ده۔ نو بنده به دا ګمان نۀ کوی چه زۀ مؤمن موحد او داعی شوم نو خلك به راته په غاړه کښې امیلونه اچوی، دا حالت په انسان باندې راځی لیکن روستو، اول کښې به سخته تیروی، بیا د عزت او راحت ژوند راځی، او بیا روستو هم امتحان د فراخئ وی۔ او ددې امتحان مثال داسې دے لکه سرۀ زر په غیر د ویلی کیدو نه نۀ صفا کیږی۔

لَا یُفۡتَنُوۡنَ : امتحانات په دوه قسمه دی اول تکلیف تکوینی او قدری یعنی مخالفت د خلکو، د هغوی کنځل، بدنامې لګول، وژل او مرضونه وغیره۔ دویم تکالیف شرعیه، عبادات، هجرت، جهاد وغیره دواړه قسمونه د ایمان سره لازم دی۔

وَلَقَدۡ فَتَنَّا : یعنی دا امتحانات راوستل اول کار نۀ دے بلکه داسې په پخوانو هم راغلی دی۔

فَلَیَعۡلَمَنَّ : دا حکمة د امتحان بیانیږی چه فرق د رشتینو او د دروغژنو دے۔

صَدَقُوۡا : د رشتینو خلکو تذکره ئې په صیغه د ماضی او د دروغژنو ذکرئې په صیغه د اسم فاعل سره وکړو، وجه دا ده چه اسم فاعل په دوام او ثبوت دلالت کوی او فعل په تجدد باندې او د قرآن کریم د نزول په وخت کښې د کفارو کفر راسخ، مضبوط او همیشه وو او ایمان والا نوی مسلمانان وو نو هر یو سره مناسب تعبیر وشو۔ (فتح البیان)

| اَمۡ حَسِبَ الَّذِیۡنَ یَعۡمَلُوۡنَ السَّیِّاٰتِ اَنۡ یَّسۡبِقُوۡنَا ؕ |
|---|
| آیا ګمان کوی هغه کسان چه عملونه کوی ناکاره چه بچ به شی زمونږ (د عذاب نه) |
| سَآءَ مَا یَحۡکُمُوۡنَ ﴿۴﴾ مَنۡ کَانَ یَرۡجُوۡا لِقَآءَ اللّٰہِ |
| بده ده هغه فیصله چه دوی ئې کوی۔ څوك چه امید ساتی د ملاقات د الله تعالیٰ |
| فَاِنَّ اَجَلَ اللّٰہِ لَاٰتٍ ؕ وَھُوَ السَّمِیۡعُ الۡعَلِیۡمُ ﴿۵﴾ وَمَنۡ |
| نو یقیناً نیټه د الله تعالیٰ خامخا راتلونکې ده، او هغه آوریدونکې پوهه دے۔ او چا چه |

جَاهَدَ فَاِنَّمَا یُجَاهِدُ لِنَفۡسِهٖ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَغَنِیٌّ عَنِ الۡعٰلَمِیۡنَ ﴿٦﴾

ځان اُوکړه ولو یقیناً ځان کړوی ځان له، یقیناً الله خامخا بے پروا دے د مخلوقاتو نه۔

وَالَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَنُکَفِّرَنَّ عَنۡهُمۡ

او هغه کسان چه ایمان ئے راوړیدے او عمل ئے کړیدے نیک خامخا وُبه رژوو مونږ د دوی

سَیِّاٰتِهِمۡ وَلَنَجۡزِیَنَّهُمۡ اَحۡسَنَ الَّذِیۡ

نه ګناهونه د دوی او خامخا بدله به ورکړو مونږ دوی ته ډیره خائسته بدله د هغه

کَانُوۡا یَعۡمَلُوۡنَ ﴿٧﴾ وَوَصَّیۡنَا الۡاِنۡسَانَ بِوَالِدَیۡهِ

عملونو چه دوی ئے کوی۔ او مضبوط حکم کړیدے مونږ انسان ته د مور او پلار دده سره

حُسۡنًا ؕ وَاِنۡ جَاهَدٰكَ لِتُشۡرِكَ بِیۡ

د ښیګړے کولو او کچرته زور کوی په تا باندے دے دپاره چه ته برخه دار جوړ کړے ما سره

مَا لَیۡسَ لَكَ بِهٖ عِلۡمٌ فَلَا تُطِعۡهُمَا ؕ

هغه څوک چه نۀ وی تا لره په هغے باندے علم (دلیل) نو خبره مۀ منه د دوی،

اِلَیَّ مَرۡجِعُکُمۡ فَاُنَبِّئُکُمۡ بِمَا کُنۡتُمۡ تَعۡمَلُوۡنَ ﴿٨﴾

خاص ما ته ستاسو راګرځیدل دی نو خبر به درکړم په هغه عملونو چه تاسو ئے کوئ۔

**تفسیر : اَمۡ حَسِبَ:** پدے آیت کښې الله تعالیٰ رټنه ورکوی هغه خلکو ته چه ایمان والا په امتحاناتو کښې اچوی، الله فرمائی چه دا هم مجرمان دی، زما نه نشی خلاصیدے۔ نو دا ګمان د کافرانو مشرکانو دے او مخکښې ګمان د ایمان والو وو۔

**یَّسۡبِقُوۡنَا :** چه دوی به زمونږ نه خلاص او فوت شی او مونږ به د دوی نه انتقام وانخلو۔ او دوی به مونږ لره عاجز کړی او د دوی په عملونو به مونږ دوی راونۀ نیسو۔

**مَنۡ کَانَ یَرۡجُوۡا :** د آیت مطلب دا دے چه په الله تعالیٰ باندے پوخ ایمان لرل پکار دی دے دپاره چه امتحانات دربانددے آسان شی۔ یو تن دا امید لری چه آخرت راروان دے او د قبر ژوند دے، او بیا د الله تعالیٰ سره ملاقات دے، او بیا جنت دے، نو که په ما باندے لږ شان امتحان راغے نو وی دے، دومره غټه خبره نۀ ده۔

د مَنْ كَانَ يَرْجُوْا : جزاء پټه ده. اَیْ فَلْیَصْبِرْ عَلَى الْبَلَایَا. معنیٰ دا ده: څوك چه د الله د ملاقات نه يره کوی یا تربے اُمید لری نو په مصیبتونو دے صبر وکړی، ❁ یا [فَلْيَسْتَعِدَّ لَهٗ بِمُقَاسَاتِ الْمَصَائِبِ] ((پس تیاری دے وکړی د هغے دپاره په مصیبتونو تیرولو سره)).

❁ یا [فَلْيَعْمَلْ عَمَلًا صَالِحًا وَلَا يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ رَبِّهٖ اَحَدًا] نو هغه دے نیك عمل وکړی او د خپل سره دے هیڅوك نۀ شریکوی. او فَاِنَّ اَجَلَ اللّٰهِ ئے جزاء نۀ ده ځکه چه بیا هغے نه دا خبره راوځی چه څوك د الله تعالیٰ د ملاقات امید نۀ ساتی، نو د هغه په باره کښ به د الله تعالیٰ مقرره نیټه نۀ راځی.

فَاِنَّ اَجَلَ اللّٰهِ : ځکه چه نیټه د الله تعالیٰ د بعث او حساب کتاب راتلونکے ده.

وَمَنْ جَاهَدَ : پدے کښ بله ذهن سازی او ترغیب دے. یعنی دا به نۀ وائے چه ما د الله دپاره مجاهده او خواری وکړه، او په الله باندے زیاتنه کوے چه تا له ما ډیرے خوارئانے کړیدی لکه د بعض خلکو عادت دا وی چه نیکی وکړی، نو بیا په الله باندے احسان کوی. ﴿يَمُنُّوْنَ عَلَيْكَ اَنْ اَسْلَمُوْا﴾ (الحجرات:۱۷)

نو الله فرمائی چه تا کومه خواری وکړه، نو دا ستا د ځان دپاره ده، ددے فائده تا ته راواپس کیدونکے ده، بلکه د الله تعالیٰ احسان په ځان ومنه چه په امتحان کښ ئے واچولے او پاك ئے کړے او مرتبے ئے درله اُوچتے کړے، او الله تعالیٰ د ټول مخلوق نه بے نیازه دے خو هغه امتحانات راولی د څه خاصو حکمتونو دپاره.

دلته د مجاهدے نه قتال نۀ دے مراد بلکه د دین دپاره خواری کول لکه هجرت، دعوت کول او د کافرانو د طرفنه مصیبتونه برداشت کول.

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا: پدے کښ ایمان والو ته زیرے او د امتحاناتو بله فائده بیانوی چه هغه د مؤمنانو گناهونه رژول دی.

سَيِّاٰتِهِمْ: سیئات گناهونو ته وئیلے شی. ددے معاف کول ډیر لوی زیرے دے، او بعض علماؤ دلته د سیئات نه مراد مصیبتونه اخستی دی، لیکن دے ته ضرورت نشته.

وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ: دے کښ اشاره ده چه جنت به حاصل کړی.

اَحْسَنَ الَّذِیْ: احسن عمل هغه دے چه په اخلاص او په اتباع د سنت باندے بناء وی. او احسن یا صفت د جزاء دے یعنی ډیره ښائسته بدله. یا صفت د عمل دے.

وَوَصَّيْنَا الْاِنْسَانَ : دا اول امتحان دے او دا سخت امتحان دے چه په کور کښ د سړی مور او پلار خلاف شی، هغه به درته وائی چه بچیه دا څنګه باباګانو پسے خبرے کوے،

نور خلك نهٔ پو هیږي او تهٔ پو هیږې، او پنځوس کاله ما پدې طریقه مونځ کړې او تهٔ ما ته وائې چه لاسونه د نامه نه پورته کیږده، او دا فلانئ فلانئ سنت طریقه وکړه. او بچې که هرڅو مره بزرګ او لوئې مرتبې والا شي خو پلار ته معمولي ښکاره کیږي.

## شان نزول

امام احمدؒ، مسلمؒ، ابوداودؒ، نسائيؒ او ترمذيؒ وغیره روایت کړې چه دا آیت د سعد بن ابي وقاص زهري رضی الله عنه په باره کښې نازل شوې. دا د ځوانانو صحابو نه وو چه هغوئ د خپلې ځوانئ په شروع کښې اسلام قبول کړې وو، دا وخت ددهٔ عمر اُوولس یا اتلس کاله وو. (او دې د مور سره ډیر زیات احسان کونکے وو) هر کله چه ددهٔ مور حمنه بنت سفیان بن اُمیه ته معلومه شوه (چه ځوی مې صابي شویدې) نو هغې قسَم وخوړلو چه ترڅو پورې دا د اسلام نه وانهٔ وړي، هغه به خوراك نهٔ کوي. (تر درې ورځو پورې ئې په اصطلاح بهوك هرتال وکړو، تردې چه بدن ئې انتهائي کمزورې شو، چا سعدؓ ته وویل چه مور دې د لوږې نه مري) سعد رضی الله عنه چه کله د هغې دا حالت ولیدهٔ نو وې وئیل: (تا سره زما ډیر احسانات دي او ما ته ډیره ګرانه ئې لیکن پدې خبره پو هه شه) که چرې تا سره سل روحونه شي، او یو یو درنه اُوځي نو هم به زهٔ خپل دین پرې نهٔ دم، که تهٔ خوراك کوې او که نهٔ کوې. د هغهٔ مور چه دا خبره واوریده نو کفر طرفته د هغهٔ د بیرته راګرځولو نه نا امیده شوه، آخر ئې اسلام راوړو او خوراك څکاك ئې شروع کړو. (صحابه کرام په حق باندې څومره کلك ولاړ وو چه خلك به ئې ځان طرفته راړول، داسې مضبوطوالے پکار دې)

الله تعالیٰ د همدې واقعې په مناسبت سره دلته فرمایلي دي چه مونږ انسان ته د خپل مور پلار سره د ښهٔ سلوك کولو سخت تاکید کړې، ددې باوجود که چرې دواړه الله تعالیٰ سره په شریك جوړولو باندې څوك مجبوره کړي، نو د هغوئ خبره به نهٔ منلے کیږي، څنګه چه سعد بن ابي وقاص رضی الله عنه نهٔ وه منلے.

لِتُشۡرِكَ بِیۡ: الله تعالیٰ تخصیص د مور او پلار او د شرك وکړو او رسول الله ﷺ په دواړو خبرو کښې تعمیم وکړو او داسې ئې وفرمایل: [لَاطَاعَةَ لِمَخۡلُوۡقٍ فِیۡ مَعۡصِیَةِ الۡخَالِقِ] د الله تعالیٰ په نافرمانئ (او هیڅ ګناه) کښې به د هیڅ مخلوق خبره نهٔ منلے کیږي.

ددې نه داسې تعبیر هم کیږي چه مور او پلار ښهٔ شے دې لیکن د الله او د رسول نه

اُوچت نهٔ دی، نو د الله او د رسول د خبرے په خلاف به د هغوی خبره نهٔ منلے کیږی۔ دغه شان استاذ او امام او مجتهد او مسلمان بادشاه او وزیر واخله چه دا ټول ښهٔ خلك دی لیکن د الله او د رسول نه اُوچت نهٔ دی۔

| |
|---|
| وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَنُدْخِلَنَّهُمْ |
| او هغه کسان چه ایمان ئے راوړیدے او عملونه ئے کړیدی نیك خامخا داخل به کړو دوی |
| فِي الصّٰلِحِيْنَ ﴿٩﴾ وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّقُوْلُ اٰمَنَّا |
| په نیکانو کښ۔ او بعض د خلقو نه هغه څوك دی چه وائی مونږ ایمان راوړیدے |
| بِاللّٰهِ فَاِذَآ اُوْذِيَ فِي اللّٰهِ |
| په الله باندے نو کله چه تکلیف ورکړے شی دهٔ ته په باره د الله تعالیٰ کښ |
| جَعَلَ فِتْنَةَ النَّاسِ كَعَذَابِ اللّٰهِ ؕ وَلَئِنْ جَآءَ نَصْرٌ مِّنْ رَّبِّكَ |
| (نو) اُوګرځوی تکلیف د خلقو په شان د عذاب د الله او که چرته راشی مدد (غلبه) د رب ستا |
| لَيَقُوْلُنَّ اِنَّا كُنَّا مَعَكُمْ ؕ اَوَلَيْسَ اللّٰهُ بِاَعْلَمَ بِمَا |
| خامخا وائی دوی یقیناً مونږ وو ستاسو سره، آیا نهٔ دے الله تعالیٰ ښه پوهه په هغه خبرو |
| فِيْ صُدُوْرِ الْعٰلَمِيْنَ ﴿١٠﴾ وَلَيَعْلَمَنَّ اللّٰهُ الَّذِيْنَ |
| چه په سینو د مخلوقاتو کښ دی۔ او خامخا راښکاره کوی به الله تعالیٰ هغه کسان |
| اٰمَنُوْا وَلَيَعْلَمَنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ ﴿١١﴾ |
| چه ایمان ئے راوړیدے او خامخا ښکاره کوی به منافقان۔ |

**تفسیر** : بیا ترغیب او بشارت دے هغه چاته چه په مخکنی امتحان کښ کامیاب شی۔ یعنی کوم خلق چه د الله تعالیٰ د توحید له خاطره د مور پلار غونته د عزتمنو رشته دارانو خبره نهٔ منی، او د ایمان او نیك عمل ژوند تیروی، الله تعالیٰ به د قیامت په ورځ دوئ له د انبیاءِ کرامو او اولیاءِ عظامو سره په جنت کښ ځای ورکوی، چه د هغے دعاء انبیاء کرامو علیهم السلام د خپلو ځانونو دپاره کوله۔ سلیمان علیه السلام دعاء وکړه: ﴿ وَاَدْخِلْنِيْ بِرَحْمَتِكَ فِيْ عِبَادِكَ الصّٰلِحِيْنَ ﴾ (اے ربه! ما په خپلو نیکانو بندګانو کښ شامل

کړه)۔ (النمل : ۱۹)۔ او الله تعالیٰ د ابراهیم علیه السلام په باره کښې فرمائي : ﴿ وَإِنَّهُ فِي الْآخِرَةِ لَمِنَ الصَّالِحِينَ ﴾ (آخرت کښې به دے په نیکانو خلقو کښې شړنُ امل وی)، یعنی دوئ سره به په جنت کښې وی۔ (النحل : ۱۲۲)۔

الصّٰلِحِيْنَ: ئے وویل څکه چه ناپوهه خلك داسے شخص ته چه د مور او پلار خبره په شرك کښې نهٔ منی - نافرمان او مفسد وائی نو الله تعالیٰ ورته صالح (نیك عمله) ووئیلو۔

وَمِنَ النَّاسِ: دا دویم امتحان دے چه کله به د حق د دعوت د وجه نه خلك مخالف شی او وهل ټکول به شروع کړی نو بعض خلك ددے نه متأثره شی او منافقت شروع کړی۔

نو پدے آیت کښې په منافقانو باندے رد دے۔ په مکه کښې بعض شکیان شان منافقان وو، د معراج د واقعے امتحان راغے نو هغوی کفر اختیار کړو، او کله به د مشرکانو ضغط (زور او وهل ټکول) راغلل نو په صحیح دین به ټینګ پاتے نشو۔

لکه مفسرینو د ضحاكؒ قول نقل کړے چه دا آیتِ کریمه د مکے مکرمے د هغه خلقو په باره کښې نازل شوے چه هغویٔ د زړهٔ نه مسلمانان شوی نهٔ وو، کله چه دوئ ته د مشرکانو له خوا تکلیف اُورسیدهٔ نو دوباره مشرکان جوړ شو۔ الله تعالیٰ وفرمایل چه څهٔ خلق داسے وی چه د هغویٔ په زړونو کښې اسلام کور نهٔ وی کړے، دے وجے نه کله چه دوئ ته د دین په لاره کښې تکلیف اُورسی نو دین نه واوړی، او د انسانانو د طرفه چه دوئ ته کوم تکلیف اُورسی هغه د جهنم د عذاب غونته ګنړی، او کله چه مسلمانانو ته د الله تعالیٰ د طرفه تائید او نصرت حاصل شی، نو هغویٔ له ورځی او ورته وائی چه مونږ خو هم ستاسو غونته مسلمانان یو، لیکن کافرانو سره په اُوسیدو، یا د کفر په ښکاره کولو باندے مونږ د خپلو ځانونو او د اولادو په ځانونو بچ کولو باندے مجبور وو۔

مفسرین لیکی چه دا خبره د هغه خلقو په باره کښې شوے چه هغویٔ د بدر د غزا په موقعه د مکے د کافرانو سره تلی وو، لیکن کله چه کافرانو سخته ماتے وخوړه او د ګازرو او مولیو غونته پریکړے شو، او څهٔ چه باقی پاتے شو هغه ګرفتار کړے شو، نو د مکے دغه منافقانو ووئیل چه په اصل کښې مونږ هم مسلمانان یو، لیکن د خپل ایمان په پټولو باندے مجبور وو۔

اُوذِيَ فِي اللَّهِ: یعنی د الله تعالیٰ په دین کښې تکلیف ورکړے شی، یا د الله ددین د وجه نه تکلیف ورکړے شی۔

جَعَلَ فِتْنَةَ النَّاسِ كَعَذَابِ اللّٰهِ : د فتنے نه مراد تکلیف دے، مثلاً جبل او وهل تکول ورته داسے ښکاری لکه جهنم. او څپیړه ورته داسے ښکاری لکه د الله وهل. د انسان به څه عذاب وی، د الله تعالیٰ عذابونه ډیر سخت دی. دلته تقدیر دے : [اَیْ فَاَطَاعَ النَّاسَ كَمَا يُطِيْعُ اللّٰهَ مَنْ يَّخَافُ عِقَابَهٗ] نو بس دا انسان د خلکو طاعت شروع کړی لکه هغه څوك چه د الله تعالیٰ د عذاب نه یریږی نو د هغهٔ طاعت شروع کوی.

نَصْرٌ مِّنْ رَّبِّكَ: ددے نه مراد غلبه، مالونه، عزت دے چه حاصل شی په سبب د ملګرتیا د مؤمنانو سره.

اَوَ لَيْسَ اللّٰهُ بِاَعْلَمَ : الله تعالیٰ د دوئ دعوی رد کړه او وے فرمایل چه د انسانانو په زړونو کښ چه څهٔ پټ وی هغه په هغے ښهٔ خبر دے، دے وجے نه ستاسو دروغژن عذر ستاسو په کار نهٔ راځی.

وَلَيَعْلَمَنَّ اللّٰهُ: دا د امتحان بله فائده ده چه مؤمن او منافق راښکاره کول.

لَيَعْلَمَنَّ ۱- یوه معنیٰ ئے د راښکاره کولو ده. ۲- یا په خپله معنیٰ دے، او مطلب دا دے چه الله تعالیٰ مومن او منافق تول پیژنی، هر یو له به د هغهٔ د نیت او عمل عادلانه بدله ورکوی، مومنانو له په جنت کښ او منافقانو له په جهنم کښ ځای ورکوی.

| وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوا |
|---|
| او وائی هغه کسان چه کفرئے کړیدے هغه کسانو ته چه ایمان ئے راوړیدے |
| اتَّبِعُوْا سَبِيْلَنَا وَلْنَحْمِلْ خَطٰيٰكُمْ ۖ وَمَا هُمْ بِحٰمِلِيْنَ |
| تابعداری اُوکړئ د لارے زمونږ او بار دے کړو مونږ ګناهونه ستاسو، او نهٔ دی دوی پورته |
| مِنْ خَطٰيٰهُمْ مِّنْ شَيْءٍ ۖ اِنَّهُمْ لَكٰذِبُوْنَ ﴿۱۲﴾ وَلَيَحْمِلُنَّ |
| کونکی د ګناهونو د هغوی نه هیڅ شے، یقیناً دوی خامخا دروغژن دی. او خامخا پورته |
| اَثْقَالَهُمْ وَاَثْقَالًا مَّعَ اَثْقَالِهِمْ ۫ وَلَيُسْئَلُنَّ |
| به کړی بوجونه د هغوی او (نور) بوجونه سره د بوجونو خپلو نه، او خامخا تپوس به |
| يَوْمَ الْقِيٰمَةِ عَمَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ ﴿۱۳﴾ وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا |
| اُوکړے شی د دوی نه په ورځ د قیامت د هغے څه چه دوی دروغ جوړول. او یقیناً لیږلے وو |

| نُوْحًا اِلٰى قَوْمِهٖ فَلَبِثَ فِيْهِمْ اَلْفَ سَنَةٍ اِلَّا |
|---|
| مونږ نوح (علیه السلام) قوم د هغه ته نو ایسار شو په هغوی کښ زر کاله سوئ |
| خَمْسِيْنَ عَامًا ؕ فَاَخَذَهُمُ الطُّوْفَانُ وَهُمْ ظٰلِمُوْنَ ﴿۱۴﴾ فَاَنْجَيْنٰهُ |
| د پنځوسو کالو نه نو اُونیول دوی لره طوفان او دوی ظالمان وو۔ نو بچ کړو مونږ دے |
| وَاَصْحٰبَ السَّفِيْنَةِ وَجَعَلْنٰهَآ اٰيَةً لِّلْعٰلَمِيْنَ ﴿۱۵﴾ |
| او کشتئ والا او اُوګرځوله مونږ دا (کشتئ) نخه دپاره د مخلوقاتو۔ |

**تفسیر** : دا بل امتحان دے چه کله به کافران مؤمنانو ته د کفر او شرك اختیارولو دعوت او د حق د پتولو ترغیب ورکوی۔ د قریشو کافرانو هم د مسلمانانو د اړولو دپاره څه څه سو چونه ونکړل، د ضرر رسولو هره حربه ئے استعمال کړه، او کله چه په دے کښ دوئ کامیاب نشو نو مسلمانانو ته ئے ووئیل چه راشئ زمونږ سره یوځای شئ، او د محمد (صلی الله علیه وسلم) دین پریدئ، اوکه ستاسو د وینا مطابق مرګ نه پس مونږ دوباره ژوندی شو، او د جزاء او سزا وخت راشی نو ستاسو د ګناهونو ذمه واری به مونږ پورته کړو او ددے سزا به مونږ برداشت کړو۔ نو الله تعالیٰ پداسے کافرانو رد کوی او ایمان والو ته تنبیه ورکوی چه داسے کار ونکړئ۔ د هیچا ګناه په بل باندے نهٔ بار کیږی، هر چا دپاره خپله سزا ده، او داعی د ګمراهئ دپاره ډبله سزا ده۔

**وَلْنَحْمِلْ خَطٰيٰكُمْ** : دا په معنیٰ د شرط سره دے، اَیْ اِنِ اتَّبَعْتُمْ سَبِيْلَنَا وَلْنَحْمِلْ۔ یعنی که تاسو زمونږ لارے پسے روان شوئ نو مونږ به ستاسو د ګناهونو ذمه وار شو۔

**وَمَا هُمْ بِحٰمِلِيْنَ مِنْ خَطٰيٰهُمْ** :یعنی د قیامت په ورځ به دوئ د هغوئ د ګناهونو بوجونه بیخی پورته نهٔ کړی۔ دوئ خو ډیر زیات دروغژن خلق دی، د هیچا بوج په بل باندے نهٔ پورته کیږی۔

**وَلَيَحْمِلُنَّ اَثْقَالَهُمْ** : یعنی ددے کافرانو خپل دوه بوجونه شته هغه به پرے بار وی، د بل چا بوج پرے نهٔ بار کیږی، یو بوج د دوی د خپلو ګناهونو دے، او بل بوج ئے د خپل دغه مذکوره دروغ جوړولو او د ګمراهئ د دعوت دے، چه دا به په خپلو اُوګو باندے اُوچت کړی۔ یعنی خپله ګمراه وو او د بل د ګمراه کولو کوشش ئے کولو۔ نو د ضلال ا واضلال بوجونه به پرے بار وی۔ لکه حدیث کښ دی : [وَمَنْ سَنَّ سُنَّةً سَيِّئَةً كَانَ لَهٗ وِزْرُهَا

وَوِزْرُ مَنْ عَمِلَ بِهَا مِنْ غَيْرِ اَنْ يُّنْقَصَ مِنْ اَوْزَارِهِمْ شَيْئًا] چا چه د گناه بنیاد کیخودو نو ددهٔ دپاره به د هغې بوج وی او د هغه چا بوج هم چه چا پرے عمل کړے وی چه پدے سره به د هغوی (یعنی کونکو) د گناهونو نه هیڅ کمے نهٔ راولی)۔

وَلَيُسْـَٔلُنَّ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ: یعنی په دغه ورځ به الله تعالیٰ د دوئ نه ددے کافرانه جرأت په باره کښې تپوس کوی، او د دوئ د قِسما قِسم سازشونو بدله به ورته ورکوی۔

وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا: ددے ځای نه انواع الفتن بیانوی۔ دلته درے قسمه فتنے ذکر شویدی، یو طُوْلِ لُبْث۔ یعنی کله به داسے امتحان راځی چه د دعوت په باب کښې به وخت ډیر لګی او د الله مدد به زر نهٔ راځی، داعی به ډیره اُوږده موده د کافرانو د طرفنه تکلیفونه برداشت کوی۔ نو کله به داسے امتحان راځی چه داعی به اُور ته گوزارلے شی۔ کله به د ملك نه شړلے شی۔ او کله به قوم د قتل دهمکی ورکوی۔

دلته د نوح ﷺ او ابراهیم ﷺ واقعے ذکر کولو نه مقصود نبی کریم ﷺ او صحابه کرامؓ ته تسلیٔ ورکول دی، د نوح ﷺ په باره کښې دا وئیل چه هغهٔ نهه نیم سوه کالو پورے خپل قوم ته دعوت ورکولو، او د هغوئ د اړخ نه به ئے هر قِسم تکلیف برداشت کولو، او ددے باوجود یو څو کسان مسلمانان شو، د نبی کریم ﷺ همت زیاتولے شی چه تاته خو په ډیره کمه موده کښې د دعوت په میدان کښې ډیره لویه کامیابی ملاوېږی، او د زرونو مخالفتونو باوجود خلق په اسلام کښې داخلیږی۔

اَلْفَ سَنَةٍ اِلَّا خَمْسِيْنَ عَامًا: داسے جملے ئے په بل ځای کښې نهٔ ده راوړے ځکه چه دلته امتحان ذکر کول مقصد دے په اُوږد عمر سره۔ ځکه چه داعی وائی چه دشمن ډے صبا له هلاك شی او ډیر مهلت ډے ورنکړے شی۔

**فائده**: داسے ئے ونهٔ وئیل چه (تِسْعَمِائَةِ سَنَةٍ وَّخَمْسِيْنَ) ددے ډیر حکمتونه دی:

(۱) یو دا چه دا عبارت مختصر او آسان دے۔ (۲) دویم دا چه د (اَلْفَ سَنَةٍ) رعب او عظمت زیات دے او ددغه مخکنی عبارت رعب کم دے۔ نو پدے کښې ددے امتحان غتموالی ته اشاره ده۔ یعنی زر کاله ئے تیر کړیدی بیا د دروغو نه د بچ کیدو دپاره ئے (اِلَّا خَمْسِيْنَ عَامًا) ووئیل۔

(۳) دریم دا چه پدے سره مقصود ښه ادا کیږی ځکه چه د سنة لفظ په تکلیف باندے دلالت کوی، او د (عاماً) لفظ په فراخیٔ باندے دلالت کوی یعنی ډیر کلونه په تکلیفو کښې تیر شول او پنځوس کلونه په فراخیٔ کښې تیر شول۔

**فَاَخَذَهُمُ الطُّوْفَانُ** : الله تعالیٰ وفرمایل چه مونږ نوح (علیه السلام) لره د هغهٔ قوم ته نبی جوړولو سره ولیږهٔ، هغهٔ هغوئ ته نهه نیم سوو کالو پورې د توحید دعوت ورکولو، لیکن هغوئ ددهٔ دعوت قبول نهٔ کړو او د خپلو بُتانو (ود، سُواع، یغوث، یعوق او نسر) عبادت به ئې کولو، آخر نوح علیه السلام دعاء وکړه چه اے زما ربه ! زهٔ کمزورے یم تهٔ زما مدد وکړه، نو الله د هغهٔ دعاء قبوله کړه، او هغه او د هغهٔ مسلمانان ملګری ئې بچ کړل او کافران ئې په طوفان کښې هلاك کړل، او دنیا والو دپاره ئې د عبرت ځای جوړ کړل. نو پدې کښې ایمان والو ته تسلی ده چه آخری انجام ستاسو دے او کافرانو ته دهمکی ده چه تاسو په مسلمانانو امتحانات راولئ لیکن انجام مو خرابیدونکے دے.

**اٰيَةً لِّلْعٰلَمِيْنَ**: کشتئ نخه د مخلوقاتو ده چه چرته کشتئ وینی نو نوح علیه السلام به ورته رایادیږی. یا د نوح علیه السلام کشتئ هم د ډیرے زمانے پورے په جُودی غر باندے ولاړه وه او اُوس نزدے زمانه کښې د هغے تختئ راښکاره شوے. او دا سورت کښې چه په کوم وخت کښې نازلیدو نو په هغه وخت کښې صحابه کرام رضی الله عنهم د کافرانو نه ډیر تنګ راغلی وو نو دوی ته اشاره وه چه کشتئ کښې سوارهٔ شئ او حبشو ته واوړئ نو د کافرانو نه به په اَمن شئ لکه څنګه چه نوح علیه السلام په کشتئ کښې د کافرانو نه هجرت وکړو.

| وَاِبْرٰهِيْمَ اِذْ قَالَ لِقَوْمِهِ اعْبُدُوا |
|---|
| او (لیږلے وو مونږ) ابراهیم (علیه السلام) کله ئې چه ووېل هغه قوم خپل ته بندګی خاص کړئ |
| اللّٰهَ وَاتَّقُوْهُ ؕ ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿۱۶﴾ اِنَّمَا |
| د الله او اُویریږئ د هغه نه دا کار غوره دے تاسو لره که تاسو پو هیږئ. یقیناً |
| تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَوْثَانًا وَّ تَخْلُقُوْنَ اِفْكًا ؕ |
| بندګی کوئ تاسو سوئ د الله نه د بتانو (شکلونو جوړو شوو) او جوړوئ دروغ قصے، |
| اِنَّ الَّذِيْنَ تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ لَا يَمْلِكُوْنَ لَكُمْ |
| یقیناً هغه کسان چه بندګی کوئ تاسو (د هغوی) سوئ د الله تعالیٰ نه وَس نهٔ لری تاسو |
| رِزْقًا فَابْتَغُوْا عِنْدَ اللّٰهِ الرِّزْقَ وَاعْبُدُوْهُ وَاشْكُرُوْا لَهٗ ؕ |
| لره د رزق نو اُولټوئ د الله سره رزق او بندګی خاص کړئ د هغه او شکر وکړئ د هغه، |

| اِلَيۡهِ تُرۡجَعُوۡنَ ﴿۱۷﴾ وَاِنۡ تُكَذِّبُوۡا فَقَدۡ |
|---|
| خاص هغه ته به تاسو اوګرځولے شئ. او که چرته دروغژن ګڼړئ تاسو (ما لره) نو یقیناً |
| كَذَّبَ اُمَمٌ مِّنۡ قَبۡلِكُمۡ ؕ وَمَا عَلَى الرَّسُوۡلِ |
| دروغژن کړی وو ډیر امتونو مخکښې ستاسو نه (رسولانو لره) او نهٔ شته په رسول باندے |
| اِلَّا الۡبَلٰغُ الۡمُبِيۡنُ ﴿۱۸﴾ |
| مګر رسول ښکاره دی. |

**تفسیر** : اُوس د ابراهیم عليه السلام امتحانات بیانوی چه هغه اُور ته غورزیدل او هجرت کول دی. ابراهیم عليه السلام هم الله تعالیٰ د بابل والو دپاره نبی جوړ کړو او راوے لیږهٔ. د هغوئ نه د هغهٔ پلار آزر هم وو. هغهٔ هغوئ ته صرف د الله تعالیٰ د عبادت دعوت ورکړو، د شرك او ګناهونو نه ئے خلق ویرول، او ورته ئے ووئیل چه تاسو د الله تعالیٰ نه سوی د کومو بتانو عبادت کوئ، او په دروغو ترلو سره هغوئ خپل معبودان ګڼړئ، نو دا ستاسو هیڅ په کار نهٔ راځی. ستاسو د روزئ او د نفع او نقصان مالك خو صرف الله دے، دے وجے نه عبادت هم صرف د هغهٔ کوئ. او هم هغهٔ تاسو له بے شماره نعمتونه درکړی، دے وجے نه شکر هم صرف د هغهٔ اداء کوئ، او یاد لرئ چه مرګ نه پس به تاسو هغهٔ طرفته واپس کیږئ، د خپلو اعمالو حساب به هغهٔ له ورکوئ، دے وجے نه صرف د هغهٔ عبادت کوئ او هم هغه راضی کړئ.

اُعۡبُدُوا اللّٰهَ وَاتَّقُوۡهُ : اشاره ده چه ابراهیم عليه السلام خلکو په امتحان کښې ولے واچولو؟ د هغے وجه دا وه چه خلکو ته ئے د توحید او د الله د بندګئ دعوت ورکړو او د الله نه ئے ویرول. نو تهٔ به نیکے خبرے کوے لیکن خلك به دِے په امتحانانو کښې اچوی.

اِنۡ كُنۡتُمۡ تَعۡلَمُوۡنَ : اشاره ده چه د خیر او شر د تمیز دپاره علم ضروری دے. او مطلب دا دے چه که علم درکښې وی نو ددے خیر به وپیژنئ. او کوم خلك چه توحید نهٔ قبلوی نو دوی کښې علم نشته.

اِنَّمَا تَعۡبُدُوۡنَ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ اَوۡثَانًا : یعنی د غیر الله عبادت څکه مهٔ کوئ چه دا عاجز مخلوق دے او تاسو په خپلو لاسونو سره ددے شکلونه جوړ کړیدی. او بیا ددے دپاره دروغ جوړوئ چه دا آلهه دی، او پدے کښې دومره برکت دے او پلار نیکهٔ دا کار کړیدے.

اِنَّ الَّذِيْنَ تَعْبُدُوْنَ: شرك غالباً ددنيا د مفادو دپاره كيږي او د رزق د فراخئ طلب كولو دپاره كيږي. نو ځكه ورته د هغوى عاجز والے د رزق نه بيانوي. مشركان د بتانو او باباګانو عبادت او د هغوى نه سوال د جنت دپاره نۀ كوي.

رِزْقًا: دلته ئے رزقًا نكره راوړه او (الرِّزْقَ) ئے معرفه رانۀ وړه ځكه چه نكره په سياق د نفى كښې عموم فائده كوي، يعنى ستاسو باطل معبودان د هيڅ قسم رزق طاقت نۀ لرى او معرفه دپاره د كمال ده يعنى د الله تعالىٰ سره پوره رزق دے.

الرِّزْقَ وَاعْبُدُوْهُ: دلته ئے هم رزق او عبادت جمع كړل اشاره ده چه رزق به د الله تعالىٰ نه غوښتلے شى او هغه ئے په عبادت باندے وركوى. او په شكر سره ډير او پاك رزق ملاوېږى.

وَاِنْ تُكَذِّبُوْا: پدے آيت كښې دوه احتماله دى:

(۱) يو دا چه دا د ابراهيم ﷺ په وينا كښې داخل دے څه په طريقه د خطاب، او څه په طريقه د غائب سره اِلتِفاتاً او څه په طريقه د حكايت سره د قول د الله تعالىٰ نه، او دا قول حافظ ابن كثيرؒ غوره كړيدے. يعنى ابراهيم ﷺ دا هم وفرمايل: چه كه چرے تاسو ما دروغژن وګنړئ نو مخكنو قومونو هم خپل پيغمبران دروغژن ګنړلى وو، (هغوى صبر كړے وو نو زۀ به هم صبر كوم) او د هغوئ چه څۀ انجام شو د تاريخ صفحات ددے ګواه دى. او زۀ تاسو په هدايت باندے په زوره نشم راوستے ځكه چه د رسول ذمه وارى دا نۀ ده بلكه د هغه ذمه وارى صرف تبليغ وى.

او د وَاِنْ تُكَذِّبُوْا جزاء پټه ده (اَصْبِرُ كَمَا صَبَرُوْا) زه به د هغوى په شان صبر كوم. يا (فَلَا اَتْرُكُ التَّبْلِيْغَ) زۀ به د دين بيان تاسو ته نۀ پريدم.

(۲) بعض وائى چه اُوس د ابراهيم ﷺ د واقعے نه انتقال دے مكے والو ته او دا خطاب مكے والو ته دے. او مطلب دا دے چه كه تاسو زما نبى (نبى كريم ﷺ) دروغژن ګنړئ نو تير شوو قومونو هم د خپلو انبياؤ سره داسے سلوك كړے وو.

د رسول الله ﷺ كار خو صرف د الله پيغام پوره وضاحت سره رسول دى، كه چرے د هغۀ دعوت قبلوئ نو ستاسو فائده ده، او كه په خپل كفر او ګناهونو ټينګ پاتے شوئ نو ستاسو انجام به هم داسے شى څنګه چه د مخكنو مشركو قومونو شو. او دا قول ابن جرير الطبريؒ غوره كړيدے.

| اَوَلَمْ يَرَوْا كَيْفَ يُبْدِئُ اللّٰهُ الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيْدُهٗ ؕ اِنَّ ذٰلِكَ |
|---|
| آیا نهٔ کوری دوی چه څنګه اول کوی الله تعالیٰ پیدائش بیا به ئے دوباره کوی یقیناً دا کار |
| عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرٌ ﴿۱۹﴾ قُلْ سِيْرُوْا فِى الْاَرْضِ فَانْظُرُوْا كَيْفَ بَدَاَ الْخَلْقَ |
| په الله باندے آسان دے۔ اُووایه اُوګرځئ په زمکه کښې نو اُوګورئ څنګه اول پیدائش ئے |
| ثُمَّ اللّٰهُ يُنْشِئُ النَّشْاَةَ الْاٰخِرَةَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَىْءٍ |
| کړیدے بیا به الله تعالیٰ پیدائش کوی پیدائش روستنے۔ یقیناً الله په هر شی باندے |
| قَدِيْرٌ ﴿۲۰﴾ يُعَذِّبُ مَنْ يَّشَآءُ وَيَرْحَمُ مَنْ يَّشَآءُ ۚ |
| قدرت لرونکے دے۔ عذاب ورکوی چا ته چه اُوغواړی او رحم کوی په چا چه اُوغواړی |
| وَاِلَيْهِ تُقْلَبُوْنَ ﴿۲۱﴾ وَمَآ اَنْتُمْ بِمُعْجِزِيْنَ فِى الْاَرْضِ |
| او خاص هغه ته به ورګرځولے شئ تاسو۔ او نهٔ یئ تاسو عاجز کونکی (الله لره) په زمکه |
| وَلَا فِى السَّمَآءِ ؗ وَمَا لَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ ﴿۲۲﴾ |
| کښې او نهٔ په آسمان کښې او نشته تاسو لره سویٰ د الله نه څوك دوست او نهٔ مددګار۔ |
| وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَلِقَآئِهٖٓ اُولٰٓئِكَ |
| او هغه کسان چه کفرئے کړیدے په آیتونو د الله او په ملاقات د هغه، دغه کسان |
| يَئِسُوْا مِنْ رَّحْمَتِىْ وَاُولٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۲۳﴾ |
| نا اُمیده دی د رحمت زما نه او همدغه کسان دوی لره عذاب دردناك دے۔ |

**تفسیر**: دا څلور آیتونه په طریقه د ادخال اِلٰهی سره راغلی دی یعنی د ابراهیم علیه السلام په واقعه کښې د جملے معترضے په طریقه الله تعالیٰ د خپل عظمت دلیلونه وړاندے کوی او رد کوی په ټولو کافرانو مکذبینو چه د دلائلو نه ئے ځانونه ړانده کړیدی۔

اَوَلَمْ يَرَوْا: اَیْ اَیُكَذِّبُوْنَ وَلَمْ يَرَوْا۔ یعنی دوی تکذیب کوی او دے دلائلو ته نهٔ ګوری۔ او پدے کښې په بعث بعد الموت باندے دلیل ذکر کوی. فرمائی چه کوم الله انسان د یوے سپکے نطفے نه پیدا کوی، د مور په خیټه کښې دا د ګڼرو مرحلو نه تیروی، په دهٔ کښې روح اچوی او هغه دلته نه اُوکاړی، او بیا د یو اندازه عمر نه پس هغه وژنی، او همدا حال

د نورو حيواناتو او نباتاتو هم دے چه الله هغوئ له ژوند ورکوی او بيا په هغے فناء راولی، دغه الله تعالیٰ يقيناً ددے په دوباره پيدا کولو قادر دے، بلکه دا کار هغهٔ دپاره ډير زيات آسان دے، ځکه چه کله هغه د يو شئ اراده کوی نو وائی چه اُوشه، نو هغه شے په وجود کښې راځی۔

قُلْ سِيْرُوْا: پدے کښې اثبات د بعث بعد الموت دے په نظر کولو سره په نورو مخلوقاتو کښې، او تير شوی آيت کښې دليل وو په فکر کولو سره په خپل پيدائش کښې۔ يعنی هغه دليل نفسی وو، او دا دليل آفاقی دے۔

الله تعالیٰ خپل نبی ته حکم وکړو چه هغه خپل قوم ته په زمکه باندے د ګرځيدو او د مختلف قِسم انسانانو او حيواناتو، نباتاتو او ونو او غرونو او هواګانو کښې غور او فکر وکړی، چه لکه ځنګه چه الله تعالیٰ رنګا رنګ انسانان پيدا کړی چه د هغوئ رنګونه، طبيعتونه او ژبے جدا جدا دی، دغه شان به د قيامت په ورځ دوئ دوباره پيدا کوی، ځکه چه هغه په هر شئ قادر دے۔ او هغه به په دے ورځ کافرانو او د آخرت منکرينو له عذاب ورکوی، او مومنان او د خپلو اوامرو او نواهيو پابندی کونکی به په خپل فضل او کرم سره جنت ته داخلوی۔

النَّشْاَةَ الْاٰخِرَةَ: دوباره پيدائش۔

يُعَذِّبُ مَنْ يَّشَآءُ: يعنی الله تعالیٰ د خپل حکمت مطابق چا ته عذاب ورکوی او چا باندے رحم کوی۔

وَاِلَيْهِ تُقْلَبُوْنَ: قلب: ګرځيدل دی داسے حالت ته چه د اول حال نه بدل وی، او قيامت هم داسے دے۔ يعنی تاسو به په هر حالت کښې الله تعالیٰ ته واپس کيږئ۔

وَمَآ اَنْتُمْ بِمُعْجِزِيْنَ: دا د بعث بعد الموت بل دليل دے يعنی تاسو په ځکه دوباره راژوندی کوی چه تاسو عاجز مخلوق يئ؛ د الله نه نشی خلاصيدے نهٔ په زمکه کښې او نهٔ په آسمان کښې۔ يا دا علت دے د ماقبل (يُعَذِّبُ) دپاره يعنی الله تعالیٰ عذاب پدے وجه ورکولے شی او پدے قادر دے چه د الله تعالیٰ سره څوك مقابله نشی کولے۔

وَلَا فِي السَّمَآءِ: دا ورسره ځکه وائی چه الله تعالیٰ ته معلومه وه چه داسے آلات به جوړيږی (لکه جهازونه) چه انسان به بره آسمان (پورته فضاء) ته خيژی۔ نو هلته هم د الله نه نهٔ شئ خلاصيدے۔ يا د (فِي السَّمَآءِ) نه مراد ملائك دی او د (وَمَآ اَنْتُمْ) خطاب کښې ملائك هم داخل دی۔

وَمَالَكُمْ مِنْ دُوْنِ اللهِ: یعنی ستاسو هیڅوك مددګاران او دوستان نشته چه تاسو ما نه خلاص کړی۔ نو پدے کښې غرض احساس د فقر ورکول دی بندګانو ته چه الله تعالیٰ ته خپل فقر ښکاره کړئ او هغه ته متازی وکړئ۔

وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا: پدے آیت کښې په هغه کافرو رد دے چه آخرت نۀ منی۔

بیا ددے څه مطلب دے چه څوك د الله په آیتونو او د الله په ملاقات کافر وی نو هغه د الله د رحمت نه نا امیده وی؟ (۱) نو دے کښې عامو تفاسیرو کښې داسے لیکلی دی چه (یَئِسُوْا) ماضی صیغه ده په معنیٰ د امر سره ده۔ یعنی دوی دے نا امیده شی زما د رحمت نه چه جنت دے۔ زۀ دوی لره رحم نۀ ورکوم۔ او عذاب الیم کښې اشاره ده چه دوی به جهنم ته داخلیږی۔ (۲) چا دا وئیلی دی چه (یَئِسُوْا) ماضی په معنیٰ د مضارع ده یعنی کوم خلك چه د الله آیتونه او د هغهٔ ملاقات نۀ منی نو دوی به په قیامت کښې زما د رحمت (جنت) نه نا امیده شی ځکه چه الله تعالیٰ به ئے ترے محروم کړی او الله عذاب الیم (جهنم) به ورکړے شی۔ دا هم ښهٔ مطلب دے۔

(۳) لیکن غوره دا ده چه آیت په ظاهر بناء دے او پدے آیت کښې یو ژوربل مطلب پروت دے، هغه دا چه د الله تعالیٰ رحمت په دنیا کښې هم شته او په آخرت کښې هم۔ لیکن په دنیا کښې د الله رحمت کم دے، او په آخرت کښې مکمل دے، لکه حدیث کښې دی چه د الله سل رحمتونه دی یو ئے د هغے نه دنیا ته رالیږلے دے او یو کم سل به په آخرت کښې راښکاره کوی سره د دنیا د رحمت نه۔ (صحیح مسلم: ۷۱۴۹)

نو سل درجے رحمت دے۔ نو اُوس څوك چه د آخرت نه منکر شو او دا وائی چه تر مرګه پورے زندګی ده، او د مرګ نه روستو د آخرت ژوند نشته، نو دا انسان د الله تعالیٰ د سلو رحمتونو نه نا امیده دے، دا ئے زړۀ کښې نشته چه د الله رب العالمین سره فضل او خیرونه او کمالات دی چه هغه به ما له راکړی، هغه ته صرف دا ښکاره کیږی چه دنیا کښې خوراك، څکاك او لباسونو او ګارو موټرو او زنانو نه فائدے اخستل دی، دا ورته صرف د الله مهربانی ښکاره کیږی، او غټ رحمت ورته نۀ ښکاره کیږی، او کوم انسان چه آخرت منی نو هغه وائی چه د الله تعالیٰ ډیر رحمتونه شته، دنیا کښې ئے مونږ ته لږ راکړیدی، ځکه چه ژوند د دنیا لږ دے او د آخرت ژوند بی انتهاء دے، نو دغه شان د الله تعالیٰ رحمتونه به هم بی انتهاء وی۔ جنت دے، همیشه ځوانی، او همیشه خوشحالیانے دی نو څوك چه د الله تعالیٰ دا رحمتونه منی نو هغه به ضرور د الله

ملاقات منی، بیا به د الله تعالیٰ آیتونه منی او په هغې به عمل هم کوی۔

نو لنډ مطلب دا شو: څوك چه آخرت نهٔ منی هغه الله نیمګړے ګڼړی، او دا وائی چه د الله تعالیٰ رحمتونه نشته۔ نو که یو انسان د الله کامل رحمتونه وګڼړی نو دنیا کښې خو هغه نشته نو ضرور به آخرت منی۔

| فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهٖٓ اِلَّآ اَنْ قَالُوا اقْتُلُوْهُ اَوْ حَرِّقُوْهُ |
|---|
| نو نهٔ وو جواب د قوم د هغه مګر دا چه وے وئیل چه قتل کړئ دهٔ لره یا ئے اُوسیزئ دهٔ لره |
| فَاَنْجٰىهُ اللّٰهُ مِنَ النَّارِ ؕ اِنَّ فِیْ ذٰلِكَ لَاٰیٰتٍ لِّقَوْمٍ |
| نو بچ کړو دهٔ لره الله تعالیٰ د اُور نه، یقیناً پدے کښې خامخا عبرتونه دی دپاره د هغه قوم |
| یُّؤْمِنُوْنَ ﴿۲۴﴾ وَقَالَ اِنَّمَا اتَّخَذْتُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ |
| چه ایمان راوړی۔ او اُووئیل ابراهیم (علیه السلام) یقیناً نیولی دی تاسو سوی د الله نه |
| اَوْثَانًا ۙ مَّوَدَّةَ بَیْنِكُمْ فِی الْحَیٰوةِ الدُّنْیَا ۚ |
| معبودان (په طاعت کښې) دپاره د محبت په مینځ ستاسو کښې په ژوند دنیوی کښې |
| ثُمَّ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ یَكْفُرُ بَعْضُكُمْ بِبَعْضٍ وَّیَلْعَنُ |
| بیا به په ورځ د قیامت انکار کوی بعض ستاسو د بعضو نه او لعنت به کوی |
| بَعْضُكُمْ بَعْضًا ؗ وَّمَاْوٰىكُمُ النَّارُ وَمَا لَكُمْ مِّنْ نّٰصِرِیْنَ ﴿۲۵﴾ |
| بعض ستاسو د بعضو نه او ځائے د اُوسیدو ستاسو اُور دے او نشته تاسو لره مددګاران۔ |

**تفسیر**: ابراهیم علیه السلام ددے وعظ او نصیحت او د الله تعالیٰ د عذاب نه د ویرولو او د دهمکئ ورکولو هیڅ اثر د هغهٔ په قوم باندے ونشو، او هغوئ په خپلو کښې مشوره وکړه چه مونږ خو ددهٔ د نصیحتونو نه تنګ راغلو نو ددے نه ځان خلاصول پکار دی، نو دا ووژنئ، یائے په اُور وسیزئ، نو هغوئ اُورته وارتولو، لیکن د هغهٔ رب هغهٔ ته نجات ورکړو او هغه اُور د هغهٔ دپاره یخ او سلامتیا والا جوړ شو۔

**فَاَنْجٰىهُ اللّٰهُ**: نو هغوی عملی وسیزو، او دا سوزیدل هم د داعی د حق دپاره کامیابی

وی۔
اِنَّ فِیْ ذٰلِكَ لَاٰیٰتٍ لِّقَوْمٍ یُّؤْمِنُوْنَ: په دے واقعه کښی د الله تعالیٰ د لوی قدرت، بے انتهاء رحمت او عظیم حکمت ډیر دلائل موندلے کیږی، لیکن ددے نښو نه هغه خلق فائده اخلی چه ایمان والا وی ځکه چه هغوی به وائی چه په ابراهیم علیه السلام باندے امتحان راغلے وو نو په مونږ به هم راځی، بله نښه دا ده چه الله تعالیٰ خپلو دوستانو له نجات ورکوی نو ما له به هم نجات راکړی، امتحان همیشه دپاره نهٔ وی۔ او بے ایمانه خلق خو د مرو پشان دی، د فکر او نظر نه محروم دی، دوئ ته څهٔ فائده نهٔ کیږی۔
وَقَالَ اِنَّمَا اتَّخَذْتُمْ : ابراهیم علیه السلام بابل والو ته دا هم ووئیل چه اگر که تاسو په ظاهره کښی دا بتان معبودان جوړ کړی، لیکن په خپلو زړونو کښی اعتقاد نهٔ لری چه دا واقعی معبودان دی، بلکه د دوئ د عبادت په نوم تاسو د خپلو دنیوی گټو او مقصدونو په خاطر راجمع کیږئ، یریږئ چه که د دوئ عبادت مو پریښودهٔ نو ستاسو خپل مینځی تعلق به ختم شی، او تاسو به تس نس شئ۔
او دا خبره د غیر مسلمو او هندوانو په باره کښی نن هم رشتیا ده۔ په دوئ کښی اکثرو ته معلومه ده چه د دوئ دین هیڅ شے نهٔ دے، او د کومو بتانو چه دوئ عبادت کوی هغه د خاورے ډهیری دی، لیکن د دوئ عبادت نورو هندوانو ته د ښودنے دپاره کوی، دے دپاره چه خپلو کښی ملاؤ وی، او د دوئ دنیوی ښیگړے او مقصدونه حاصلیږی۔ ډیر هندوان ددے اظهار هم کوی۔
نو د مَوَدَّةَ معنیٰ دا ده : [لِلْخَشْیَةِ مِنْ ذَهَابِ الْمَوَدَّةِ فِیْمَا بَیْنَکُمْ اِنْ تَرَکْتُمْ عِبَادَتَهَا] د وجه د یرے د ختمیدو د مینے په خپل مینځ کښی که تاسو ددے عبادت پریدئ) یا [لِلتَّوَدُّدِ بَیْنَکُمْ وَالتَّوَاصُلِ لِاجْتِمَاعِکُمْ عَلٰی عِبَادَتِهَا] یعنی ددے دپاره چه ستاسو مینه او یوالے پیدا شی خپل مینځ کښی پدے وجه تاسو ددے په عبادت راجمع کیږئ)
نو مَوَدَّةَ منصوب دے مفعول له دے۔ [اَیْ لِاَجْلِ الْمَوَدَّةِ] ۔ یعنی دا سبب د دوستئ ستاسو دے په ژوند دنیوی کښی ځکه چه دا طریقه ده چه دنیا کښی یو بت پرست د بل بد پرست سره مینه لری او دغه شان قبر پرست د قبر پرست سره، مشرك د مشرك سره، مقلد د مقلد سره، متبع سنت د متبع سنت سره۔
ثُمَّ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ: یعنی کله چه د قیامت ورځ راشی او د حشر په میدان کښی تاسو جمع شئ بیا به په دنیا کښی د باطلو معبودانو په عبادت باندے ستاسو خپلو کښی اتحاد ختم

شي، او ستاسو د کفر مشران به د خپلو تابعدارو، مریدانو نه بیزاري ښکاره کوي، او دغه تابعدار به هم دا دغه سردارانو د سردارئ نه انکار وکړي، او هر یو به په بل باندې ښځه لعن طعن وکړي، تردې چه ټول به جهنم ته واچولے شي، او هیڅوك به د دوئ د مدد دپاره را مخکښې نشي. د سورت اعراف په (۳۸) آیت کښې الله تعالیٰ فرمایلي: ﴿ كُلَّمَا دَخَلَتْ أُمَّةٌ لَّعَنَتْ أُخْتَهَا ﴾ (کله چه هم یوه ډله ننوځي، په خپله بله ډله به لعنت لیږي). او د سورتِ زخرف په (٦٧) آیت کښې ئے فرمایلي:

﴿ اَلْاَخِلَّاءُ يَوْمَئِذٍ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ إِلَّا الْمُتَّقِينَ ﴾ (په دې ورځ به دوستان هم د یو بل دشمنان جوړ شي، سوئ د پرهیزګارو نه). نو داسے چا سره دوستي پکار ده چه په آخرت کښې ئے هم پکار شي، په صحیح دین کښې ملګرتیا پکار ده.

| فَاٰمَنَ لَهٗ لُوۡطٌ ۘ وَقَالَ اِنِّىۡ مُهَاجِرٌ |
|---|
| نو ایمان ښکاره کړو دۀ ته لوط (علیه السلام) او اُووئیل هغه یقیناً زۀ هجرت کونکے یم |
| اِلٰى رَبِّىۡ ؕ اِنَّهٗ هُوَ الۡعَزِيۡزُ الۡحَكِيۡمُ ﴿۲٦﴾ وَوَهَبۡنَا لَهٗۤ اِسۡحٰقَ |
| طرف د رب خپل ته یقیناً هغه غالبه حکمتونو والا دے. او اُوبخلو مونږ هغه ته اسحاق |
| وَيَعۡقُوۡبَ وَجَعَلۡنَا فِىۡ ذُرِّيَّتِهِ النُّبُوَّةَ وَالۡكِتٰبَ وَاٰتَيۡنٰهُ |
| او یعقوب او اُوګرځوله مونږ په اولادو د هغه کښې پیغمبري او کتاب او ورکړو مونږ هغه |
| اَجۡرَهٗ فِى الدُّنۡيَا ۚ وَاِنَّهٗ فِى الۡاٰخِرَةِ لَمِنَ الصّٰلِحِيۡنَ ﴿۲۷﴾ |
| ته اجر د هغه په دنیا کښې، او یقیناً هغه به په آخرت کښې خامخا د نیکانو نه وي. |
| وَلُوۡطًا اِذۡ قَالَ لِقَوۡمِهٖۤ اِنَّكُمۡ |
| او (یاد کړه) لوط (علیه السلام) کله چه اُووئیل هغه قوم خپل ته یقیناً تاسو |
| لَتَاۡتُوۡنَ الۡفَاحِشَةَ ۖ مَا سَبَقَكُمۡ بِهَا مِنۡ اَحَدٍ |
| خامخا راتلل کوئ بے حیایئ ته، مخکښې والے نۀ دے کړے ستاسو نه بد فعل ته هیڅ یو تن |
| مِّنَ الۡعٰلَمِيۡنَ ﴿۲۸﴾ اَئِنَّكُمۡ لَتَاۡتُوۡنَ الرِّجَالَ وَتَقۡطَعُوۡنَ السَّبِيۡلَ ۙ۬ وَتَاۡتُوۡنَ |
| د مخلوقاتو نه. آیا تاسو خامخا راتلل کوئ ناریِنو ته او پریکوئ لارے او راتلل کوئ |

| فِيْ نَادِيْكُمُ الْمُنْكَرَ ؕ فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهٖٓ اِلَّآ اَنْ قَالُوا |
|---|
| په مجلسونو خپلو کښې ناروا وته، نو نهٔ وو جواب د قوم د هغه مگر دا چه اُووئیل دوی |
| ائْتِنَا بِعَذَابِ اللّٰهِ اِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ﴿۲۹﴾ |
| راوله مونږ ته عذاب د الله که ئے ته د رشتینو نه. |

**تفسیر**: د ابراهیم علیه السلام د توحید دعوت د هغهٔ د قوم نه صرف د هغهٔ ورارهٔ لوط علیه السلام او خپلے ښځے سارے قبول کړو. دے نه پس هغهٔ خپل وطن پریښودهٔ او شام طرفته روان شو، دے دپاره چه هلته پوره آزادئ سره د الله تعالیٰ عبادت وکړی او نور خلق هم د الله دین طرفته را اوبلی. الله تعالیٰ هغهٔ له په خپله لاره کښې د تکلیفونو برداشت کولو، او بیا د هغهٔ د رضا له خاطره د هجرت کولو په عوض د اسحاق غونته ځوی او د یعقوب غونته نمسے ورکړو، او همیشه لپاره ئے نبوت او د آسمانی کتابونو نازلیدل د هغهٔ په اولاد پورے خاص کړل. دے وجے نه د هغهٔ نه پس تمام انبیاء د هغهٔ په اولاد کښې پیدا شول، او تمام آسمانی کتابونه هم په هغوئ نازل شول، تورات په موسیٰ علیه السلام، زبور په داؤد علیه السلام، انجیل په عیسیٰ علیه السلام، او قرآن کریم په نبی کریم ﷺ، او دا ټول د ابراهیم علیه السلام په اولاد کښې وو. الله تعالیٰ هغهٔ له په دنیا کښې اولاد، روزی او زیرے ورکړو چه اوس به تمام انبیاء د هغهٔ په اولاد کښې پیدا کیږی، او په آخرت کښې به دهٔ له د لویو لویو نیکانو سره په جنت کښې اعلیٰ مقام ورکوی.

فَاٰمَنَ لَهٗ لُوْطٌ : اَیْ اَظْهَرَ الْاِيْمَانَ لَهٗ۔ لوط علیه السلام ورته خپل ایمان ښکاره کړو. دا تاویل ځکه کوو چه په نبی باندے د کفر او شرك زمانه نهٔ راځی.

وَقَالَ اِنِّيْ مُهَاجِرٌ : دا وینا د ابراهیم علیه السلام ده چه لوط علیه السلام او خپل کور والو ته ئے ووئیل نو لوط علیه السلام هم ورسره هجرت وکړو. ځکه چه قوم خبره نهٔ منله او د وژلو اراده ئے کړے وه.

مفسرین لیکی چه ابراهیم علیه السلام اول هغه شخص دے چه د الله دپاره ئے هجرت کړیدے او خپل کلے ئے پریښے دے. او بعض وائی چه ددهٔ عمر پدے وخت کښې (۷۵) کاله وو. قتادهٔ وائی : اول ئے هجرت د کوثی نه وکړو چه دا د کوفے بانده ده، حرّان ته لاړو او د حران نه بیا فلسطین ته لاړو چه دا د شام میدانی علاقه ده. بیا د هغه ځای نه شام ته لاړو.

ددے وجه نه وئیلے کیږی چه هر نبی یو هجرت کړیدے او ابراهیم ﷺ دوه هجرتونه کړیدی۔ (القرطبی وفتح البیان)

مُهَاجِرٌ اِلٰی رَبِّیْ: اَیْ اِلٰی حَیْثُ اَمَرَنِیْ رَبِّیْ۔ یعنی کوم طرفته چه ما ته خپل رب حکم کوی۔ یا [لِمَرْضَاةِ رَبِّیْ] د هغه د رضا دپاره۔ یا هجرت رب ته دا دے چه کوم ځای د هغه بندګی په آزادیٔ سره کیږی او خلك ئے نهٔ تنګوی۔

بیا دلته ئے (اِلٰی) ووئیلو او لام ئے ونهٔ وئیلو (لِرَبِّیْ) ځکه چه په لام کښې صرف دلالت دے په اخلاص باندے او په (اِلٰی) کښې سره د اخلاص نه دلالت دے چه مکان د هجرت به هم په امر او په رضا د الله تعالیٰ سره وی۔

نو پدے آیت کښې دوه اشارے دی چه کله کله به په تاسو داسے امتحان راځی چه په هجرت به مجبوره کیږئ۔ دویم پدے آیتونو کښې صحابه کرامو ته اشاره ده چه تاسو هجرتونه وکړئ او د مکے نه ووځئ او حبشو ته لاړ شئ چرته چه تاسو ته امن ملاویږی، د ابراهیم ﷺ اقتداء وکړئ نو ددے سورت د نازلیدو نه روستو هغوی حبشو ته هجرت وکړو۔

وَوَهَبْنَا لَهٗ: دا بل ترغیب دے هجرت ته، چه څوك د الله دپاره څه شے پریدی الله به د هغے نه ورله غوره ورکړی۔ ابراهیم ﷺ خپل قوم پریخودو نو الله ورله انبیاء بچی ورکړل او ددهٔ په نسل کښې ئے نبوت او کتابونه راولیږل۔ نو اے صحابه کرامو! هجرت وکړئ الله به نیکان بچی درکړی، په بچو کښې به مو علماء او د دین داعیان پیدا کړی۔

دا د قرآن د دعوت طریقه ده چه یو قصه بیانوی او غټه خبره ئے پکښې راګیره کړی وی، لرے لرے اشارے وی۔

نو پدے آیت کښې په ابتلاء اتو باندے د صبر څلور نتیجے ذکر کوی، اول بشارت په ځوی او نمسی سره، او د نمسی په بشارت کښې اشاره ده اُوږدوالی د عمر ته تردے چه نمسے به وینی۔ بیا اسماعیل ﷺ ئے ذکر نکړو ځکه چه پدے هجرت کښې ددهٔ سره ساره رضی الله عنها د اسحاق مور وه نو دا بشارت هغے ته هم دے۔

وَاٰتَیْنٰهُ اَجْرَهٗ فِی الدُّنْیَا: دا دریمه نتیجه ده۔ په دنیا کښې د اجر ورکولو څه معنیٰ؟ یو دا چه ددهٔ ته اولاد په غیر د خپل مناسب وخت نه ورکړے شوی وو، یعنی په بوډاوالی کښې۔ بل الله تعالیٰ خبر ورکړو چه ددهٔ په نسل کښې به نبوت همیشه روان وی، چه پدے سره به ددهٔ سترګے یخیږی او خوشحالی به ئے زیاتیږی۔ بله دا چه هر دین والا د ابراهیم

ﷺ د تابعدارئ دعوه کوی او د هغه صفتونه کوی، او مسلمانان ئے په آخری تشهد کښې هر وخت یادوی۔ دارنګه نیکان بچی۔ دارنګه فراخه رزق۔

وَاِنَّهٗ فِی الْاٰخِرَةِ: دا څلورمه نتیجه ده۔

وَلُوْطًا: د لوط ﷺ واقعه هم د نوح ﷺ او ابراهیم ﷺ د واقعے پشان نبی کریم ﷺ له د تسلیٔ ورکولو دپاره بیانیږی۔ لوط ﷺ ته هم قوم دهمکی ورکړے وه چه دے وژنو او د کلی نه ئے وباسو۔ نو دے هم په هجرت مجبوره شویدے۔ او بیا په اهل الامتحان باندے عذاب راغلے دے۔ الله تعالیٰ لوط ﷺ هم سدوم، عموریه او د خوا اوشا نورو کلو دپاره نبی را ولیږهٔ۔ دے خلقو به د شرك او د آخرت د انکار نه علاوه د لواطت (هلکانو کار) پشان خراب او خطرناکه ګناه کوله، په مسافرو به ورآوښتل، هغوئ سره به ئے په زوره د هلکانو کار کولو، د هغوئ مال او اسباب به ئے لوټ کول، دے وجے نه خلقو په دے کلو باندے تیریدل پریښی وو، او په خپلو مجلسونو کښې به جمع شو او په زور زور سره به ئے باد اچول، خپل پرتوګونه به ئے وارتول او بربنډ به شول، او په خپلو کښې به ئے د یو بل سره لواطت کولو، لاروی به ئے په کاڼرو ویشتل، او ګډان او چرګان به ئے جنګول۔

(مسند احمد، ترمذی، ابن مردویهؒ -ابن کثیرؒ)۔

وَتَقْطَعُوْنَ السَّبِیْلَ: ١- یوه معنیٰ دا ده چه تاسو د نسل انسانی لاره ختموئ څکه چه هلکانو سره لواطت کښې نسل نهٔ پیدا کیږی۔ ٢- یا ظاهری معنیٰ ده چه لاروی به ئے شوکول او د هغوی سره به ئے په زوره لواطت کولو۔

وَتَاْتُوْنَ فِیْ نَادِیْکُمُ الْمُنْکَرَ: د دوی نور منکرات دا وو چه دوی به نردشیر او شطرنج (لډو) باندے لوبے کولے، د ګوتو سرونه به ئے په نکریزو سرهٔ کول، شپیلی به ئے وهل، په مجلس کښې به ئے ناڅاپی لنګ کولاوولو۔ کنځل او فاحشے خبرے به ئے کولے، کاڼړی به ویشتل یعنی «پتهه شکیٔ» لوبه به ئے کوله۔ په لاره چه به څوك مسافر تیریدل نو دوی به په کاڼرو ویشتل او د هغوی پورے به ئے مسخرے کولے۔ (فتح البیان)

د مسافرو د عزت په ځای به ئے د هغوی بی عزتی کوله۔

د رسول الله ﷺ د مجلس په باره کښې راغلی چه [لَا تُؤْبَنُ فِیْهِ الْحُرَمُ] د چا عزتونه به پکښې نهٔ اخستلے کیدل۔ (شرح السنه: ٣٧٠٦ المعجم الکبیر للطبرانی واسناده ضعیف)

فَمَا کَانَ جَوَابَ قَوْمِهٖۤ: لوط ﷺ دوئ له د توحید دعوت ورکړو، ددے ګناهونو نه ئے منع کړل، او د الله د عذاب ویره ئے ورته ورکړه، لیکن په دوئ هیڅ اثر ونشو، بلکه هغهٔ

پورے ئے توقے شروع کرے او وے وئیل : که تهٔ په خپله خبره کښې رشتینے ئے چه تهٔ د الله نبی ئے، او دا چه که مونږ خپل عادات بدل نهٔ کړل، نو په مونږ به د الله تعالیٰ عذاب نازلیږی، نو بیا دغسے وکړه۔ لوط علیه السلام په کفر باندے د دوئ د ټینګار نه او د دوئ د بد عملونو نه تنګ راغے او دعاء ئے وکړه چه اے زما ربه ! ددے ظالمانو خلاف زما مدد وکړه۔ نو الله تعالیٰ د هغهٔ دعاء قبوله کړه، چه ددے تفصیل را روان دے۔

**فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهٖٓ** : دا خبره د دوی د ځان په باره کښې وه چه عذاب راولـه۔ او مخکښې ذکر شویدی چه د لوط علیه السلام په باره کښې ئے وویل چه دا د کلی نه وباسی۔

| قَالَ رَبِّ انْصُرْنِىْ عَلَى الْقَوْمِ الْمُفْسِدِيْنَ ﴿۳۰﴾ وَلَمَّا |
|---|
| اُووئیل هغه اے ربه زما مدد اُوکړه زما په مقابله د قوم مفسدانو کښې۔ او هرکله |
| جَآءَتْ رُسُلُنَآ اِبْرٰهِيْمَ بِالْبُشْرٰى لا قَالُوْٓا اِنَّا |
| چه راغلل استازی زما ابراهیم (علیه السلام) ته په زیری، اُووئیل دوی یقیناً مونږه |
| مُهْلِكُوْٓا اَهْلِ هٰذِهِ الْقَرْيَةِ ج اِنَّ اَهْلَهَا كَانُوْا ظٰلِمِيْنَ ﴿۳۱﴾ |
| هلاکونکی یو اُوسیدونکی ددے کلی یقیناً اُوسیدونکی ددے وو ظالمان۔ |
| قَالَ اِنَّ فِيْهَا لُوْطًا ط قَالُوْا نَحْنُ اَعْلَمُ |
| اُووئیل ابراهیم (علیه السلام) یقیناً پدے کښې لوط دے، اُووئیل دوی مونږ ښه پوهه یو |
| بِمَنْ فِيْهَا صلى ز لَنُنَجِّيَنَّهٗ وَاَهْلَهٗٓ اِلَّا |
| په هغه چا چه پدے کښې دی، خامخا بچ به کړو هغه لره او کور والا د هغه مګر |
| امْرَاَتَهٗ ق ز كَانَتْ مِنَ الْغٰبِرِيْنَ ﴿۳۲﴾ |
| ښځه د هغه ده د روستو پاتے کړے شوو نه (په عذاب کښې)۔ |

**تفسیر** : الله تعالیٰ د قومِ لوط هلاکولو دپاره چه کوم ملائك رااولیږل، هغه ئے ددے هم مکلف کړل چه دوئ هغوئ ته د رسیدو نه مخکښې ابراهیم علیه السلام ته د ځوی (اسحاق) او د نمسی (یعقوب) زیرے ورکړی۔ پدے کښې به اشاره وی خوف او رجاء ته چه الله تعالیٰ لکه چه په ظالم قوم عذاب نازلوی نو خپلو نیکانو بندګانو ته د خپل رحمت نه څه

برخه هم ورکوی. او پدې کښې مؤمنانو ته خبردارے ورکوی چه اے مؤمنانو ! په تاسو امتحان دے لیکن نزدے بشارت راروان دے.

او اے کافرانو! تاسو مؤمنان په امتحان کښې اچوئ لیکن تاسو لره نزدے هلاکت دے.

نو یو ے دلے ته خوف او بلے ته رجاء ورکول دی.

اِنَّا مُهۡلِكُوٓا : ملائکو ابراهیم ﷺ ته د زیرې ورکولو نه پس، د غم نه ډك دا خبر هم ورکړو چه الله دوئ د لوط ﷺ د قوم د کلو، د هغوئ د ظلم او کفر په وجه د هلاکولو دپاره رالیږلی.

ظٰلِمِيۡنَ: دوی کښې شرك او منکرات وو نو دائے ظلم وو او ظلم سبب د هلاکت دے.

قَالَ اِنَّ فِيۡهَا لُوۡطًا : ابراهیم ﷺ په دے کلو والو باندے د رحم کولو او په دے امید چه کیدے شی دوئ ایمان راوړی او د خپلو ګناهونو نه توبه کړی، ووئیل چه هلته خو لوط هم وسیږی او هغه خو ظالم نهٔ دے نو بیا تاسو هغوئ څنګه تباه کوئ ؟ او رسول د الله چه یو ځای کښې موجود وی هلته عذاب نهٔ راځی، مقصد ئے دا وو چه تاسو لږ صبر وکړئ.

قَالُوۡا نَحۡنُ اَعۡلَمُ بِمَنۡ فِيۡهَا : ملائکو جواب ورکړو، مونږ ته ښهٔ پته ده چه هلته کوم خلق دی، مونږ به هغه او د هغوئ مسلمانان ملګری بچ کړو، او د هغهٔ د ښځے سره تمام کافران به هلاك کړو.

نَحۡنُ اَعۡلَمُ : دا قول د ملائکو دے لیکن ملائك رسولان دی، او قول د رسول دا قول د مُرسِل وی نو دا قول د الله تعالیٰ دے. یا الله تعالیٰ ملائکو ته ددے علم ورکړیدے.

اِلَّا امۡرَاَتَهٗ: ښځه ئے پدے وجه هلاکه کړه چه دے به د لوط ﷺ میلمانهٔ قوم ته خودل چه وریسے راشی او بدکاری ورسره وکړی نو دا هم د هغوی سره حساب شوه.

| وَلَمَّآ اَنۡ جَآءَتۡ رُسُلُنَا لُوۡطًا سِیٓءَ بِهِمۡ |
| --- |
| او هرکله چه راغلل استازی (ملائك) زمونږ لوط (ﷺ) ته خفه شو په دوی |
| وَضَاقَ بِهِمۡ ذَرۡعًا وَّقَالُوۡا لَا تَخَفۡ وَلَا تَحۡزَنۡ ۟ |
| باندے او تنګه شوه په دوی باندے سینه د هغه او دوی اُووئیل مهٔ یریږه او مهٔ خفه کیږه |

اِنَّا مُنَجُّوْكَ وَاَهْلَكَ اِلَّا امْرَاَتَكَ كَانَتْ مِنَ

یقیناً مونږ نجات درکوونکي یو تا ته او ستا کور والا ته مګر ښځه ستا ده د

الْغٰبِرِيْنَ ﴿۳۳﴾ اِنَّا مُنْزِلُوْنَ عَلٰٓى اَهْلِ هٰذِهِ

روستو پاتې کیدونکو نه (په عذاب کښې). یقیناً مونږ رالیږونکي یو په اوسیدونکو ددې

الْقَرْيَةِ رِجْزًا مِّنَ السَّمَآءِ بِمَا كَانُوْا يَفْسُقُوْنَ ﴿۳۴﴾ وَلَقَدْ تَّرَكْنَا مِنْهَآ

کلي بد عذاب د بره نه په سبب ددې چه دوی نافرماني کوله. او یقیناً پریخوده مونږ ددې

اٰيَةًۢ بَيِّنَةً لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ ﴿۳۵﴾ وَاِلٰى مَدْيَنَ

(کلي) نه نخه ښکاره دپاره د هغه قوم چه د عقل نه کار اخلي. او (لیږلے وو مونږ) مدین

اَخَاهُمْ شُعَيْبًا ۙ فَقَالَ يٰقَوْمِ اعْبُدُوا

والو ته ورور د هغوی شعیب (العلیہ) نو اُووئیل هغه اے قومه زما بندګي خاص

اللّٰهَ وَارْجُوا الْيَوْمَ الْاٰخِرَ وَلَا تَعْثَوْا فِى الْاَرْضِ مُفْسِدِيْنَ ﴿۳۶﴾

کرئ د الله تعالیٰ او امید (یقین) اُوساتئ د ورځ روستنۍ او مه ګرځئ په زمکه کښې فساد

فَكَذَّبُوْهُ فَاَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ فَاَصْبَحُوْا

کونکي. نو دروغژن اُوګڼړو دوی هغه لره نو راونیول دوی لره زلزلې نو صبا ئے کړو

فِىْ دَارِهِمْ جٰثِمِيْنَ ﴿۳۷﴾ وَعَادًا وَّثَمُوْدَا۠ وَقَدْ تَّبَيَّنَ

په کورونو خپلو کښې پرمخې پراته. او (هلاك کړل مونږ) عادیان او ثمودیان او یقیناً ښکاره

لَكُمْ مِّنْ مَّسٰكِنِهِمْ ۫ وَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ

شویدې تاسو ته (هلاکت د هغوی) د کورونو د هغوی نه، او ښائسته کړي وو دوی ته

اَعْمَالَهُمْ فَصَدَّهُمْ عَنِ السَّبِيْلِ وَكَانُوْا مُسْتَبْصِرِيْنَ ﴿۳۸﴾

شیطان (بد) عملونه د دوی نو منع کړي ئے وو د نیغې لارې نه او وو دوی عقلمند.

**تفسیر:** کله چه دغه ملائك لوط (العلیہ) خواته راغلل نو د دوئ په لیدو سره هغه پریشانه شو او ډیر زیات خفه شو چه اُوس به څهٔ کیږي، دا ښائسته خوانان به د بد

معاشو لوطیانو نه څنګه بچ کړے شم. ملائکو د هغهٔ پریشانی معلومه کړه او وے وئیل چه ته ز مونږ په باره کښې مهٔ یریږه او ستا د خاندان چه کوم کافران هلاك کړے شی نو د هغویٔ غم مهٔ کوه، یا لَا تَخَفْ : مهٔ یریږه په خپل قتل سره.

او وَلَا تَحْزَنْ : مهٔ غمژن کیږه په مونږ باندے. مونږ به تا او ستا مسلمانان رشته داران بچ کړو، سوئ د کافرے ښځے ستانه چه دا به بهرحال کافرانو سره تباه کیږی. مونږ په همدے کلو والو باندے د دوئ د فسق او فجور په وجه آسمانی عذاب نازلونکی یو، نو جبرئیل ﷺ په دوئ باندے د کانړو باران وکړو، او دوئ ئے د زمکے نه را اُوچت کړل او پر مخے ئے وارتول، چرته چه اُوس (بحرِ میّت) موندلے کیږی، او د دوئ تاریخ ئے د عقل او هوش والو دپاره د عبرت سبق جوړ کړو.

وَلَقَدْ تَرَكْنَا: پدے کښې الله تعالیٰ اُوس موجوده خلکو ته عبرت ورکوی. چه تاسو پدے کلی ورتیریږئ نو ددے نه عبرت واخلئ چه دا په څه وجه هلاك شو، دغسے کار به تاسو سره هم وکړی اے د مکے مشرکانو! او ددے بله نښه دا هم ده چه د دوی د هلاك شوی کلی په ځای د تورو اُوبو دریاب دے چه هغے ته بحر میّت هم وائی.

وَاِلٰى مَدْيَنَ : الله تعالیٰ د مدین والو د هدایت دپاره شعیب ﷺ نبی را اُولیږهٔ. دا واقعه په سورتِ اعراف او سورت هود کښې تیره شوے. دا خلق د ابراهیم ﷺ د نسل نه وو. شعیب ﷺ د الله د توحید او په آخرت باندے د ایمان لرلو دعوت ورکړو، او په ناپ تول کښې د کمی کولو او د مسافرو په لوټ کولو سره په زمکه کښې د فساد کولو نه منع کړل، لیکن هغوئ ددهٔ دعوت قبول نکړو، او هغه ئے دروغژن وګڼړلو، نو الله تعالیٰ په دوئ باندے یوه سخته زلزله راوسته چه د هغے د اثر په وجه دوئ په خپلو کورونو کښې پر مخے پریوتل او هلاك شول.

وَارْجُوا الْيَوْمَ : د اُمید معنیٰ دا ده چه عبادت کوه پدے نیت چه الله به په قیامت کښې ددے بدله درکړی، هسے طمع د قیامت مراد نهٔ ده.

وَعَادًا وَّثَمُوْدَا: ددے ځای نه روستو اجمالًا نور قومونه بیانوی چه دا اهل الامتحان وو په مؤمنانو، او په هغوی باندے د عذابونو تذکره ده. دلته پنځه قومونه ذکر شویدی یو قوت الابدان والا، بل قُوَّةُ الْاِكْتِسَاب ، بل قُوَّةُ الْاَمْوَال ، قُوَّةُ الْمُلْك ، قُوَّةُ الْوَزَارَة . عادیانو سره قوت بدنی وو، ثمودیانو سره قوتِ کسبی (تجارتی) وو. د قارون سره قوتِ مالی وو، د فرعون سره قوت د بادشاهئ وو، د هامان سره وزارت وو. اشاره ده چه څوك په الله

باندے کافر وی، شرك کوی، او د الله بندگی نهٔ کوی نو پدے تولو نقشو او طاقتونو کښې به هلاك شی، بی دینی سبب د هلاکت دے اګرکه هرڅومره طاقتور وی.
وَعَادًا: اَیْ وَاَهْلَکْنَا عَادًا : یعنی د تیر شوو کافرو قومونو غونته الله تعالیٰ قومِ عاد هم د دویٔ د کفر او سرکشیٔ په وجه هلاك کړل، چه دویٔ د حضرموت خواته (احقاف) نومے کلی کښې وسیدل. او د دویٔ د هدایت دپاره هود ﷺ را اولیږلے شو. او قومِ ثمود هم د دویٔ د کفر او سرکشیٔ په وجه هلاك شوی وو، چه دویٔ وادی القریٰ ته نزدے (حِجر) نومے کلی کښې اُوسیدل، د دویٔ د هدایت دپاره صالح ﷺ رالیږلے شوے وو.
وَقَدْ تَّبَیَّنَ لَکُمْ: (اَیْ الْهَلَاكُ) تاسو ته ښکاره شویدے د هغوی هلاکت د هغوی د کورونو نه. دلته الله تعالیٰ د مکے کافرانو ته خطاب کوی فرمائی چه ددے ځایونو کنډرے تاسو ته اُوس هم دربنائی چه مونږ دویٔ تباه کړی وو. شیطان د دویٔ بد عملیٔ د دویٔ په نظرونو کښې ښائسته کړے وے، دویٔ به د الله سره بل څوك شریکولو، په زمکه کښې به ئے شر او فساد خورولو، او دا ګمان به ئے کولو چه دویٔ ښهٔ خلق دی او د دویٔ عملونه ښهٔ دی، دے وجے نه د حق لارے د تابعداریٔ سوچ هم دویٔ نهٔ کولو. حال دا چه هغویٔ په ظاهره کښې د عقل او هوش خاوندان وو، که دویٔ غوښتلے نو د انبیاء کرامو په تعلیماتو کښې به ئے غور او فکر کړے وے او حقه لاره به ئے موندلے وے.
۲- تَبَیَّنَ لَکُمْ آیَاتٌ بَیِّنَاتٌ. ښکاره شویدی تاسو ته ښکاره نښے د هغوی د کورونو نه.
وَکَانُوْا مُسْتَبْصِرِیْنَ: اَیْ عُقَلَاءَ مُتَمَکِّنِیْنَ مِنَ النَّظَرِ وَالْاِسْتِدْلَالِ . دوی عقلاء وو، ښه قادر وو په نظر او استدلال. او په سورة الاحقاف (۲۶) آیت کښې راغلی دی:
﴿ وَجَعَلْنَا لَهُمْ سَمْعًا وَّاَبْصَارًا وَّاَفْئِدَةً ﴾ او مونږ ګرځولی وو دوی لره غوږونه، او سترګے او زړونه) د دوی تول طاقتونه برحال وو. په خپل کسب او هنر او فائدو باندے پوهیدل خو شیطان دهوکه کړی وو، شرك ئے ورته ښائسته ښکاره کړے وو سره د عقلمندیٔ نه، کله ئے چه شرك کولو عقل ورله فائده ورنکړه. دوی د دنیا په امورو کښې عقلمند وو لیکن د آخرت نه بیخی غافل وو.

وَقَارُوْنَ وَفِرْعَوْنَ وَهَامٰنَ قف وَلَقَدْ جَآءَهُمْ مُّوْسٰی

او (هلاك کړی وو مونږ) قارون او فرعون او هامان او یقیناً راغلے وو دوی ته موسیٰ (ﷺ)

بِالْبَيِّنٰتِ فَاسْتَكْبَرُوْا فِي الْاَرْضِ وَمَا كَانُوْا

په ښکاره معجزاتو نو لوئي اوکړه دوی په زمکه کښې او نه وو دوی

سٰبِقِيْنَ ﴿۳۹﴾ فَكُلًّا اَخَذْنَا بِذَنْۢبِهٖ ۚ فَمِنْهُمْ

مخکښې کیدونکي (د الله نه)۔ نو هر یو رانیولی دی مونږ په ګناه دده نو بعض د دوی نه

مَّنْ اَرْسَلْنَا عَلَيْهِ حَاصِبًا ۚ وَمِنْهُمْ مَّنْ

هغه دي چه رالیږلی دی مونږ په هغه باندے باران د کاڼړو او بعض د دوی نه هغه دي

اَخَذَتْهُ الصَّيْحَةُ ۚ وَمِنْهُمْ مَّنْ خَسَفْنَا

چه رانیولی دی هغوی لره چغې او بعض د دوی نه هغه څوك دي چه خخ کړیدی مونږ

بِهِ الْاَرْضَ ۚ وَمِنْهُمْ مَّنْ اَغْرَقْنَا ۚ وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيَظْلِمَهُمْ

په زمکه او بعض د دوی نه هغه دي چه غرق کړیدی مونږ او نه وو الله چه ظلم اوکړي

وَلٰكِنْ كَانُوْٓا اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ﴿۴۰﴾ مَثَلُ الَّذِيْنَ

په دوی باندے لیکن وو دوی چه په خپلو ځانونو ئے ظلم کولو۔ مثال د هغه کسانو

اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَوْلِيَآءَ كَمَثَلِ الْعَنْكَبُوْتِ ۚ

چه نیولی ئے دي سوئ د الله نه دوستان (مددګاران) پشان د حال د جولاګي دے

اِتَّخَذَتْ بَيْتًا ۚ وَاِنَّ اَوْهَنَ الْبُيُوْتِ لَبَيْتُ الْعَنْكَبُوْتِ ۘ لَوْ

چه نیولے ئے دے کور او یقیناً ډیر کمزورے د کورونو نه خامخا کور د جولاګي دے کچرے

كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ﴿۴۱﴾ اِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖ

دوی پو هیدلے۔ یقیناً الله تعالیٰ پو هیږي په هغه څه چه رابلي دوی سوئ د الله نه

مِنْ شَيْءٍ ۚ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿۴۲﴾

څه شے، او هغه غالبه حکمتونو والا دے۔

**تفسیر** : الله قارون، فرعون او هامان د دوئ د کفر او تکبر د وجے نه هلاك کړي وو۔ پدے کښې څلور قسمه عذابونه بیانوی۔ قارون ئے په زمکه ننویستو، اوفرعون او هامان ئے د

سمندر چپو ته اُوسپارلو۔ دوئ ته موسیٰ ﷺ د الله تعالیٰ په ښکاره نښو سره راغلے وو۔ د توحید دعوت ئے ورته پیش کړو، د الله تعالیٰ د عذاب نه ئے اُویرول، او د هغهٔ بندګئ طرفته ئے را اُوبلل، لیکن هغوئ د کبر لاره اختیار کړه، او د یو الله د بندګئ نه ئے انکار وکړو، نو دوئ د الله نه ځان چرته بچ کولے شو۔

**وَمَا كَانُوا سٰبِقِيْنَ:** یعني نهٔ وو دوی مخکښ کیدونکی یعني بچ کیدونکی د الله د عذاب نه۔ سابق دے ته وائی چه الله وروسے وی او دوی ترے وتښتی او مخکښ ترے لاړ شی۔

**فَكُلًّا اَخَذْنَا بِذَنْبِهٖ:** الله تعالیٰ دا پورتنی کافران د دوئ د ګناهونو په وجه هلاك کړل۔ عادیان ئے د یوے تیزے او یخے هواء په ذریعه، چه هغے په دوئ باندے د کاڼړو باران وکړو، او په دوئ کښې ئے هر یو پورته کړو او سر خکته ئے په زمکه را ویشتلو، چه دے سره د هغوئ سرونه د جسمونو نه جدا شول، او اصحابِ مدین او ثمودیان ئے د کریکے (چغے) په ذریعه، او قارون ئے په زمکه ننه ایستلو، او فرعون ئے په سمندر کښې ډوب کړو۔ او څهٔ چه د دوئ سره اوشو، د دوئ د کفر او شرك اوګناهونو په وجه وشو، الله په دوئ ظلم نهٔ دے کړے۔

**فَكُلًّا: اَىْ كُلًّا مِنَ الْاَقْوَامِ۔** دا ټول قومونه۔

**يَظْلِمُوْنَ:** د دوی ظلمونه: شرك، کفر او عمل قوم لوط او ناپ تول کښې کمی کول او تکبر وو۔

او د دوی د ځانونو سره څکه ظلم وکړو چه الله تعالیٰ د هرے ګناه او شرك او کفر سره عذاب تړلے دے او بیا ئے بندګان پو هه کړیدی چه ددے خوا ته مهٔ ورځئ نو چه ددے سره سره بندګان ورځی نو دا به د ځان سره زیاتے کوی۔

**مَثَلُ الَّذِيْنَ:** مناسبت

د هلاکت په وخت د خلکو دوه خبرو ته فکر کیږی، یو دا چه الله په مونږ باندے زیاتے وکړو (العیاذ بالله) نو الله جواب وکړو چه الله ظلم نهٔ کوی۔ دویم د خلکو خپلو باطلو آلهه ؤ ته فکر کیږی، وائی چه کله عذاب راشی نو زمونږ باباګان شته هغه به مو بچ کړی۔

دارنګه دا جواب د سوال دے چه دوی ولے هلاك شول آیا د دوی آلهه نهٔ وو، کوم بتان ئے ځان دپاره نیولی نهٔ وو چه هغوی بچ کړی وے، زمونږ خو لات، مناة، عزی شته هغه به

مو خلاصوی۔ نو دلته الله تعالیٰ د دوی د معبودانو کمزوری بیانوی۔ ﴿ وَمَا زَادُوهُمْ غَيْرَ تَتْبِيبٍ ﴾ (هود:۱۰۱)

۲- دارنگه د پخوانو تولو قومونو لویه بیماری شرك وو چه دا د نورو گناهونو سره یو ځای شوه او د دوی د هلاکت سبب جوړ شو نو پدے وجه پدے آیت کښې الله تعالیٰ د شرك بدی او د مشرکانو د معبودانو کمزورتیا په یو مثال سره بیانوی۔

اِتَّخَذَتْ بَيْتًا : د اتخاذ لفظ دلالت کوی پدے خبره چه دا بیت نهٔ دے لیکن دے پرے د بیت خیال کوی، ددے وجه نه ئے نسج العنکبوت (یعنی جوړول د کوتے د غنے) نهٔ دے وئیلے ځکه چه جوړول خو حقیقت کښې شته لیکن هغه څه کوټه نهٔ ده۔

ددے آیت یو تفسیر دے او بله پکښې فائده ده۔ په تفسیر کښې ئے دوه قوله دی۔

دا مثال د مشرکانو او د هغوی د معبودانو دے او دویم صرف د هغوی د معبودانو دے۔

یو راجح دے او بل مرجوح دے۔

(۱) - اول د مشرکانو سره ولګوه یعنی مشرك د عنکبوت په شان دے، د غنے طریقه دا ده چه جاله جوړوی دے دپاره چه دا به دهٔ له فائده ورکړی، حال دا چه هغه جاله دهٔ له فائده نشی ورکولے نو مشرك هم د یو کمزوری مخلوق (بابا او بت) پورے انښتے وی چه دا به دهٔ له فائده ورکړی او د الله د عذابونو نه به ئے خلاص کړی لیکن هیڅکله ئے نشی خلاصولے۔ نو مشرك عنکبوت دے او کوټه ئے د معبود مثال دے۔ نو عنکبوت له دغه کوټه فائده نهٔ ورکوی بلکه خپله پکښې هلاکیږی نو دغسے مشرك له دغه بابا او قبر او بت فائده نهٔ ورکوی بلکه د هغے په وجه به هلاك شی۔

**دویم تعبیر :** چه کوم خلق د الله نه سوئ بل څوك د خپل ځان دپاره یار اومدد گار جوړوی او د هغویٔ مخے ته سر ښکته کوی، د دویٔ مثال د غنے (جولاگی) او د هغے د جالے دے۔ غنه خپله جاله گیر چاپیره جوړه کړی او دا گمان کوی چه اوس دا د گرمیٔ او یخنیٔ او د هر یو دشمن نه محفوظه ده، لیکن دا جاله څومره کمزورے وی، دا هرچاته معلومه ده۔ همدا حال د مشرکانو او د هغویٔ د اولیاؤ دے، دویٔ دا گمان کوی چه دا بُتان به د دویٔ په کار راشی، حالانکه د دویٔ د عاجزیٔ اوبے وسیٔ حال هر چاته معلوم دے، چه که یو مَچ هم په دے بتانو کینی نو د دویٔ دا وس نهٔ کیږی چه هغه اُوشړی۔ او دا خبره دومره واضحه ده چه د ادنیٰ عقل والا انسان هم دا پیژنی، لیکن شرك د دویٔ په عقلونو پرده اچولے ده، دے وجے نه د دویٔ په پوهه کښې هیڅ شے نهٔ راځی۔

**دریم تعبیر** : زمونږ شیخ محترم عبد السلام رستمی رحمه الله ذکر کړیدی چه عنکبوت جاله جوړوی په داسې ځای او صحراء کښې چه صفائی ئې نۀ کیږی، ښاړ وی، او دی په دې جاله باندې خیال کوی چه دا زما کوټه ده، ما به د باد وباران، د ګرمۍ یخنۍ او د نمر د تپ نه بچ کوی لیکن که په دنیا کښې تالاش وکړې شی نو ددې نه به کمزورې ځای پیدا نکړې ځکه دا جاله هیڅ فائده نۀ ورکوی سوئ ددې نه چه مچ پکښې ښکار کیدې شی او کله پکښې عنکبوت خپله ونخلی او مړ شی۔

نو دارنګه مشرکانو په خپلو باطلو معبودانو باندې عقیده لرلې وائی چه مونږ چه دوی ته سجدې کوو او د دوی په نوم نذر او منښتې کوو نو دوی به مونږ د هر مصیبت او تکلیف نه بچ کوی، او زمونږ حاجتونه به پوره کوی (او دا عقیده همیشه په ښاړو جاهلانو خلکو کښې راځی چه هغوی د عقیدې د صفایۍ هیڅ خیال نۀ ساتی) لیکن که دینونو ډیر تفتیش وکړې نو د شرکی دین نه به درته کمزورې بل دین ملاؤ نشی ځکه چه دغه معبودان دې عابدانو لره هیڅ حاجت نشی پوره کولې او نۀ ترې هیڅ تکلیف او مصیبت لرې کولې شی، بلکه ددې عقیدې په وجه سره به په عذاب کښې اخته شی، هان ،د شرك پدې عقیدې سره د مریدانو نه د دنیا مال او عزت حاصلوی لیکن د دغه مالونو او د دنیا د عزت مثال خو د مچ نه سپك دې، معمولی فائده حاصله کړی لیکن غټې فائدې ترې فوت شی۔ اهـ۔ (احسن الکلام)۔

۲ - یا دا مثال د معبودانو دې۔ او د (اَلَّذِيْنَ) نه مراد معبودان دی۔ او (اِتَّخَذُوْا) کښې ضمیر مشرکانو ته راجع دې۔ یعنی لکه څنګه چه عنکبوت ځانله یوه کوټه جوړوی نو دغه شان ستاسو معبودانو هم ځانله یوه کوټه نیولې ده چه هغه قبر او بت خانه ده، او دا کوټه په ټولو کوټو کښې کمزورې ده نو دغسې ستاسو د معبود کوټه (قبر) دومره کمزورې ده چه که دا مشرك په دغه قبر پریوزی نو هغه د خپل ځان حفاظت هم نشی کولې۔ که څوك ترې کفن پټوی نو هم نۀ ئې شی منع کولې، او که دغه بت خانې نه دا بت څوك راوتښتوی او کوټه ورله ماته کړی نو هم بت ورته څه نشی وئیلې۔ اوله طریقه ډیره غوره ده۔

وَاِنَّ اَوْهَنَ الْبُيُوْتِ: د غنې کوټه د ټولو کوټو نه زیاته کمزورې ده، په پوکی سره هم ختمیږی، که د باران څاڅکی ورځله نو هم ختمیږی، که یو ډکې وروړی نو هم ختمیږی، بلکه ډیر کرته عنکبوت په خپله کوټه کښې خپله ونښلی او مړ شی۔

لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ: اَیْ اَنَّ الآلِهَةَ ضَعِيْفَةٌ لَمَّا اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَوْلِيَاءَ. كه دوی پوهيدے چه د دوی آلهه ضعيف دی نو دوی به د الله نه سوی دوی لره دوستان نهٔ نيولے.

فائده د آيت دا ده: كُلُّ مَنِ اتَّخَذَ وَلِيًّا دُوْنَ اللّٰهِ يَتَعَزَّزُ بِهٖ حَصَلَ لَهٗ ضِدُّ مَقْصُوْدِهٖ. هر هغه څوك چه د الله نه سوی بل دوست نيسی چه په هغه باندے (د الله په خلاف) خان عزتمند كوی نو دهٔ ته به د خپل مقصد ضد حاصليږی، ددهٔ مقصد عزت حاصلول دی، نو دے به په هغه باندے وهلے كيږی او په هغه به ئے بيعزتی كيږی. مشركانو دا خانله ددے دپاره نيولی وی چه مونږ ته به اولاد، ښځے او رزقونه راكوی ليكن مينځ كښ د دوی مالونه په هغوی ولگيږی، وخت ئے په هغوی ضائع شی او هغوی ورله هيڅ ورنكړی بلكه لا پرے هلاك شی، په گاړی سور وی بابا له روان وی په لاره كښ مردار شی. نو پدے كښ دا دعوت دے چه د داسے قوی ذات پورے ونښله چه تا كښ قوت راشی. او ضعيف پورے مهٔ انښله، تهٔ به ضعيف شے.

اِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ: سوال پيدا شو چه دا خو د معبودانو ډير سپكاوے وكړے شو چه د هغوی مثال مو د غنے د جالے سره وركړو، پدے معبودانو كښ خو اولياء او بزرگان هم شامل دی، نو هغه تړے مستثنیٰ كول پكار دی؟ نو الله فرمائی چه الله ته ددے معبودانو د كمزورتيا حال معلوم دے نو ځكه ئے دغه مثال وركړو.

اِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ: وَلِذٰلِكَ شَبَّهَهُمْ بِالْعَنْكَبُوْتِ. الله ته معلوم دی ځكه ئے د دوی تشبيه د غنے سره وركړه.

مَا يَدْعُوْنَ: ١- ما موصوله ده. مراد تړے معبودان دی.

٢- يا ما نافيه ده. نو دے كښ به ډيره مبالغه وی. معنیٰ دا ده: يقيناً الله ته معلومه ده چه مشركان نهٔ رابلی سوی د الله نه هيڅ شے. يعنی د دوی دا معبودان هيڅ شے نهٔ دے، د عنكبوت نه هم خكته دی، خو هغه مثال د پوهے دپاره ذكر شويدے.

وَهُوَ الْعَزِيْزُ: او هغه غالب او حكيم دے، ددے مشركانو اعمالو بدله به دوئ ته ضرور وركوی.

| وَتِلْكَ الْاَمْثَالُ نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ ۚ وَمَا يَعْقِلُهَآ |
| --- |
| او دغه مثالونه بيانوو مونږ دپاره د خلقو او نهٔ پوهيږی پدے باندے (سوچ نكوی پدے |

| اِلَّا الْعٰلِمُوْنَ ﴿۴۳﴾ خَلَقَ اللّٰهُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ ؕ |
|---|
| کښ) مګر عالمان۔ پیدا کړیدی الله تعالیٰ آسمانونه او زمکه په حق سره |
| اِنَّ فِیْ ذٰلِكَ لَاٰیَةً لِّلْمُؤْمِنِیْنَ ﴿۴۴﴾ |
| یقیناً پدے کښ خامخا نخه ده دپاره د ایمان والو۔ |

**تفسیر**: پدے آیت کښ مخکښ مثال ته ترغیب ورکوی، ځکه چه په کوم مثال کښ د شرك رد وشی نو دا د الله تعالیٰ ډیر خوښ وی، پدے وجه هغے ته ترغیب ورکوی لکه سورة الحج کښ ئے هم وئیلی وو ﴿یٰۤاَیُّهَا النَّاسُ ضُرِبَ مَثَلٌ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ﴾ اے خلکو! ډیر ښه مثال بیانیږی غوږ ورته کیږدئ۔

او دا ترغیب پدے وجه هم ورکوی چه مشرکانو ووئیل چه الله تعالیٰ داسے د سپکو څیزونو مثالونه نهٔ ذکر کوی نو الله تعالیٰ د هغے فائدو ته اشاره وکړه۔

الامثال نه مراد هغه مثالونه دی چه په قرآن کریم کښ ذکر شویدی۔

وَمَا یَعْقِلُهَآ: اَیْ مَا یَفْهَمُ صِحَّتَهَا وَحُسْنَهَا وَفَائِدَتَهَا اِلَّا الْعَالِمُوْنَ بِاللّٰهِ وَبِاَسْمَائِهٖ وَصِفَاتِهٖ] (فتح البیان) نهٔ پوهیږی ددے په صحت او ښائست او فائده باندے مګر هغه خلك چه الله او د هغه اسماء او صفات پیژنی۔ یعنی علماء خلك په مثال کښ سوچ او فکر کوی او ددے نه فائدے او عبرت راوباسی او خپله عقیده پرے مضبوطوی۔

عمرو بن مرة به چه کله د قرآن کریم په یو مثال باندے پوهه نشو نو ژړل به ئے او دا به ئے وئیل چه الله تعالیٰ عالِمانو ته دا مثالونه وربښائی او زهٔ په علماؤ کښ داخل نهٔ یم۔

عالِم هغه چا ته وائی: مَنْ عَقَلَ عَنِ اللّٰهِ اَمْرَهٗ فَعَمِلَ بِطَاعَتِهٖ وَاجْتَنَبَ مَسَاخِطَهٗ۔ چه د الله تعالیٰ حکمونه یاد کړی او بیا د هغه طاعت وکړی او د هغه د ځایونو د غصے نه ځان وساتی۔ (یعنی ګناهونه او حرام کارونه)۔

خَلَقَ اللّٰهُ: ۱- سوال پیدا شو چه مونږ چه د الله بندګی کوو پدے څه دلیل دے؟ نو جواب کوی چه الله کائنات په حق باندے پیدا کړی۔ د حق نه مراد حکمة دے او د حکمة نه مراد د الله تعالیٰ یواځے بندګی کول دی۔ یعنی دا کائنات دلیل دے د الله په عبادت۔ نو چا چه شرك وکړو نو هغه د آسمان او د زمکے د پیدائش مقصد او حکمة ونهٔ پیژندو۔

۲- دویم: پدے کښ دا خبره ده چه څوك په مثالونو نهٔ پوهیږی او ددے نه عبرت نشی

اخستے نو بيا دے د آسمان او د زمکے په دليلونو کښې فکر وکړي او ايمان دے راوړي۔

۳- دا رنګه مخکښې د شرك رد وشو نو اُوس دا خبره بيانوي چه کوم الله چه زمکه او آسمانونه د يو خاص مقصد لپاره پيدا کړي، يقيناً هغه قادر مطلق د عبادت لائق دے، ليکن دا حقيقت صرف ايمان والا خلق را لاندے کوي۔ د کافرانو په سترګو باندے پټئ لګيدلے دي، او د دوئ په زړونو مُهر لګيدلے، هغوئ ته د زمکے او آسمانونو په پيدائش او د هغے د خالق په باره کښې د غور او فکر کولو توفيق چرته ملاويږي۔ او دا بيانوي چه که کافران ددے دليلونو باوجود ايمان نۀ راوړي نو اے ايمان والو! تاسو يقين وکړئ او ددے کائناتو نه فائدے واخلئ۔

| اُتْلُ مَاۤ اُوْحِیَ اِلَیْكَ مِنَ الْكِتٰبِ وَاَقِمِ الصَّلٰوةَ اِنَّ الصَّلٰوةَ |
|---|
| اُولوله هغه چه وحي کيدے شي تا ته د کتاب نه او پابندي کوه د مانځه يقيناً مونځ |
| تَنْهٰی عَنِ الْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ وَلَذِكْرُ اللّٰهِ اَكْبَرُ وَ اللّٰهُ یَعْلَمُ مَا تَصْنَعُوْنَ ﴿۴۵﴾ |
| منع کوي ددے حيايئ نه او د ناروا کارونه نه او الله پوهيږي په هغه څه چه تاسو ئے کوئ۔ |
| وَلَا تُجَادِلُوْۤا اَهْلَ الْكِتٰبِ اِلَّا بِالَّتِیْ هِیَ اَحْسَنُ اِلَّا |
| او جګړه (بحث) مۀ کوئ د اهل کتابو سره مګر په هغه طريقه چه ښائسته ده، مګر |
| الَّذِیْنَ ظَلَمُوْا مِنْهُمْ وَقُوْلُوْۤا اٰمَنَّا |
| هغه کسان چه ظلم ئے کړيدے د دوي نه (په ضد سره) او وايئ چه ايمان راوړيدے مونږ |
| بِالَّذِیْۤ اُنْزِلَ اِلَیْنَا وَاُنْزِلَ اِلَیْكُمْ |
| په هغه څه چه نازل کړے شويدے مونږ ته او نازل کړے شويدے تاسو ته |
| وَاِلٰهُنَا وَاِلٰهُكُمْ وَاحِدٌ وَّنَحْنُ لَهٗ مُسْلِمُوْنَ ﴿۴۶﴾ |
| او لائق د بندګئ زمونږ او لائق د بندګئ ستاسو يو دے او مونږ هغه ته تابعدار يو۔ |

**تفسير** : ددے آيتونو دوه مناسبتونه دي (۱) يو د نزدے آيت (بِالْحَقِّ) سره متعلق دے۔ يعني الله آسمانونه او زمکه په حق سره پيدا کړل، حق څه شے دے ؟ وَهُوَ عِبَادَةُ اللّٰهِ وَحْدَهٗ۔ هغه د الله يواځے بندګي ده، چه په هغے کښې خصوصي قرآن لوستل، مونځونه

قائمول، د الله تعالیٰ ذکر کول۔ کائنات د همدے مقصد دپاره پیدا دی۔
(۲) مضمون سره مناسبت دا دے چه اُوس هغه نیك کارونه ذکر کوی چه پدے سره تثبت حاصلیږی په وخت د ابتلاء اتو کښې، څوك چه دا عملونه کوی، نو الله ئے مضبوطوی او دشمن ورله هلاکوی او د آخرت اجر ورکوی۔ درے فائدے۔
او پدے کښې اشاره ده چه موحد یواځے دے ته نهٔ وائی چه د شرك نه ځان ساتی او د غیر الله عبادت نهٔ کوی بلکه صحیح موحد هغه دے چه په هغه کښې دا عملونه هم وی۔
اُتۡلُ مَاۤ اُوۡحِیَ : د وحی د لوستلو درے صورتونه دی : (۱) اُتۡلُ تَعۡلِیۡمًا (۲) وَتَذۡکِیۡرًا (۳) وَتَعَبُّدًا وَتَقَرُّبًا ۔ یعنی دا قرآن ولوله تعلیم ئے خلکو ته ورکړه، پدے سره خلکو ته نصیحتونه بیان کړه، او د الله بندګی پرے وکړه او هغه ته پرے ځان نزدے کړه۔
(ایسر التفاسیر لابی بکر الجزائریؒ)
دے نه معلومه شوه چه قرآن کریم د وعظ او نصیحت کتاب دے، ددے نه تعلیم او تذکیر پکار دے او پدے باندے بل کتاب اُوچتول نهٔ دی پکار۔
او پدے کښې په قرآن کریم کښې سوچ او فکر کول او ددے په معانیو او مضامینو کښې غور او فکر هم داخل دے۔ او اشاره ده چه په رسول الله ﷺ باندے هم د قرآن کریم تلاوت کول لازم وو۔ د الله تعالیٰ د تقرُّب ډیره ښهٔ ذریعه ده۔
وَاَقِمِ الصَّلٰوةَ : شوکانیؒ لیکی چه دلته د مانځه نه مراد پنځه واړه فرض مونځونه دی۔ انتهیٰ۔
اِنَّ الصَّلٰوةَ تَنۡهٰی عَنِ الۡفَحۡشَآءِ وَالۡمُنۡکَرِ : سوال دا دے چه ډیر کرته یو انسان به مونځ کوی او بیا به هم د بی حیائی او منکراتو نه نهٔ منع کیږی؟ او دلته وائی چه مونځ د بی حیائی او منکراتو نه منع کول کوی؟۔ (۱) چا دا جواب کړے چه [اِنَّ الصَّلَاةَ تَنۡهٰی نِیۡ دَاخِلِهَا] چه څوك په مانځه کښې ولاړ وی نو په دغه وخت کښې به د هغه نه بی حیائی او منکرات نهٔ کیږی۔ لیکن دا جواب ضعیف دے، وجه دا ده چه په تلاوت او دغسے ذکر اذکار او نورو عباداتو کښې هم د انسان نه بی حیائی او منکرات نهٔ کیږی نو دا خو د مانځه ډیر کم فضیلت شو۔ (۲) جواب : مونځ په دوه قسمه دے، یو شرعی مونځ دے، او بل عادتی۔ شرعی مونځ دا دے چه د الله تعالیٰ په محبت وکړے شی او د سنت مطابق وی او خشوع پکښې وی۔ او دے ته اِقَامَةُ الصَّلَاة (د مونځ قائمول) وائی یعنی داسے مونځ وی چه د هغې نه مقصد د الله رضا وی، او پوره د زړه په حضور سره وی او هر یو

مونځ ددے په مقرره وخت کښې د مسلمانانو سره شریك په مسجد کښې اداء کړے شی، او د مانځه د ټولو ارکانو لحاظ ساتلو سره په پوره خشوع او خضوع سره اداء کړے شی، نو پدے مانځه سره بنده د بې حیائۍ او منکراتو نه منع کیږی۔

دویم عادتی مونځ دے چه د عادت په بناء ئے کوی او د هیڅ ارکانو او شرائطو او خشوع او خضوع لحاظ پکښې نهٔ وی۔ د الله تعالیٰ وړنا حقه ده چه مونځ یقینًا د بدیو نه منع کول کوی۔ اوس که یو کس مونځ کوی، او په بدیو کښې هم ډوب اُوسیږی نو مونږ له یقین لرل پکار دی چه ددهٔ مونځ، هغه مونځ نهٔ دے چه هغے ته په دے آیت کریمه کښې د بے حیایو او منکراتو نه منع کونکے مونځ وئیلے شوے۔

دارنګه کومه زنانه چه د مانځه پابنده وی نو هغه به داسے بې حیاء نهٔ وی کومه چه بازارونو کښې ګرځی، کومے زنانه چه بې حیاء ګرځی دا دلیل وی چه دوی به مونځ نهٔ کوی۔ او چه ګوزارے والا مونځ کوی نو بې حیائی به پکښې ډیره نهٔ وی۔ او بیا چه تقوىٰ داره شی او خشوع او ژړاګانے پکښې کوی نو هغه به پردو سړو ته مخ هم ښکاره نهٔ کړی۔ نو بې حیائی هغه خلك کوی چه د الله تعالیٰ تعلق ئے نهٔ وی۔ او په مانځه سره د الله تعالیٰ تعلق جوړیږی۔ د هر عبادت خپله فائده وی، دا د مانځه فائده شوه۔

وَلَذِكْرُ اللّٰهِ اَكْبَرُ: اَیْ اَكْبَرُ مِنْ سَائِرِ الْاَعْمَالِ۔ یعنی د الله تعالیٰ یادول د ټولو عملونو نه لوی عمل دے۔ همدا ددے آیت ظاهری معنىٰ ده او پدے باندے دلیل حدیث د رسول الله ﷺ دے چه هغه فرمائی: [اَلَا اُنَبِّئُكُمْ بِخَيْرِ اَعْمَالِكُمْ وَاَزْكَاهَا عِنْدَ مَلِيْكِكُمْ؟ وَاَرْفَعِهَا فِيْ دَرَجَاتِكُمْ وَخَيْرٌ لَّكُمْ مِنْ اِنْفَاقِ الذَّهَبِ وَالْوَرِقِ وَخَيْرٌ لَّكُمْ مِنْ اَنْ تَلْقَوْا عَدُوَّكُمْ فَتَضْرِبُوْا اَعْنَاقَهُمْ وَيَضْرِبُوْا اَعْنَاقَكُمْ؟ قَالُوْا بَلٰى يَارَسُوْلَ اللّٰهِ! قَالَ ذِكْرُ اللّٰهِ تَعَالٰى] (الترمذی فی الدعاء باب ٦، وابن ماجه فی الادب باب ٥٣) واسناده صحیح) آیا زهٔ تاسو ته داسے عمل نهٔ ښایم چه د ټولو عملونه بهتر او د الله په نیز ډیر پاك، او درجے اُوچتولو والا، او د انفاق او د شهادت او د جهاد نه غوره وی؟ ولے نهٔ یا رسول الله! وے فرمایل: هغه د الله ذکر دے۔

لیکن بعض مفسرینو ته د الله تعالیٰ ذکر معمولی ښکاره کیږی نو پدے وجه دلته ئے تاویلات کړیدی، حال دا چه د تعالیٰ الله ذکر مِحْوَر (مرکز) د ټولو عباداتو دے۔ جهاد د اعلاء کلمة الله دپاره کیږی، حج او عمره مونځ او ټول اعمال د الله د ذکر دپاره کیږی۔ بیا دلته د ذکر ټول انواع مراد دی، تسبیحات، مونځ، په تعلیم او تعلم سره، عمل په دین د الله تعالیٰ، دا ټول ذکر دے۔

تاویلات دا دی: (۱) وَلَذِكْرُ اللّٰهِ فِي الصَّلَاةِ اَكْبَرُ مِنْ غَيْرِ الصَّلَاةِ۔ یعنی په مانځه کښې د الله تعالیٰ ذکر ډیر لوی عمل دے د بهر د مانځه نه۔

(۲) وَلَذِكْرُ اللّٰهِ اِيَّاكُمْ اَكْبَرُ مِنْ ذِكْرِكُمْ لَهٗ ۔ الله چه تاسو یاد کړی دا ډیر لوی دے ددے نه چه تاسو الله یاد کړئ۔ تهٔ الله لره یادوے او الله تعالیٰ تا ډیر یادوی۔ یعنی ته په مانځه کښې الله یادوے نو الله به تا یادوی او د الله یادول ستا د یادولو نه ډیر غوره دی۔

(۳) وَلَذِكْرُ اللّٰهِ اِيَّاكُمْ بِالثَّوَابِ اَكْبَرُ مِنْ عِبَادَتِكُمْ لَهٗ]۔ د الله تعالیٰ یادول تاسو لره په ثوابونو سره ډیر لوی دی د عبادت ستاسو نه هغهٔ لره۔ ځکه چه ستاسو عبادتونه لږ دی او د الله ورکړه زیاته ده۔ دا تاویل ابن جریرؒ غوره کړیدے۔

(٤) ابن عباس ﷺ ته منسوب ده چه معنیٰ دا ده: [وَلَذِكْرُ اللّٰهِ لِعِبَادِهٖ اِذَا ذَكَرُوْهُ اَكْبَرُ مِنْ ذِكْرِهِمْ اِيَّاهُ]۔ الله تعالیٰ چه بندګان یادوی کله چه بندګان د هغه ذکر کوی دا ډیر لوی دی د یادولو د دوی نه الله لره۔ (فتح البیان) لیکن دے تاویلاتو ته ضرورت نشته۔ اول قول غوره دے۔ د ذکرِ د سلو نه زیاتے د دنیا او د آخرت فائدے دی۔

وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تَصْنَعُوْنَ: یعنی الله تعالیٰ د بندګانو د ټولو اعمالو نه بنهٔ خبر دے، هیڅ خبره او هیڅ یو شے د هغهٔ نه پټ نهٔ دے، دے وجے نه څوك چه څنګه عمل کوی، هم هغسے بدله به ورته ملاویږی۔

وَلَا تُجَادِلُوْا: مناسبت

دا آیت متعلق دے د ﴿ اِنِّيْ مُهَاجِرٌ اِلٰى رَبِّيْ ﴾ سره، الله تعالیٰ پدے سورت کښې صحابه کرامو ﷺ ته د هجرت دعوت ورکړے وو، نو اُوس ورته د هغه ځای تعلیم ورکوی چه کله تاسو هجرت وکړو نو تاسو سره به نصاریٰ مخامخ کیږی، هغوی به درسره بحثونه کوی نو تاسو به د هغوی سره بحثونه نهٔ کوئ مګر اخلاقی انداز کښې او کوم ظالمان چه په تاس بانديے ځایه جرح کوی او سختی کوی نو د هغوی سره سختی هم کولے شئ۔ (قاسمیؒ)

دارنګه د یو داعی مؤمن واسطه د مشرکانو سره هم راځی، او د اهل کتابو سره هم۔ نو مخکښې د مشرکانو د اصلاح بیان وو اُوس د اهل کتابو د اصلاح بیان دے، او هغوی ته په ښائسته طریقے سره د دعوت ادب ذکر کیږی۔ (فتح البیان)

یعنی که په آینده دعوتی زندګئ کښې ستاسو واسطه د اهلِ کتابو سره راشی، نو

هغوی سره د خبرو کولو په وخت نرمه او د خبرو خوږه طریقه اختیارول پکار دي، دے دپاره چه د اسلام په تعلیماتو کښې دوی ته د غور او فکر موقع ملاؤ شي، او که تعالیٰ الله توفیق ورکړي نو ایمان به راوړي.
تُجَادِلُوا : د مجادلے نه مراد د اهل کتابو د اعتراضونو جوابونه ورکول دي. دارنګه هغوی لره اسلام ته په حُجَجُو او دلائلو سره په نرمۍ دعوت ورکول دي.
او پدے کښې بیا دا صورت هم داخلیږي : اَلْكَفُّ اِذَا بَذَلُوا الْجِزْيَةَ - کله چه هغوی جزیه ورکوي نو د هغوی د ضرر ورکولو نه ځان بچ ساته.
اِلَّا الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مِنْهُمْ: د ظلم نه مراد ضد او عناد دے، یعني ضدیانو ته د هغوی د سختۍ جواب ورکولے شئ چه هغوی د مسلمانانو د ادب خیال نهٔ ساتي نو که د هغوی سره سختي وکړی، ګناه نشته.
دارنګه کوم چه په هغوی کښې مُحاربین (جنګ کونکي) دي او د جنګ ته ضرورت راغلو نو د هغوی سره قتال هم کولے شئ. (ابن کثیرؒ)
مفسر سمینؒ وائي چه دا استثناء متصل ده او ددے دوه معاني دي، یوه دا چه ظالمانو سره بحثونه مهٔ کوئ بلکه هغوی سره په توره جنګ وکړئ. دویمه دا چه [جَادِلُوْهُمْ بِغَيْرِ الَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ] دوی سره بحث وکړئ په غیر د غوره طریقه یعني سختي ورسره وکړئ لکه چه تاسو سره سختي کوي. (فتح البیان)
وَقُوْلُوْآ : پدے کښې د دعوت طریقه ښائي چه اهل کتابو ته داسے ووایئ چه مونږ کښې څه نقصان دے، مونږ قرآن هم منو او تورات او انجیل هم منو، او زمونږ د ټولو معبود یو دے (ځکه د اهل کتابو په دین کښې هم شرك حرام وو) یعني په توحید کښې شریك یو. او مونږ د الله پوره تابعدار یو، او تاسو کښې داسے تابعداري نشته. نو جګړه خو د هغه چا سره پکار ده چه سرکشه وي او مونږ کښې هیڅ نقصان نشته.
نو دارنګه تاسو له هم پکار دي چه زمونږ دا کتاب (قرآن) ومنئ او د الله تعالیٰ د حکمونو تابعدار جوړ شئ.
قتادةؒ وغیره وئیلي دي چه دا آیت د قتال والا آیت په ذریعه منسوخ شوے، لیکن غوره داده چه ددے حکم باقي دے او قیامته پورے هر هغه شخص دپاره باقي دے چه د اسلامي دین په حقله معلومات حاصلول غواړي. البته کوم یهود او نصاریٰ چه د اسلام او مسلمانانو خلاف معاندانه رویّه اختیاروي، او د جزیه ورکولو نه انکار کوي،

هغویٔ سره د طاقت په ژبه خبرے کول پکار دی، او هغویٔ سره قتال کول پکار دی، ترد ے چه هغویٔ خپله معاندانه رویّه پریدی او جزیه ورکولو ته تیار شی۔

د وَقُوۡلُوۡۤا اٰمَنَّا: دویم مطلب بعض علماؤ دا بیان کړیدے چه که چرے اهل کتاب داسے خبرونه بیان کړی چه د هغے په باره کښ معلومه نهٔ وی چه دا رشتینی دی او که دروغژن، نو د داسے خبرونو نهٔ تصدیق کویٔ او نهٔ تکذیب، بلکه هغویٔ ته مجمل شان جواب ورکړیٔ چه مونږ په هغه کتاب ایمان لرو کوم چه په مونږ نازل شوے، او په هغه کتابونو هم چه په تاسو نازل شوی، او هغه چه د قرآن د نازلیدو په وخت منسوخ شوی۔ او زمونږ او ستاسو معبود صرف یو دے، او مونږ د هغهٔ اطاعت کوو۔

امام بخاریؒ د ابو هریره ﷺ نه روایت کړے چه اهلِ کتابو به په عربیٔ ژبه لیکلے تورات لوستلو او مسلمانانو ته به ئے ددے تشریح په عربیٔ کښ کوله، نو رسول الله ﷺ وفرمایل چه د دویٔ نهٔ تصدیق کویٔ او نهٔ تکذیب، او دا وایئ چه مونږ په هغه کتاب ایمان راوړے، کوم چه په مونږ نازل شوے او په هغه هم چه په تاسو نازل شوے، او زمونږ او ستاسو معبود یو دے، او مونږ د هغهٔ بندگی کوو۔ (بخاری فی الشهادات باب ۲۹، وتفسیر سورة ۲، باب ۱۱ والاعتصام باب ۲۵، والتوحید باب ۵۱، وابوداود فی العلم باب۲)۔

| وَكَذٰلِكَ اَنۡزَلۡنَاۤ اِلَيۡكَ الۡكِتٰبَ ؕ فَالَّذِيۡنَ اٰتَيۡنٰهُمُ |
|---|
| او دغسے نازل کړیدے مونږ تا ته کتاب، نو هغه کسان چه ورکړیدے مونږ هغوی ته |
| الۡكِتٰبَ يُؤۡمِنُوۡنَ بِهٖ ۚ وَمِنۡ هٰٓؤُلَاۤءِ مَنۡ يُّؤۡمِنُ بِهٖ ؕ |
| کتاب ایمان راوړی پدے باندے او ددے کسانو نه هغه څوك دی چه ایمان لری پدے قرآن |
| وَمَا يَجۡحَدُ بِاٰيٰتِنَاۤ اِلَّا الۡكٰفِرُوۡنَ ﴿۴۷﴾ وَمَا كُنۡتَ تَتۡلُوۡا مِنۡ قَبۡلِهٖ |
| او انکار نکوی د آیتونو زمونږ نه مګر کافران۔ او نهٔ وے ته چه تا لوستلو مخکښ ددے نه |
| مِنۡ كِتٰبٍ وَّلَا تَخُطُّهٗ بِيَمِيۡنِكَ اِذًا |
| څه کتاب او نهٔ دے لیکلے دے کتاب په ښی لاس خپل سره، په دغه وخت کښ به |
| لَّارۡتَابَ الۡمُبۡطِلُوۡنَ ﴿۴۸﴾ بَلۡ هُوَ اٰيٰتٌۢ بَيِّنٰتٌ فِىۡ صُدُوۡرِ |
| خامخا شك کړے وے باطل پرستو۔ بلکه دا (قرآن) آیتونه دی ښکاره په سینو |

الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ وَمَا يَجْحَدُ بِاٰيٰتِنَآ اِلَّا الظّٰلِمُوْنَ ﴿٤٩﴾

د هغه کسانو کښې چه ورکړې شويدې ورته علم او انکار نۀ کوی د آيتونو زمونږ نه مګر ظالمان۔

**تفسير** : اُوس قرآن ته ترغيب ورکوی او ددې ځای نه روستو د قرآن کريم او د رسول الله ﷺ د رشتينوالی ځلور طريقې ذکر کوی۔ پدې آيت کښې اوله طريقه ده يعنی دا قرآن پخوانو اهل کتابو علماؤ منلې دې، او دارنګه موجوده عوامو هم، لکه ابوبکر او عمر او عثمان او علی رضی الله عنهم۔ نو معلومه شوه چه رشتينی کتاب دې۔ نو اُوس چه څوك ددې رشتينی کتاب نه انکار کوی، هغه به غټ کافر وی او د الله په نيز به د هغۀ هيڅ عذر او بهانه نۀ وی۔

وَكَذٰلِكَ: دا کاف د بيان د کمال دپاره دې۔ يعنی دغسې کامل کتاب مې تا ته راوليږلو۔

اِلَّا الْكٰفِرُوْنَ: اَيِ الْمُصَمِّمُوْنَ عَلٰى كُفْرِهِمُ الْمُتَوَغِّلُوْنَ فِيْهِ۔ هغه خلك چه په کفر باندې کلك ولاړ دی او په کفر کښې دننه ننوتی وی۔ نو هغوی آيتونو ته التفات او توجه نۀ کوی او نۀ ددې په حقيقت کښې فکر کوی۔ (فتح البيان) [فَالتَّصْمِيْمُ عَلَى الْكُفْرِ يَمْنَعُهُمْ مِنَ الْاِعْتِنَاءِ بِهَا وَالْاِلْتِفَاتِ اِلَيْهَا] قانون دا دې چه څوك په کفر تصميم (کلکوالې) لری نو هغوی آيتونو ته هيڅ اهميت نۀ ورکوی او نۀ ورته ګوری۔ نو ځکه پرې ايمان نۀ راوړی۔ مطلب دا شو چه نيکان اهل کتاب ئې منی او نيکان عرب ئې منی او تۀ ئې نۀ منې، معلوميږی چه تا د کفر کلکه اراده کړې ده۔

مفسرين ليکی : الله تعالیٰ چه دلته څنګه د غيبو خبر ورکړې همدغسې وشوه، څۀ يهوديان او ډير نصاریٰ، او اکثر او زياتره عربی قبائل د اسلام په دائره کښې داخل شول، او د اسلام رنړا د هغوئ زړونه روښانه کړل۔

(۲) وَمَا يَجْحَدُ بِاٰيٰتِنَا: ددې بل مطلب دا دې چه څوك د مخکښې نه د توحيد نه منکر دی نو ددې وجه نه د قرآ نه انکار کوی۔ يا دا چه د قرآن په انکار سره دوی کافران جوړ شول۔ (احسن الکلام)

وَمَا كُنْتَ تَتْلُوْا: دا بله طريقه د رشتينوالی د رسول ده، چه دا کلام د الله تعالیٰ دې، دليل پرې دا دې چه اې زما نبی ! د قرآن د نازليدو نه مخکښې تا له ليکل او لوستل نۀ درتلل، تۀ نالوستې شخص وې، که تا لوستل او ليکل پيژندلې نو بيا به ستا د رسالت

منکرینو دا بهانه کولے چه محمد (ﷺ) خو لیکل او لوستل کولے شی نو دۀ ته یو پخوانئ کتاب ملاؤ شویدے او د هغے نه د تیر شوو قومونو واقعات لیکی او خلکو ته ئے آوروی۔

نحاسؒ وائی چه دا خبره د نبی کریم ﷺ د رشتینے نبی کیدو دلیل دے، ځکه چه د هغویٔ لیك لوست زده نۀ وو، او د اهلِ کتابو سره د هغویٔ ملاویدل ثابت نۀ دی، او په مکه کښې یهود او نصاریٰ نۀ موندل کیدل، ددے باوجود داسے عظیم او بے مثله کتاب خلقو ته پیش کول د هغۀ د رشتین والی لوی دلیل وو، او ددے خبرے دلیل وو چه دا قرآن الهی کلام دے،

بِيَمِيۡنِكَ : دا په اعتبار د اکثر عادت سره دے، او اشاره ده چه لیکل په ښی لاس سره پکار دی۔

اِذًا لَّارۡتَابَ: یعنی دغه وخت به د دوی د شك دپاره څه سبب او منشأ وے چه یو کاتب او شاعر سړے دے که ددۀ نه څه خطبه راووتله نو دا خو دومره کمال نۀ دے، هرکله چه دوی ته معلومه ده چه تۀ یو امی شخص ئے او بیا هم یو جامع کتاب پیش کوے، معلومیږی چه دے پسے شا ته یو طاقت شته چه هغه الله دے، هغۀ دا کتاب درکړیدے۔

لیکن اُوس خو د شك هیڅ وجه نشته نو بیا ولے شك کوی؟ معلومیږی چه دا ضدیان دی۔

الۡمُبۡطِلُوۡنَ : دا هغه خلك دی چه د حق مقابله په باطلو شبهاتو سره کوی۔ ❁ یعنی باطلونکی دی حق لره په خپلو ارادو سره۔ ❁ یا باطل پرستان۔

بَلۡ هُوَ اٰيٰتٌ: یعنی ثابته شوه چه قرآن د الله نازل کړی ښکاره آیتونه دی۔

پدے کښې دریمه طریقه د صدق د قرآن او د رسول ده۔ یعنی دا قرآن په سینو د صحابه کرامو او نورو علماؤ او حافظانو کښې محفوظ پروت دے، نو ددے په الفاظو کښې هیڅوك تحریف او ابطال نشی کولے، او دا د قرآن کریم خصوصیت دے چه د انبیاء علیهم السلام نه علاوه د نورو امتیانو په حافظه کښې هم راتللے شی۔

اٰيٰتٌۢ بَيِّنٰتٌ: مؤمنانو ته قرآن کریم واضحه کتاب ښکاره کیږی، دا ښکاره نښه ده د الله په قدرت او کمال او د رسول الله ﷺ په حقانیت باندے۔

اُوۡتُوا الۡعِلۡمَ : اَیۡ حِفۡظًا وَّعِلۡمًا ۔ یعنی چا ته چه الله تعالیٰ حفظ او علم ورکړے وی د هغوی په سینو کښې دے۔

بیا ددې نه معلومه شوه چه د الله په نیز د قرآن والا عالِمان دی او علم ئې ووېل، حفظ ئې نهٔ دې وئیلے پدې کښې اشاره ده چه اصل فرض علم د قرآن دے، که حفظ ورسره وی نو غوره ده۔ (احسن الکلام)

اِلَّا الظّٰلِمُوْنَ : او ددې نه انکار صرف هغه خوك کوی چه د حد نه تجاوز کونکی وی۔

وَقَالُوْا لَوْلَآ اُنْزِلَ عَلَيْهِ اٰيٰتٌ مِّنْ رَّبِّهٖ قُلْ

او وائی دوی ولے نهٔ شی نازلیدلے په دهٔ باندې معجزات (مطلوبه) د طرف ددهٔ نه اُووایه!

اِنَّمَا الْاٰيٰتُ عِنْدَ اللّٰهِ وَاِنَّمَآ اَنَا نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ﴿۵۰﴾

یقیناً معجزات د الله په اختیار کښې دی او یقیناً زهٔ یره ورکونکے ښکاره یم۔

اَوَلَمْ يَكْفِهِمْ اَنَّآ اَنْزَلْنَا عَلَيْكَ الْكِتٰبَ

آیا کافی نهٔ ده دوی لره دا خبره چه یقیناً مونږ نازل کړیدے په تا باندې کتاب

يُتْلٰى عَلَيْهِمْ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَرَحْمَةً وَّذِكْرٰى لِقَوْمٍ

لوستلے شی په دوی باندې یقیناً پدې کښې خامخا رحمت دے او یاداشت دے دپاره د هغهٔ قوم

يُّؤْمِنُوْنَ ﴿۵۱﴾ قُلْ كَفٰى بِاللّٰهِ بَيْنِيْ وَبَيْنَكُمْ شَهِيْدًا يَعْلَمُ

چه ایمان لری۔ اُووایه! کافی دے الله تعالیٰ په مینځ زما او مینځ ستاسو کښې گواه پو هیږی

مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

په هغه څه چه په آسمانونو او زمکه کښې دی او هغه کسانو چه ایمان ئې راوړیدے

بِالْبَاطِلِ وَكَفَرُوْا بِاللّٰهِ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿۵۲﴾ وَيَسْتَعْجِلُوْنَكَ

په باطل او کفر ئې کړیدے په الله، دغه کسان هم دوی تاوان والا دی۔ او په جلتئ سره

بِالْعَذَابِ وَلَوْلَآ اَجَلٌ مُّسَمًّى لَّجَآءَهُمُ

غواړی دوی ستا نه عذاب، او که چرته نهٔ وے یوه نیټه مقرره خامخا راغلے به وے دوی ته

الْعَذَابُ وَلَيَاْتِيَنَّهُمْ بَغْتَةً وَّهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ ﴿۵۳﴾

عذاب او خامخا رابه شی دوی ته ناڅاپی او دوی به نهٔ پو هیږی۔

**تفسیر** : دا د ظالمانو حال دے چه ایمان نهٔ راوړی او د غلطو نښو مطالبه کوی۔ او پدے کښې زجر دے په اعتراض کولو سره په رشتینوالی د رسول او د قرآن باندے۔
د مکے مشرکانو به دا وئیل چه د قرآن په ځای دِے نورے معجزے او نښے راشی د کوم چه مونږ مطالبه لرو، یا د مخکنو پیغمبرانو غوندے ددهٔ رب دهٔ له څهٔ مادی نښے ولے نهٔ دی ورکړی ؟ نو الله ددے دوه جوابونه کوی۔ یو منعی جواب : چه نښے او معجزے راوړل خو د الله تعالیٰ په اختیار کښې دی چه هغه ئے کله او چا ته وغواړی نازلوی، ستاسو دا مطالبه زما نه غلطه ده ځکه چه زما کار خو خلکو لره د الله تعالیٰ د عذابونو نه یرول او هغوی ته په پوره وضاحت او صراحت سره د الله تعالیٰ دین بیانول دی۔
**اَوَلَمۡ یَکۡفِهِمۡ** : دا تحقیقی جواب دے او ډیر مزیدار او فائده مند دے۔ مطلب دا دے چه تاسو په نورو معجزو باندے څه کوئ، که الله تعالیٰ د موسیٰ ؑ په شان د سپین لاس معجزه نبی کریم ﷺ ته هم ورکړی نو دے کښې به تا ته دومره فائده نهٔ وی بلکه دا قرآن کافی کتاب دے چه تهول خیرونه پکښې دی او هر آیت ئے معجزه ده او د فائدے نه ډک دے، دا کافی گنړل پکار دی، ځوك چه پدے باندے ایمان لری نو د هغوی دپاره رحمت او د یاداشت خبرے دی، د مقصد نه ئے خبروی۔
**یُتۡلٰی عَلَیۡهِمۡ** : یعنی په دوی باندے د رسول الله ﷺ او د علماؤ او د نورو خلکو د ژبو نه لوستلے کیږی۔
او پدے کښې دے ته اشاره ده چه قرآن کریم هر ځوك لوستلے شی، داسے گران کتاب نهٔ دے چه صرف الله تعالیٰ یا ملائك به ئے وائی۔ او بل پدے کښې اشاره ده چه آرزان او آسان دے هر ځای کښې ملاویږی، داسے نهٔ ده چه الله راولیږو او په یو خاص ملك او خاص ځای کښې او یو خاص شخص سره ملاویږی چه بل ځای نهٔ وی او خلك ئے سیل له ورځی بلکه دوی ته هر وخت ملاویږی، عجیبه معجزه ده چه تهولے دنیا ته ملاؤ ده۔
ددے نه بله دا فائده معلومه شوه چه قرآن کافی کتاب دے، که د چا دا عقیده وی چه قرآن په عقائدو او په اعمالو کښې کافی نهٔ دے، یا پدے کښې کمال نشته، یا پوره احکام نشته نو یقیناً دے انسان د الله تعالیٰ ښکاره مخالفت وکړو او د الله په ضد کښې ودریدو، الله وائی کافی دے او دے وائی چه پدے کښې پوره دفعات نشته، ددے نظام نشی راتللے یا ځوك وائی چه دا د پخوانئ زمانے دپاره وو او اُوس زمانے سره نهٔ لگی۔ یا بعض وائی چه قرآن کښې عُشۡرُ مِعۡشَارِ الَّذِیۡنَ (د دین شلو برخو کښې یوه برخه) هم نشته بلکه دا په قیاس کښې

دے، او عقل او ذوق پدے باندے مقدم کوی، نو دا تول د الله تعالیٰ په ضد کښې ولاړ دی، او اوسنی بعض مقلدین یقیناً ددے آیت دشمنان دی چه هغوی په اهل حقو باندے دا سوالونه کوی او دا دعوت کوی چه قرآن او حدیث کښې میښبه نشته، او د «ږیا» میراث پکښې نشته۔ او الله اکبر په مانځه کښې فرض دے، که سنت او که واجب دا پکښې نشته۔ کله وائی: کلمه د توحید پکښې نشته۔ الله وائی دا کافی کتاب دے او دے وائی چه دا پکښې نشته۔ لږ سوچ پکښې وکړه۔

قُلْ كَفٰى بِاللّٰهِ: پدے آیت کښې د قرآن او د رسول الله ﷺ د رشتینوالی بل دلیل د الله تعالیٰ شهادت (یعنی گواهی) ذکر کوی، نو د نبی کریم ﷺ په ژبه د مکے کافرانو ته وئیلے شی چه زما او ستاسو ترمینځه زما د نبوت او د قرآن کریم د رشتین والی دپاره الله کافی گواه دے ځکه چه دا کتاب د هغهٔ مخامخ بیانیږی، او هغه پرے خبردار دے او دا رسول د خپل رسالت دعوه کوی، نو که دا په باطله وے، الله تعالیٰ به سزا ورکړے وے، هرکله چه الله ئے مدد کوی، وخت په وخت معجزے ورله رالیږی او ملگری ورله ډیروی، دا دلیل دے چه دا حق رسول دے۔ نو پدے باندے دا خبره تفریع کوی چه اوس ددے رسول دعوت څوك نهٔ منی او په باطل باندے ایمان لری، یعنی لکه څنگه چه د مخکښې نه په باطله عقیده وو اوس هم په هغے روان دے، او دا عظیم الله نهٔ منی، نو دے انسان ډیر لوی تاوان وکړو، د نبی خبره منل او نهٔ منل څه وړه خبره نهٔ ده، څه مستحبه خبره نهٔ ده۔ نو ددے رسول دعوت ایمان بالله ته دے او ددهٔ دعوت چه څوك نهٔ منی، هغه به په باطل ایمان راوړی۔ گویا که پدے آیت کښې د الله تعالیٰ گواهی، د هغهٔ علم او د رسول الله ﷺ صدق او ددهٔ په نهٔ منلو کښې په شرك کښې باقی پاتے کیدل دی، او مشرك انسان تاوانی وی۔ او دا تولے ډیرے بنے ذهن سازیانے دی۔

يَعْلَمُ: دا تشریح ده د گواهئ۔ یعنی الله ځکه گواه دے چه هغه په هرڅه پوهه دے۔

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا: اوس که یو تن د الله تعالیٰ گواهی ومنی او پدے خبره هم یقین وکړی چه دا د الله تعالیٰ رسول دے، لیکن په خپل کفر او شرك باندے کلك ولاړ وی، نو الله فرمائی چه اوس به ددے نبی دعوت منئ او د شرك نه به ځان ساتئ۔

او پدے آیت کښې رد دے په مشرکانو چه تاسو په باطل ایمان راوړے او په الله کافر یئ نو الله به مو په دنیا او په آخرت کښې د تاوان سره مخامخ کړی، او دا رسول په الله باندے ایمان راوړونکے دے نو دهٔ سره به د الله تعالیٰ تائید او نصرت وی۔

بِالْبَاطِلِ:عبد الله بن عباس ﷺ فرمائی : باطل غیر الله ته وائی. یعنی د الله نه په غیر په هر مخلوق باندے یقین کول چه دا نصرت او مددکولے شی او حاجت پوره کولے شی، او د نذر او منبتے او ذبح او عبادت لائق دے. دا ایمان بالباطل دے. ورنه غیر الله خو به انسان منی چه دا یو شے دے. خو د عبادت حقدار گنړل په هغے باندے ایمان لرل دی.

۲– قتادة وائی :اَیْ آمَنُوْا بِالشَّیْطَانِ . یعنی په شیطان ایمان راوړی) او د غیر الله عبادت کول په شیطان باندے ایمان لرل دی.

وَیَسْتَعْجِلُوْنَكَ: پدے آیت کښ رسول الله ﷺ په تعجب کښ اچول دی چه پکار خو دا وه چه دے خلکو ستا په حقانیت باندے ایمان راوړے وے لیکن دوی په جلتئ باندے عذابونه غواړی، وائی چه که ته رسول ئے نو عذاب راوله. دا خو لاره نهٔ ده، پکار خو دا ده چه کله د یو تن حقانیت بیان شی نو هغه باندے ایمان راوړی او هغه ومنی.

نو الله دوئ ته جواب ورکړو چه د دوئ سرکشی خو دومره زیاته شوے چه واقعی عذاب نازلیدل خو پکار وو، لیکن چونکه ددے یو وخت مقرر دے، دے وجے نه هغه به په خپل معلوم وخت نازلیږی، او هغه به داسے ناڅاپه راځی چه د هغے د راتلو نه به مخکښ دوئ ته څهٔ پته هم ونهٔ لګی.او چه کله عذاب راشی نو بیا به دوی ته هیڅ مهلت نهٔ ملاویږی او د توبے توفیق به هم ورته ملاو نشی.

وَلَیَاْتِیَنَّهُمْ: یعنی هغه مقرره نیټه هم ختمیدو والا ده، عذاب به دوی ته ناڅاپه راشی.او ناڅاپی عذاب ډیر سخت وی، انسان ډیر پریشانه کوی. نو الله تعالیٰ به دوی پریشانه کړی او په ناشنا عذابونو به ئے راونیسی.

**مضمون** : روستو آیت کښ فرمائی چه که دنیا کښ عذاب رانغلو نو د آخرت عذاب خو ضرور شته، د هغے سره به څه کوئ، د هغے سختوالے بیانوی چه په عذاب کښ به داسے اخته شی لکه څوك چه بستره کښ ننوزی چه بره او خکته او هر طرفنه به ئے راګیر کړے وی، د بدو اعمالو سزا به ورته ملاو شی.

په یَا عِبَادِیَ الَّذِیْنَ کښ هجرت ته ترغیب ورکوی، د هغے دپاره دوه مادے بیانوی چه یو صبر او بل توکل. توکل خاص د رزق په باره کښ پکار دے. نو د رزق مسئله به بیانوی. چه الله تاسو ته رزق درکوی. بیا په رزق ورکولو به الله تعالیٰ خپل طاقت بیان کړی په (وَلَئِنْ سَاَلْتَهُمْ) او (اَللّٰهُ یَبْسُطُ الرِّزْقَ) سره. او (وَلَئِنْ سَاَلْتَهُمْ مَنْ نَزَّلَ) سره چه الله په هر شی قدرت لری خاصکر په رزق ورکولو. بیا د دنیا بی رغبتی بیانوی چه پدے کښ هم

ترغیب الی الهجرة بیانیږی چه دنیا کښې همیشوالے نشته، د آخرت زندګی اصل کمال والا ده د هغې دپاره کوشش پکار دے. بیا الله هغه مشرکانو ته توبیخ ورکړیدے چه دنیا پرست دی، چه کله ئې الله ته حاجت راشي نو چغې ورته وهي او چه کله ئې ورته حاجت نۀ وي نو شرك ورسره کوي، او دے ته دنیا پرستي او خود غرضي وائي. بیا د مشرکانو ناشکری بیانوی چه ما ورله په حرم او مکه کښې امن ورکړیدے سره د شرك ددوی نه نو الله څومره مُنعِم دے نو بیا دوی ولې دنیا پرست جوړ شویدي او د آخرت دپاره تیارے نکوی. داسې ناشکره خلك به الله اُور ته بوځي، او په آخري آیت کښې ئې د مجاهدے فضیلت بیان کړیدے په دوه طریقو، څوك چه مجاهده کوي نو الله به هدایت او نصرت ورکړي، او دا هم ترغیب دے مضمون ددے سورت ته چه د الله دپاره امتحانات برداشت کړئ، هجرتونه وکړئ، ایمان راوړئ، د خلکو خبرے برداشت کړئ، نیك عملونه وکړئ لکه دے سورت کښې ددین دعوت او صبر او توکل ته دعوت دے چه دا کارونه مجاهدے سره وکړئ. او هدایت او نصرت ته انسان ډیر محتاج دے.

| يَسْتَعۡجِلُوۡنَكَ بِالۡعَذَابِ ؕ وَاِنَّ جَهَنَّمَ لَمُحِيۡطَةٌ ۢ بِالۡكٰفِرِيۡنَ ﴿۵۴﴾ |
|---|
| په جلتی سره غواړی دوی ستا نه عذاب او یقیناً جهنم خامخا راګیرونکے دے کافرانو لره. |
| يَوۡمَ يَغۡشٰهُمُ الۡعَذَابُ مِنۡ فَوۡقِهِمۡ وَمِنۡ تَحۡتِ اَرۡجُلِهِمۡ |
| په کومه ورځ چه پټ به کړی دوی لره عذاب د بره طرف د دوی نه او د لاندے د خپو د دوی نه |
| وَيَقُوۡلُ ذُوۡقُوۡا مَا كُنۡتُمۡ تَعۡمَلُوۡنَ ﴿۵۵﴾ يٰعِبَادِىَ |
| او وائی به ورته اُوڅکئ (سزا) د هغه عملونو چه تاسو به کول. اے بندګانو زما ! |
| الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡۤا اِنَّ اَرۡضِىۡ وَاسِعَةٌ فَاِيَّاىَ فَاعۡبُدُوۡنِ ﴿۵۶﴾ |
| هغه کسان چه ایمان ئې راوړیدے یقیناً زمکه زما فراخه ده، نو خاص ما لره بندګی وکړئ. |
| كُلُّ نَفۡسٍ ذَآئِقَةُ الۡمَوۡتِ ثُمَّ اِلَيۡنَا تُرۡجَعُوۡنَ ﴿۵۷﴾ |
| هر نفس څکونکے د مرګ دے، بیا به خاص مونږ ته راګرځولے شئ تاسو. |

**تفسیر** : يَسۡتَعۡجِلُوۡنَكَ: تکرار ئې وکړو یو خو مشرکانو باربار عذاب په جلتئ غوښتو. یا اول استعجال ددنیا د عذاب سره متعلق دے، او دویم د آخرت سره متعلق

دی۔ یعنی تاسو عذابونه غواړئ نو دنیا کښې هم عذاب شته او تاسو ئے غواړئ نو آخرت کښې هم شته۔

يَغْشَاهُمُ الْعَذَابُ: یعنی عذاب به پرے د برستنے په شان گیره واچوی۔

يٰعِبَادِيَ: ربط او مناسبت:

هرکله چه الله تعالیٰ د مشرکانو د شرك رد وکړو په (٤٠) آیت کښې په مثال سره او د هغوی کمزوری ئے بیان کړه، نو هغوی په غصه کښې راغلل چه زمونږ د معبودانو سپکاوے وشو نو دوی په مسلمانانو باندے تکلیفونه زیات کړل، په چا چه به ئے وسع کیدهٔ نو هغه ئے په گرمو شړو او گرمو کانړو باندے واچول نو الله پدے آیت کښې هغوی ته دا ارشاد وکړو چه مدینے او حبشو ته هجرت وکړئ. دے دپاره چه هلته د الله تعالیٰ عبادت په اطمینان او سکون سره وکړئ۔ انتهیٰ۔ (قرطبیؒ)

دے وجے نه څۀ مسلمانان د هجرت نه مخکښې د قریشو د ظلم او زیاتی نه تنگ راغلل او د نبی کریم ﷺ په اجازت سره ئے هجرت وکړو او حبشو ته لاړل، چه د هغه ځای بادشاه نجاشی رحمة الله علیه چه د هغوئ د غم نه ډك داستان واوریدو نو ډیر متاثره شو، او هغوئ له ئے په خپل ملك کښې د پوره آزادئ سره د وسیدو اجازت ورکړو۔ او کله چه نبی کریم ﷺ ته د هجرت کولو اجازت ملاؤ شو، نو دغه مسلمانان هم د حبشو نه مدینے منورے ته لاړل۔

بیا دلته دوه انتقاله بیان شویدی، یو نَقْله صغریٰ (وړوکے انتقال) د یو ملك نه بل ملك ته، او روستو په ﴿وَمَا هٰذِهِ الْحَيٰوةُ﴾ کښې لوی انتقال دے چه ټول انسانان به د دنیا نه آخرت ته ځی۔ نو پدے کښې اشاره ده چه په اول انتقال کښې عبرت واخلئ د دویم انتقال دپاره چه دغه شان به د دنیا نه هم روانیږئ۔

پدے آیتونو کښې هجرت ته ترغیب دے او د هجرت طریقه ئے خودلے ده چه دا دا صفات په ځان کښې پیدا کړه نو تۀ به مهاجر شے۔

او پدے آیت کښې دا خبره هم ده چه په یو مُلك کښې ظلم وی، د مشرکانو د طرفنه پابندی وی، چه انسان توحید نشی ښکاره کولے او په دین باندے عمل او د هغے بیان نشی ښکاره کولے نو په هغه باندے د وطن پریخودل فرض دی او داسے وطن ته به ځی چه هلته په آزادئ سره عمل کولے شی، نو د وطن پریخودل لازم دی او د دین پریخودل

جائز نهٔ دی۔ عبادت د رب العالمین مقصود شے دے، نظام د عالَم ددے دپاره چلولے شویدے، وطن، کاروبار، ملازمت او تجارت مقصود دی نهٔ دی۔ نو ددے نه د دین قیمت ښکاره شو، مؤمن ته به دین د هر شی نه قیمتی ښکاری۔ هجرتونه شریعت د دین د حفاظت دپاره فرض کړیدی۔

او ددے نه معلومیږی چه هجرت هله فرض کیږی چه په تا باندے د اسلام پنځ بناء ادا کولو پابندی راشی، یا بله څه فتنه راپیدا شی چه تا د الله تعالیٰ د دین نه اړوی۔

اَرْضِیْ وَاسِعَةٌ: پدے کښې اشاره ده چه په هجرت سره وسعت او فراخی حاصلیږی۔

نو پدے آیت سره ډیر صحابه کرام ﷺ حبشو ته او څه مدینے ته لاړل هجرتونه ئے وکړل۔

كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ: ربط :

۱– مرگ په هر چا باندے راځی نو ښکه د الله بندگی کول پکار دی۔

۲– مفسرین لیکی چه په دے آیتِ کریمه کښې د هجرت دپاره د مسلمانانو همت زیات شویے، چه هسے نهٔ د مرگ ویره تاسو د الله په لاره کښې د هجرت کولو نه بند نهٔ کړی، د هریو کس د مرگ چه کوم وخت مقرر دے په دغه وخت به هغه خامخا مری، برابره خبره ده که هغه د خپل پیدائش په ځای کښې وی، یا بل چرته لاړ شی۔ بعضِ مفسرینو ددے تفسیر داسے بیان کړے چه مرگ په هر حال کښې حق دے، او هریو کس به دا تریخ جام څکی، دے وجے نه اهمه خبره داده چه انسان د خپل وطن او د خپلو رشته دارو د محبت نه اُوچت شی او د هغه ژوند د کامیابئ دپاره کوشش وکړی کوم چه د مرگ نه پس شروع کیږی۔ هر سړے به الله تعالیٰ له ورځی، هغه به د هغهٔ نه د بندگئ تپوس کوی، که مرگ نهٔ وے او الله ته ورتلل نهٔ وے نو بیا صحیح وه که یو بنده بندگی نهٔ کولے یائے هجرت نهٔ کولے۔

| وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَنُبَوِّئَنَّهُمْ |
|---|
| او هغه کسان چه ایمان ئے راوړیدے او عملونه ئے کړیدی نیك خامخا ځائے به ورکړو |
| مِّنَ الْجَنَّةِ غُرَفًا تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا |
| مونږ دوی ته د جنت نه بالخانے بهیږی به لاندے د هغے نه ولے همیشه به وی په هغے کښې |

| نِعْمَ اَجْرُ الْعٰمِلِيْنَ ﴿٥٨﴾ الَّذِيْنَ صَبَرُوْا وَعَلٰى رَبِّهِمْ |
|---|
| بنه اجر دیے د عمل کونکو (دا جنت). هغه کسان دی چه صبر ئے کړیدیے او په رب خپل |
| يَتَوَكَّلُوْنَ ﴿٥٩﴾ وَكَاَيِّنْ مِّنْ دَآبَّةٍ لَّا تَحْمِلُ رِزْقَهَا اللّٰهُ |
| باندیے ځان سپاری. او ډیر د حیواناتو نه نهٔ پورته کوی ځان سره رزق خپل، الله تعالیٰ |
| يَرْزُقُهَا وَاِيَّاكُمْ وَهُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿٦٠﴾ |
| رزق ورکوی هغوی ته او تاسو ته او هغه آوریدونکے پوهه دیے. |

**تفسیر**: اُوس هغه چا ته زیریے ورکوی چه د الله د بندګئ د خاطره ئے خپل کور کلے او خپل خپلوان پریخودل او هجرت ئے وکړو چه پس د مرګ نه به ورته الله تعالیٰ جنتونه ورکوی.

وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ: یعنی نیك عملونه ئے وکړل چه یو په هغے کښې هجرت دیے، یا ددیے نیك عملونو کولو دپاره ئے هجرت وکړو.

غُرَفًا: یعنی بالخانیے، بنګلے. دیے ذکر کولو کښې اشاره ده چه که د دنیا مکانونه په هجرت کولو سره پاتے شی، نو په جنت کښې به اُوچت مکانات حاصل شی.

الَّذِيْنَ صَبَرُوْا: اُوس طریقه ښائی چه دوه صفتونه ځان کښې پیدا کړئ هجرت به آسان شی، یو صبر او بل توکل. په صبر کښې اشاره ده چه په هجرت کښې بههه تکلیفونو د کلی پریخودو، د لارو او د غربت باندیے صبر کوئ. نو هله به د الله بندګی کولے شئ او که څوك دا صبر نشی کولے، هغه هجرت نشی کولے نو د الله سمه بندګی به هم نشی کولے. صبر د ټولو عبادتونو پایه ده.

يَتَوَكَّلُوْنَ: شیطان انسان له یروی چه که د کلی او کاروبار نه ووتلے نو څه به خوریے؟ کوم ځای به وسیږیے؟، نو ددیے ټولو پریشانو علاج توکل دیے. په الله باندیے پوره بهروسه کول. چه زهٔ خو ګناه له نهٔ وځم چه الله به ما ضائع کړی بلکه زهٔ نیکئ له روان یم. او څوك چه الله تعالیٰ ته ځان وسپاری نو الله ورله حفاظت کوی. او د داسے طرفنه رزق به ورکړی چه ددهٔ به ګمان نهٔ وی.

وَكَاَيِّنْ مِّنْ دَآبَّةٍ: چونکه د هجرت په موقعه انسانانو ته دا اِشکال ډیر راځی چه زهٔ کور کلے او کاروبار، او دکان او پټے پریدم، نو څه به خورم نو د رزق په باره کښې ډیر

پریشانه کیږي۔ نو الله تعالیٰ د هغې جواب ورکوي او مهاجرینو ته اطمینان ورکوي چه دوئ په هر ځای کښې وي، دوئ له مقرر شوې روزي به دوئ ته رسیږي، د روزئ تعلق زمکې، دکان او کاروبار سره نۀ دې بلکه الله تعالیٰ سره دې، هغه هر ساه والا ته روزي رسوي، برابره خبره ده که هغه کمزورې وي چه خپله روزي نشي باروله، یا طاقتور وي چه خپله روزي د ځان سره باروله شي، الله تعالیٰ هر یو ته په خپل وخت روزي رسوي، برابره خبره ده که هغه د دنیا په هر گوټ کښې وسیږي۔

لَا تَحۡمِلُ رِزۡقَهَا : د بارولو معنیٰ دا ده چه ځان له رزق نۀ ساتي او ځان سره ئې نۀ گرځوي، د عامو حیواناتو قانون همدا دې چه سهار راپاځیږي، الله تعالیٰ ورته رزق ورکوي، صرف درې حیوانات جمع کوي، یو انسان دې، دویم منږکان، دریم میږان۔ دوي سره د رزق فکر وي، زمرې چرته داسې نۀ کوي۔ د رزق په باره کښې فکرمند کیدل نۀ دي پکار بلکه د الله تعالیٰ د حکم فکر پکار دې چه دې وخت کښې ما ته د الله تعالیٰ څه حکم متوجه دې چه زۀ هغه ادا کړم۔

د دوډئ په فکر کښې ډیر انسانانو تول دین پریخوستو، کافر شو، وائي لرې ډالرې به واخلو، پیسې به وګټو، وږي یو، غریبي ده، بال بچ راپه غاړه دې، سیر وره ګټل پکار دي، خیر دې که دین تباه شي، ډیر خلك بې حیائي کوي د رزق د خاطره، ځان ذلیله کوي د رزق د خاطره، ورور وژني د رزق د خاطره، د پلار او مور بې عزتي کوي د رزق د خاطره۔ ډیر خلك پردي (د خویندو او ورونو او ترېندو) میراثونه خوري، او دا وائي که زۀ میراث ورکړم نو څه به خورم او کاروبار ته به مې نقصان ورسي۔ دا په الله باندې ډیره لویه بدګماني ده۔

| |
|---|
| وَلَئِنۡ سَاَلۡتَهُمۡ مَّنۡ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضَ وَسَخَّرَ |
| او که چرته تپوس اُوکړې ته د دوي نه چا پیدا کړیدی آسمانونه او زمکه او تابع کړې ئې |
| الشَّمۡسَ وَالۡقَمَرَ لَيَقُوۡلُنَّ اللّٰهُ ۚ فَاَنّٰى يُؤۡفَكُوۡنَ ﴿٦١﴾ |
| دی نمر او سپوږمۍ؟ خامخا وائي به دوی الله، نو کوم طرف ته اړولې کیږي دوي۔ (د الله |
| اَللّٰهُ يَبۡسُطُ الرِّزۡقَ لِمَنۡ يَّشَآءُ مِنۡ عِبَادِهٖ وَيَقۡدِرُ |
| نه غیر الله ته)۔ الله فراخه کوي رزق هغه چا لره چه اُوغواړي د بندګانو خپلو نه او کموي |

| لَهٗ اِنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَیْءٍ عَلِیْمٌ ﴿۶۲﴾ وَلَئِنْ سَاَلْتَهُمْ |
|---|
| ئې هغه لره یقیناً الله په هر شی باندې پو هه دې۔ او که تپوس اُوکړې ته د دوی نه |
| مَّنْ نَّزَّلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَحْیَا بِهِ الْاَرْضَ مِنْۢ بَعْدِ |
| چا راورولی دی د آسمان نه اُوبه نو راژوندۍ کړې ئې ده په هغې سره زمکه روستو |
| مَوْتِهَا لَیَقُوْلُنَّ اللّٰهُ قُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ |
| د اُوچوالې د هغې نه خامخا وائي به دوی الله، اُووایه! ټول صفتونه د اُلوهیت خاص الله لره |
| بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا یَعْقِلُوْنَ ﴿۶۳﴾ وَمَا هٰذِهِ الْحَیٰوةُ الدُّنْیَآ اِلَّا لَهْوٌ |
| دی بلکه ډیر د دوی نه عقل نۀ لري۔ او نۀ دې دا ژوند دنیوی مګر مشغله (تماشه) ده |
| وَّ لَعِبٌ وَاِنَّ الدَّارَ الْاٰخِرَةَ لَهِیَ الْحَیَوَانُ لَوْ كَانُوْا یَعْلَمُوْنَ ﴿۶۴﴾ فَاِذَا |
| او لوبې دی، او یقیناً کور روستنې خامخا پوره ژوند دې که چرې دوی پو هیدلې۔ نو هرکله |
| رَكِبُوْا فِی الْفُلْكِ دَعَوُا اللّٰهَ مُخْلِصِیْنَ لَهُ الدِّیْنَ |
| چه سواره شی دوی په کشتئ کښې دعا غواړی د الله نه خالص کونکی وی هغه لره بلنه |
| فَلَمَّا نَجّٰىهُمْ اِلَی الْبَرِّ اِذَا هُمْ یُشْرِكُوْنَ ﴿۶۵﴾ |
| نو هرکله چه بچ کړی دوی لره اُوچې ته دغه وخت دوی برخه داران جوړوی د الله سره۔ |
| لِیَكْفُرُوْا بِمَآ اٰتَیْنٰهُمْ |
| (عاقبت دا دې) چه انکار اُوکړی په هغه څه چه مونږ ورکړیدې دوی ته |
| وَلِیَتَمَتَّعُوْا فَسَوْفَ یَعْلَمُوْنَ ﴿۶۶﴾ |
| او دې دپاره چه مزې واخلی نو زر دې چه پو هه به شی دوی۔ |

**تفسیر** :وَلَئِنْ سَاَلْتَهُمْ: پدې آیت کښې الله تعالیٰ خپل طاقت بیانوی خو د قرآن طریقه داسې ده چه د وړاندې نه خبره رانیسی، داسې نۀ وائي چه الله تعالیٰ رزق ورکوونکې شی ځکه چه هغه آسمانونه پیدا کړیدی الخ ځکه چه پدې طریقې سره خبره خاص کیږی او تولو نه یوه جمله جوړیږی۔ نو الله اول مشرکان راګیروی او د هغوی نه خبره

شروع کوی چه وګوره مشرکان هم د الله قدرت منی، پدے قائل دی چه د رزق فراخی او تنګی د الله په لاس کښې ده۔ د باران په نازلیدو قائل دی چه دا صرف الله تعالیٰ نازلوی او بوټی الله تعالیٰ پیدا کوی، نو هرکله چه مشرکان ددے قائل دی نو مؤمنان خو به خامخا ددے قائل وی، نو بیا ځنګه د رزق په باره کښې فکرمند شی او د الله په لاره کښې هجرت نهٔ کوی۔ او دا بیا ټول دین ته اشاره وی۔

نو پدے آیت کښې دلیل اعترافی دے چه دغه ذکر شوی مقاصد پکښې پراتهٔ دی۔ او بل مقصد پکښې دا پروت دے چه د الله تعالیٰ عبادت مهٔ پریده د رزق د خاطره ځکه چه الله تعالیٰ په هر شی قادر دے۔ او بل پکښې رد د شرك دے چه دوی د الله تعالیٰ د قدرت قائل دی او بیا هم عنکبوت ئے رانیولے دے د هغهٔ بندګی کوی۔

مطلب د آیت دا دے: پدے کښې مشرکانو په حالت باندے حیرانتیا او تعجب ورکولے شی، او نبی کریم ﷺ ته وئیلے کیږی چه تهٔ کله دوئ نه تپوس وکړے چه آسمانونه او زمکه چا پیدا کړی، او نمر او سپوږمئ د انسانانو د فائدے دپاره چا د خپل فرمان تابع کړیدی، نو دوئ به فوراً ووائی چه دا ټول کارونه د الله تعالیٰ دی۔

فَاَنّٰی یُؤْفَکُوْنَ: نو بیا ددے حقیقت د اقرار سره دوئ بل څوك د الله تعالیٰ سره ولے شریك جوړوی چه هغوئ د دوئ د نفع او د نقصان طاقت نهٔ لری؟! او دوی ولے د الله تعالیٰ د بندګئ نه د غیر الله بندګئ ته اوړی؟!، پکار ده چه یواځے د هغهٔ بندګی وکړی۔ نو دے کښې مؤمنانو ته هم اشاره ده چه تاسو د رزق د خاطره د الله تعالیٰ د بندګئ نه بل طرفته مهٔ اوړئ۔

اَللّٰهُ یَبْسُطُ الرِّزْقَ: یعنی د رزق فراخول او تنګول د هجرت په وجه نهٔ دی بلکه دا د الله تعالیٰ په مشیت بناء دی، هغه د بندګانو د حالت نه خبردار دے نو چا له رزق فراخه ورکوی او چا له ئے تنګوی۔

او دا آیت جواب دے د مشرکانو د اعتراض۔ بعضِ مشرکانو مسلمانانو ته ووئیل چه که تاسو په حقه ویے، او الله تاسو نه راضی وے نو بیا به تاسو د محتاجئ لاندے دوب نهٔ وسیدلے، پکار ده چه ستاسو سره فراخی وے۔ الله تعالیٰ دوئ له جواب ورکړو چه د روزئ مالك خو صرف الله دے، او هغه د خپلو حکمتونو مطابق چاله زیاته روزی ورکوی، دے دپاره چه هغه د خپل رب شکر کوی یا د هغهٔ ناشکری کوی، او چاله کمه ورکوی دے دپاره چه وګوری چه هغه د صبر نه کار اخلی، یا د الله تعالیٰ په تقدیر باندے د خفګان

إظهار کوی. دولت او محتاجئ دواړو نه هیڅ یو هم د الله تعالیٰ د رضا یا د هغهٔ د ناراضګئ دلیل نهٔ دے. او چونکه الله تعالیٰ د هر شی علم لری، دے وجے نه د روزئ د کمی زیاتی حکمتونه صرف هغه پیژنی. د هر بنده د حال مناسب الله تعالیٰ روزی ورکوی. په یو روایت کښ دی (چه د سند په اعتبار سره ضعیف دے) چه الله فرمائی: که زهٔ مالداره غریب جوړ کړم [لَاَفْسَدَهُ ذٰلِكَ] نو پدے کار سره به هغه خراب شی. او که فقیر زهٔ مالداره کړم نو پدے باندے به خراب شی.

(البیهقی فی الاسماء والصفات ص ۱۲۱) وشرح السنة للبغوی والضعیفة (۱۷۷۵)

نو الله تعالیٰ د ډیرو خلکو فساد د رزق په فراخئ او د رزق په تنګئ باندے ختم کړیدے.

وَلَئِنْ سَاَلْتَهُمْ : بل دلیل اعترافی دے. او متعلق دے د مخکښ سره یعنی د رزق فراخی او تنګی د الله تعالیٰ په اختیار کښ ده ځکه چه اسباب د روزئ باران ورول او زمکه کښ قوتِ نباتیه پیدا کول د الله تعالیٰ په قدرت کښ دی.

نبی کریم ﷺ ته فرمائی چه ته کله د مشرکانو نه تپوس وکړے چه د آسمانونو نه د باران اوبهٔ چا را اورولی او څوك ددے په ذریعه مړه زمکه ژوندئ کوی؟ نو دوئ فوراً جواب ورکوی چه دا ټول کارونه الله تعالیٰ کړی، نو اے زما نبی! تهٔ د خپل رب شکر اداء کړه چه دوئ د خپل ضد او سخت عناد سره د حق په اقرار باندے خپل ځان مجبوره مومی، او په خپله ژبه د خپل ځان په خلاف ګواهی ورکوی چه د الله تعالیٰ په عبادت کښ بل څوك شریکول د دوئ د طرفه په الله تعالیٰ باندے بهتان دے، لیکن په دوئ کښ اکثر خلق په دے خبره پوهیږی نهٔ، ځکه خو د دوئ په قول او عمل کښ تضاد موندلے کیږی.

لَا يَعْقِلُوْنَ: ۱ - اَیْ لَا یَعْقِلُوْنَ تَوْحِیْدَ رَبِّهِمْ. (بغوی) یعنی د خپل رب په توحید نهٔ پوهیږی. ۲ - د آیت د سیاق نه معلومیږی چه: عقل نهٔ لری، فرق نهٔ پیژنی د قادر او د غیر قادر په مابین کښ. بی قدرته ذات ته متوجه کیږی او قدرت والا پریدی.

وَمَا هٰذِهِ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَآ: پدے آیت کښ تزهید فی الدنیا (د دنیا بی رغبتی) ذکر ده.

## ربط او مناسبت

۱ - مخکښ وړوکے انتقال وو د یو ملك نه بل ملك ته نو اُوس وائی چه بله ورځ به د دنیا نه انتقال کوئ د آخرت کور ته.

۲ - د دنیا بی رغبتی بیانوی پدے سره هجرت ته ترغیب ورکوی، هجرت خلك ولے نهٔ

کوی او په دین باندے عمل ولے نۀ کوی؟ ځکه چه د دنیا سره ئے مینه وی نو د دنیا بې رغبتی بیانوی چه په آخرت باندے نظر واچوه، دائمی او ابدی ژوندگی خو هغه ده. په دے یو آیت باندے چه د انسان ذهن کولاؤ شی نو په ډیرو عباداتو به ئے قوت پیدا شی. چه د چا په آخرت یقین پیدا شو او دنیا ورته معمولی ښکاره شوه نو د شپے راپاڅیدل به ورته آسان شی، لږ خوب به قربان کړی، په بدن به لږه سخته راولی، آخرت حق دے، هلته به مزے کوی. دغه شان انسان به حرامه نۀ خوری، د کافر ملکرتیا به نۀ کوی وائی به چه د دنیا یو څو شپے ژوند دے ختمیدونکے دے، آخرت پرے نۀ خرابوم.

بیا په قرآن کریم کښې ډیر زور والے دے چه یوه مسئله شروع وی نو په مینځ کښې بله خبره راوړی پدے کښې غرض خبره ډیره عام کول وی. نو دا آیت هم د رزق د مسئلے او د هجرت او د بندگئ د مسئلے سره لګیږی.

إِلَّا لَهْوٌ وَّ لَعِبٌ: ددے فرقونه په سورة الانعام آیت (۳۲) کښې ذکر شویدی. لهو تماشے ته وائی چه انسان مشغوله کوی لکه څوانان خلك لهو کوی او لعب (لوبے) چه هسے ځان مشغوله کول وی. یعنی لهو دے ته وائی: اَلْاِسْتِمْتَاعُ بِلَذَّاتِ الدُّنْيَا

یعنی د دنیا د څیزونو نه خوند او فائده اخستل او لعب عبث کارونو ته وئیلے شی. او دنیا ته لهو او لعب د دوه وجو نه وئیل شویدی،

یو دا تشبیه ده په سُرْعَةُ الزَّوَال کښې چه زر ائله کیږی.

دویم تشبیه ده په عَدَمُ الْاِنْتِفَاع کښې یعنی ددے نه څه باقی پاتے کیدونکے فائده نۀ حاصلیږی. لهو او لعب د تقدیم او تاخیر وجه هم د سورة الانعام په تفسیر کښې وګوره.

بله وجه دا ده چه هلته مسئله د اثبات د آخرت وه ځکه چه هلته حال د هغه چا بیانیدو چه د آخرت نه منکر وو ﴿قَدْ خَسِرَ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِلِقَاءِ اللهِ﴾ نو دنیا د آخرت په مقابله کښې هسے لعب دی نو ځکه ئے لعب مخکښې ذکر کړو، او دلته مسئله د هجرت شروع ده، نو فرمائی چه دنیا لهو ده څه نا څه خوند پکښې شته، لیکن دا خوند د آخرت په مقابله کښې هیڅ نۀ دے کوم چه د هجرت په وجه حاصلیږی.

او لهو ولعب کښې تشبیه ده یعنی لکه څنګه چه ماشومان د لوبو څیزونو نه ګیر چاپیره جمع کیږی، څۀ وخت هغے سره مشغول وی، بیا هغه په همدغه ځای پریدی او خپلو کورونو ته ځی، او سوئی د ستومانتیا نه هغوئ له هیڅ شے په لاس نۀ ورځی، همدا حال د ددے دنیا د ژوند دے، ددے ځای هر یو شے فانی او تلونکے راتلونکے دے.

اَلْحَیَوَانُ: اَیِ الْحَیَاةُ التَّامَّةُ۔ (یعنی پوره ژوند دے)۔ حیاة حقیقی، دائمی چه فناء پرے نهٔ راځی او د غمونو او دردونو نه پاك وی۔ یا پدے وجه کامل ژوند دے چه دا داسے ژوند دے چه مرګ پکښې نشته او ځوانی ده چه بوډاوالے پکښې نهٔ راځی او صحت دے چه بیماری پکښې نشته۔ او د دنیا ژوند ناقص دے، ځو ورځے پس مرګ، او بوډاوالے او بیماریانے راځی۔

لَوْ کَانُوْا یَعْلَمُوْنَ : اَیْ لَمَا آثَرُوا الدُّنْیَا عَلَی الْآخِرَةِ۔ که دوی پو هیدے نو دوی به فانی دنیا په لازواله نعمتونو د آخرت باندے نهٔ غوره کولے۔ لَوْ تمنائیه هم صحیح دے، بیا جزاء نهٔ غواړی۔ اوله معنیٰ ظاهره ده۔

فَاِذَا رَکِبُوْا: اُوس د مشرکانو ناشکری بیانیږی چه په کشتئ کښې ئے یو حال وی، او چه کشتئ نه کوز شی نو بل حال ئے وی۔ مناسبت ئے د نزدے آیت سره دا دے چه دا خلك دنیا پرست دی، ددے نښه دا ده چه کله پرے تکلیف راشی نو د الله بندګی شروع کړی او بیا ئے هغه ته رامدد شه وائی او چه کله ورله دغه نعمت د نجات ورکړی نو بیا ترے الله تعالیٰ هیر شی، هیڅ پرواه پرے نهٔ لری بلکه بر خه داران ورسره جوړوی۔ نو دا خود غرض انسانان دی، که په دین او عبادت کښې ورته فائده ملاویږی نو دین ته راځی او عبادت کوی، او که نهٔ ملاویږی نو بیا ترے مخ اړوی او عبادت نهٔ کوی، او خود غرض انسان دنیا پرست دے۔

دارنګه د مخکښې آیتونو سره لګیږی چه مشرکان د الله تعالیٰ د کبریاء او خالقیت قائل دی او په وخت د مصیبت کښې هم د الله تعالیٰ د کبریاء قائل دی لیکن کله چه راحت راشی نو بیا شرك شروع کړی نو دلته د مشرکانو د احوالو ترمینځ یون بعید (لوی فرق) او تضاد بیان شویدے، په کشتئ کښې وائی چه مونږ صرف الله تعالیٰ خلاصولے شی او چه کله خلاص شی نو بیا وائی چه فلانی بت او بابا راخلاص کړو۔

اَلدِّیْنَ: (یعنی عبادت او آواز)۔ دا آیت دلیل دے چه د الله تعالیٰ معرفت په فطرت د هر انسان کښې شته دے، خو د مصیبت په وخت کښې دغه فطرت راویښ شی۔

یُشْرِکُوْنَ: کله کشتیبان ته نسبت کوی، او کله ځان ته چه ما داسے چالاکی وکړه او ځان مے راخلاص کړو۔

لِیَکْفُرُوْا : یعنی ددے نعمت شکر پکار وو لیکن د دوی انجام دا شو چه ناشکری ئے شروع کړه۔

فَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ : الله تعالىٰ وفرمايل چه دوئ به ددے مشركانه چال، او ددے عظيمے نمك حرامئ بد انجام ډير زر وويني۔

| اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّا جَعَلْنَا حَرَمًا اٰمِنًا وَّ يُتَخَطَّفُ النَّاسُ |
|---|
| آيا نهٔ گوري دوي چه يقيناً مونږ گرځولے دے حرم امن والا او تختولے شي خلق |
| مِنْ حَوْلِهِمْ اَفَبِالْبَاطِلِ يُؤْمِنُوْنَ وَبِنِعْمَةِ اللّٰهِ |
| چاپيره د دوي نه، آيا په باطل باندے ايمان لري دوي او په نعمت (احسان) د الله تعالىٰ |
| يَكْفُرُوْنَ ﴿٦٧﴾ وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا |
| ناشكر كوي۔ او څوك دے لوئي ظالم د هغه چا نه چه جوړوي په الله تعالىٰ باندے دروغ |
| اَوْ كَذَّبَ بِالْحَقِّ لَمَّا جَآءَهٗ اَلَيْسَ فِيْ جَهَنَّمَ مَثْوًى |
| يا دروغژن گڼري حق لره هركله چه راغے هغه ته، آيا نشته په جهنم كښ ځائے د اوسيدو |
| لِّلْكٰفِرِيْنَ ﴿٦٨﴾ وَالَّذِيْنَ جَاهَدُوْا فِيْنَا |
| كافرانو لره۔ او هغه كسان چه ځان كړه وي په رضا كولو زمونږ كښ |
| لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا وَاِنَّ اللّٰهَ لَمَعَ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿٦٩﴾ |
| خامخا وبه ښايو هغوي ته لارے زمونږ او يقيناً الله خامخا ملگرے دے د ښائسته عمل كونكو سره۔ |

**تفسير** : اُوس د وچے نعمتونه بيانوي چه الله تعالىٰ تاسو ته د درياب نعمت او د وچے نعمت دواړه دركړيدي او بيا هم تاسو غير الله ته متوجه كيږئ او ددے نعمتونو ناشكري كوئ۔

اَوَلَمْ يَرَوْا: اَیْ اَيَكْفُرُوْنَ وَلَمْ يَرَوْا۔ يعني آيا دا د مكے مشركان (او بيا نور مشركان) د الله تعالىٰ د نعمتونو ناشكري كوي، او د دوي زړونو ته د لَا اِلٰهَ اِلَّا الله آواز نهٔ ننوزي، او دے دلائلو او نعمتونو ته نهٔ گوري۔ آيا دوئ په خپلو ځانونو باندے د الله تعالىٰ دا عظيم احسان نهٔ ويني چه هغهٔ مكه حرم او پُر امن ځاى جوړ كړيدے، چرته چه دوئ د نورو عربي قبائلو په مقابله كښ د ډير زيات كميدو باوجود پُر سكون ژوند تيروي، او په دے كښ د عربو عادت ته اشاره ده چه هغوي به د څلورو مياشتو نه علاوه په يو بل باندے

حملے کولے او د هغوی مالونه به ئے لوټ کول صرف حرم او مکے والو ته به ئے هیڅ نهٔ ونیل د حرم احترام به ئے کولو۔ نو دلته الله تعالیٰ فرمائی چه د دوئ نه گیر چاپیره وسیدونکی قبائل په یو بل باندے حملے کوی، قتل کوی، مال او سامانونه لوټ کوی او ډیر پکښ قیدیان جوړوی او د حرم والو په باره کښ څوك د قتل او لوټ مار هیڅ سوچ هم نهٔ کوی، نو دوئ به تر کومے پورے د الله تعالیٰ ددے نعمتونو ناشکری او د بتانو عبادت کوی۔

اَفَبِالْبَاطِلِ: ددے نه مراد معبودِ باطل، شیطان او بتان دی۔ څکه چه د مکے مشرکانو به د مکے د اَمن نسبت لات، مناة وغیره ته کولو، لکه اُوس چه مشرکان د یو کلی یا علاقے د اَمن او برکاتو نسبت یو قبر والا ته کوی کوم چه دے کلی ته نزدے وی۔

وَبِنِعْمَةِ اللّٰهِ: د نعمت نه مراد، امن، رزق او نجات وغیره دے۔

وَمَنْ اَظْلَمُ: اُوس الله تعالیٰ رټنه ورکوی هغه کسانو ته چه شرك کوی او نسبت ئے الله ته کوی او د الله تعالیٰ آیتونه نهٔ منی نو دا ډیر لوی ظالم دے، جهنم ددهٔ دپاره تیار دے۔

افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ: ددے ډیر صورتونه مخکښ سورتونو کښ ذکر شویدی، دلته ترے مراد دا دے چه نسبت د شریك الله تعالیٰ ته کوی چه فلانی بابا په مونږ باندے نظر دے، او برکت راکوی۔

اَوْ كَذَّبَ بِالْحَقِّ: د حق نه مراد رسول او قرآن دے۔ یعنی که څوك په الله تعالیٰ دروغ جوړوی یا د هغهٔ رسول او قرآن نهٔ منی نو دا دواړه یو شان ظالمان دی۔ نو مشرك او قرآن نهٔ منونکے، یا مشرك او رسول الله ﷺ نهٔ منونکے یو شے دے۔ دواړه کافران او ظالمان دی۔

وَالَّذِيْنَ جَاهَدُوْا: دا د اول د سورت سره لګیږی ﴿وَهُمْ لَا يُفْتَنُوْنَ﴾ ﴿وَمَنْ جَاهَدَ فَاِنَّمَا يُجَاهِدُ لِنَفْسِهٖ﴾ یعنی په تاسو به امتحانات راځی او تاسو به پدے کښ مجاهده کوئ نو د الله تعالیٰ مددونه به راځی۔

پدے آیت کښ مقصد ترغیب اِلَى الْمُجَاهَدَه دے په ذکر د دوه بشارتونو سره چه یو هدایت او بل نصرت دے۔

خو مجاهده به داسے وی چه د الله تعالیٰ د رضا دپاره وی، او نظر پکښ په الله تعالیٰ باندے لګیږی لکه هغه په مُحْسِنِيْنَ لفظ کښ ذکر کیږی۔

جَاهَدُوْا: دا مکی سورت دے نو د مجاهدے نه مراد به ماسوئ د قتال نه وی۔ مجاهده کړاؤ او خوارئ او کوشش ته وئیلے شی۔

## د مجاهدے صورتونه

(۱) د مجاهدے نه درے قسمه مجاهدے مراد دی، (۱) یو جهاد د نفس سره، د هغهٔ خلاف کوی. لکه نفس راحت او خوب او کور کښې کیناستل غواړی او بنده ددے په خلاف جهاد وکړی، او دا ډیر گران جهاد دے. (۲) مُجَاهَدَةُ الشَّيْطَانِ. د شیطان مقابله. (۳) مُجَاهَدَةُ الدُّنْيَا . د دنیا مقابله کول، د هغے د آرام او راحتونو او د مزو نه د الله تعالیٰ دپاره ځان وساتی.

(٤) جِهَادُ الْكُفَّارِ. د کافرانو مقابله وکړی.

فِيْنَا: أَيْ لِمَرْضَاتِنَا. یعنی صرف زمونږ د رضا دپاره.

لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا: ۱ - د هدایت نه مراد تَثَبُّتُ دے په لارو د دین او اسلام باندے.

۲ - یا دا کنایه ده د جنت نه. یعنی د جنت لارے به ورته وښایو.

۳ - سُبُلُ نه مراد احکام شرعیه او علم شرعی دے. لکه فُضَیل بن عیاض ؒ وائی :

« چا چه ځان وکړاؤ په طلب د علم دین کښې په اخلاص سره نو ویه ښایم دوی ته طریقے د عمل کولو».

او سهل بن عبد الله ؒ وائی : [وَالَّذِيْنَ جَاهَدُوْا بِإِقَامَةِ السُّنَّةِ وَإِمَاتَةِ الْبِدْعَةِ لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَ الْجَنَّةِ] کوم خلك چه د سنت د رسول الله ﷺ په قائمولو او د بدعت په ختمولو کښې کوشش کوی نو خامخا ویه ښایم هغوی ته لارے د جنت.

ابو سلیمان الدارانیؒ وائی : [وَالَّذِيْنَ جَاهَدُوْا فِيْمَا عَلِمُوْا لَنَهْدِيَنَّهُمْ إِلَى مَا لَمْ يَعْلَمُوْا) کوم خلك چه کوشش کوی په خپل علم کښې (چه په هغے عمل کوی) خامخا هغه ته به هغه څه وښایم چه دوی پرے نهٔ پو هیږی. (فتح البیان)

او ابن عباس ﷺ فرمائی : [وَالَّذِيْنَ جَاهَدُوْا فِيْ طَاعَتِنَا لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَ الثَّوَابِ] . (معالم التنزیل للبغویؒ) کوم خلك چه زمونږ په طاعت کښې کوشش کوی خامخا هغوی ته به د ثواب لارے وښایم.

لیکن آیت د تولو نه زیات عام دے د دین هرے خبرے سره لگیږی، که تهٔ غواړے چه په یوه دینی مسئله ځان پو هه کړے او حقیقت ته ځان ورسوے نو لږه مجاهده او خواری وکړه الله به درے هغے ته رسوی. ستا نفس کښې یو بد صفت دے، تهٔ غواړے چه دا ما نه لرے شی نو لږه مجاهده وکړه، الله تعالیٰ ئے درنه لرے کوی، او لاره درته ښائی. یو ځای

کښې حکم شرعي درته ګران شو، تا ته به تولے لارے بندے ښکاره کیږي چه دلته په دین عمل خو بیخي نشي کیدے نو لږه مجاهده شروع کړه، الله به درته لارے کولاوے کړي.
دارنګه مفسرین دا د قتال سره هم لګوي، چه څوك د الله تعالیٰ په لاره کښې قتال کوي هغوي ته الله تعالیٰ ناشنا لارے ښائي، نو جهاد سبب د هدایت دے، ډیرو انسانانو ته په سبب د جهادونو هدایت کیږي.
سفیان بن عُیَینَة به وئیل چه کله د عوامو خلکو په یوه مسئله کښې اختلاف راشي، نو هغه علماؤ ته دے رجوع وکړي چه هغوي اصحاب الثغور وي یعنی مجاهدین وي، او د جهاد سره ئے تعلق وي ځکه چه دوي ته الله تعالیٰ ډیر بصیرت ورکړے وي، او کوم خلك چه جهاد نۀ مني نو هغوي باندے دا لارے نۀ کولاویږي.
نو آیت کښې ډیر عموم دے، که غواړے چه په قرآن ځان پوهه کړے نو مجاهده کوه، په آیت کښې سوچ هم کوه، تفسیر هم ګوره، لغت هم مطالعه کوه، نو الله تعالیٰ به درباندے مشکل آیت راکولاؤ کړي.
مَعَ : کښې اشاره ده نصرت ته.
الْمُحْسِنِيْنَ: دا لفظ ئے راوړو اشاره ده چه مجاهده به داسے کوي چه په طریقه د احسان سره به وي چه الله ته به پکښې ګوري. او دے کښې اشاره ده چه بنده ته به هدایت او نصرت هله ملاویږي چه هغه امتحانات برداشت کړي خو صرف د الله تعالیٰ د رضا او د هغه د مخ د خاطره. اَللّٰهُمَّ اجْعَلْنَا مِنْ اَهْلِ الْمُجَاهَدَةِ فِيْكَ وَاهْدِنَا سُبُلَ هِدَايَتِكَ. آمین
وبالله التوفیق

## امتیازات د سورة العنکبوت

۱- پدے سورت کښې ابتلاء ات او د هغے انواع زیات ذکر دي.
۲- مکه کښې د منافقانو تذکره نۀ وه، پدے سورت کښې وشوه.
۳- د مشرکانو د معبودانو مثال د عنکبوت سره ورکړے شویدے.
٤- هجرت ته پکښې ترغیبات زیات دي.

ختم شو تفسیر د سورت عنکبوت په سخته بارانی ورځ، ۷/رمضان، جون٢٠٢٤ هاړ میاشت ۱۰ تاریخ. وخت: ٥:٦ بجے د سهار مانځه نه روستو. د محترم ورور خیر الرحمن په خیمه کښې. اسریت کالام روډ سوات. ولله الحمد اولا وآخرًا.

بسم الله الرحمن الرحيم

| آياتها (٦٠) | (٣٠) سورة الروم مكية | ركوعاتها (٦) |
|---|---|---|

سورت روم مکي دے، په دے کښې شپيتۀ آيتونه او شپږ رکوع دي.

## تفسير سورة الروم

**نوم :** ددے نوم د سورت د دويم آيت ﴿ غُلِبَتِ الرُّوْمُ ﴾ نه اخستے شوے، او پدے کښې د روميانو د مغلوبيت واقعے ته اشاره ذکر شويده.

**د نازليدو زمانه :** قرطبیؒ ليکي چه په غير د إختلاف نه تول سورت مکي دے. او د ابن عباس ﷺ نه نقل دي چه دا سورت په مکه کښې نازل شوے دے.

## مناسبت

١- مخکښې سورت کښې ابتلاء ات ذکر شو نو اُوس وائي چه د ابتلاء نه بعد به د الله تعالیٰ نصرت (مدد) راځي لکه ﴿ وَيَوْمَئِذٍ يَفْرَحُ الْمُؤْمِنُوْنَ بِنَصْرِ اللهِ ﴾.

٢- مخکښې سورت کښې د شرك رد وشو نو دے سورت کښې الله تعالیٰ ډير عقلي دليلونه بيانوي په معرفت د الله تعالیٰ، او د مشرکانو د شرك په رد باندے. د مثالونو او د عقلي دليلونو په طريقه. ګويا که هلته ئے ووئيل چه د مشرکانو معبودان کمزوري دي نو دلته وائي چه الله تعالیٰ ډير قوي ذات دے.

## مقصد د سورت

١- زمونږ مشائخ وائي چه پدے سورت کښې (اَلْبِشَارَةُ بِالنُّصْرَة) دے، مؤمنانو ته زيرے ورکوي چه د الله تعالیٰ مدد راروان دے او ددے تفصيل کوي.

٢- ليکن پس د سوچ نه معلوميږي چه ددے سورت درے موضوعات دي، او د يو بل سره انبتې دي. (١) اَلْبِشَارَةُ بِالنُّصْرَةِ. د الله تعالیٰ په مدد باندے زيرے ورکوي.

(٢) ددے سره دا خبره ملګري کوي چه وعده د الله تعالیٰ حقه ده. بيا د خبرے نه خبره پيدا کيږي نو دا به ووائي چه د الله تعالیٰ د وعدو نه لويه وعده د قيامت د راتللو وعده

ده. ددې وجه نه د آخرت د اثبات دپاره به دومره ډیر دلیلونه بیان کړي چه داسې په بل سورت کښې نشته. د باران او د ګیاه د راتو کولو تذکره ئې پدې سورت کښې څلور کرته مکرر کړیده.

۳- موضوع: پدې سورت کښې ترغیب الی العلم دې. چه چا کښې علم وي نو هغه به د الله وعده رشتینې ګڼړي. او څوك چه جاهل وي، هغه ته کپ او هسې لاپه ښکاره کیږي. پدې وجه پدې سورت کښې به د علم او (لاَ يَعْلَمُوْنَ) لفظ زیات استعمالیږي. او هغه انسان ډیر لوی جاهل دې چه الله تعالیٰ وائي چه زهٔ قیامت راولم او دې وائي چه دا نشي کیدې، نو د الله تعالیٰ وجود او د هغهٔ قدرت مني او هغه ذات وائي چه زهٔ قیامت راولم او په هغې کښې قسماقسم فائدې هم بیانوي او دلیلونه هم درته د هغې په اثبات باندې وائي او دې بیا هم وائي چه د آخرت ورځ نشته او په دنیا کښې بې غمه ژوند تیرول پکار دي، نو دا څومره لوی جهل دې. نو کوم خلك چه آخرت مني چه د الله تعالیٰ وعده حقه ده، مونږ سره به پکښې حساب کتاب کوي او ددې دپاره تیارې کوي نو دا په اصل کښې علماء دي، د داسې خلکو صفت ئې کړیدې.

دلته به په دلائلو کښې د کائناتو تذکره ډیره کیږي نو پدې کښې به ډیرې فائدې راوځي

(۱) یو بَيَانُ عَظَمَةِ الرَّب. (د رب د لوی والي بیان) چه رب لوی ذات دې.

(۲) دویم بَيَانُ قُدْرَةِ اللّٰهِ عَلٰى اِيْفَاءِ الْعَهْدِ. الله چه کومه وعده وکړه نو هغه د هغې په پوره کولو قادر دې. قدرتونو ته ئې وګوره.

(۳) دریم: د شرك رد ورسره کوي چه هر کله الله تعالیٰ لوی ګڼړې نو بیا د بت او بابا عبادت ولې کوې؟.

(٤) او څلورم په اثبات د آخرت به دا دلیلونه وي. پدې خبرو چه څوك پو هیږي هغه علماء دي او چه څوك نهٔ پو هیږي، هغه جاهلان دي، الله به ئې په زړونو باندې مهر ووهي. نو سورت د انسان بنائسته زړهٔ جوړه وي او یو به فکر ورکوي او مهمو خبرو ته ئې متوجه کوي او په غتو خبرو ورله ذهن سازي کوي. بیا ورسره دا خبره خپله ملګری وي چه د دغه الله عبادت به کوې او آخرت له به تیارې کوې او رسول الله ﷺ ئې د هغه بندګیانو د تشریحاتو دپاره رالیږلې دې.

دا سورت به رسول الله ﷺ سهار مانځه کښې لوستلو.

## شان نزول

د رسول الله ﷺ په دور کښې دوه غټې حکومتونه وو يو د روميانو چه هرقل د هغوی مشر وو او د دوی سره اُوسنی یورپی ټول ملکونه وو تر ترکیا پورې او قسطنطینیه او تر زمې د عراق پورې د دوی په قبضه کښې وو. او شام او جزیرة العرب هم د دوی تابع وو.
او بل طرفته فارس والا وو چه د دوی سره ایران، عراق او افغانستان او ټول مشرقی ملکونه وو. دا دوه غټې طاقتونه وو، د دوی په مقابل کښې دوه ډلې نورې وې، یو د مسلمانانو جماعت په مکه کښې چه لږ خلك وو او د دوی په مقابله کښې قریش او عام عرب مشرکان. رومیان اهل کتاب وو، غالباً نصاریٰ وو او فارس والا مجوس او آتش پرست مشرکان وو، د اُور عبادت به ئې کولو، د رسول الله ﷺ او صحابه کرامو حال د رومیانو سره زیات مشابه وو ځکه چه هغوی هم کتاب منی او آخرت منی او په دین کښې ئې شرك نهٔ وو. (اګرکه کافر وو) نو دوی خوشحالیدل چه رومیان غالبه شی، (او دا دواړه ډلې اګرکه کافران وو لیکن د مؤمن د نرم کافر په غلبه باندې خوشحالیدل د ایمان منافی نهٔ دی) او مشرکان قریش د فارس والو په غلبه خوشحالیدل ځکه چه دواړه مشرکان وو، فارس والا مجوس او آتش پرست وو، مجوسیانو به مشرکانو ته اعتراضونه هم خودل چه پدې مسلمانانو دا دا اعتراض وکړئ. ﴿وَإِنَّ الشَّيَاطِينَ لَيُوحُونَ إِلَىٰ أَوْلِيَائِهِمْ﴾ (الانعام: ۱۲۱) آیت کښې ورته اشاره شوې ده.
نو پدې زمانه کښې د ایران بادشاه پرویز په (۶۱۳)، (۶۱۴) عیسوی کال کښې د شام په ملك حمله وکړه، او دمشق او بیت المقدس ئې ونیولو، چه په دغه زمانه کښې د رومیانو په مقبوضه علاقو کښې شامل وو. هرقل بادشاه ئې قسطنطینیه ته مجبوره کړو چه دا په ترکیا کښې ده نو هلته د فوج سره محاصره شو. دا زمانه مدینې ته د نبی کریم ﷺ د هجرت نه اووه کاله مخکښې ده، هر کله چه د مکې کافرانو په مسلمانانو باندې د ظلم او زیاتی غرونه او چتول، او څهٔ مسلمانان حبشې طرفته هجرت کړې وو. د مکې مشرکانو چه د ایرانی آتش پرستانو د فتح موندلو خبرونه واوریدل نو خوشحالئ ئې مناؤ کړې او مسلمانانو ته ئې وویل چه تاسو او نصاریٰ د اهلِ کتاب کیدو دعویٰ کوئ، او مونږ او اهلِ فارس بُت پرست یو. او لکه څنګه چه اهلِ فارس په رومیانو غالبه شول، یوه ورځ به مونږ هم په تاسو غالبه کیږو او د مکې د سرزمین نه به مو بهر وباسو.

نو پدے سره مؤمنان خفه شول، چه زمونږ چه په چا نظر وو هغه مغلوبه شول او دلته راته مشرکان سره سره شول او پيغورونه راکوي نو الله تعالیٰ دے وخت کښې دا سورت نازل کړو، چه په دے کښې د روميانو د مغلوبه کيدو او بيا يو څو کاله روسته د دوئ د غالبه کيدو خبر ورکړے شو، (دا هم يو زيرے وو) او دغه شان د مسلمانانو د غلبے زيرے هم ورکړے شوے. (يعنی داسے دور به راشي چه تاسو باندے به جهاد فرض شي او تاسو به مدينے ته هجرت کولو نه پس مشرکان ووهئ)

مسلمانان ددے آيتونو په نازليدو ډير خوشحاله شو ځکه چه د هغوی خو د الله تعالیٰ په خبره يقين وو چه همداسے به کيږي. مشرکانو چه کله دا خبره واوريده نو د ظاهري حالاتو مطابق ئے دا يو نۀ کيدونکے کار وګڼړلو، او اُبيّ بن خلف د ابو بکر صديق ﷺ سره شرط وتړلو، چه دا هسے خيالي خبره ده، ځکه چه د ظاهري حالاتو مطابق روميان کم او په يوه خاص علاقه کښې محاصره دي دوی به څنګه غلبه وکړي،

او بله دا چه دا مؤمنان خو د وهلو تکولو نه تيريږي نو دوی به د مکے په سردارانو څنګه غلبه وکړي، دا ئے ذهن نۀ منله). دا شرط د سلو اُوښانو وو ابوبکر صديق ﷺ ورته وفرمايل چه که په اوه کاله کښې روميان غالبه شو نو سل اُوښان به راکوے او که پدے موده کښې غالبه نشول نو زۀ به سل اُوښان درکوم. پدے فيصله وشوه پدے کښې ابوبکر صديق ﷺ رسول الله ﷺ ته ددے شرط خبر ورکړو نو رسول الله ﷺ ورته فرمايل چه تا بنه ونکړل ځکه چه قرآن کښې ﴿فِي بِضْعِ سِنِيْنَ﴾ وئيل شويدي او ستا په ژبه کښې بضع څه ته وائي، هغه ووئيل چه د دريو نه تر نهو پورے وي. نو وے فرمايل کيدے شي چه دا فتح د اوو نه په اخوا کلونو کښې وشي نو شرط به وبيلے. نو هغه لاړو او ابی بن خلف ته ئے ووئيل چه پدے شرط کښې به زياتوالے پيدا کړو د سلو په ځای به ديرش اُوښان مقرر کړو ليکن موده به نهه کالو پورے اُوږده کړو. نو په نهه کاله وعده وشوه.

نو وخت تيريدو چه نهه کاله روستو الله تعالیٰ روميان په فارس والو باندے غالبه کړل او د هغوی د غلبے واقعه حافظ عماد الدين ابن کثير رحمه الله په «البدايه والنهايه» او تفسير خپل کښې ليکلے ده چه روميانو فارس والو ته ووئيل چه مونږ به تاسو له جزيه درکوو، دوه سوه اُوښان ډک د سرو زرو، خو زمونږ نه واپس شئ او علاقے به درته پريدو. نو فارس والا پدے خوشحاله شو، نو پدے وخت کښې روميانو فوج تيار کړو او په صندوقونو کښې ئے بند کينول او په اُوښانو ئے بار کړل او دا ئے ايران (کوم چه د فارس والو

دار الحکومة وو) ته ولیږل، د هغوی خیال دا وو چه دا جزیه ده، هغوی چه هلته لاړل نو د هغوی په دار الحکومة باندې ئې حمله وکړه او علاقه کښې ئې ورله ښه فسادونه وکړل او هغه علاقې ئې ونیولې او فارس والا لا دلته غافله د دوی محاصرې ته پراته دی، نو رومیانو فوجونه پرې د شا طرفنه راغلل او دوی ئې هم د تیغ نه تیر کړل او بیرته ئې ترې خپلې علاقې ونیولې او دوی ئې خپلو علاقو ته ورسول او تس نس ئې کړل او ډیرئې پکښې ووژل او ذلیله ئې کړل نو پدې طریقه ورته غلبه ملاؤ شوه۔ او دا هغه زمانه ده چه رسول الله ﷺ هجرت کړیدې او د بدر میدان ګرم دې، او د کفر لوئې کتهئ (ابو جهل، عتبه، شیبه او ولید) مردار شول او فتح مسلمانانو ته حاصله شوه نو دلته دا خبره هم راورسیده چه رومیان په ایرانیانو وروختل او په (٦٢٤ء) کښې ئې د هغوی د تولو نه لوېه آتش کده (د اُور د عبادت ځای) نیست او نابود کړه نو ډیر زیات خوشحاله شول۔ او دوه خوشحالیانې ورته راجمع شوې او مشرکانو ته دوه خفګانه ورسیدل، او پدې طریقه د قرآن کریم معجزانه خبر، او وعده حرف په حرف رشتینې ثابت شوه۔ او الله چه د مخکښې نه کوم خبر ورکړې وو هغه شان واقع شو نو ددې نه الله تعالیٰ بله خبره ثابتوی چه دا خو دنیا کښې الله تعالیٰ یوه وعده وکړه هغه پوره شوه نو دغه شان الله تعالیٰ یوه بله وعده کړې ده چه دا ټول انسانان به د خپل رب سره ملاویږی او دا دنیا به فانی کیږی، بل عالم راتللو والا دې، په هغې کښې به تاسو ټول د الله مخې ته ودریږئ نو په هغې هم یقین وکړئ۔ که ته ووائې چه دا خو انسانان وو چه یو بل ئې په تورو ووهل، غالبه شو، د قیامت وعده به څنګه رشتینې شی نو پدې وجه الله تعالیٰ به خپل قدرت بیان کړی چه زۀ پدې قادر یم څکه چه د آسمانونو او د زمکې او د ټول کائنات پیدائش ته وګوره۔

## ددې واقعې فوائد او علوم

١ – ددې واقعې نه د قرآن کریم او د رسول الله ﷺ رشتینوالې ثابت شو چه کوم خبر ئې ورکړې وو، هغه بالکل رشتینې شو۔

٢ – الله تعالیٰ په دنیا کښې د کافرانو سره امداد کوی دپاره د امتحان۔

٣ – او الله تعالیٰ په بادشاهیو کښې انقلابات راولی پدې کښې ئې هم امتحان غرض وی۔

٤ – د قومونو تاریخ او د جغرافیا علمونه (یعنی د زمکې د علاقو علم چه هغې ته حاضر الْعَالَم وئیلې شی) د قرآن کریم د فهم دپاره ډیر ضروری دی۔

۵- نصرانی کافر چه د الله تعالیٰ د وجود او د توحید اقرار کوی اګر که د کفر نورے وجے پکښې موجودے وی خو هغه په دشمنئ کښې کم دے د هغه کافر نه چه غیر کتابی دے او د الله تعالیٰ د وجود او د هغه د توحید نه منکر وی، لکه دهریان، کمیونسټ او یهودیان وغیره۔

٦- د عربی لغت پیژندل او د عربو محاورے زده کول د قرآن کریم د فهم دپاره انتهائی ضروری دی۔

۷- د ابوبکر صدیق ﷛ په شرط لګولو باندے اعتراض شویدے چه دا خو قمار (جواری) ده نو بیا رسول الله ﷺ څنګه اجازه ورکړه ؟ جواب دا دے چه پدے وخت کښې لا دا شرط نهٔ وو حرام شوے او جواری هم نهٔ وه حرامه۔ روستو زمانه کښې حرامه شوه لکه دا خبره د قتادة نه نقل ده۔ او چا چه دا وئیلی دی چه دا عقد د کافرانو سره په دار حرب کښې وو او داسے عقود فاسده او ربا (سود) د کافرانو سره جائز دے لکه دا د امام ابوحنیفه رحمه الله مذهب دے نو دا قول صحیح نهٔ دے۔ بلکه په روایت کښې راغلی دی چه ابوبکر صدیق ﷛ کله دغه شرط وګټلو نو رسول الله ﷺ ته ئے راوستل نو هغه وفرمایل : [هٰذَا السُّحْتُ تَصَدَّقْ بِهٖ) دا حرام دی دا صدقه کړه۔ (فتح البیان)

| الٓمّٓ ﴿۱﴾ غُلِبَتِ الرُّوْمُ ﴿۲﴾ فِیْٓ اَدْنَى الْاَرْضِ وَهُمْ مِّنْۢ بَعْدِ غَلَبِهِمْ |
|---|
| الم۔ مغلوبه کړے شو رومیان۔ په نزدے زمکه کښې (عربو ته) او دوی روستو د مغلوبیت |
| سَيَغْلِبُوْنَ ﴿۳﴾ فِیْ بِضْعِ سِنِیْنَ لِلّٰهِ الْاَمْرُ |
| د دوی نه زردے چه غالبه کیږی به۔ په یو څو کلونو کښې، خاص الله لره پوره اختیار دے |
| مِنْ قَبْلُ وَمِنْۢ بَعْدُ وَيَوْمَئِذٍ يَّفْرَحُ الْمُؤْمِنُوْنَ ﴿۴﴾ بِنَصْرِ اللّٰهِ |
| مخکښې او روستو او په دغه ورځ به خوشحاله شی مؤمنان۔ په مدد د الله تعالیٰ سره |
| يَنْصُرُ مَنْ يَّشَآءُ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ﴿۵﴾ |
| مدد کوی هغه چا سره چه اُوغواړی او هغه غالبه رحم کونکے دے۔ |

**تفسیر** : دا حروف مقطعات دی، چه ددے معنیٰ الله ښه پیژنی، او د قرآن کریم اعجاز او حقانیت ته پکښې اشاره ده۔

غُلِبَتِ : یعنی اوس خو رومیان مغلوبه کړے شو او د فارس والو نه ئے شکست وخوړو۔

الرُّوۡمُ: روم دا د عیص بن اسحاق بن ابراهیم علیه السلام خوی دے۔ معلومیږی چه دوی د بنی اسرائیلو تربوران دی ځکه چه هغوی د یعقوب بن اسحاق علیهما السلام د اولادو نه دی۔ او عرب د اسماعیل علیه السلام په اولاد کښ دی۔ دا ټول د ابراهیم علیه السلام نه پیدا دی۔

﴿ اَدۡنَى الۡاَرۡضِ ﴾ یعنی د رومیانو هغه زمکه (مُلك) چه عربو ته نزدے وه په نسبت د فارس۔ او دغه زمکه د شام او بُصریٰ ده۔ بعض وائی چه الارض کښ الف لام عهدی دی او معهود پدے سره زمکه د رومیانو ده یعنی د رومیانو هغه علاقه کومه چه د اهلِ فارس د علاقے سره ډیره نزدے وه، یعنی د دمشق او بیت المقدس هغه علاقه چه په هغے کښ رومیانو ماتے خوړلے وه۔

غَلَبِهِمۡ : غلب مصدر مبنی للمفعول دے۔ اَیۡ مَغۡلُوۡبِیَّتِهِمۡ۔ یعنی روستو د مغلوبه کیدو د دوی نه۔ یا عبارت کښ تقدیر دے : [مِنۡ بَعۡدِ غَلَبَةِ فَارِسَ عَلَیۡهِمۡ] روستو د غلبے د فارس نه په دوی باندے۔

بِضۡعِ سِنِیۡنَ: بضع په عربئ ژبه کښ د دریو نه واخله تر نهو یا لسو پورے استعمالیږی۔ ﴿ لِلّٰهِ الۡاَمۡرُ ﴾ یعنی د رومیانو اول مغلوبه کیدل او بیا د یو څو کالو نه پس د دوئ غالبه کیدل، د الله د فیصلو او د هغهٔ د قضاء او قدر مطابق وه۔ د دواړو حالتونو حکمتونه او مصلحتونه صرف هم هغهٔ پیژندل۔ لکه څنګه چه الله تعالیٰ د سورتِ آل عمران په آیت (۱٤۰) کښ فرمایلی : ﴿ وَتِلۡكَ الۡاَیَّامُ نُدَاوِلُهَا بَیۡنَ النَّاسِ ﴾ (اوموږ دا ورځے د خلقو ترمینځه بدلوو رابدلوو)۔

او دا جمله جواب د سوال هم صحیح کیږی۔ سوال : مخکښ الله تعالیٰ رومیان ولے مغلوبه کول، ولے آیا دے وخت کښ د الله تعالیٰ قدرت نهٔ وو څه؟ جواب وشو چه د مخکښ روستو ټولو کارونو اختیار د الله په لاس کښ دے لیکن حکیم دے، کله د حکمة د وجه نه بنه خلك مغلوبه کړی۔

مِنۡ قَبۡلُ : اَیۡ مِنۡ قَبۡلِ کُلِّ شَیۡءٍ۔ د هر شی نه مخکښ او روستو۔ یا مخکښ د غلبے د رومیانو او روستو د غلبے د رومیانو نه۔

﴿ وَیَوۡمَئِذٍ یَّفۡرَحُ الۡمُؤۡمِنُوۡنَ ﴾ مسلمانانو ته دوچنده خوشحالی نصیب شوه۔ یوه ددے خبرے خوشحالی چه اهلِ روم ته چه اهلِ کتاب وو، د فارس په مشرکانو غلبه حاصله

شوه۔ او بله خوشحالي دوئ ته په همدے کال د بدر په میدان کښې د قریشي کافرانو په ماتے خوړلو سره حاصله شوه، چه ددے زیرے قرآن کریم دوئ له نهه کاله مخکښې ورکړے وو۔ نو پدے کښې بله معجزه ده چه الله تعالیٰ د بدر د فتح د خوشحالئ خبر ایمان والو ته د مخکښې نه ورکړے وو او بیا همغه شان واقع شوه۔

بِنَصۡرِ اللّٰهِ: د الله تعالی ددے مدد نه مراد په بدر کښې غلبه ده۔

يَنۡصُرُ مَنۡ يَّشَآءُ وَهُوَ الۡعَزِيۡزُ الرَّحِيۡمُ: الله په خپلو بندګانو کښې چاسره چه غواړی مدد کوی څکه چه همغه بهر حال غالب دے، په هر شئ قادر دے او په خپلو نیکانو بندګانو بیحده مهربان دے۔

| وَعۡدَ اللّٰهِ لَا يُخۡلِفُ اللّٰهُ وَعۡدَهٗ وَلٰكِنَّ اَكۡثَرَ النَّاسِ |
|---|
| (وعده کړیده) الله تعالیٰ وعده خلاف نهٔ کوی د وعدے خپلے نه لیکن ډیر د خلقو نه |
| لَا يَعۡلَمُوۡنَ ﴿٦﴾ يَعۡلَمُوۡنَ ظَاهِرًا مِّنَ الۡحَيٰوةِ الدُّنۡيَا وَهُمۡ عَنِ الۡاٰخِرَةِ هُمۡ غٰفِلُوۡنَ ﴿٧﴾ |
| نهٔ پوهیږی۔ پوهیږی دوی په ظاهر د ژوند دنیوی او دوی د آخرت نه هم دوی غافل دی۔ |
| اَوَلَمۡ يَتَفَكَّرُوۡا فِيۡۤ اَنۡفُسِهِمۡ مَا خَلَقَ اللّٰهُ |
| (ناخبره دی)۔ آیا فکر نهٔ کوی دوی په نفسونو خپلو کښې نهٔ دی پیدا کړیدی الله تعالیٰ |
| السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضَ وَمَا بَيۡنَهُمَاۤ اِلَّا بِالۡحَقِّ |
| آسمانونه او زمکه او همغه څه چه په مینځ ددے کښې دی مګر په حق سره |
| وَاَجَلٍ مُّسَمًّى وَاِنَّ كَثِيۡرًا مِّنَ النَّاسِ بِلِقَآئِ رَبِّهِمۡ لَكٰفِرُوۡنَ ﴿٨﴾ |
| او په نیټه مقرر سره او یقیناً ډیر د خلقو نه د ملاقات د رب خپل نه خامخا منکر دی۔ |

**تفسیر:** یعني دا وعده به پوره کیږی څکه چه دا هسے وعده نهٔ ده بلکه دا د الله تعالیٰ وعده ده چه ضرور پوره کیدونکے ده۔

وَلٰكِنَّ اَكۡثَرَ النَّاسِ: کله نا کله الله تعالیٰ په وعده کښې تاخیر وکړی، وخت ئے ډیر وی، نو خلك ګمان وکړی چه دا نهٔ واقع کیدونکے ده، لکه د قیامت وعده الله تعالیٰ کړیده خو

وخت پرے ډیر تیر شو نو ډیرو انسانانو ددے نه انکار وکړو۔ دا خلك جاهلان دی۔

لَا يَعْلَمُوْنَ: یعنی د الله په طاقت او کمال نهٔ پو هیږی۔ الله چه کومه وعده کوی، خامخا هغـه د هغے په پوره کولو باندے قادر وی، بله دا چه د الله نه هیریږی نهٔ او الله خطا کیږی نـهٔ، نـو څـوك چـه وائـی نهٔ به راځی نو دے به یا د الله قدرت نهٔ منی، یا به الله ته د خطاء او هیرے نسبت کوی او دا ټول د جهالت خبرے دی۔

او لا یعلمون دا معنیٰ هم ده چه دوی نهٔ پو هیږی په مدد د الله تعالیٰ پدے وجه ددے انقلاباتو نسبت الله تعالیٰ ته نهٔ کوی۔

يَعْلَمُوْنَ ظَاهِرًا: پدے کښ رټنه ورکوی پدے خبره چه دوی د دنیا تجربے او علمونه خو ښـه پیژنی، په کسبونو او تجارتونو او زمینداریٔ او د دنیا د آبادیٔ په کارونو کښ خو ښه ماهر دی، د دنیا غلط سیاست ورله ښه ورځی، جهازونه ئے جوړ کړل لیکن د آخرت نه بیخی ناخبره دی۔ حسن بصریؒ وائی: [إِنَّ أَحَدَهُمْ لَيَنْقُرُ الدِّرْهَمَ بِطَرَفِ ظُفْرِهِ فَيَذْكُرُ وَزْنَهُ وَلَا يُخْطِئُ وَهُوَ لَا يُحْسِنُ يُصَلِّيَ] یو تن به روپیٔ په نوك باندے وګروی نو د هغے صحیح وزن به ذکر کړی چه پکښ نهٔ به خطاء کیږی لیکن مونځ به ورله ښه نهٔ ورځی۔

یو د دنیا ظاهر دے او بل ئے حقیقت دے۔ د دنیا په ظاهر خو کافران ښه پو هیږی چه کله ورتـه د دنیا څـه مادی فائده په نظر راځی نو هیڅکله د هغے نه نهٔ روستو کیږی بلکه په ډیر تکلیف سره ئے هم حاصلوی۔ او بل د دنیا حقیقت دے، نو د دنیا حقیقت دا دے چه دا مجاز دے چه حقیقت ئے نشته، حقیقت ئے دا دے چه دا فانی ده او د ماشی د وزر نه کمه ده، او د دهوکے کور دے، زر ختمیدونکے ده۔ او دے پورے چه څوك انښتے دے هغه ذلیل دے۔ صاحب د فتح البیان وائی چه د دنیا باطن دا دے چه دا د آخرت دپاره لاره ده، چه ددے نه د آخرت دپاره په طاعت او اعمال صالحه و سره توښه اخستلے کیږی۔

بعض وائی: [يَعْلَمُوْنَ وُجُوْدَهَا الظَّاهِرَ وَلَا يَعْلَمُوْنَ فَنَاءَهَا] یعنی د دنیا په ظاهری وجود باندے پو هیږی لیکن پدے نهٔ پو هیږی چه دا به فانی کیږی او ددے نه روستو بل ژوند شته۔

**فائده**: مخکښ ئے ووئیل (لَا يَعْلَمُوْنَ) نهٔ پو هیږی او دلته وائی (يَعْلَمُوْنَ) پو هیږی۔ نو مطلب دادے چه دوی رب او آخرت او خپله کامیابی نهٔ پیژنی او دنیا ښه پیژنی۔ او دویم بدل دے د اول نه او پدے بدلیت کښ فائده دا ده چه دا دلیل دے چه هغه علم چه د دنیا د حاصلولو نه اخوا آخرت ته نهٔ رسیږی دا او جهالت برابر دی۔ (قاله الزمخشری

-القاسمی وفتح البیان)
عَنِ الْاٰخِرَةِ هُمْ غٰفِلُوْنَ: دے کښې ډیر تاکید دے یعنی دوی د غفلت کانونه (معدنونه) کرځیدلی دی۔
اَوَلَمْ یَتَفَکَّرُوْا: اُوس د اثبات د آخرت دپاره دلائل بیانوی۔ او په انکار د توحید او د بعث بعد الموت باندے رټنه ورکوی۔
اَیَغْفُلُوْنَ عَنِ الآخِرَةِ وَلَمْ یَتَفَکَّرُوْا۔ آیا دوی د آخرت نه غفلت کوی او کائناتو کښې فکر نکوی۔
فِیْ اَنْفُسِهِمْ : ۱- ددے یوه معنیٰ دا ده چه د انفس نه مراد زړونه دی یعنی دوی په زړونو کښې فکر نکوی یا د ځانونو سره فکر نکوی، او فکر په کومه خبره کښې وکړی؟ نو (مَا خَلَقَ اللّٰهُ) د هغے بیان دے۔ یعنی پدے کښې دے فکر وکړی۔ یا دلته عبارت پټ دے یعنی دا فکر دے ددے دپاره وکړی (لِیَعْلَمُوْا) چه پوهه شی پدے خبره الخ۔ او ددے مطلب به دا وی چه دوی ته د فکر اسباب حاصل دی چه هغه د دوی نفسونه دی که دوی په هغے سره مناسب فکر وکړو نو د الله تعالیٰ په وحدانیت او د هغهٔ د رسولانو په صدق به پوهه شی۔ (فتح)
۲- یا د خپلو ځانونو په احوالو کښې فکر مراد دے۔ او (مَا خَلَقَ اللّٰهُ) : دا به نتیجه د فکر وی۔ یعنی دا نتیجه به راوباسی چه کائنات عبث نهٔ دی پیدا۔
یعنی فکر وکړئ تاسو ته به دوه خبرے حاصلے شی، یو دا چه دا کائنات الله تعالیٰ د یو حقیقت او حکمة دپاره پیدا کړیدی چه هغه د الله تعالیٰ راضی کول او د هغهٔ بندګی کول دی۔ او دا عبث نهٔ دی پیدا۔ او بل دا چه (وَاَجَلٍ مُّسَمًّی) دا آسمانونه او کائنات به همیشه نهٔ وی، بلکه ددے د فانی کیدو دپاره یوه نیټه مقرر ده، دا د فکر نه څنګه معلومیږی؟ نو هغه پدے طریقه چه دا نظام د عالَم روان دے او د هر نظام یوه نتیجه وی، او د هغے دپاره به وخت مقرر وی۔ نو اجل مسمی نه مراد فناء د عالَم ده چه د هغے نه روستو به بعث بعد الموت وی۔
وَاِنَّ کَثِیْرًا: پدے کښې زجر دے په انکار د قیامت سره۔
**فائده** : په مخکښې (٦) آیت کښې ئے (اَکْثَرَ النَّاسِ) وویل او دلته ئے کَثِیْرًا وویل؟ ددے یوه وجه دا ده چه بے علمه او دنیا پرست خلك ډیر زیات دی لیکن د قیامت منکرین د هغوی په نسبت سره کم دی۔ دویم دا چه د دلائلو د ذکر کولو نه مخکښې اکثر خلك

منکر وي او د دلائلو ذکر کولو نه روستو منکرین په نسبت د مخکښې سره لږ کم شي۔
(احسن الکلام)

| اَوَلَمۡ يَسِيۡرُوۡا فِى الۡاَرۡضِ فَيَنۡظُرُوۡا كَيۡفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِيۡنَ |
|---|
| آیا نهٔ گرځي دوی په زمکه کښې نو چه اُوګوري چه څنګه شو انجام د هغه کسانو |
| مِنۡ قَبۡلِهِمۡ كَانُوۡۤا اَشَدَّ مِنۡهُمۡ قُوَّةً وَّاَثَارُوا الۡاَرۡضَ |
| چه مخکښې وو د دوی نه، وو هغوی سخت د دوی نه په طاقت کښې او اړولے ئې وه زمکه |
| وَعَمَرُوۡهَاۤ اَكۡثَرَ مِمَّا عَمَرُوۡهَا وَجَآءَتۡهُمۡ |
| او آباده کړے وه هغه زیات د هغې نه چه آباده کړے ده دوی او راغلی وو هغوی ته |
| رُسُلُهُمۡ بِالۡبَيِّنٰتِ‌ؕ فَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيَظۡلِمَهُمۡ وَلٰـكِنۡ |
| رسولان د هغوی په ښکاره معجزاتو نو نهٔ وو الله چه ظلم وکړي په دوی باندے لیکن |
| كَانُوۡۤا اَنۡفُسَهُمۡ يَظۡلِمُوۡنَ ﴿۹﴾ ثُمَّ كَانَ عَاقِبَةَ الَّذِيۡنَ اَسَآءُوا |
| وو دوی چه د ځانونو خپلو سره ئې ظلم کولو۔ بیا شو انجام د هغه کسانو چه بدی ئې کړے |
| السُّوۡۤاٰى اَنۡ كَذَّبُوۡا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَكَانُوۡا بِهَا |
| وه ناکاره، (پدے وجه) چه دروغژن ئې کړل آیتونه د الله تعالیٰ او وو دوی چه په هغې پورے |
| يَسۡتَهۡزِءُوۡنَ ﴿۱۰﴾ اَللّٰهُ يَبۡدَؤُا الۡخَـلۡقَ ثُمَّ يُعِيۡدُهٗ |
| به ئې توقے کولے۔ الله تعالیٰ ابتدائی پیدائش کوی بیا به ئې دوباره کوی |
| ثُمَّ اِلَيۡهِ تُرۡجَعُوۡنَ ﴿۱۱﴾ |
| بیا به خاص هغه ته ورګرځولے شئ تاسو۔ |

**تفسیر:** اُوس د دنیا تخویف ورکوی پدے طریقه چه یو تن د الله ملاقات او آخرت نهٔ منی نو ددهٔ خبره غلطه ده ځکه چه پخوانو خلکو به نهٔ منله نو الله هلاك کړل، نو هلاکت د اقوام مکذبه و (چه آخرت ئې نهٔ منلو) ښه ده ددے خبرے چه قیامت حق دے۔ یعنی د مرګ نه پس د دوباره ژوند منکرین دے د هغه مخکنو قومونو علاقو ته لاړ

شي او د هغوی نه دي عبرت حاصل کړی چه هغوئ لره الله تعالیٰ د هغوئ د کفر او سرکشئ او د آخرت نه د انکار په وجه هلاك کړی وو. که څوك ووائي چه ددوی به طاقت نهٔ وو نو الله فرمائي چه دا خلق ډیر زیات طاقتور وو، دا قوة الابدان شو.

وَّ اَثَارُو الْاَرْضَ: یعني فصلونه ئې کرلی وو او د زمکې نه ئې معدنیات، رنګارنګ کانونه را اوخکلی وو،

وَعَمَرُوهَا: لوی لوی عمارتونه ئې جوړ کړی وو، مختلف قِسم څیزونه ئې ایجاد کړی وو، او د دنیوی ژوندون نه بنهٔ فائده مند شوی وو، اوږده اوږده عمرونه ئې وو، تردې چه د خپلو خواهشاتو غلامان جوړ شول، خپل خالق ئې بیخي هیر کړو، او آخرت د هغوئ د سترګونه غائب شو، نو الله تعالیٰ د هغوئ په حال باندې رحم وکړو او د هغوئ د هدایت دپاره ئې رسولانو له بښکاره معجزات ورکړل او را وې لیږل، لیکن هغوئ دا دروغژن وګنړل او په خپل کفر او سرکشئ باندې ټینګ پاتې شول، نو الله تعالیٰ دوئ هلاك کړل. او د دوئ دا بد انجام د دوئ د بدونو عملونو نتیجه وه، دوئ خپله په خپلو ځانونو ظلم کړې وو، الله په دوئ باندې ظلم نهٔ وو کړې. دا خو دوئ سره په دنیا کښې اوشو.

اَکْثَرَ مِمَّا عَمَرُوْهَا: اُوسني کمزوری دی نو آبادیانې ئې هم کمزورې او وړې دی او د پخوانو آبادیانې مضبوطې وې او بدنونه ئې غټ وو نو کورونه ئې هم غټ.

وَجَآءَ تْهُمْ: یعني رسولانو بنهٔ پوهه کړی وو.

ثُمَّ کَانَ عَاقِبَةَ الَّذِیْنَ: دا یا د دنیا عذاب دې. یا د آخرت. او پدې آیت کښې د دوه ترکیبونو د وجه نه دوه تفسیره دی (۱) (عَاقِبَةَ) خبر د کان او (اَلسُّوْٓاٰی) ئې اسم دې او اَلسُّوْٓاٰی صفت د عاقبة دې، اَیِ الْعَاقِبَةُ السُّوْٓاٰی نو معنیٰ به دا وی: بیا شو بد انجام انجام د الله هغه کسانو چه بد بد کارونه ئې کړی وو. بیا د (اَسَاءُوْا) تشریح دا ده (اَنْ کَذَّبُوْا) یعني پدې وجه چه دوی بد عمله وو چه د الله تعالیٰ آیتونه ئې دروغجن ګنړلی وو. او دا بد عملی سبب شو د بد انجام د دوی.

۲– ظاهر دا ده چه اَلسُّوْٓاٰی مفعول مطلق د (اَسَاءُوْا) دې او (اَنْ کَذَّبُوْا) ئې اسم د کَانَ او عاقبةَ ئې خبر دې. معنیٰ دا ده: ((بیا شو انجام د هغه کسانو چه بد بد کارونه ئې کول چه د الله د آیتونو تکذیب ئې وکړو)) نو دا تکذیب او استهزاء د دوی د بدئ انجام شو. او مطلب دادې چه کله دوی ته پیغمبران راغلل او بینات ئې بیان کړل، چا ومنل او چا ونهٔ منل؟ نو الله فرمائي چه هغه کسان چه بد عمله او د مخکښې نه بد اخلاقه خلك وو، نو

هغوی ته چه کله پیغمبرانو معجزات پیش کړل نو هغوی ورپسے توقے شروع کړے او کوم انسانانو کښې چه ښه اخلاق او نیك عملي وه نو هغوی د پیغمبرانو تابع شو۔ او دا واقعي خبره ده چه کوم ډیر خبیث خلك وی، په دعوت کښې هغه ډیر سخت خرابیږی، په ضد کښې راځی او چا کښې چه څه نا څه انابت وی، گوزاره کوی نو هغوی ته الله تعالیٰ هدایت کوی۔ په ابوبکر او عمر او عثمان وغیره صحابه کرامو رضوان الله علیهم اجمعین کښې سرې توب او اخلاق او نیك صفات وو نو ځکه ورته د ایمان توفیق ملاؤ شو او ابوجهل او ولید او عتبه او شیبه او نضر بن الحارث کښې بد اخلاقیانے او خباثتونه وو نو الله توفیق ورنکړو۔

او که دا د آخرت د عذاب سره ولگی نو معنیٰ به دا وی : ((بیا شو جهنم (چه د تولو بدیانو مرکز دے) انجام د هغه کسانو چه بد بد عملونه ئے کړی وو۔ پدے وجه چه د الله آیتونه ئے دروغجن گنړلی وو۔ نو اَلسُّوْٓئٰ د جهنم نوم دے، او دا په ترکیب کښې اسم د کَانَ او عَاقِبَةَ ئے خبر دے۔ لیکن اولنی احتمالات غوره دی۔

اَللّٰهُ يَبْدَؤُا الْخَلْقَ : دا دریم دلیل عقلی دے دپاره د اثبات د آخرت، او د رد د شرك او د الله تعالیٰ د معرفت۔ نو د اثبات د آخرت دپاره یوځدلیل د کائناتو پیدائش، دویم د پخوانو هلاکت، دریم ابتدائی پیدائش کول۔

یعنی الله تعالیٰ انسانان اول ځل پیدا کړی، او هم هغه به دویٔ دوباره ژوندی کوی، او د حساب او جزاء دپاره به ئے جمع کوی۔

| وَيَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ يُبْلِسُ الْمُجْرِمُوْنَ ﴿١٢﴾ وَلَمْ يَكُنْ لَّهُمْ |
|---|
| او په کومه ورځ چه قائم شی قیامت نا اُمیده به شی مجرمان۔ او نۀ به وی دوی لره۔ |
| مِّنْ شُرَكَآئِهِمْ شُفَعٰٓؤُا وَكَانُوْا بِشُرَكَآئِهِمْ كٰفِرِيْنَ ﴿١٣﴾ وَيَوْمَ |
| د برخه دارانو د دوی نه سفارشیان، او شی به د شریکانو خپلو نه منکران۔ او په هغه ورځ |
| تَقُوْمُ السَّاعَةُ يَوْمَئِذٍ يَّتَفَرَّقُوْنَ ﴿١٤﴾ فَاَمَّا الَّذِيْنَ |
| چه قائم شی قیامت پدغه ورځ به دوی جدا جدا شی۔ پس هرچه هغه کسان دی |
| اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فَهُمْ فِيْ رَوْضَةٍ |
| چه ایمان ئے راوړیدے او عملونه ئے کړیدی نیك نو دوی به په باغیچو کښې وی |

| یُحۡبَرُوۡنَ ﴿۱۵﴾ وَاَمَّا الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا وَ کَذَّبُوۡا |
|---|
| خوشحالولے به شي۔ او هرچه هغه کسان دي چه کفرئے کړیدے او دروغژن ئے ګڼړلي دي |
| بِاٰیٰتِنَا وَلِقَآءِ الۡاٰخِرَۃِ فَاُولٰٓئِکَ فِی الۡعَذَابِ مُحۡضَرُوۡنَ ﴿۱۶﴾ |
| آیتونه زمونږ او ملاقات د آخرت، نو دغه کسان به په عذاب کښې حاضر کړے شي۔ |
| فَسُبۡحٰنَ اللّٰهِ حِیۡنَ تُمۡسُوۡنَ وَ حِیۡنَ تُصۡبِحُوۡنَ ﴿۱۷﴾ |
| پس پاکي وایئ الله لره په هغه وخت چه بیګاه کوئ تاسو او په هغه وخت چه صبا کوئ |
| وَلَهُ الۡحَمۡدُ فِی السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ وَعَشِیًّا |
| تاسو۔ او خاص هغه لره صفتونه دي په آسمانونو او زمکه کښې او په مازیګری کښې |
| وَّ حِیۡنَ تُظۡهِرُوۡنَ ﴿۱۸﴾ |
| او په کوم وخت چه ماسپښین کوئ تاسو۔ |

**تفسیر** : کله چه قیامت راشي نو مجرمان به نا اُمیدئ ته ورسیږي ځکه چه دوی دا ورځ نۀ منله او ناڅاپي پرے راغله، نو اُوس نۀ بیرته دنیا ته د واپسئ پروګرام شته، او نۀ د نیك عمل کولو چانس شته صرف یو شے پاتے شو چه د دوی باطل معبودان او باباګان وو نو آیا هغوی به ورسره مدد وکړي؟ نو الله د هغے نفي کوي چه د کومو باطلو معبودانو ئے په دنیا کښې عبادت کولو او ګمان ئے لرلو چه دوئ به د الله په نیز د دوئ سفارشي جوړیږي، په دغه ورځ به د دوئ هیڅ په کار رانشي، نو د دوئ نا اُمیدی به نوره هم زیاته شي۔ او د همدے نا امیدئ په عالَم کښې به ددے دروغژنو معبودانو نه انکار کوي، ځکه چه د دوی د عبادت په وجه خو دوی باندے د جهنم فیصله وشوه۔ او دارنګه دوی ته به پته ولګي چه ددے معبودانو خو مونږ ته هیڅ فائده رانکړه نو دا مونږ ځنګه آلِهه ګڼړل۔ معلومه شوه چه دا د الله تعالیٰ سره شریکان نۀ وو۔ لیکن ددے انکار هیڅ فائده به دوئ ته نۀ رسیږي۔

**یُبۡلِسُ**: اِبلاس : چپ کیدل او حیرانیدل د وجه دے دلیله کیدلو نه۔

کلبیؒ وائي : مشرکان به نا اُمیده شي د هر خیر نه کله چه عذاب ویني۔ او د ابن عباسؓ نه د اِبلاس معنیٰ په شرمیدو / او سخت غمجن کیدو سره هم نقل ده۔ (فتح البیان)

وَيَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ: اُوس بیا د آخرت تذکره کوی او داسے تصویر ورکوی کویا که بنده هغے ته کوری او دا څکه چه د آخرت هیبت زیات دے، او خبره ډیره مُهمه ده۔
يَتَفَرَّقُوْنَ: د حساب د مرحلے نه د تیریدو نه پس به مومن اوکافر جدا جدا شی، دوه ډلے به جوړے شی، مومنان به جنت ته ولیږلے شی او کافران به جهنم ته وسپارلے شی، بیا به هیڅ کله جمع نشی۔
رَوْضَةٍ: روضه هر هغه زمکه ده چه ګیاهګانے او اُوبه او شنه بوټی او تازګی پکښ وی او ډیر فراخه وی۔
يُحْبَرُوْنَ: حِبره به ئے د یمن ښائسته جامو ته وئیلے چه د هغے په اچولو به بنده خوشحالیدو۔ او حِبَره او حُبُور خوشحالئ ته هم وائی۔ نو ددے معنیٰ ده:
١- [يُنَعَّمُوْنَ /وَيُسَرُّوْنَ] دوی له به نعمتونه ورکولے او دوی به خوشحالولے شی۔
٢- [يُحَلَّوْنَ] دوی ته به ګاڼړے او ښائسته جامے اغوستولے شی۔
٤- [يُكْرَمُوْنَ] د دوی به عزت او اکرام کیدے شی۔ (قاله الکسائیؒ نقله النحاسؒ)۔
٥- دوی باندے به د جنت ګانے آورولے شی۔ (بغویؒ)
لیکن د خوشحالئ معنیٰ ئے د عربی لغت سره ډیره برابره ده۔
فَسُبْحٰنَ اللهِ: مخکښ آیتونو کښ د مومنانو او کافرانو انجام بیان شو، نو اُوس د جنت د حاصلولو او د جهنم د عذاب نه د نجات وسیله او أسباب بیانوی۔ واحدیؒ د مفسرینو قول نقل کړے چه دلته ﴿فَسُبْحَانَ اللهِ﴾ د [صَلُّوْا لِلّٰهِ] په معنیٰ سره دے، یعنی الله دپاره مونځ کوئ۔ نحاسؒ وائی: په دے آیتِ کریمه کښ د پنځو وارو مونځونو حکم ورکړے شوے۔ ابن مردویهؒ، عبد الرزاقؒ، ابن جریرؒ او حاکمؒ وغیره د ابن عباس ﷺ نه روایت کړے چه په دے آیتِ کریمه کښ د پنځو وارو مونځونو اوقات بیان شوی دی۔
فَسُبْحٰنَ: فاء د تفریع دپاره ده او سُبْحَان مفعول مطلق د سَبِّحُوْا دے۔ یعنی تاسو پاکی ووایئ پاکی الله تعالیٰ لره۔ مفسرین لیکی: چونکه په مانځه کښ د الله پاکی بیانیږی، او د هغهٔ حمد اوثنا کیږی، دے وجے نه ددے نه په تسبیح او تحمید سره تعبیر شوے دے۔
د ﴿تُمْسُوْنَ﴾ نه د ماښام او ماسخوتن او د ﴿تُصْبِحُوْنَ﴾ نه د سهار مونځ مراد دے۔ او د ﴿عَشِيًّا﴾ نه د مازیګر او د ﴿تُظْهِرُوْنَ﴾ نه د ماسپخین مونځ مراد دے۔ (یعنی کله چه تاسو په غرمه کښ داخلیږئ) معلومه شوه چه د جنت حاصلولو او د جهنم د اُور نه د نجات د تهولو نه لویه ذریعه پنځه وخته مونځونه په خپل خپل وخت اداء کول دی۔ او

ورسره د الله تعالیٰ پاکی او لائق صفتونه بیانول او د سهار او ماښام ذکر اذکار کول دی۔ نو چا چه پدے پنځه اُوقاتو کښې مونځونه وکړل نو دهٔ د الله پاکی بیان کړه، ځکه چه په مانځه کښې سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ، سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيْم، سُبْحَانَ رَبِّيَ الْاَعْلٰى او قسماقسم اذکار کیږی۔

وَلَهُ الْحَمْدُ فِي السَّمٰوٰتِ: دائے په مینځ کښې ځکه راوړل چه یواځے تسبیح نهٔ بلکه د الله حمدونه به هم وایئ ځکه چه تسبیح کښې صفات سلبی وی او تحمید کښې صفات ثبوتی وی۔ په تسبیح سره توحید نهٔ کامل کیږی مګر چه حمد ورسره ملګرے شی، یعنی الله د هر قسم عیب نه پاك دے نو د هغه دپاره ښکلے او مزیدار د کمال صفتونه هم شته۔

| |
|---|
| يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَيُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ وَيُحْيِ الْاَرْضَ |
| را اُوباسی الله ژوندے د مړی نه او را اُوباسی مړے د ژوندی نه او ژوندئ کوی زمکه |
| بَعْدَ مَوْتِهَا وَ كَذٰلِكَ تُخْرَجُوْنَ ﴿١٩﴾ وَمِنْ اٰيٰتِهٖ اَنْ |
| روستو د اُوچوالی د هغے نه او دغسے به راویستلے کیږئ تاسو۔ او بعض د نخو د الله نه دا |
| خَلَقَكُمْ مِّنْ تُرَابٍ ثُمَّ اِذَا اَنْتُمْ بَشَرٌ تَنْتَشِرُوْنَ ﴿٢٠﴾ وَ |
| ده چه پیدا ئے کړئ تاسو د خاورے نه بیا دغه وخت تاسو بندګان خوارهٔ وار شوئ۔ او |
| مِنْ اٰيٰتِهٖ اَنْ خَلَقَ لَكُمْ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ |
| بعض د نخو (د قدرت او توحید) د هغه نه دا ده چه پیدا کړی ئے دی تاسو لره د نفسونو |
| اَزْوَاجًا لِّتَسْكُنُوْا اِلَيْهَا وَجَعَلَ بَيْنَكُمْ |
| ستاسو نه بیبیانے چه آرام حاصل کړئ هغوی ته او ګرځولے ئے دے په مینځ ستاسو کښې |
| مَّوَدَّةً وَّرَحْمَةً اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّتَفَكَّرُوْنَ ﴿٢١﴾ |
| مینه او مهربانی کول یقیناً پدے کښې خامخا دلیلونه دی دپاره د هغه قوم چه فکر کوی۔ |

**تفسیر:** الله تعالیٰ د خپلو بندګانو د طرفه د تسبیح او تحمید او د طاعت او بندګئ حقدار ځکه دے چه د هغهٔ ذات قادرِ مطلق دے، هغه په هره خبره، هر شئ او په هر فعل

باندے بیشکه قادر دے۔ هغه ژوندیے د مړی نه را اویاسی، لکه انسان د نطفے نه او مرغئ د هګئ نه را اوباسی۔ او نطفه (چه په دے کښې په ظاهره څۀ روح نۀ وی) د انسان نه او هګئ د حیوان نه را اوباسی۔ او هغه اُوچه او قحط وهلے زمکه د بارانۀ په اوبو سره ژوندئ کوی او په دے کښې شنۀ شنۀ بوټی زرغونیږی۔ نو کوم ذات چه د تمامو څیزونو په پیدائش او ستاسو په پیدائش باندے په اول ځل قادر دے، هم هغه تاسو لره د خپلو قبرونو نه په دوباره را اُوخکلو یقیناً قادر دے۔

دا قسم دلیل د کافرانو دپاره د ایمان ذریعه جوړیږی او د مؤمنانو استحضار پیدا شی، چه هرکله بنده ګان به الله ته راپورته کیږی نو راځئ چه ددے دپاره صحیح تیاری وکړو۔

وَمِنْ اٰیٰتِهٖ : پدے رکوع کښې عقلی دلیلونه دی چه دا دلیلونه د رد د شرك او د حشر د اثبات دپاره او د بندګانو د عبادت راجلب کولو او د الله تعالیٰ د تعارف دپاره بیانیږی۔

اٰیٰتِهٖ: یعنی انسان لره په دوباره ژوندی کولو باندے د الله تعالیٰ د قادریدو یو دلیل دا هم دے چه انسان لره ئے د خاورے نه پیدا کړے، یعنی آدم علیه السلام یا هر انسان ئے د نطفے نه پیدا کړے چه ددے اصل خاوره وی، او په ظاهره کښې د خاورے او د انسان د ذات او صفاتو ترمینځ هیڅ مناسبت نۀ معلومیږی، بیا هغه خالص د الله په قدرت سره ناطق او متحرك انسان جوړ شو او په زمکه کښې خور شو، (تَنْتَشِرُوْنَ کښې دے ته اشاره ده) خپل وجود سره ئے زمکه ډکه کړه، د زمکے زینت جوړ شو، قلعے ئے جوړ کړے، ښارونه ئے آباد کړل، د اُوچے او لمدے لارے ئے اُووهلے، د مال او دولت حاصلولو دپاره ئے کلے کلے او علاقه علاقه اُولټوله، او مختلف علوم او فنون ئے ایجاد کړل۔ دا ټول صلاحیتونه او قدرتونه د خاورے نه جوړ بدن کښې چا کیخودل؟ ددے جواب یقیناً ددے نه سوئ بل هیڅ نۀ دے چه دا د الله ذات دے چه په هر څیز باندے قادر دے۔

تُرَاب کښې اشاره ده چه هرکله الله تعالیٰ تاسو اول ځل د خاورے نه پیدا کړئ نو دوباره هم ستاسو د خاورے نه په پیدا کولو خامخا قادر دے۔ حال دا چه په دویم ځلی پیدائش کښې صرف ترکیب دے چه ددے انسان اجزاء په خاوره کښې پراتۀ وی، الله ئے یو ځای کړی او په اول ځل کښې ایجاد وی او د دواړو ترمینځ فرق دے۔

بَشَرٌ: په بشر کښې معنیٰ د ظهور (ښکاره کیدو) ده، یعنی دا انسانان په خاوره کښې پټ وو نو الله تعالیٰ راښکاره کړل۔

**فائده** : پدے سورت کښې د اُوه آیتونو په اول کښې ئے (وَمِنْ آیٰتِهٖ) لفظ ذکر کړیدے ددے

یوه وجه دا ده چه دغه دلیلونه په مدعیٰ باندے ښهٔ واضح دی۔ دویمه وجه دا ده چه هر یو د هغے نه په حقیقت کښې په ډیرو دلیلونو مشتمل دے۔

وَمِنْ اٰيٰتِهٖ: د الله تعالیٰ د قدرت د دلیلونو نه یو دلیل دا هم دے چه هغهٔ د انسان د جنس نه ددهٔ ښځه پیدا کړه، دے دپاره چه دیته په نزدے کیدو او جوختیدو سره سکون او راحت حاصل کړی، ځکه چه مجانست د محبت او مانوس کیدو باعث وی، او نور مخلوق سره مانوس والے او سکون نهٔ حاصلیدو لکه که ښځه پیریٔ وے یا حیوان وے نو انسان به ورته سکون نشو ے حاصلولے، پریدلے به د هغے نه۔

بیا وګوره چه د سړی او د ښځے مزاجونه مختلف دی، سړی کښې شجاعت او بهادری وی، زنانه کښې بزدلی وی، سړی کښې سختی او ښځه کښې نرمی، سړی کښې حاکمیت، ښځه کښې محکومیت، سړی کښې امر او ښځه کښې د طاعت ماده ده، او په بدن کښې ئے هم ناشنا والے اچولے دے۔

وَجَعَلَ بَيْنَكُمْ : او د الله د قدرت نښے ته وګوره چه دکوم سړی او ښځے ترمینځه چه هیڅ کله ملاقات نهٔ وی، هیڅ رشته داری نهٔ وی، د دویٔ په زړونو کښې د یو بل دپاره محبت چپے وهی، او د رحمت او همدردیٔ تارونه وودل کیږی، او په یو بل باندے ځان قربانولو ته تیاریږی۔ خپل مور او پلار او خپل خپلوان هر څه د خاوند د خاطره پریدی، په مور او پلار او وروڼو دومره نهٔ خفه کیږی څومره چه په خاوند خفه کیږی، که دا محبت الله نهٔ وے اچولے نو یو بل سره به ئے ژوند نهٔ تیریدلے او تنګیدلے به۔

وَّرَحْمَةً: د سړی په زړه کښې د ښځے سره ډیر شفقت پیدا کړی چه کوشش کوی چه ښځے ته څه فائده ورسوی۔ او دغه شان ښځه په خپل خاوند باندے رحم کوی، ښه خوراك، ښه شے هغهٔ ته وړاندے کوی، د سړی په ستړی والی او درد باندے دردمنده کیږی۔

که محبت نهٔ وے نو ژوند به نهٔ تیریدے او که رحمت نهٔ وے نو بیا به سړی ښځے لره وهلے نو هغه به ترے جدا کیدلے۔ او دا محبت د شهوت سره یو اځے تعلق نهٔ وی، بوډا او بوډیٔ هم د یو بل سره محبت او په یو بل باندے ترس لری۔

لَاٰيٰتٍ: پدے کښې ډیرے نښے دی که څوك پکښې سوچ کوی۔

يَّتَفَكَّرُوْنَ: اَیْ فِیْ عَظَمَةِ اللّٰهِ وَقُدْرَتِهٖ وَكَمَالِهٖ وَرَحْمَتِهٖ۔ هغه خلك چه فكر كوی د الله په عظمت، د هغهٔ په قدرت او د هغهٔ په كمال او د هغهٔ په رحمت كښې۔

وَمِنْ اٰيٰتِهٖ خَلْقُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَاخْتِلَافُ

او بعض د دلیلونو د توحید د هغه نه پیدائش د آسمانونو او د زمکے دے او جداوالے

اَلْسِنَتِكُمْ وَاَلْوَانِكُمْ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّلْعٰلِمِيْنَ ﴿۲۲﴾

د ژبو ستاسو او د رنګونو ستاسو دے یقیناً پدے کښې خامخا دلیلونه دی دپاره د پوهه

وَمِنْ اٰيٰتِهٖ مَنَامُكُمْ بِالَّيْلِ وَالنَّهَارِ

لرونکو۔ او بعض د دلیلونو د هغه نه خوب کول ستاسو دی په شپه او ورځ کښې

وَابْتِغَآؤُكُمْ مِّنْ فَضْلِهٖ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ

او لټول ستاسو دی د فضل د هغه نه، یقیناً پدے کښې خامخا دلیلونه دی دپاره د هغه

يَّسْمَعُوْنَ ﴿۲۳﴾ وَمِنْ اٰيٰتِهٖ يُرِيْكُمُ الْبَرْقَ

قوم چه خبره آوری۔ او بعض د دلیلونو د هغه نه (دا ده چه) درښائی تاسو ته بریښنا

خَوْفًا وَّ طَمَعًا وَّيُنَزِّلُ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَيُحْيٖ بِهِ الْاَرْضَ

دپاره د یرولو او د طمعے، او راوروی د آسمان نه اوبه نو ژوندۍ کوی پدے سره زمکه

بَعْدَ مَوْتِهَا اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ ﴿۲۴﴾

روستو د اوچوالی د هغے نه یقیناً پدے کښې خامخا دلیلونه دی دپاره د هغه قوم چه عقل

وَمِنْ اٰيٰتِهٖ اَنْ تَقُوْمَ السَّمَآءُ وَالْاَرْضُ بِاَمْرِهٖ ثُمَّ

کوی۔ او بعض د نخو د هغه نه دا ده چه ولاړ دے آسمان او زمکه په حکم د هغه بیا

اِذَا دَعَاكُمْ دَعْوَةً مِّنَ الْاَرْضِ اِذَآ اَنْتُمْ تَخْرُجُوْنَ ﴿۲۵﴾

کله چه آواز اوکړی تاسو ته آواز د زمکے نه دغه وخت به تاسو را اوځئ۔

**تفسیر**: دا هم عقلی دلیل دے د مخکښی مقصدونه دپاره۔

خَلْقُ السَّمٰوٰتِ: نه مراد د هغے اوچتوالے، مضبوطوالے، بے ستنو ودریدل، نۀ چاودل او نۀ راغورزیدل او پدے کښې ناشنا څیزونه پیدا کول دی۔

وَالْاَرْضِ: د زمکے د پیدائش نه مراد د هغے وسعت او د هغے مختلف صفتونه چه په

هغې باندې غرونه، نهرونه، جنګلات وغیره دي.

وَاخْتِلَافُ أَلْسِنَتِكُمْ: ۱- الله تعالیٰ انسانانو ته زرونه ژبې او لغات ښودلي، او هره ژبه ئې د بلې نه جدا کړې چه هیڅ کله یوه ژبه د بلې ژبې سره ګډ وډېږي نهٔ. او لغت په استعمال سره پیدا کیږي، څه خلك د خپل قوم نه جدا شي نو هلته ورته الله تعالیٰ بله ژبه ورکړي، پدې سره رب پیژندلے کیږي.

۲- أَلْسِنَة آوازونو ته هم شامل دي، یعني یوه د غوښې ژبه ده او الله تعالیٰ هر انسان ته د هغې نه جدا جدا آواز ورکړیدے.

وَأَلْوَانِكُمْ: کریونو انسانان دي او د هر یو رنګ د بل نه جدا دے. هیڅ دوه انسانان هم خپلو کښې بیخي یوشان نهٔ وي. او ددے اختلاف حکمة دا دے چه انسان پدے سره د اشخاصو تمییز وکړي، خپل د پردي او دوست د دشمن نه جدا کړي. د نزدے والي په وخت کښې جدائي په شکل او صورت سره کیږي او د لرے والي په وخت کښې جدائي په آواز سره کیږي. دا ټولے خبرے د الله تعالیٰ د قادر مطلق کیدو دلیلونه دي خو کوم خلك چه علم لري هغه ترے عبرت اخلي او جاهلان پدے سره الله تعالیٰ نهٔ پیژني.

وَمِنْ آيَاتِهِ مَنَامُكُمْ : په بعث بعد الموت باندے د الله تعالیٰ د قادریدو دلیل دا هم دے چه خلق د شپے یا د ورځے په وخت آرام کولو دپاره اُودهٔ کیږي، او بیا رابیداریږي دے دپاره چه رزق حاصلولو دپاره کوشش وکړي. د انسان اُودهٔ کیدل یو قسم مرګ دے، او بیا د الله تعالیٰ په قدرت او مشیت سره ویښیدل د مرګ نه پس د ژوندي کیدو پشان دي. یقیناً په دے کښې د غور او فکر والو او د حق آواز ته د غوږ کیښودونکو دپاره ګڼړے ښیے دي چه دوئ ته په آخرت او جزاء او سزا باندے د ایمان راوړیدو دعوت ورکوي.

مَنَامُكُمْ : خوب ډیرلوی نعمت او د الله تعالیٰ د قدرت ښنه ده څکه چه د بدن فتور (سستوالے) او ستومانی او سترے والے ختم شي، دماغ بند شي، بدن په راحت شي، چه انسان پکښې نهٔ څه آوري او نهٔ څه ویني، نو د عبادت او د کاروکسب شوق پیدا شي. خوب الله د کوم ځای نه راولي چه په دماغو پرده راشي چه انسان نشه شان شي.

وَابْتِغَاؤُكُمْ مِنْ فَضْلِهِ : د انسانانو د ورځے کارو کسب کول هم د الله تعالیٰ د قدرت ښنه ده، پدے طریقه چه الله تعالیٰ انسانان پیدا کړي، نو هغوی له ئې رزقونه هم پیدا کړي، د دوی د حاجت مطابق. الله تعالیٰ داسے ونکړل چه د انسان دپاره ئې رزق پیدا کړو، او هغه له ئې کور ته راوړي چه دا واخله بلکه دهٔ ته ئې حکم وکړو چه لږه خواري پسے

وکړه ورپسې ووځه. ځکه که تولو انسانانو ته تیار رزق ملاویدې نو زمکه به د انسانانو د فسادونو نه ډکه شوې وې، خلکو به خوراکونه کولې، شهوات به ئې پوره کولې، او قتل او قتال به وې او بندګي به ئې نهٔ کولې، خو اُوس الله تعالیٰ په دنیا کښې رزق تقسیم کړو، او بندګانو ته ئې ووئیل چه ددې پسې ووځئ: او ځان له ئې پیدا کړئ، پدې کسب کښې ډیرې فائدې وې چه انسانان په کاروبارونو او دکانونو کښې مصروف شي او د فساد نه بچ شي. دارنګه بنده چه کله د رزق په طلب پسې وځي نو د الله تعالیٰ نه به ئې غواړي هغه ته به متوجه کیږي چه اې الله! تا چه ما له کوم رزق مقرر کړې ما ته ئې په آسانئ راکړه. بیا د رزق دپاره الله تعالیٰ اسباب مقرر کړیدي چه بندګي دې کوله نو رزق به په آسانئ درکوي، او که بندګي درکښې نهٔ وه نو په تکلیف او سختئ به ملاویږي، یا به حرامه درکوي. او دې سره به بیا حلال او حرام او نور حکمونه متعلق شو که تیاره راتللې، بیا به د حلال او حرام خبره نهٔ وې. او ددې ﴿وَابْتِغَاؤُكُم﴾ سره بیا تول دین متعلق دې چه دومره وګټه دومره مهٔ ګټه، دې وخت کښې وګټه او دې وخت کښې نهٔ، دا مال فلانئ له ورکړه او فلانئ له ئې مهٔ ورکوه. رزق پسې بیخي مهٔ ورك کیږه، بلکه مونځ وکړه، بندګي پرې خرابه نهٔ کړې. او که رزق د انسانانو د حاجتونو مطابق نهٔ وې پیدا کړې، نو تول خلك به دلوږې نه مړهٔ وې. لږ به رزق راجمع کړې وې او اکثر به مړهٔ وې. نو دې نه د هغه علم او د هغه قدرت او د هغه رحمت او مهرباني او حکمت هم معلوم شو. او پدې باندې بیا د انسان اُوچت همت او ضعیف همت مرتب دې. آیا دهٔ سره صرف د ډوډئ فکر دې او که د الله تعالیٰ فکر هم ورسره شته.

يَسْمَعُوْنَ: مخکښې آیت کښې ئې ﴿لِلْعَالِمِيْنَ﴾ ووئیل ځکه چه د کائناتو پیدائش او د ژبو او رنګونو اختلاف په علم سره معلومیږي، او دلته ئې سمع (آوریدل) راوړل ځکه چه دلته خوب ذکر شو او د خوب نه بیداریدل په آوریدو سره کیږي چه یو تن درته آواز وکړي او ته رابیدار شې.

وَمِنْ اٰيٰتِهٖ يُرِيْكُمُ الْبَرْقَ: د الله تعالیٰ د قدرت بل دلیل عقلي دا هم دې چه کله د هغهٔ په قدرت او ارادې سره په فضاء کښې بریښنا اُوځلیږي نو په زمکه باندې اُوسیدونکي انسانان یریږي چه هسې نهٔ په دې بریښنا کښې دننه (تندر) نهٔ وي چه را پریوتو سره مونږ تباه کړي، او اُمید هم وي چه شاید دا د رحمت د باران سبب دې. او کله چه الله تعالیٰ په خپلو مخلوقاتو باندې رحم او کرم وکړي او باران را اُوروي نو په مړه زمکه کښې ساه

راشي، بوټي را زرغون شي او پټي آباد شي.

دا ټولے خبرے عقل او پوهے والو دپاره د فکر او نظر دعوت ورکوي، او دليل دے چه الله تعالىٰ د انسانانو په دوباره ژوندي کولو قادر دے.

خَوْفًا وَّطَمَعًا: يو خوف او طمع شرعي دي چه مؤمنان د الله تعالىٰ نه خوف کوي لکه رسول الله ﷺ به چه کله وريځ وليده نو د الله تعالىٰ نه به ئے يره کوله چه چرته عذاب رانشي او پکار ده چه مؤمنان د الله تعالىٰ د رحمت طمع وکړي. او دے کښې تقديري خوف او طمع هم داخل دي، يعنې د وريځے په ليدو سره بعض خلك يره کوي چه باران به وشي، زمونږ کاروبار به خراب شي، پټو کښې به دانے خرابے شي، مسافر يريږي، او بعض طمع لري چه د باران په وجه به ګرمي کمه شي، زمکه به خړوبه شي، خشك سالي به ختمه شي. مقيم طمع لري. خو کله چه د انسان تقوىٰ کمزوري شي نو بيا دے خبرو ته ئے فکر هم نۀ وي.

لِّقَوۡمٍ يَّعۡقِلُوۡنَ: د برق، او بارانونو او بوټو په حالاتو باندے هر عقل والا پوهيږي چه د عقل نه کار واخلي نو ځکه ئے دلته عقل ذکر کړو.

وَمِنۡ اٰيٰتِهٖۤ اَنۡ تَقُوۡمَ السَّمَآءُ: او د هغۀ د بيخي آزاد قدرت يو دليل دا هم دے چه هغۀ چه د څۀ وخت راسے زمکه او آسمان پيدا کړي دي، بغير د څۀ ظاهري تکيه نه خالص د الله تعالىٰ په حکم سره دواړه په خپل خپل ځاى ولاړ دي، قيامته پورے نۀ آسمان را پريوځي، او نۀ زمکه ښکته ځي. او کله چه د الله تعالىٰ په حکم سره اسرافيل عليه السلام شپيلۍ پوك وهي نو ټول انسانان به په غير د څۀ ايساريدو نه په پوره تيزۍ سره د خپلو قبرونو او د زمکے د ګوټ ګوټ نه را اوځي او ميدان حشر طرفته به منډے وهي.

د آسمان او زمکے پيدائش ذکر شو او دلته په هغے کښې تصرف ذکر کوي.

بِاَمۡرِهٖ: پدے کښې اشاره ده چه د الله تعالىٰ په امر او حکم کښې دومره طاقت دے چه صرف حکم سره آسمان او زمکه په خپل خپل حالت ولاړ دي. نو ذات کښې به ئے څومره طاقت وي.

او بِاَمۡرِهٖ کښې اشاره ده چه دا د الله تعالىٰ په امر ولاړ دي، قطبان او غوثان او ابدالو نۀ دي ودرولي لکه څنګه چه مشرکان ئے وائي.

ثُمَّ اِذَا دَعَاکُمۡ: يعنې دا آسمانونه او زمکه به هميشه نۀ وي بلکه قيامت به راځي او الله تعالىٰ به بندګان د قبرونو نه راوباسي.

ددے دعوت نه مراد د اسرافیل علیه السلام په شپیلئ کښې داسے آواز کول دی
[اَیَّتُهَا الْعِظَامُ الْبَالِیَةُ وَاللُّحُوْمُ الْمُتَمَزِّقَةُ قُوْمُوْا اِلٰی عَرْضِ الرَّحْمٰنِ]
(اے زړو هډوکو، او ذره ذره شوو غوښو! د رحمٰن ذات پیشئ ته راپورته شئ)۔ دلته الله تعالیٰ خپل ځان ته نسبت کړیدے ځکه چه د اسرافیل علیه السلام آواز د الله تعالیٰ په امر سره دے۔
اِذَآ اَنْتُمْ تَخْرُجُوْنَ: یعنی الله تعالیٰ آسمان او زمکه ودرولی دی نو بیا به په آسمان او زمکه کښې تغییر راولی او زمکه به راښکلے شی نو انسانان به ترے راوځی۔ ﴿وَاِذَا الْاَرْضُ مُدَّتْ﴾۔

وَلَهٗ مَنْ فِی السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ كُلٌّ لَّهٗ

اوخاص د الله په اختیار کښې دی هغه څوك چه په آسمانونو او زمکه کښې دی، ټول هغه ته

قٰنِتُوْنَ ﴿۲۶﴾ وَهُوَ الَّذِیْ یَبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ یُعِیْدُهٗ وَهُوَ

عاجز دی۔ او خاص الله هغه ذات دے چه ابتدائی پیدائش کوی بیا به ئے دوباره کوی او دا

اَهْوَنُ عَلَیْهِ وَلَهُ الْمَثَلُ الْاَعْلٰی فِی السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَهُوَ

آسان دے په هغه باندے او هغه لره صفت اُوچت دے په آسمانونو اوزمکه کښې او هغه

الْعَزِیْزُ الْحَكِیْمُ ﴿۲۷﴾ ضَرَبَ لَكُمْ مَّثَلًا مِّنْ اَنْفُسِكُمْ

غالبه حکمتونو والا دے۔ بیان کړیدے الله تعالیٰ تاسو لره مثال د همجنس ستاسو نه،

هَلْ لَّكُمْ مِّنْ مَّا مَلَكَتْ اَیْمَانُكُمْ مِّنْ شُرَكَآءَ

آیا شته تاسو لره د هغه چا نه چه مالکان دی ښی لاسونه ستاسو (د هغوی) برخه داران

فِیْ مَا رَزَقْنٰكُمْ فَاَنْتُمْ فِیْهِ سَوَآءٌ

په هغه مال کښې چه درکړیدے مونږ تاسو ته پس چه تاسو شئ په هغے کښې برابر،

تَخَافُوْنَهُمْ كَخِیْفَتِكُمْ اَنْفُسَكُمْ كَذٰلِكَ نُفَصِّلُ

چه یریږئ تاسو د دوی نه پشان د یرے ستاسو د ورونو ستاسو نه، دغسے جدا جدا بیانوو

الْاٰیٰتِ لِقَوْمٍ یَّعْقِلُوْنَ ﴿۲۸﴾ بَلِ اتَّبَعَ الَّذِیْنَ

مونږ آیتونه دپاره د هغه قوم چه عقل کوی۔ بلکه روان دی هغه کسان

ظَلَمُوْٓا اَهْوَآءَ هُمْ بِغَيْرِ عِلْمٍ فَمَنْ

چه ظلم ئے کړیدے د خواهشاتو خپلو پسے په غیر د پوهے (دلیل) نه نو څوك به

يَّهْدِيْ مَنْ اَضَلَّ اللّٰهُ وَمَالَهُمْ مِّنْ نّٰصِرِيْنَ ﴿۲۹﴾

هدایت اوکړی هغه چا ته چه گمراه ئے کړی الله تعالیٰ، او نشته دوی لره هیڅ مددګاران۔

**تفسیر**: په آسمانونو او زمکه کښې چه څومره مخلوقات موندلے کیږی تول د هغهٔ بندګان او غلامان دی۔ هغهٔ دا پیدا کړی دی، هغه د دوئ مالك دے، او څنګه چه غواړی په دوئ کښې واك چلوی۔ د تهولو څمونه د هغهٔ د حکم دپاره ښکته شوی دی، او تول هغهٔ دپاره د خپلے بندګئ اقرار کونکی دی۔

كُلٌّ لَّهٗ قٰنِتُوْنَ: قنوتِ تسخیری هم مراد دے چه تول په ژوند او مرګ او صحت او مرض وغیره کښې د الله تعالیٰ د حکم د لاندے دی۔ یعنی دا تول مخلوق الله تعالیٰ ته محتاج او عاجز دی، قنوت په لغت کښې دَوَامُ الطَّاعَة ته وئیلے شی، یعنی همیشه تابع او ذلیله۔ یا مراد ددے نه قنوت شرعی اختیاری دے یعنی الله تعالیٰ ته عاجزی کوی او هغه ته سر خکته کوی۔ نو صالحین خلك د قنوت شرعی سره تابع دی او کفار او مجرمین په قنوتِ تسخیری او قدری او تکوینی سره۔

وَهُوَ الَّذِيْ: دا دلیل مخکښې هم بیان شو، دلته ورسره اثبات د توحید هم کوی۔

یعنی الله تعالیٰ چه کوم شے غواړی په غیر د څهٔ مخکنئ نمونے نه د (كُنْ) په ذریعه پیدا کوی، او د هغهٔ د مقرر وخت راتللو نه پس هغه د دنیا نه پورته کوی، او بیا د قیامت په ورځ به ئے دوباره ژوندے کوی۔ او دا کار د هغهٔ دپاره ډیر زیات آسان دے، څکه دوباره پیدا کول د اول ځل نه آسان وی۔ او دا خبره د انسانی عقل او فهم په لحاظ سره وئیلے کیږی، ګنے د الله تعالیٰ په قدرت کښې هیڅ یو شے د بل شی نه زیات آسان نهٔ وی، د هغهٔ د (كُنْ) کلمے په ذریعه هر شے په غیر د څهٔ تاخیر نه په وجود کښې راځی۔

وَهُوَ اَهْوَنُ عَلَيْهِ: دے باندے دا اشکال دے چه د مسلمانانو عقیده دا ده چه الله تعالیٰ دپاره تهول څیزونه پیدا کول یو شان آسان دی، داسے نهٔ ده چه آسمان پیدا کول ورته لږ آسان دی، او د انسان پیدا کول ورته ډیر آسان دی، نو دلته څنګه اسم تفضیل (اَهْوَنُ) صیغه ذکر کوی؟

جواب دا دے چه اسم تفضیل په معنیٰ د نفس فعل سره دے، د تفضیل معنیٰ پکښې نشته اَیْ وَهُوَ هَیِّنٌ عَلَیْهِ۔ یعنی دا دوباره پیدائش الله تعالیٰ ته آسان دے۔

(۲) جواب : مخکښې ذکر شو چه دا په نسبت سره انسانانو ته وئیل شویدے چه دوی ته دوباره د یو شی نقل ویستل ډیر آسان وی۔

وَلَهُ الْمَثَلُ الْاَعْلٰی : یعنی په آسمانونو او زمکه کښې د تولو نه اعلیٰ او اَرْفع صفت او تعریف الله تعالیٰ دپاره دے۔ د الله تعالیٰ صفتونه تول اُوچت دی، هیڅ یو مخلوق په خپل هیڅ یو صفت کښې د هغهٔ پشان نشی کیدے۔ ابن عباس ﷺ فرمائی : د الله دپاره اُوچت صفت دا دے چه ﴿لَیْسَ کَمِثْلِهٖ شَیْءٌ﴾ د هغهٔ د ذات او صفاتو په شان هیڅوك او هیڅ شے نشته۔

د المثل الاعلیٰ (اُوچت صفت) نه مراد وحدانیت د الله تعالیٰ دے۔ (قتادة)

د ﴿وَلَهُ الْمَثَلُ الْاَعْلٰی﴾ یوه بله معنیٰ زجاج دا بیان کړیده چه دا خبره چه کومه وکړے شوه چه دوباره پیدا کول د مخکنی ځل نه زیات آسان دی، نو دا د انسانانو د عقل او فهم په لحاظ سره وئیلے شوے ده، د الله تعالیٰ ذات خو ددے نه زیات اعلیٰ او اَرْفع صفت والا دے، د هغهٔ په نیز خو د تولو ځیزونو په وجود کښې راتلل یو شان برابر دی۔

ضَرَبَ لَکُمْ مَّثَلًا : اُوس پدے مخکښو خبرو باندے تفریع کوی په رد د شرك سره، یعنی هرکله چه الله تعالیٰ دومره لوی دے، او قیامت راوستے شی نو دے الله تعالیٰ سره به شریکان نهٔ جوړوئ بلکه د هغهٔ به یواځے بندگی کوئ، او څوك چه شریك جوړوی هغه بی عقله دے، د خواهش پسے روان دے، الله تعالیٰ به ورله سزا ورکړی۔

بیا کومه بندگی د الله تعالیٰ وکړو نو دلته به ﴿فَاَقِمْ وَجْهَكَ﴾ نه روستو پنځه عملونه ذکر کوی چه دا وکړئ۔ بیا دا اعمال ولے بیانوی؟ نو ددے د مضمون د سورت سره مناسبت دے، دا اَعمال د کامیابئ او د نصرت اسباب دی۔ بیا روستو وائی مال ولګوئ او سود نه ځان وساتئ۔

مطلب د آیت : په دے آیت کریمه کښې الله تعالیٰ د شرك رد کولو دپاره د انسانانو د زندگئ د حالاتو نه اخستے شوے یو مثال پیش کړے، چه ستاسو غلامان چه ستاسو غونته انسانان وی، آیا تاسو دا خوښوئ چه تاسو له په درکړے روزئ کښې دوئ ستاسو شریکان جوړ شی، او ستاسو سره یو شان جوړ شی او ستاسو پشان تصرف کوی، دوئ نه تاسو داسے یریږئ څنګه چه آزاد انسان په مال کښې د تصرف کولو په وخت خپلو

نورو شریکانو نه پرېږي. هر کله چه دا خبره ستاسو خوښه نهٔ ده حالانکه دا غلامان ستاسو پشان انسانان وي، نو بیا دا څنګه خوښوئ چه د الله تعالیٰ سره د هغهٔ بندګان په عبادت کښې شریکوئ، او الله تعالیٰ دا خبره څنګه خوښوي چه د هغهٔ د مخلوق په لاس سره جوړ شوي بتان د هغهٔ مدِ مقابل وګڼړلے شي او د هغوئ عبادت وکړے شي.

ضَرَبَ لَكُمْ : یعنی الله تعالیٰ تاسو ته پدے قرآن کښې دا مثال بیان کړیدے.

مِنْ اَنْفُسِكُمْ: یعنی ستاسو د انسانانو نه. دا مثال په سورة النحل (۷۱) آیت کښې تیر شوے وو لیکن په بل انداز.

فَاَنْتُمْ فِيْهِ سَوَآءٌ: یعنی په داسے طریقه درسره شریك وي چه تاسو او هغوی په تصرف او اختیار کښې برابر یئ.

، نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ : هر کله چه په مثال سره د ډیرو معانیو او ډیرو حکمتونو وضاحت کیږي نو ځکه ئے دیته آیات ووئیل.

لِقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ : الله تعالیٰ د عقل او هوش والو دپاره د خپل وحدانیت دلائل دغسے ښکاره بیانوي، دے دپاره چه په دے کښې غور وکړي چه زهٔ ځان سره په کاروبار او دکان او مال کښې شریك نهٔ خوښوم نو د الله تعالیٰ سره به څنګه شریك جوړ کړي.

بَلِ اتَّبَعَ الَّذِيْنَ: یعنی ددے ټولو واضحه دلائلو باوجود چه کوم خلق ایمان نهٔ راوړي نو ددے وجه په دلائلو او براهینو کښې څهٔ کمے او نقصان نهٔ وي، بلکه دا د نفس د خواهشاتو د پیروئ نتیجه وي. او هر کله چه دوی د خواهش په وجه د دلیلونو او مثالونو نه انکار کوي نو دوی ته هدایت نهٔ نصیب کیږي.

بِغَيْرِ عِلْمٍ : یعنی دوی ناپوهه دي پدے خبره چه دوی ګمراهان دي.

وَمَا لَهُمْ مِّنْ نّٰصِرِيْنَ : دلته وقف دے یعنی څوك چه ګمراه شي هغه به هلاکیږي او د دوی به څوك مددګاران نهٔ وي چه عذاب ترے واړوي.

| فَاَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّيْنِ حَنِيْفًا فِطْرَتَ اللّٰهِ |
| --- |
| نو برابر کړه خپل مخ دین ته چه کلك ولاړ ئے په توحید، (لازم اُونیسه) دین د الله تعالیٰ |
| الَّتِيْ فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا لَا تَبْدِيْلَ لِخَلْقِ اللّٰهِ |
| هغه چه پیدا کړي ئے دي خلق په هغے باندے، نشته بدلول د دین د الله تعالیٰ لره، |

ذٰلِكَ الدِّيْنُ الْقَيِّمُ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿٣٠﴾

دا دین مضبوط دے لیکن ډیر د خلقو نه نهٔ پو هیږي۔

**تفسیر:** فَاَقِمْ : ربط :

مشرکان د غیر الله عبادت کوي، د هغوی فطرت خراب شوے دے، نو تاسو د الله تعالیٰ یو اځې بندګي وکړئ چه دا د فطرت لاره ده۔ او دا اسباب د نصرت او کامیابئ هم دي۔

د (فاء) معنیٰ داده چه هر کله چه د دومره دلائلو په ذریعه ثابته شوه چه صرف الله تعالیٰ د هر یو شي خالق او مالك او په هر څه قادرِ دے، او دهٔ نه سوئ بل هیڅوك د بندګئ لائق نهٔ دي، نو اے زما نبي! او اے مسلمانانو! تاسو ټول د باطلو دینونو نه مخونه واړوئ او پوره طور سره په اسلامی دین باندے ولاړ پاتے شئ چه ددے بنیاد په توحید او عملِ صالح باندے دے، چه دا د الله تعالیٰ هغه فطري دین دے چه په دے باندے هغهٔ تمام انسانان پیدا کړي۔ یعني الله تعالیٰ تمام انسانان د توحید په عقیده او اسلامی دین باندے پیدا کړي، لیکن د خارجي عوارضو او موانعو په سبب ډیر خلق ددے فطري شي نه اوړي او د کفر او شرك لاره اختیاروي، لکه څنګه چه امام بخاريؒ او مسلمؒ د ابو هریره ﷜ نه حدیث روایت کړے چه نبي کریم ﷺ وفرمایل : (هر ماشوم په فطرت پیدا کیږي)۔

او په یو روایت کښ دي : په دے (صحیح) دین باندے پیدا کیږي، لیکن دهٔ مور پلار دا یهودي او نصراني او مجوسي جوړوي۔ لکه ماده څناور یو مکمل څناور زیګوي، آیا په دے کښ یو ماشوم غوږ پریکړے وي ؟ بیا ابو هریره ﷜ ووئیل : که ستاسو خوښه وي نو دا آیت ولولئ : ﴿فِطْرَتَ اللّٰهِ الَّتِيْ فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا لَا تَبْدِيْلَ لِخَلْقِ اللّٰهِ﴾ او په یو روایت کښ دي چه تاسو ددے غوږ پریکوئ۔ (واسناده صحیح)

بلکه د خپل اولاد د صحیح تعلیم او تربیت په ذریعه ددے فطرت نشو و نما کوئ دے دپاره چه کله ماشوم لوئي شي نو د توحید په عقیده باندے روان وي، او د اسلامی دین تابعدار جوړ شي۔ څکه چه همدا د الله تعالیٰ هغه رښتینے دین دے چه په دے کښ هیڅ کوږ والے نشته، لیکن اکثر خلق ددے حقیقت نه ناخبره دي، او همدا وجه ده چه دا صحیح او رښتینے دین پریدي، او د ضلالت او ګمراهئ په کندو کښ پریوزي۔

فَاَقِمْ وَجْهَكَ : د اِقَامَةُ الْوَجْه معنیٰ ده په دین باندے عمل کول، لکه په محاوره کښ

خلك وائي «د فلاني سري دين ته مخه شويده» يعنى په دين باندے عمل كوي. نو معنىٰ دا ده : [سَدِّدْ عَمَلَكَ لِلدِّيْنِ] برابر كړه عمل خپل د دين مطابق. (زاد المسير)
لِلدِّيْنِ : اَیْ مَائِلًا اِلَیْهِ مُسْتَقِيْمًا عَلَيْهِ غَيْرَ مُلْتَفِتٍ اِلٰی غَيْرِهٖ مِنَ الْاَدْيَانِ الْبَاطِلَةِ] يعنى برابر كړه مخ چه مائل ئے دين توحيد ته، او په هغے باندے مضبوط ولاړ ئے او نورو باطلو دينونو ته نهٔ گورے). څکه چه څوك د يو شي اهتمام ساتي نو هغه ته مخامخ گوري او مخ ورته برابر كړي او ورته متوجه وي. (فتح البيان)
فِطْرَتَ: دا منصوب دے په پټ فعل : [اِلْزَمْ فِطْرَتَ] لازم ونيسه فطرت د الله تعالىٰ.
د فطرت نه مراد ١ - دين توحيد دے. ٢ -فطرت : د الله معرفت ته وئيلے شي.
٣ - خپله معنىٰ ئے خِلقت (پيدائش) دے. او فطرت د فِعلة وزن دے (وَالْفِعْلَةُ لِلْحَالَةِ) يعنى حال د پيدائش چه الله تعالىٰ په هغے باندے تول خلق پيدا كړيدى چه هغه د انسان طبيعت او توحيد دے.
٤ - او ددے معنىٰ د سنت هم ده. لكه حديث كښې دى (خَمْسٌ مِنَ الْفِطْرَةِ) (پنځه كارونه د فطرت نه دى) (بخاري : ٥٨٨٩)
٥ - اَلتَّهَيُّؤُ وَالْقَابِلِيَّةُ لِقَبُوْلِ الْحَقِّ. يعنى انسان كښې تيارى او قابليت شته دپاره د قبلولو د حق. لكه شيشے ته الله تعالىٰ دا فطرت وركړيدے چه مخ په كښې ښكاره كيږي، په خاوره او لوټه كښې دا فطرت نشته. په ديوال كښې انابت نشته او په زړه د انسان كښې شته. ددے وجه نه د اسلام هره خبره د فطرت او د انسان د ابتدائي خلقت (حال د پيدائش) سره برابره ده، او د شرك او د كفر او د گناه خبره د فطرت سره برابره نهٔ ده، فِطرت، او عقل او وحى د يو بل تائيد كوي، هر شے چه په وحى كښې دے، دا به د عقل بالكل برابر وي او د فطرت سره به برابر وي، خلاف به ترے نهٔ وي. نو كوم شے چه فطري وي هغه په انسانانو بد نهٔ لگي او غير فطري بد لگي، اذان چه په تيز آواز سره وشي نو بندگانو باندے ښه لگي او كه هسے چغه كړي نو خلك ورته بى عقله او سپك انسان وائي. الله تعالىٰ ته سجده ولگوه نو شا ته حصه به اُوچته ولاړه وي ليكن دير ښائسته به پرے ښكاره كيږي او كه څوك هسے سر خكته كړي او كناټي پورته كړي نو سپك به پرے ښكاره شي او خلكو ته به ليونے ښكاره شي. يو ماشوم چه د الله تعالىٰ نه خبر نهٔ وي كه د هغه نه تپوس وكړے شي چا پيدا كړے ئے ؟ هغه وائي الله. الله چرته دے ؟ بره دے. نو فطرت پدے جواب باندے مجبوره كړو.

نو دلته معنیٰ دا ده : ((لازم ونیسه خلقت د الله تعالیٰ هغه خلقت چه تول انسانان ئے په هغے باندے پیدا کړیدی)) هغه خِلقت څه شے دے؟ نو دا خلقت هغه دے چه د الله د دین موافق وی نو ځکه حاصل تفسیر ئے دا دے چه ((لازم ونیسه دین د الله تعالیٰ چه تول خلك ئے ددے دین مطابق پیدا کړیدی)).

﴿لَا تَبۡدِيلَ لِخَلۡقِ اللّٰهِ﴾ ددے دوه تفسیره دی (۱) یو دا چه خلق همدغه فطرت ته وائی. یعنی د الله تعالیٰ فطرت په تولو انسانانو کښې یو شان دے داسے نهٔ ده چه عرب خلك په فطرت پیدا کړی او عجم په غیر فطرت. یا یو سړے په فطرت او بل په غیر فطرت پیدا کړی، پدے کښې الله تبدیلی نهٔ راولی.

(۲) تاویلی تفسیر دا دے چه خلق په معنیٰ د دین سره دے لکه قتادة وئیلی دی او نفی په معنیٰ د نهی ده. یعنی (اے مسلمانانو! تاسو دا فطرت او دین مهٔ بدلوئ) نو لا تبدیل معنیٰ ده لَا يَجُوزُ وَلَا يَصْلُحُ ذٰلِكَ. یعنی دا جائز او صحیح نهٔ ده چه څوك د الله تعالیٰ فطرت او دین بدل کړی. یعنی د الله تعالیٰ فطری دین راونیسه. نو شرك د فطرت خلاف دے او توحید د فطرت موافق دے، یو ماشوم ته دا مهٔ وایه چه بابا او بت نه مهٔ غواړه، خپله د هغه په زړهٔ کښې دا راځی هم نهٔ چه زهٔ دے غیر الله نه وغواړم.

او په خلق الله کښې حیوانات هم داخل دی چه د هغوی فطرت هم روغ دے، یو حیوان به چرته بابا او بت له نهٔ وی تلے چه د هغه نه رزق وغواړی.

او (لَاتَبۡدِيلَ) د مخکښې حکم دپاره علت دے، یعنی تاسو دا فطرت ځکه لازم ونیسئ چه دا د الله تعالیٰ د طرفنه نهٔ بدلیږی.

ذٰلِكَ الدِّيۡنُ الۡقَيِّمُ : یعنی دغه فطرت مضبوط او برابر دین دے. ځکه چه توحید د فطرت برابر دین دے.

| مُنِيۡبِيۡنَ اِلَيۡهِ وَاتَّقُوۡهُ وَاَقِيۡمُوا الصَّلٰوةَ وَلَا تَكُوۡنُوۡا مِنَ |
|---|
| (شئ) رجوع کوونکی هغه ته او اُویریږئ د هغه نه او پابندی کوئ د مانځه او مهٔ کیږئ د |
| الۡمُشۡرِكِيۡنَ ﴿۳۱﴾ مِنَ الَّذِيۡنَ فَرَّقُوۡا دِيۡنَهُمۡ وَكَانُوۡا شِيَعًا |
| مشرکانو نه. د هغه کسانو نه چه تس نس کړے ئے دے دین خپل او شویدی ډلے ډلے، |

كُلُّ حِزْبٍ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُوْنَ ﴿۳۲﴾ وَإِذَا مَسَّ النَّاسَ

هره ډله په هغه څه چه د دوی سره دی خوشحاله ده. او کله چه اُورسیږی (بعض) خلقو

ضُرٌّ دَعَوْا رَبَّهُمْ مُّنِيْبِيْنَ اِلَيْهِ ثُمَّ اِذَا اَذَاقَهُمْ

ته تکلیف رابلی رب خپل اخلاص کونکی وی هغه ته بیا کله چه اُوڅکوی دوی ته

مِنْهُ رَحْمَةً اِذَا فَرِيْقٌ مِّنْهُمْ بِرَبِّهِمْ يُشْرِكُوْنَ ﴿۳۳﴾

د خپل طرف نه رحمت دغه وخت یوه ډله د دوی نه د خپل رب سره برخه داران جوړوی۔

لِيَكْفُرُوْا بِمَآ اٰتَيْنٰـهُمْ

(عاقبت دا شی) چه ناشکری اُوکړی د هغه نعمت چه ورکړے دے مونږ دوی ته

فَتَمَتَّعُوْا فَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ﴿۳۴﴾ اَمْ اَنْزَلْنَا عَلَيْهِمْ

نو مزے واخلئ (د دنیا) نو زر دے چه پوهه به شئ آیا نازل کړیدے مونږ په دوی باندے

سُلْطٰنًا فَهُوَ يَتَكَلَّمُ بِمَا كَانُوْا بِهٖ يُشْرِكُوْنَ ﴿۳۵﴾

دلیل پس چه هغه خبرے کوی په هغه څه چه دوی ورسره شریکان جوړوی (یا ثابتوی (بندګی) د هغه چا چه دوی ئے د الله سره شریکان جوړوی۔

**تفسیر:** مسلمانانو ته حکم شوے چه په اسلامی دین دے په پوره اخلاص سره ثابت قدم وی، او دوئ دے په هر حال کښې الله تعالیٰ طرف ته رجوع کوی او د هغهٔ نه دے بخنه غواړی، هغهٔ نه دے یریږی، او د خپلو مونځونو حفاظت دے کوی، او په هیڅ حالت کښې دے د مشرکانو نه نهٔ جوړیږی چه هغوئ فطری (اسلامی) دین پریښے او په سوونو باطل ادیان او مذاهب ئے ایجاد کړی، او په مختلفو ډلو کښې تقسیم شوی، او هره یوه ډله په دے سوچ کښې خوشحاله ده چه ددے دین رشتینے دے، حال دا چه د اسلامی دین نه سوئ هیڅ یو دین صحیح نهٔ دے۔ دے وجے نه اُوس چه کوم کس هم د هدایت په لاره روانیدل غواړی، هغهٔ دپاره ددے نه سوئ بله هیڅ چاره نشته چه هغه نور تمام ادیان او مذاهب، باطلے فرقے او بدعتونه او خرافات پریدی او اسلامی دین اختیار کړی کوم چه د الله تعالیٰ د آخری کتاب او د خاتم النبیین د سنت د مجموعے نوم دے۔

**مُنِيْبِيْنَ:** دا د مخکنی (الدِّيْنُ الْقَيِّمُ) تشریح ده، ۱ - مُنِيْبِيْنَ منصوب دے په پټ فعل سره

[اَیْ کُوْنُوْا مُنِیْبِیْنَ] شئ تاسو انابت کونکی الله ته. او په مُنِیْبِیْنَ کښې معنیٰ د امر پرته ده. اَنِیْبُوْا اِلٰی رَبِّکُمْ. یعنی خپل رب ته انابت وکړئ.

۲ - حافظ ابن القیمؒ وائی چه دے کښې دا ترکیب هم صحیح دے چه مُنِیْبِیْنَ حال دے د فَطَرَ النَّاسَ نه. یعنی الله خلك په دغه فطرت باندے پیدا کړیدی په داسے حال کښې چه الله تعالیٰ ته انابت کونکی وو نو ټول مخلوقات الله تعالیٰ ځان ته مائل پیدا کړیدی، الله تعالیٰ ته توجه کولے شی، داسے نهٔ دی لکه د کاڼړی په شان. هر مخلوق کښې الله تعالیٰ ته اِنابت (توجه) شته لیکن مشرکانو خپل انابت پریخودو او غیر الله ته متوجه شول. او کله چه مصیبت راشی نو بیرته خپل فطرت (انابت) ته واپس کیږی. او مطلب دا دے چه هر کله تهٔ الله ته په اول کښې انابت کونکے پیدا ئے، نو اُوس هم ورته انابت وکړه.

منیب هغه شخص ته وئیلے شی [اَلَّذِیْ یَدُوْرُ مَعَ الْحَقِّ حَیْثُ دَارَ] چه د حق سره ګرځی کوم طرفته چه حق واوړی. ددے په خلاف کښې عناد لفظ استعمالیږی.

دویم منیب هغه چا ته وائی چه په زړهٔ سره الله تعالیٰ ته متوجه وی.

بل تعریف په سورة ق کښې به راشی چه عُکُوْفُ الْقَلْبِ عَلَی اللّٰهِ تَعَالٰی بِالْاِقْبَالِ وَالتَّعْظِیْمِ.

زړه په الله تعالیٰ باندے دیره کول چه الله تعالیٰ ته متوجه وی او د هغهٔ تعظیم کوی.

وَاتَّقُوْهُ: اِنابت د زړهٔ صفت شو او تقویٰ د ظاهر.

وَاَقِیْمُو الصَّلٰوةَ: مونځ سره تقویٰ حاصلیږی او دا الله تعالیٰ ته د اِنابت او د تقویٰ لاره ده، مونځ کښې د بنده الله تعالیٰ ته توجه او عاجزی پیدا کیږی.

مِنَ الْمُشْرِکِیْنَ: ځکه چه شرك دے ته وائی چه د انسان زړهٔ د الله نه ماسویٰ نور مخلوق ته متوجه شی، بابا او قبر او بت ته متوجه شی. شرك دا نهٔ دے چه د انسان نه به غوئی او خنزیر جوړیږی بلکه انسان به وی خو د زړهٔ توجه به ئے خرابه شوی وی.

**فائده**: ددے آیت نه معلومیږی چه د مانځه پابندی نهٔ کول د مشرکانو عمل دے، یعنی د مشرکانو نه مهٔ جوړیږئ چه هغوی مونځ نهٔ کوی او دارنګه د الله تعالیٰ دپاره ئے نهٔ کوی.

مِنَ الَّذِیْنَ فَرَّقُوْا: دا بیان دے د (مِنَ الْمُشْرِکِیْنَ) یعنی مشرکان هغه خلك دی چه دین ئے تس نس کړو، او د خپل صحیح دین نه واوړیدل.

فَرَّقُوْا: په معنیٰ د فَارَقُوْا سره هم دے لکه بل قراءت کښې فَارَقُوْا هم راغلے دے یعنی چه

جدا شویدی د خپل صحیح دین نه. څوك یهودي او نصراني او څوك مجوسي او هندو وغیره شو.

فَرَّقُوا: د دین تس نس کول دا هم دي چه د الله تعالیٰ دین پریدي او د هغې په ځای بل شے شروع کړي.

وَكَانُوا شِيَعًا: تشیع دے ته وائي چه د یو بل سره په باطل کښې ملګرتیا او ډله بازي وکړي او دے ته تعصب وائي.

كُلُّ حِزْبٍ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُونَ: یعنی هره ډله په خپل مذهب او لاره او مسلك او عقیده باندے خوشحاله ده چه زما دین حق دے او په همدے کښې ثواب دے، او په هغې باندے مال او جان قربان کوي. خو دا خوشحالي ئے په باطل باندے ده د حق نه. او ددے آیت مطلب دا نۀ دے چه چا ډله او فرقه جوړه کړه نو هغه مشرك شو.

بلکه مطلب دا دے چه کوم کسان چه مشرکان دي او د الله تعالیٰ دین ئے پریخوستے نو دا مشرکان شو او که چا دین بالکلیه نۀ دے پریخوستے لکه بدعتیان نو هغه کافر نۀ دی بلکه مبتدعین دي. نو بدعتي هم د دین نه جدا شویدے لیکن پوره نۀ دے جدا. او مشرك پوره جدا دے.

وَإِذَا مَسَّ النَّاسَ: پدے کښې د مکے د کافرانو او د نورو مشرکانو په سلوك او کردار کښې عجیب تضاد بیانوي چه کله دوئ ته څۀ بیماري، پریشاني یا قحط سالي اُورسیږي نو فوراً د الله په حضور کښې زړا فریاد او دعاګانے کوي، (هغه ته منیب (انابت کونکے) جوړ شي) او خپل تمام باطل معبودان هیر کړي، او کله چه الله تعالیٰ د دوئ په حال رحم وکړي او دوئ نه تکلیف لرے کړي، او د راحت وخت ئے راشي نو په دوئ کښې یوه حیرانوونکے بدلون را ښکاره شي، او الله تعالیٰ پریدي او د خپلو بتانو ډول وهي، (مشرك جوړ شي) او د الله تمام احسانات او انعامونه بیخي هیر کړي او د هغۀ ناشکري شروع کړي. الله تعالیٰ دوئ له دهمکي ورکوي فرمائي: ﴿فَتَمَتَّعُوا فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ﴾ (د الله د ورکړو نعمتونو نه ښۀ مزے واخلئ، تاسو ته به د خپلے ناشکرئ او شرکیه اعمالو انجام د قیامت په ورځ معلو میږي).

کله چه تاسو ښپے ایبله ښپے او بربنډ بدن د الله تعالیٰ مخامخ جواب ورکولو دپاره ودریږئ. او د هغۀ په مقابله کښې به ستاسو څوك یار او مددګار نۀ وي. نو الله پدے آیت کښې دعوت ورکوي چه د مشرکانو دا قِسم خوئي د ځان نه وباسئ.

او دا آیت د انابت تشریح ده، چه الله تعالیٰ مخلوق څنګه په فطرت او انابت پیدا کړے؟ هغه دا چه د مصیبت په وخت کښې صرف الله ته آوازونه کوی۔

مُنِيبِينَ إِلَيْهِ: یعنی الله ته انابت کونکی وی، یعنی د زړهٔ نه الله ته متوجه وی۔ او حاصل معنیٰ ئے ده: [مُخْلِصِينَ لَهُ] الله تعالیٰ نه په اخلاص او توجه سره دعا غواړی۔ او په دهٔ کښې دا اِنابت ولے پیدا شو؟ وجه دا ده چه مصیبت د انسان نه غفلت لرے کوی، او کله چه غفلت لرے شی نو بیرته فطرت جوړ شی۔ دا وجه ده چه د مصیبت په وخت کښې ډیر خلک مسلمانیږی او سوچ او فکر ورته پیدا کیږی۔ دهریه خلک په الله تعالیٰ ایمان راوړی۔

رَحْمَةً: یعنی تکلیف ترے لرې کړی، باران نهٔ کیږی نو باران وکړی، مرض وو نو صحت ورکړی، کشتئ کښې تکلیف وو نو الله اُوچے ته بچ کړو۔

لِيَكْفُرُوا: یعنی ددے انجام دا شو چه دوی ناشکری کوی د هغه نعمتونو چه مونږ ورکړیدی۔

فَتَمَتَّعُوا: دلته ئے د زجر دپاره خطاب وکړو هغوی ته۔

أَمْ أَنْزَلْنَا: پدے آیت کښې په شرک بانديے د دلیل مطالبه کوی، د حق دپاره خو ډیر دلیلونه دی، فطرت، وحی، عقل او د الله تعالیٰ نعمتونه ئے دلیل دے۔نو مشرکان په خپل شرک بانديے ولے ټینګ پاتے کیږی، او د دویٔ په کردار کښې داسے ښکاره تضاد ولے موندے کیږی، آیا مونږ د دویٔ خواته څهٔ ښکاره او واضح دلیل لیږلے چه هغه دویٔ شرک طرفته رابلی؟ او دوی ته د شرک امر کوی، داسے څهٔ خبره خو نشته۔ معلومه شوه چه د شرک دپاره د پلار او نیکهٔ د تقلید او د کفر او عناد نه سویٰ بل کوم سبب نشته دے۔ نو مشرکان صرف په تقلید سره شرک کوی۔

د سلطان نه مراد دلیل دے، او چا ترے ملائک مراد کړیدے لیکن اول قول غوره دے۔

فَهُوَ يَتَكَلَّمُ: أَيْ يَأْمُرُ۔ او هغه دلیل دوی ته حکم کوی۔ او دوی سره خبرے کوی چه آؤ ستاسو شرک جائز دے، او د پلار نیکه پسے روان شئ۔

| وَإِذَآ أَذَقْنَا النَّاسَ رَحْمَةً فَرِحُوا بِهَا |
|---|
| او کله چه اُوڅکوو مونږ خلقو ته رحمت (خوشحالی د دنیا) تکبر کوی په هغے سره |

وَاِنْ تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ بِمَا قَدَّمَتْ

او کچرے اُورسیږی دوی ته بدحالی په سبب د هغے عملونو چه مخکښ لیږلی دی

اَيْدِيْهِمْ اِذَا هُمْ يَقْنَطُوْنَ ﴿٣٦﴾ اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّ اللّٰهَ يَبْسُطُ

لاسونو د دوی، دغه وخت دوی نا اُمیدی کوی۔ آیا او نهٔ گوری دوی چه بیشکه الله فراخوی

الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيَقْدِرُ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ

رزق چا له چه اُوغواړی او تنگوی یقیناً په دے کښ ډیر دلیلونه دی دپاره د هغه قوم چه

يُّؤْمِنُوْنَ ﴿٣٧﴾ فَاٰتِ ذَا الْقُرْبٰى حَقَّهٗ وَالْمِسْكِيْنَ وَابْنَ السَّبِيْلِ ذٰلِكَ خَيْرٌ

ایمان لری۔ نو ورکوه خاوند د خپلولئ ته حق د هغه او مسکین ته او مسافر ته، دا غوره ده

لِّلَّذِيْنَ يُرِيْدُوْنَ وَجْهَ اللّٰهِ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ﴿٣٨﴾

دپاره د هغه کسانو چه اراده لری د مخ (رضا) د الله تعالىٰ او دا کسان هم دوی کامیاب دی۔

**تفسیر**: داسے آیت مخکښ هم ذکر شو خو هلته د کافرانو حال وو او دلته د عامو انسانانو حال دے۔ یعنیعام طور سره د انسانانو حال دادے چه کله الله تعالىٰ دهٔ له صحت او روزی او نور نعمتونه ورکوی، نو د خلقو په مخ کښ فخر کوی، او د الله د شکر اداء کولو په ځای دا د خپل عقل او پوهے نتیجه گڼړی، او تکبر شروع کړی، او کله چه دهٔ د کړو په بدله کښ په دهٔ باندے څهٔ مصیبت راشی، نو د الله د رحمت نه بیخی نا امیده شی، لیکن ایماندار خلق د عامو خلقو نه جدا وی، دوئ ته چه کله پریشانی اُورسی نو صبر کوی، او الله ته توبے وباسی چه دا مصیبت زمونږ د گناه د وجه نه راغلے او کله چه د الله تعالىٰ نعمت ملاویږی نو نیکو اعمالو طرفته نور هم متوجه کیږی۔ د سورتِ هود په (۱۱) آیت کښ الله تعالىٰ فرمائیلی : ﴿ إِلَّا الَّذِينَ صَبَرُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ ﴾ (مگر هغه مومنان چه هغوئ صبر او عمل صالح خپل عادت جوړوی) دوئ نهٔ فخر کوی او نهٔ د الله تعالىٰ د رحمت نه نا امیده کیږی)۔ په صحیح مسلم کښ د نبی کریم ﷺ فرمان دے : ((د مومن حال ډیر عجیبه دے، د الله هره فیصله دهٔ په حق کښ بهتره وی، او دا مرتبه د مومن نه سوئ بل چاته نهٔ ملاویږی، که چرے دهٔ ته خوشحالی ملاو شی او شکر اداء کوی نو دا دهٔ لپاره بهتره ده، اوکه چرے دهٔ ته څهٔ تکلیف رسیږی او صبر کوی

نو هم دۀ لپاره بهتره ده)۔ (مسلم: ۷۶۹۲)

فَرِحُوا بِهَا: اَیْ فَرَحَ الْبَطَرِ وَالْاَشَرِ۔ د تکبر او ناشکرئ خوشحالي کوي۔

يَقْنَطُوْنَ: د الله د رحمت نه نا اميده وي، او په هغه باندے بد گمانه وي۔ قنوط هغه نا اميدئ ته وئيلے شي چه په زړه او اندامونو سره د هغے اظهار کوي۔

حسنؒ وئيلي دي: القنوط: تَرْكُ فَرَائِضِ اللّٰهِ سُبْحَانَهٗ۔ قنوط د الله فرائضو (فرضي حکمونو) پريخودو ته وئيلے شي۔

نو د کافر او ضعيف همت والا انسان صفت نا اميدي، بدگماني، تکبر او غفلت وي۔ او دا دِ نابت خلاف صفتونه دي۔

اَوَلَمْ يَرَوْا: دا بل عقلي دليل دے دپاره د تعارف د الله تعالىٰ، او بل دپاره د رد شرك او د اثبات د توحيد، چه رزق د الله تعالىٰ په واك کښې دے نو شريکان جوړولو ته څه ضرورت دے۔ او پدے کښې په مخکني انسان باندے رد دے چه فراخي او تنګسيا د الله تعالىٰ د طرف نه وي نو ولے تکبر او نا اميدئ کوئ۔

دے وجے نه بندګانو له پکار دي چه د هغۀ د رحمت نه نا اميده کيږي نۀ، او د ګناهونو نه دے توبه ګار شي او د هغۀ نه دے بخنه غواړي دے دپاره چه هغه د خپل رحمت او د خپل فضل او کرم دراوازه دوباره پرانيزي۔

څکه چه ډير کرته يو کم عقل انسان به وي، په معمولي کار به ورته الله تعالىٰ ډير رزق ورکوي او بل به ډير هوښيار او عقلمند او طاقتور وي او رزق به ورته دومره نۀ ملاويږي، ددے نه معلوميږي چه رزقونو کښې تصرف والا الله تعالىٰ دے۔ ګنے د عقل تقاضا خو دا وه چه د هوښيار، عقلمند، طاقتور انسان رزق ډير وے او د کم عقل ساده انسان دے هيڅ رزق نۀ وے۔

| اَلرِّزْقُ يُخْطِیْ بَابَ عَاقِلِ قَوْمِهٖ | ❁ | وَيَبِيْتُ بَوَّابًا بِبَابِ الْاَحْمَقِ |
|---|---|---|

رزق په قوم کښې د عقلمند انسان دروازه خطاء کوي او د کم عقل په دروازه دربانچي کيدو سره شپه تيروي۔

فَاٰتِ ذَا الْقُرْبٰى: ربط

اُوس وائي چه د کاميابئ او نصرتِ الٰهي د حاصلولو دپاره مخکني پنځه کارونه وکړئ نو ورسره مال هم ولګوئ۔

بل نږدې سره متعلق دې، رزق فراخول او تنګول د الله تعالیٰ په لاس کښې دي، او د هغه په خزانو کښې هیڅ کمې نشته، نو ددې وجه نه مال لګوه او حقوق ادا کوه، او د بخل او د زړه تنګئ نه کار مۀ اخله، پدې سره ستا مال کښې تنګسیا نۀ بلکه فراخي پیدا کیږي.

نو پدې آیت کښې د رزق د فراخوالي سبب بیان شویدې چه هغه صله رحمي او د محتاجو سره احسان کول دي.

فَاٰتِ : دا خطاب اول نبي کریم ﷺ ته دې او بیا مراد ترینه امت دې.

ذَا الْقُرْبٰى : خپلوان ئې مخکښې راوړل ځکه چه غوره صدقه هغه ده چه په نږدې خپلوان وشي، پدې کښې د صدقې او د صله رحمئ دوه اجرونه راجمع کیږي، او دلته مراد احسان کول دي خپلوانو سره په صدقه او صله رحمي او نورو احساناتو سره، برابره ده که دوی په سخته محتاجئ کښې وي یا نۀ وي. او ددې نه فرضي زکاة مراد نۀ دې ځکه چه دا سورت مکي دې او زکاة په مدینه کښې د هجرت په دویم کال فرض شویدې. نو دا دلیل دې چه په مالداره خپلوان باندې واجب دي چه غریب خپلوان ته به مال ورکوي او دا قول د مجاهدؒ او قتادةؒ دې، مجاهدؒ وائي : [لَا تُقْبَلُ صَدَقَةٌ مِنْ اَحَدٍ وَرَحِمُهُ مُحْتَاجٌ]

د هیچا صدقه نۀ قبلیږي چه کله ئې رشته دار محتاج وي).

او حسن بصريؒ وائي : چه دا حکم د استحباب دپاره دې. (فتح البیان)

مګر کله چه خپلوان محتاج وي نو بیا دا حکم د وجوب دپاره دې ځکه چه دلته ئې (حَقَّهٗ) لفظ ذکر کړیدې معلومیږي چه ستا په مال کښې د خپلوان محتاج واجب حق شته.

يُرِيْدُوْنَ وَجْهَ اللّٰهِ : د ارادې نه مراد نیت کول دي نو اشاره ده چه ثواب په نیت سره حاصلیږي. او بله اشاره ده چه څوک د الله تعالیٰ د مخ نه متاثر وي نو هغۀ ته مال لګول آسان وي. هغه په الله تعالیٰ یقین لري چه زما مال په صدقې سره نۀ کمیږي.

وَالْمِسْكِيْنَ وَابْنَ السَّبِيْلِ: یعني مسکین او مسافر چه د کوم حق مستحق وي د هغې خیال هم ساته، مسافر ته د سفر توښه وغیره کمه شي نو د هغه مدد وکړه. دا درې کسان ئې ذکر کړل ځکه چه دوی د نورو په نسبت زیات مستحق دي.

بله دا چه دوی باندې صدقه کول واجب دي، چا سره چه د خپل ضرورت او د بال بچ د خرچې نه علاوه مال وي برابره ده چه زکاة وي او که نۀ وي، ځکه چه دلته مقصد شفقت کول دي، او دا پدې درې کسانو واجب دې اګر که زیاتي مال ورسره نۀ وي.

بیا امام مقاتلؒ وئیلی دی چه د مسکین حق دا دے چه په هغه صدقه وکړی او د مسافر حق دادے چه هغهٔ ته میلمستیا ورکړی۔

ذٰلِكَ خَيْرٌ: یعنی دا ورکړه د حقونو ډیر غوره دی د هغه کسانو دپاره چه الله تعالیٰ ته ځان نزدے کول غواړی۔ او پدے سره بنده الله تعالیٰ ته زیات نزدے کیږی ځکه چه محبوب مال ئے د زیات محبوب ذات دپاره ولګولو۔

وَ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ : او همدا خلق په دنیا او آخرت کښې مقصد ته رسیږی۔

| وَمَآ اٰتَيْتُمْ مِّنْ رِّبًا |
| --- |
| او هغه چه ورکوئ تاسو څه مال په نیت د زیاتی (په طریقه د سود) |
| لِّيَرْبُوَا فِيْٓ اَمْوَالِ النَّاسِ فَلَا يَرْبُوْا عِنْدَ اللّٰهِ |
| دے دپاره چه دا زیات شی په مالونو د خلقو کښې نو نهٔ زیاتیږی د الله تعالیٰ په نیز |
| وَمَآ اٰتَيْتُمْ مِّنْ زَكٰوةٍ تُرِيْدُوْنَ وَجْهَ اللّٰهِ فَاُولٰٓئِكَ |
| او هغه څه چه ورکوئ تاسو څه زکوٰة چه اراده لرئ تاسو مخ د الله تعالیٰ نو دغه کسان |
| هُمُ الْمُضْعِفُوْنَ ﴿۳۹﴾ |
| هم دوی زیاتونکی دی (اجرونو او مالونو خپلو لره)۔ |

**تفسیر**: ربط: ۱- مخکښې د انفاق تذکره وشوه چه مال ولګوه نو دے آیت کښې ئے وفرمایل چه د ربا (سود) نه ځان ساتل پکار دی، په ربا کښې ظلم دے او په اِنفاق کښې احسان دے، کله چه په بنده کښې د شفقت ماده وی نو د الله تعالیٰ مددونه هم راځی او پدے باندے آخرت جوړیږی، او دا د علم تقاضا ده لکه دا ددے سورت موضوعات دی۔ او ظلم او سودونو کولو سره د الله تعالیٰ مدد کټ کیږی، د آخرت خرابول دی، او دا د جاهلانو طریقه ده۔

۲- او د مال په لګولو سره مال زیاتیږی او په سود سره کمیږی۔

### اشکال او د هغے ازاله

پدے آیت کښې اشکال دا دے چه سود په مکه کښې حرام نهٔ وو او دا سورت مکی دے، او سود خو په سورة البقره باندے حرام شویدے کوم چه په مدینه کښې نازل شویدے او ددے

آیت نه خو معلو میږي چه سود په مکه کښې حرام دے؟ نو مفسرینو ددے اشکال جواب پدے طریقه کړے چه دلته د سود نه مراد بل قسم سود دے چه هغه سود د هدیه او تحفه دے۔ او د ربا نوم ئے ورته ایخودے دے ځکه چه د سود سره مشابهت لري۔ لکه ابن عباس ﷺ، عکرمةؒ، مجاهدؒ، ضحاكؒ او قتادةؒ وغیره ددے آیت تفسیر دا بیان کړے چه څوك چاته په دے نیت سره هدیه ورکوي چه هغه ددے په بدله کښې ددے نه بهتر شے ورکړي، نو د الله په نیز به دهٔ ته ددے هیڅ ثواب نهٔ ملاویږي، لیکن دنیوی طور سره دهٔ لپاره دا کار کول جائز دي۔

لکه رسول الله ﷺ ته یو اعرابي یو اُوښ هدیه کښې ورکړو، نو رسول الله ﷺ ورله شپږ ورکړل، نو هغه خفه شو (چه ددے نه به ئے زیات راکړي وے) نو ددے وجه نه رسول الله ﷺ وفرمایل: نزدے ده چه زهٔ نورے هدیې د چا نه نهٔ قبلوم مګر د دَوس او ثقیف او انصارو او قریشو نه قبلوم۔ (ترمذی: ۳۹۴۵) احمد (۳۷۵۹) واسناده صحیح)

(ځکه چه نور خلك ما ته په غلط نیت هدیه راوړي) نو دلته الله تعالیٰ په غلط نیت باندے هدیه راوړو باندے رد کوي۔

ابن عباس ﷺ او عکرمةؒ وائي چه د رِبا دوه قسمه دي: یو د اخستلو او خرڅولو ربا، چه دا شرعًا حرامه ده۔ او دویم چاله په دے نیت هدیه ورکول چه هغه ورله ددے نه بهتره بدله ورکړي، نو دا جائز دي۔

او که څوك د الله تعالیٰ د خوشحالئ دپاره صدقه او خیرات کوي، نو د الله وعده ده چه هغه به دهٔ له ددے څو چنده زیاته بدله ورکوي او ډیر کرته دا اُوچته شي او اووه سوه چنده زیاته شي، لکه چه د صحیح احادیثو نه ثابته ده۔

مګر دا تفسیر ظاهر د قرآن نهٔ دے اګر که په طریقه د استنباط پکښې داخلیږي۔ او هدیه ته ربا وئیل بعید دي۔

(۲) جواب: بعضو (امام شعبیؒ) وئیلي دي چه د ځینو خلکو عادت دا دے چه خپلو خادمانو ته مال او پیسے ورکوي ددے دپاره چه زما او زما د کور خدمت وکړي، نو مخکښې آیت کښې صدقه ذکر شوه خو په صحیح نیت او دے آیت کښې هم صدقه ذکر ده لیکن په بد نیت ده۔ چه په هغے سره د خلکو خدمت رابښکل مقصد وي۔

نو معنیٰ به دا وي چه تاسو چه کوم مال ورکوئ دے دپاره چه په مالونو د خلکو کښې زیاتوالے پیدا شي۔ یعنی دغه شخص تا له خدمت وکړي، پټے درله واړوي، دکانداري

درلَه وکړي نو دا د الله په نيز بے برکته دے))۔
دا کار هم دنیا پرستي ده چه انسان د خدمت د راښکلو دپاره صدقه او مال لګوي ليکن دا پدے آیت کښ داخلول غوره نهٔ دي او لرِ بعید دی۔
(۳) جواب : حقه خبره دا ده چه دلته د ربا نه مراد سود دے او پدے آیت کښ الله تعالیٰ د حرمت کومه خبره نهٔ ده کړے (اشکال به هله وے چه الله تعالیٰ دلته وئیلی وے چه سود مهٔ کوئ حرام دے) نو پدے آیت کښ الله تعالیٰ د سود بی برکتي بیانه کړیده، لکه د شرابو بدی الله تعالیٰ په سورة البقره کښ کړے وه لیکن حرمت ئے لا نهٔ وو نازل کړے، بلکه په سورة المائده سره ئے حرام کړو۔
نو دلته وائي چه سود یو بی برکته مال دے، یو نوع ظلم دے۔
نو مقصد د آیت دا دے چه په سود کښ بی برکتي او په صدقه او زکاة کښ برکت دے۔
نو دا ئے هم نهٔ دي وئیلی چه زکاة فرض دے ورئے کړئ بلکه د هغے دپاره خپل ځایونو کښ حکمونه شته او د سود حرمت ئے دلته بیان نکړو۔ او په مکه کښ به هم د سود بدی بیانیدله اګرکه لا حرمت ئے نازل نهٔ وو۔ لکه د شرابو مثال ئے شو۔
نو معنیٰ دا ده : ((او هغه مال چه تاسو ئے چا ته ورکړئ مِّنۡ رِّبًا : اَیۡ مِنۡ مَالٍ بِطَرِیۡقِ الرِّبَا) (یعنی مال په طریقه د سود) لِّیَرۡبُوَا: دے دپاره چه ډیروالے پیدا کړی په مالونو د خلکو کښ یعنی زر روپئ دے ورکړے دے دپاره چه یولس سوه ترے جوړی شي۔ فَلَا یَرۡبُوۡا عِنۡدَ اللهِ: نو دا مال نهٔ ډیرېږی د الله په نیز بلکه بی برکته شوے۔ د زړو چه کوم طاقت وو نو په یولس سوو کښ هغه نشته۔ نو دلته د حرمت هیڅ خبره نشته۔
مِّنۡ زَکٰوةٍ: د زکاة نه مراد فرضي زکاة دے۔ او دا په مکه مکرمه کښ فرض وو، لیکن مقادیر (اندازے) ئے په مدینه کښ بیان شو۔ او بناء په اولني قول به د زکاة نه مراد هغه زیاتي مال وی چه د عوض نه خالي وی یعنی هبه او صدقه۔
تُرِیۡدُوۡنَ وَجۡهَ اللهِ: دا ئے دوباره راوړو اشاره ده چه فرض او نفل هر عبادت په نیت باندے بناء دے۔
الۡمُضۡعِفُوۡنَ : اَیۡ لِمَالِهِمۡ وَثَوَابِهِمۡ۔ دوی زیاتونکی دي خپلو مالونو او خپلو ثوابونو لره۔ نو پدے کښ تقابل راغے چه خلك خو په سود سره مال زیاتول غواړي نو الله فرمائي چه زکاة او صدقے سره مال زیاتیږی۔

| اَللّٰهُ الَّذِیْ خَلَقَكُمْ ثُمَّ رَزَقَكُمْ ثُمَّ یُمِیْتُكُمْ ثُمَّ |
|---|
| الله هغه ذات دے چه پیدا کړی یے تاسو بیا روزی درکوی تاسو ته بیا به وژنی تاسو بیا به |
| یُحْیِیْكُمْ هَلْ مِنْ شُرَكَآئِكُمْ مَّنْ یَّفْعَلُ مِنْ ذٰلِكُمْ |
| ژوندی کوی تاسو آیا شته د برخه دارانو ستاسو نه هغه څوك چه کوی ددے کارونو نه |
| مِّنْ شَیْءٍ سُبْحٰنَهٗ وَتَعٰلٰى عَمَّا یُشْرِكُوْنَ ﴿۴۰﴾ |
| څه شے، پاك دے الله او اوچت دے د هغے نه چه دوی ورسره برخه داران جوړوی۔ |
| ظَهَرَ الْفَسَادُ فِی الْبَرِّ وَالْبَحْرِ بِمَا كَسَبَتْ |
| ښکاره شویدی عذابونه (بے برکتی) په اوچه او په دریاب کښی په سبب د هغے چه کړیدی |
| اَیْدِی النَّاسِ لِیُذِیْقَهُمْ بَعْضَ الَّذِیْ |
| لاسونو د خلقو دے دپاره چه اوڅکوی دوی ته (سزا) د بعض هغے عملونو |
| عَمِلُوْا لَعَلَّهُمْ یَرْجِعُوْنَ ﴿۴۱﴾ |
| چه دوی کړیدی، دے دپاره چه دوی راواپس شی (طاعت د الله تعالیٰ ته)۔ |

**تفسیر:** پدے کښی د الله تعالیٰ تعارف او رد د شرك کوی۔ او بیا اثبات د آخرت کوی۔ الله تعالیٰ خپل مشرك بندګان مخاطب کوی او د زجر او رټنے په توګه فرمائی چه الله تاسو پیدا کړی یئ او تاسو له یے روزی درکړیے، هغه به تاسو د یو مقرر عمر تیرولو نه پس وژنی، او د قیامت په ورځ به مو دوباره ژوندی کوی۔ آیا ستاسو د باطلو معبودانو نه څوك ددے خبرو قدرت لری؟۔ نو بیا تاسو د یو الله تعالیٰ په ځای ددے بتانو عبادت ولے کوئ؟۔ الله تعالیٰ د تمامو عیبونو او نقصاناتو نه پاك دے، او ددے نه ډیر زیات بلند او اوچت دے چه دروغژن معبودان ددهٔ برخه دار جوړ شی۔

ثُمَّ یُحْیِیْكُمْ: مشرکان لوی بی وقوف دی چه اولنئ درے خبرے منی، نو بیا دا څلورمه خنګه نهٔ منی او د عقل نه یے وړاندے ګنړی۔ حال دا چه دا ټول کارونه الله تعالیٰ ته یو شان آسان دی۔

ظَهَرَ الْفَسَادُ : پدے آیت کښی مشرکانو ته تخویف دے او ددے تعلق دے د نزدے آیت سره دے، چه شرك داسے قبیحه ګناه ده چه ددے په وجه د زمکے ټول مصیبتونه راځی او

دغه شان د شرك متعلق نور گناهونه. او دا د مخکښې ربا او انفاق سره هم لگی، یعنی کله چه خلك ربا (سود) کوی او انفاق نهٔ کوی، زکاة نهٔ ورکوی نو ددے په وجه به قحطونه، سیلابونه او زلزلے راځی. او ددے نه روستو بیا دلائل بیانیږی تر رکوع پورے. او سورة په همدے دلائلو ختم شویدے.

الْفَسَادُ فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ: د فساد مصداقات

۱- نُقْصَانُ الْبَرَكَةِ فِي الْأَشْيَاءِ - په څیزونو کښې برکت کمیدل. په اُوچه کښې گیاه گانے بوټی، او میوه جات او فصلونه نهٔ ډیریدل او په دریاب کښې د ماهیانو کمے، د ملغلرو او جواهرو کمے، د هغے نه پوره فائده نهٔ اخستل، د اُوبو کمیدل.

ددے وجه نه د عیسیٰ علیه السلام زمانه چه کله راشی، الله تعالیٰ به په څیزونو کښې دومره برکت واچوی چه د یوے گډے په پیو باندے به یوه قبیله مړیږی. او په یوه انار دانه به یوه ډله مړیږی او د هغے د پوستکی نه به یو چهت جوړیږی (دومره غټ به وی) ماران لړمانان به چیچل نهٔ کوی، او زمری او درنده گان به ماتول نهٔ کوی.

د بنو اُمیه په خزانه کښې یو کاغذ راووتو چه په هغے کښې د غنم یوه دانه، د کجورے د زړی په اندازه راووته او دائے ورسره لیکلی وو چه [كَانَ يَنْبُتُ هٰذَا اَيَّامَ الْعَدْلِ] چه د عدل په زمانه کښې به دومره غټ غټ غنم کیدل. امام ابو داودؒ په کتاب الزکاة کښې لیکلی دی چه زهٔ مصر ته لاړم هلته ما دومره لوی بادرنگ او ترې ولیدهٔ چه ما خپله اندازه کړو نو دیارلس لویشتے وختهٔ او دوه بادرنگه به یو اُوښ وړل.

او زمونږ پدے زمانه کښې په عمرونو کښې بی برکتی، زر ژوند تیریږی، هیڅ کار پکښې انسان ونکړی، ځوانی څومره زر تیره شی، زر بوډا والے راشی، په صحت او رزق کښې بی برکتی، میوه جاتو کښې هغه خوندونه نشته، اگر که رزقونه هر څومره فراخه دی، لیکن خلك وږیے لیوالـه دی، رزق مخکښې او دوی وروستے دی، دا ټول د گناهونو د وجه نه. که دا گناهونه نهٔ وے نو الله به هر شی کښې برکات اچولی وے. گناه څه وړه خبره نهٔ ده.

نحاسؒ وائی چه دا پدے آیت کښې ډیر ښهٔ مصداق دے.

۲- د فساد دویم مصداق عذاب دے. لکه طوفانونه، زلزلے وغیره داسے عذابونه چه ټول نهٔ ختموی لکه (لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ) نه معلومیږی.

۳- نرخونه خرابیدل، اسباب د ژوند کمیدل، یا لارے شوکیدل، ظلمونه کیدل.

د بر او بحر نور مصداقات : ۲ - د بر نه صحراوونه او د بحر نه مراد هغه کلی چه د اُوبو په غاړو وی۔ (عکرمۃ) او عرب ښارونو ته بحار وائی۔
۳- مجاهدٌ وائی چه د بر نه مراد هغه ښارونه او کلی دی چه په نهرونو باندے نهٔ وی۔ او بحر هغه دی چه د نهرونو په غاړو وی۔
بِمَا كَسَبَتْ اَيْدِى النَّاسِ: په اُوچه او لمده کښې د تولو نه لوی شر او فساد او د خلکو بد عمل دا دے چه الله سره بل څوك برخه دار جوړ کړے شی، د هغهٔ شریعت یو طرفته کولو سره ژوند تیر کړے شی، د حلالو او حرامو تمییز پورته کړے شی چه ددے په نتیجه کښې د خلقو ځان، مال او عزت محفوظ نشی پاتے کیدے، او د دوئ د اعمالو د سپیرهٔ والی په وجه الله تعالیٰ په دوئ باندے قحط سالی، گرانی، جنگ او جگړے او فتنے او فسادونه مسلط کوی، او ددے مقصد دا وی چه شاید ددے دنیوی سزاگانو نه خلق متاثره شی، او الله تعالیٰ طرفته رجوع وکړی، او د خپلو گناهونو نه توبه گار شی، گویا که په دے کښې هم د الله تعالیٰ رحمت پټ وی۔
لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ : یعنی دے دپاره چه الله تعالیٰ ته توبه وباسی، دے دپاره چه انجام ئے ښه شی۔ او کوم خلك چه د گناهونو نه توبه نهٔ وباسی نو د هغوی انجام وگورئ لکه روستو آیت کښې فرمائی :

| قُلْ سِيْرُوْا فِى الْاَرْضِ فَانْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلُ |
|---|
| ووایه ! وگرځئ په زمکه کښې نو اُوگورئ چه څنګه شو انجام د هغه کسانو چه مخکښې وو |
| كَانَ اَكْثَرُهُمْ مُّشْرِكِيْنَ ﴿۴۲﴾ فَاَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّيْنِ الْقَيِّمِ مِنْ قَبْلِ |
| وو زیات د هغوی مشرکان۔ نو برابر کړه مخ خپل هغه دین ته چه مضبوط دے مخکښې |
| اَنْ يَّاْتِىَ يَوْمٌ لَّا مَرَدَّ لَهٗ مِنَ اللّٰهِ يَوْمَئِذٍ |
| ددے نه چه راشی یوه ورځ چه نهٔ به وی واپسی د هغے د طرف د الله نه، په دغه ورځ به |
| يَّصَّدَّعُوْنَ ﴿۴۳﴾ مَنْ كَفَرَ فَعَلَيْهِ |
| تکړے کړے شی خلق۔ (تقسیم به کړے شی)۔ چا چه کفر کړیدے نو په هغه باندے به |

كُفْرُهٗ وَمَنْ عَمِلَ صَالِحاً فَلِاَنْفُسِهِمْ يَمْهَدُوْنَ ﴿٤٤﴾

کفر ددهٔ وی او چا چه عمل کړے نیك نو د ځانونو خپلو دپاره ځائے تیاروی۔

لِيَجْزِيَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ

دے دپاره چه بدله ورکړی هغه کسانو ته چه ایمان ئے راوړیدے او عملونه ئے کړیدی نیك

مِنْ فَضْلِهٖ اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الْكٰفِرِيْنَ ﴿٤٥﴾ وَمِنْ اٰيٰتِهٖ اَنْ

د مهربانئ خپلے نه، یقیناً الله مینه نهٔ کوی کافرانو سره۔ او بعض د نخو د الله نه دا ده

يُّرْسِلَ الرِّيَاحَ مُبَشِّرٰتٍ وَّ لِيُذِيْقَكُمْ مِّنْ رَّحْمَتِهٖ

چه رالیږی هواګانے زیرے ورکونکی او دے دپاره چه اُوڅکوی تاسو ته د رحمت خپل نه

وَلِتَجْرِيَ الْفُلْكُ بِاَمْرِهٖ وَ لِتَبْتَغُوْا

او دے دپاره چه روانے وی کشتئ په حکم د هغه سره او دے دپاره چه اُولټوئ تاسو

مِنْ فَضْلِهٖ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿٤٦﴾

د فضل د هغه نه او شاید چه تاسو به شکر اُوکړئ۔

**تفسیر**: د نبی کریم ﷺ پـه ژبه د مکے کافرانو ته وئیلے کیږی چه تاسو په زمکه باندے ګرځیدو سره د هغه قومونو انجام په خپلو سترګو ولے نهٔ وینئ چه هغوئ ستاسو پشان مشـرکان وو، او د خپلو انبیاؤ د توحید د دعوت نه ئے انکار کړے وو، نو الله تعالیٰ هغوئ هـلاك کـړل، او د هـغـوئ د کـلـو کنډرات اُوسه پورے د هغوئ د ذلت او رسوائی ګواهی ورکوی۔

كَانَ اَكْثَرُهُمْ مُّشْرِكِيْنَ: ١ – یـعنی په دوی کښ اکثر اقوامِ مُکذبه مشرکان وو، او کم خلك پکښ مؤمنان وو۔

٢ – بـعض معنیٰ کوی د اکثرو کلو د هلاکت وجه شرك وو۔ او په بعض قومونو باندے د نورو ګناهونو د وجه نه هم عذابونه راغلی دی۔ لیکن اوله معنیٰ غوره ده۔

فَاَقِمْ وَجْهَكَ: مـخـکـښ د کفر او شرك تبـا هی بیـان شوهٔ نو اُوس نبی کریم ﷺ او مسـلـمـانـانو تـه د نـجات لاره یـعنی اسلامی دین طرفتـه لاربنوونه کوی، او دوئ تـه

نصیحت کوی چه د دنیا او د آخرت د بربادئ نه د بچ کیدلو یواځینی ذریعه داده چه تاسو اسلام د دین او شریعت په حیثیت سره قبول کړئ او په خپله زندګئ کښې ددے احکام جاری او نافذ کړئ، د قیامت د هغه ورځے د راتللو نه وړاندے چه کله به د عمل فرصت ختم شی، او خلق به په دوه ډلو کښې تقسیم شی، یوه ډله به جنت ته ولیږلے شی، او دویمه ډله به د جهنم شغلو ته حواله کړے شی، لکه چه د همدے سورت په (۱٤) آیت کښې راغلی : ﴿ وَيَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ يَوْمَئِذٍ يَّتَفَرَّقُوْنَ ﴾ (په کومه ورځ چه قیامت قائم شی، په دغه ورځ به ټول انسانان په ډلو کښې تقسیم شی).

فَاَقِمْ وَجْهَكَ: یعنی په دین باندے عمل کوه او ددے احکام او اعمال جاری او نافذ کړه. او د مشرکانو د مخالفتونو سره سره په توحید او دین باندے کلك شه.

لَا مَرَدَّ لَهٗ: ۱- مصدر دے، یعنی نشته واپس کیدل ددے، ۲- او په معنیٰ د فاعل سره استعمالیږی اَیْ لَارَادَّ لَهٗ. یعنی نشته هیڅوك واپس کونکے ددے ورځے.

مِنَ اللّٰهِ: یعنی د الله تعالیٰ نه په غیر. او الله خوئے نهٔ واپس کوی نو یقیناً به راځی. یا نشته واپسی د هغے دپاره د طرف د الله نه. یا مِنَ الله متعلق دے د (اَنْ يَّاْتِيَ) پورے یعنی رابه شی د طرفه د الله نه.

يَصَّدَّعُوْنَ : صدع چاودلو ته وئیلے شی یعنی خلك به وچوی او په دوه ډلو کښې به تقسیم شی. اشاره ده پوره جدا کیدو ته.

مَنْ كَفَرَ: چا چه په دنیا کښې کفر او شرك وکړو نو په هغهٔ باندے به د هغهٔ کفروی په آخرت کښې. یعنی د کفر نه به یوه مجسمه جوړه شوی وی او ددهٔ په سر باندے به بار شوے وی. یا د (کفره) نه مراد سزا د کفر د هغهٔ ده.

وَمَنْ عَمِلَ صَالِحًا : او کوم خلق چه نیك عمل وکړی دوئ د خپل خان دپاره په جنت کښې کورونه جوړوی، دے دپاره چه د قیامت په ورځ الله دوئ په خپل فضل او کرم سره هلته اُولیږی او د هغوئ د ایمان او عمل صالح ښه بدله ورکړی.

يَمْهَدُوْنَ : مهد په اصل کښې همواره ولو ته وئیلے شی یعنی خانله د آرام ځای هموار وی او تیاروی په قبر او په حشر کښې.

لِيَجْزِيَ الَّذِيْنَ : دا متعلق دے د (يَاْتِيَ يَوْمٌ) پورے یعنی دا ورځ به ددے دپاره راځی چه الله تعالیٰ پکښې د بندګانو د عملونو بدلے ورکړی.

مِنْ فَضْلِهٖ: یعنی جزاء د دوی خالص فضل د الله تعالیٰ دے، په الله باندے واجب نهٔ ده.

إِنَّهُ لَا يُحِبُّ الْكٰفِرِيْنَ : دا ورسره ځکه وائی چه څوك دا ونهٔ وائی چه الله خپل فضل صرف مؤمنانو ته ورکوی نو کیدے شی چه د الله فضل به کم وی نو الله فرمائی چه فضل ئے بنه ډیر دے لیکن کافران ئے دشمنان دی، د هغوی سره ئے محبت نشته نو ځکه ورته فضل نهٔ ورکوی۔

نو ایمان والا د خپل ځان دپاره جنت کښې د خپل عمل په وجه کور جوړوی او دپاسه پرے د الله تعالیٰ فضل هم ملاویږی چه هغه د جنت نور نعمتونه دی۔

وَمِنْ اٰيٰتِهٖ : بیا دلیلونه راوړی نو دا خو یا د قیامت د اثبات دپاره دلیلونه دی، لکه دا د قرآن طریقه ده چه د آخرت د تذکرے نه روستو د هغے د اثبات دپاره دلیلونه ذکر کوی۔ دویم د کفر د رد دپاره ذکر شویدی یعنی اے انسانه ! ته څنګه کفر کوے او د رب دے نعمتونو ته نهٔ ګورے۔ او د باران او د کشتیو تذکره ئے وکړه اشاره ده چه اے کافرانو ! تاسو د کفر او شرارت نه منع شئ د کوم په وجه چه بارانونه بندیږی او فسادونه پیدا کیږی او د الله تعالیٰ ددے نعمتونو شکر ګوزار جوړ شئ۔

او پدے آیت کښې ئے د هواګانو پنځه فائدے ذکر کړیدی۔

یعنی د الله تعالیٰ د ربوبیت او د هغهٔ د قدرت او د توحید یو دلیل هواء ده، چه الله تعالیٰ ئے د باران لیږلو نه مخکښې د زیری په توګه رالیږی، او د انسان امید پیدا شی چه اوس به ډیر زر باران وشی۔ په دے طریقه د هواء په چلولو باندے صرف الله قادر دے، دے دپاره چه د رحمت (باران) په نازولو باندے خلقو دپاره د هغوئ روزی تیاره کړی، او دے دپاره چه په سمندر کښې کشتئ د هواء په ذریعه د هغهٔ په حکم سره د یو ځای نه بل ځای پورے د تجارت سامان منتقل کړی، او خلق په مختلفو ملکونو کښې د تجارتی سامانونو د اخستلو او خرڅولو په ذریعه خپله روزی حاصله کړی، او د خپل رب شکر اداء کړی۔

وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ : داسے ئے ونهٔ وئیل چه (لِتَشْكُرُوْا) دے دپاره چه تاسو شکر وکړئ۔ بلکه په طریقه د ګمان سره ئے ووئیل، او دا په هغه وخت کښې مخاطب ته وئیلے کیږی چه انسان د مخاطب د کار نه پوره معتمد نهٔ وی یعنی یقین مے درباندے نشته خو کیدے شی چه ستاسو نه شکر وشی۔ او پدے کښې یو قسم زورنه ده چه ددے نعمتونو نه روستو خو د الله شکر خامخا پکار وو۔

| |
|---|
| وَلَقَدۡ اَرۡسَلۡنَا مِنۡ قَبۡلِكَ رُسُلًا اِلٰى قَوۡمِهِمۡ فَجَآءُوۡهُمۡ |
| او یقیناً رالیږلي دي مونږ مخکښې ستا نه رسولان قومونو د هغوی ته نو راغلل هغوی |
| بِالۡبَيِّنٰتِ فَانۡتَقَمۡنَا مِنَ الَّذِيۡنَ اَجۡرَمُوۡا وَ كَانَ حَقًّا |
| ته په ښکاره معجزاتو نو بدله واخسته مونږ د هغه کسانو نه چه مجرمان وو او دے لازم |
| عَلَيۡنَا نَصۡرُ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ ﴿۴۷﴾ اَللّٰهُ الَّذِىۡ يُرۡسِلُ الرِّيٰحَ |
| په مونږ باندے مدد کول د مؤمنانو۔ خاص الله هغه ذات دے چه رالیږي هواګانے |
| فَتُثِيۡرُ سَحَابًا فَيَبۡسُطُهٗ فِى السَّمَآءِ كَيۡفَ |
| پس راپورته کړي وریځے نو خورے کړي هغے لره الله تعالیٰ په آسمان کښې څنګه ئے چه |
| يَشَآءُ وَيَجۡعَلُهٗ كِسَفًا فَتَرَى الۡوَدۡقَ |
| غواړي او ؤکړځوي هغے لره ټکړے لاندے باندے نو وینے به ته څاڅکي د باران |
| يَخۡرُجُ مِنۡ خِلٰلِهٖ فَاِذَاۤ اَصَابَ بِهٖ مَنۡ يَّشَآءُ |
| چه راؤځي به د مینځ د هغے نه نو کله چه ؤرسوي هغے لره هغه چا ته چه ؤغواړي |
| مِنۡ عِبَادِهٖۤ اِذَا هُمۡ يَسۡتَبۡشِرُوۡنَ ﴿۴۸﴾ وَاِنۡ كَانُوۡا مِنۡ قَبۡلِ اَنۡ |
| د بندګانو خپلو نه دغه وخت دوی خوشحاله شي۔ او اګرکه وو دوی مخکښې ددے نه |
| يُّنَزَّلَ عَلَيۡهِمۡ مِّنۡ قَبۡلِهٖ لَمُبۡلِسِيۡنَ ﴿۴۹﴾ |
| چه راؤورولے شي باران په دوی باندے مخکښې ددے وخت نه نا امیدي کونکي۔ |
| فَانۡظُرۡ اِلٰۤى اٰثٰرِ رَحۡمَتِ اللّٰهِ كَيۡفَ يُحۡىِ الۡاَرۡضَ بَعۡدَ مَوۡتِهَا ؕ اِنَّ |
| نو ؤګوره نخو د رحمت د الله ته چه څنګه ژوندئ کوي زمکه روستو د ؤچوالي نه یقیناً |
| ذٰلِكَ لَمُحۡىِ الۡمَوۡتٰى ۚ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ قَدِيۡرٌ ﴿۵۰﴾ |
| دغه ذات خامخا ژوندي کونکے د مړو دے او هغه په هر شي پوره قدرت لرونکے دے۔ |

**تفسیر:** ؤس تخویف دنیوي ورکوي چه څوك د الله تعالیٰ نافرماني کوي نو الله به ورله سزا ورکړي لکه څنګه چه پخوانو ته ئے د هغوی د نافرمانیو او د پیغمبرانو د

مخالفت په وجه عذابونه ورکړیدي.

صاحب د فتح البیان وائی چه په دے آیتِ کریمه کښې الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ له تسلی ورکړے چه مونږ تاته مخکښې هم ډیر زیات انبیاء او رسولان د خپل پیغام رسولو دپاره رالیږلی وو، لکه نوح، هود، صالح، ابراهیم، لوط او شعیب علیهم السلام او نور انبیاء کرام او د دوئ د تائید او تصدیق دپاره مو آیتونه او معجزات هم ورکړی وو، نو کومو قومونو چه خپل رسولان دروغژن اُوګنړل نو مونږ هغوئ تباه کړل او کومو خلقو چه ایمان راوړو هغوئ مو بچ کړل، ځکه چه د مسلمانانو تائید او نصرت مونږ په خپل ځان فرض کړے دے. مفسرین لیکی چه په دے کښې د قریشو کافرانو ته دهمکی ده چه که دوئ هم د خپل کفر او شرك نه توبه ونۀ ځکله نو د دوئ انجام به هم د دغه قومونو غونته شی. او په هر دور کښې مومنانو دپاره د الله تعالیٰ وعده ده چه هغه دوئ ضائع کولو ته نۀ پریدی، بلکه هغوئ له عزت او غلبه ورکوی، لکه څنګه چه الله په سورت آل عمران (۱۳۹) آیت کښې فرمائیلی دی: ﴿وَأَنتُمُ الْأَعْلَوْنَ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ﴾ (که چرے تاسو مومنان شئ نو بس هم تاسو به غالبه شئ او صرف تاسو له به برتری حاصلیږی).

وَكَانَ حَقًّا عَلَيْنَا نَصْرُ الْمُؤْمِنِينَ : دا حق تفضلی دے یعنی الله په ځان لازم کړیدے او دا حق واجبی نۀ دے چه د بندګانو د طرفنه په الله باندے واجب وی او بیا د هغۀ نه د هغے تپوس کیږی لکه بندګانو باندے چه کوم حقوق واجب دی د هغے تپوس ترے کیږی.

اَللّٰهُ الَّذِیْ: دا اُوس دلیل د قدرت راوړی په نصرت الهی باندے. یعنی الله په نصرت د مؤمنانو قادر دے وګوره د هغه کائناتو او تصرفاتو ته. او پدے درے آیتونو کښې د بعث بعد الموت او د قیامت په ورځ د جزاء او سزا عقیده بیان شوے ده چه الله تعالیٰ په خپل قدرت سره هواء رالیږی چه هغه وریځے له حرکت ورکوی، او هغه وریځ د هغۀ په حکم سره په فضاء کښې د هغۀ د حکمت او مصلحت مطابق خوریږی، چرته تینګه وی نو چرته سپکه، چرته زیاته وی نو چرته کمه. بیا الله تعالیٰ دوباره ددے ټکړے جوړے کړی چه د هغے د مینځ نه د بارانۀ څاڅکی راوځی او د زمکے په مخ را غورزیږی، او خلق د رحمت باران مومی او خوشحالی مناوول شروع کړی، او د خشکئ او قحط سالئ په وجه چه دوئ ته کوم خفګان او ستومانی رسیدلے وه هغه ختمه شی. او د عربو په ملکونو کښې - چه هلته خشك سالی او ګرمی زیاته وی- خلك په باران سره ډیره خوشحالی کوی.

کِسَفًا: ټکړې ټکړې چه د یو بل دپاسه وي.

وَاِنْ کَانُوْا مِنْ قَبْلِ اَنْ یُّنَزَّلَ: اَنْ په معنیٰ د (قَدْ) سره یعني خامخا خلك مخکښې د نازلیدو د باران نه د باران نه نا امیده وو. نو د (مِنْ قَبْلِهٖ) ضمیر باران ته راجع دے، او دوه ځله ئې ذکر کړو د تاکید دپاره. زمخشري وائي چه پدے کښې تاکید پدے طریقه دے چه د خلکو نه د باران د نه کیدو موده اوږده شوے وه نو د دوی نا امیدي مضبوطه شوے وه نو ددے وجه نه د هغوی خوشحالي د هغوی د خفګان په اندازه راغله.

ابن عطیة وائي: ددے تاکید فائده دا ده چه خبردارے ورکوي چه د بندګانو زړونه د نا امیدۍ نه خوشحالۍ ته ډیر زر نقل کیږي.

بعض وائي چه (مِنْ قَبْلِهٖ) ضمیر دغه وخت ته راجع دے یعني مخکښې د نازلیدو د باران نه مخکښې د دغه وخت نه. یا ضمیر وریځے ته راجع دے یعني مخکښې د لیدو د وریځے نه. یا ضمیر استبشار ته راجع دے کوم چه په یَسْتَبْشِرُوْنَ کښې ذکر دے. یعني مخکښې د خوشحالۍ نه په نا اُمیدۍ کښې وو. (فتح البیان)

او په حدیث کښې دي چه الله تعالیٰ هغه بندګانو ته خاندي چه نا اُمیده وي، او باران ورېے نزدے (صبا له) ورروان وي، الله خاندي چه دا بندګان د الله په رحمت او قدرت څومره بد ګمانه دي. دا حاصل د حدیث دے.

(حدیث حسن، ابن ماجه، ۶٤/۱ رقم: ۱۸۱ واحمد ۱۱/٤-۱۲)

فَانْظُرْ اِلٰی اٰثٰرِ رَحْمَتِ اللهِ: د رحمة الله نه مراد باران دے، او د هغے آثار بوټي، ونے او فصلونه او ښیکیانے دي.

اِنَّ ذٰلِكَ لَمُحْيِ الْمَوْتٰی: الله تعالیٰ وفرمایل چه لکه څنګه چه هغه زمکه دوباره د رحمت په بارانه سره ژوندۍ کوي او په هغے کښې ښینکي رازرغونیږي، دغه شان به هغه د قیامت په ورځ خلق دوباره ژوندي کوي، ځکه چه دغه برحق ذات په هر شي باندے قادر دے.

| وَلَئِنْ اَرْسَلْنَا رِیْحًا فَرَاَوْهُ مُصْفَرًّا لَّظَلُّوْا |
| --- |
| او که چرته راولیږو مونږ هوا نو اُووینی دوی هغے (فصل) لره زیړ خامخا وبه ګرځی دوی |
| مِنْ بَعْدِهٖ یَکْفُرُوْنَ ﴿۵۱﴾ فَاِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتٰی وَلَا تُسْمِعُ الصُّمَّ |
| روستو ددے نه چه ناشکري به کوي. نو یقیناً ته نشې آوروله مړو ته او نشې اوروله کڼو ته |

| الدُّعَآءَ اِذَا وَلَّوْا مُدْبِرِيْنَ ﴿٥٢﴾ وَمَآ اَنْتَ بِهٰدِ الْعُمْيِ عَنْ ضَلٰلَتِهِمْ |
|---|
| آواز کله چه وګرځی دوی شاکونکی۔ او نهٔ یې ته لار خودونکے ړندو ته د ګمراهۍ د هغوی |
| اِنْ تُسْمِعُ اِلَّا مَنْ يُّؤْمِنُ بِاٰيٰتِنَا فَهُمْ |
| نه، اَورول نشے کولے ته مګر هغه چاته چه ایمان لری په آیتونو زمونږ نو دوی |
| مُّسْلِمُوْنَ ﴿٥٣﴾ اَللّٰهُ الَّذِىْ خَلَقَكُمْ مِّنْ ضُعْفٍ ثُمَّ جَعَلَ |
| منونکی وی۔ خاص الله هغه ذات دے چه پیدا کړی یې تاسو د کمزورتیا نه بیا یې ګرځولے |
| مِنْ بَعْدِ ضُعْفٍ قُوَّةً ثُمَّ جَعَلَ مِنْ بَعْدِ قُوَّةٍ ضُعْفًا |
| دے روستو د کمزورئ نه طاقت بیا یې ګرځولے دے روستو د طاقت نه کمزوری |
| وَّ شَيْبَةً يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ وَهُوَ الْعَلِيْمُ الْقَدِيْرُ ﴿٥٤﴾ |
| او بوډاوالے، پیدا کوی هغه څه چه اُوغواړی او هغه پوهه دے قدرت لرونکے دے۔ |

**تفسیر:** اُوس الله تعالیٰ خپل امتنان (احسان) بیانوی چه الله تعالیٰ تاسو ته بارانونه رالیږی او د هغے نه ګیاهګانے رازرغونوی او د هغے نه تاسو فائدے اخلئ، الله داسے هم کولے شوه چه پدے ګیاهګانو ئے درله عذاب راوستے وے۔ نو نعمت چه کله پیدا شی او بیا ورك شی نو انسان سخت پریشانه کیږی۔

وَلَئِنْ اَرْسَلْنَا رِيْحًا : مطلب دا دے که چرے الله تعالیٰ په شنو پټو باندے د آزمائش په توګه تیزه او تنده ګرمه یا یخه هواء را ولیږی، چه هغه نیست او نابوده کړی، نو کافر انسانان د الله تعالیٰ تمام مخکنی نعمتونه هیر کړی او ایك دم په ناشکرئ باندے راشی او وائی چه مونږ خو هیڅ کله هم خوشحالی لیدلے نهٔ ده، مونږ همیشه د الله د طرفه په آزمائش کښې پاتے شوی یو۔ شوکانی لیکی چه د ایمان والو حال ددے نه بدل دے۔

فَرَاَوْهُ: دا ضمیر راجع دے نباتاتو او زرع (فصلونو) ته کوم چه په آثار رحمة الله سره بیان شو۔

مُصْفَرًّا: (زیړ) یعنی یخے یا ګرمے هواء وهلے وے، او د هغے په وجه مراوے شوے وے او بیا زیړ شوے وے۔

يَكْفُرُوْنَ: ناشکری به کوی، یعنی په الله به پړهٔ وراچوی چه هغهٔ عذاب راوستو او الله

مونږ سره زیاتے وکړو۔ نو په الله تعالیٰ باندے بنهٔ کافر شي، نو دا د انسانانو مزاج وی چه یا ناشکری کوی یا د الله تعالیٰ د ذات نه غفلت کوی۔

فَإِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتَىٰ : پدے آیت کښې فرمائی چه کافرانو ته ډیر دلیلونه بیان شو لیکن په دوی باندے هیڅ اثر نکوی لکه د مړو په شان دی۔ ځکه چه دوی کښې درے مرضونه دی، زړونه ئے مړهٔ دی، غوږونه ئے کاڼهٔ دی، او سترګے ئے ړندے دی، او څوک چه دغه شان وی نو هغه به څه واوری او په څه خبره به سوچ وکړی او څه لاره به وینی۔ درے تشبیهات ئے ورکړیدی۔ نو دوی نهٔ قیامت منی او نهٔ توحید منی او د الله تعالیٰ سره به شریکان جوړوی۔

الْمَوْتَىٰ : دلته ئے کافران د مړو سره مشابه کړل لکه څنګه چه مړی نهٔ آوری نو دغه شان کفار ستا خبره او د حق دعوت نهٔ قبلوی او ستا د نصیحتونو نه دوی هیڅ فائده نهٔ اخلی او خبره نهٔ قبلول په منزله د عدم سماع (نهٔ آوریدو) دی۔

په ﴿ إِذَا وَلَّوْا مُدْبِرِينَ ﴾ کښې ددے کافرانو سخت منع کیدل او سخت اعراض بیان شوے چه که یو کس ودریږی او د بلونکی آواز آوریدل غواړی نو شاید چه هغه آواز ددهٔ په زړهٔ باندے اثر وکړی، لیکن کوم کس چه خپل غوږونه بند کړی او روستو تاویدو سره وتښتی او روان شی نو ددهٔ نه کله اُمید کیدے شی چه د بلونکی آواز به په دهٔ باندے اثر وکړی۔ د نبی کریم ﷺ د دعوت نه اعراض کولو کښې د قریشو هم دغسے کیفیت وو۔

وَمَا أَنتَ بِهَٰدِ الْعُمْيِ : اُوس دوی د ړندو سره مشابه کوی چه د دویٔ د زړونو سترګے ړندے شوی دی، او په ګمراهیٔ کښې ډیر لرے تللی دی، دویٔ لره تهٔ په نیغه لاره نشے راوستے۔ ستا د حق دعوت به هغه خلق قبلوی چه زمونږ په آیتونو ایمان لری او د اسلام په کړیٔ کښې را ننوتی دی، ځکه د همدویٔ دل او دماغ ستا آواز ته په لبیك وئیلو سره تیار دی، او همدویٔ زمونږ په نښو کښې د غور او فکر کولو نه کار اخلی۔

او پدے درے تشبیهاتو کښې تنزُّل دے د اعلیٰ نه اَدنیٰ ته، د مړو پو هه کول ممکن نهٔ دی، نو هغه ئے اول ذکر کړو، بیا د کنړو پو هه کول ډیر سخت دی، بیا د ړندو پو هه کول لږ سخت دی۔

او د آیت نوره تشریح مخکښې سورة النمل کښې ذکر شویده۔

اَللّٰهُ الَّذِیْ خَلَقَکُمْ مِّنْ ضُعْفٍ: دا بل عقلی دلیل دے، د الله تعارف هم، او د اثبات د آخرت دلیل هم دے۔ الله تعالیٰ تمام انسانان په عامه توګه او د قریشو کافران په خاصه

تو کـه مـخاطب کوی او فرمائی چه تاسو د مرگ نه پس د دوباره ژوندون نه څنګه انکار کـوئ؟ ولـې پـه دې بـدګـمانئ کښې مبتلا يئ چه مونږ د انسانانو په دوباره ژوندی کولو قـادر نهٔ يو. که چرې تاسو د خپل پيدائش په مراحلو (پړاوونو) باندې غور کړې وې، نو داسې غلطی به مو نهٔ کولې.

ستاسو هيڅ وجود نهٔ وو نـو مـونږ تاسـو د يوې سپکې نطفې نه پيدا کړئ. بيا مو د مـاشوموالی د مرحلې نه تير کړئ او ځوانان مو جوړ کړئ، بيا مو بوډاګان کړئ، او دومره بـوډاګـان مو جوړ کړئ چه افسوس او نا اُميدی ستاسو په مخونو راخوره شوه، او تاسو د کـمزورئ اوبې وسئ يو تصوير جوړ شوئ، او بيا مرګ په تاسو راغې. نو کوم حق ذات چه تاسو لره د نشت والی نه وجود ته په راوستو قادر دې، آيا هغه تاسو دوباره نشی پيدا کولې؟ ولې نهٔ، ستاسو ددې خبرې نه زياته دې عقلئ بله خبره نشی کيدې.

الْعَلِيْمُ الْقَدِيْرُ: الله تـعـالـیٰ پـه احـوالـو بدلولو قادر دې، نطفه، بيا انسان غټيدل، بيا کمزورې بوډا کيدل بيا مړ کيدل، نو يوه خبره پاتې شوه چه د قبر نه بيرته راپورته کول نو اې مشرکـانـو تـاسـو دومره تغيرات منئ او دا يو دوباره راپورته کيدل نهٔ منئ. په قرآن کـريـم د انسان د احـوالـو پـه تغير باندې ډير دليل نيولې شويدې دپاره د اثبات د قيامت. سورة يس آيت (٦٨) کښې به هم راشی ﴿وَمَنْ نُعَمِّرْهُ نُنَكِّسْهُ فِي الْخَلْقِ﴾.

وَيَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ يُقْسِمُ الْمُجْرِمُوْنَ مَا لَبِثُوْا

او په کومه ورځ چه قائم شی قيامت قسمونه به کوی مجرمان، درنګ نهٔ دې تير کړې

غَيْرَ سَاعَةٍ كَذٰلِكَ كَانُوْا يُؤْفَكُوْنَ ﴿٥٥﴾

دوی سوئ د يو ساعت نه دغسې وو دوی چه اړولې به شو (د حق نه).

وَقَالَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ وَالْاِيْمَانَ لَقَدْ لَبِثْتُمْ

او وبه وائی هغه کسان چه ورکړې شويدې علم او ايمان يقيناً تاسو وخت تير کړيدې

فِيْ كِتٰبِ اللّٰهِ اِلٰى يَوْمِ الْبَعْثِ

په ليکلې شوی (تقدير) د الله تعالیٰ (په علم د الله) کښې تر ورځې د دوباره ژوند پورې

فَهٰذَا يَوْمُ الْبَعْثِ وَلٰكِنَّكُمْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿٥٦﴾ فَيَوْمَئِذٍ لَّا يَنْفَعُ

نو دا ورځ د دوباره ژوند ده، ليکن تاسو پوهه نهٔ لرله۔ نو په دغه ورځ به فائده نهٔ ورکوی

الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مَعْذِرَتُهُمْ وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُوْنَ ﴿٥٧﴾

هغه کسانو ته چه ظلم ئے کړيدے عذر د دوی او نهٔ به د دوی نه طلب د توبے اُوکړے شی۔

**تفسير:** اُوس تخويف اُخروی بيانوی۔

د قيامت په ورځ به د کفر او شرك او ګناهونو کونکی مجرمان قسمونه خوری، او وائی به چه مونږ خو په دنيا کښ صرف يو ساعت ايسار شوی وو۔ ساعت مطلق وخت ته هم وائی او يوے ګينټے ته هم۔ د اکثرو مفسرينو وينا ده چه دا خلق به دروغ وائی، دے وجے نه الله تعالیٰ وفرمايل ﴿ كَذٰلِكَ كَانُوْا يُؤْفَكُوْنَ ﴾ چه لکه څنګه چه دا خلق په دنيا کښ د حق د تابعدارئ نه محروم کړے شوی وو، دغه شان دوئ ته به د محشر په ميدان کښ په ژبه باندے د حقے خبرے راوړو توفيق نهٔ ملاويږی۔

حافظ ابن کثيرؒ ليکی چه کفار به د محشر په ميدان کښ په الله قَسم څکه خوری او دا خبره به کوی چه د دوئ په خلاف حجت قائم نشی، ګويا که دوئ به دا وئيل غواړی چه دوئ ته خو د عمل فرصت او موقع د سره ملاؤ شوے نهٔ وه، دے وجے نه دوئ دے معذوره وګڼړلے شی۔

او بعض وائی چه د دوی په ګمان به دا خبره د واقع مطابق وی څکه چه ممکن ده چه د دنيا موده دوی ته د آخرت په نسبت کمه ښکاره شوی وی نو دوی قَسم سره وائی چه دا خو يو ساعت زندګی وه۔ مګر اول قول د روستو جملے سره موافق دے۔

**مَا لَبِثُوْا:** ١ - يعنی په دنيا کښ دوی وخت نهٔ وو تير کړے۔ (خطيبؒ، کشاف)

٢ - يا په قبرونو کښ۔ (مقاتلؒ والکلبیؒ) اول قول غوره دے۔

**وَقَالَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ:** کوم ايماندار علماء چه په دنيا کښ د قيامت منکرينو ته د ايمان او عمل دعوت ورکولو او کوشش ئے کولو چه دا خلق په آخرت باندے ايمان راوړی، د هغوئ دروغژن بيان چه کله واوری نو په هغوی به رد وکړی چه تاسو له خو په لوح محفوظ کښ د الله تعالیٰ د ثابت شوی علم مطابق د قيامت ورځے پورے مهلت درکړے شوے وو، نن همغه د قيامت ورځ او د حساب ساعت دے، او الله د خپلے وعدے

مطابق تمام انسانان دوباره ژوندي كړل او په ميدانِ محشر كښې ئې جمع كړل، چه ددے نه به تاسو په دنيا كښې انكار كولو۔

اُوتُوا الْعِلْمَ: ددے علم والو نه مراد بعض وائي ملائك دي، يا د هر امت علماء دي، يا ددے امت علماء دي۔ دويم قول غوره دے۔ او د ايمان نه مراد يقين دے۔

او پدے الفاظو كښې اشاره ده چه كه چا سره د دين او د ايمان علم وي نو هغه به كاميابۍ ته رسيږي۔ او كه يو تن علم لري ليكن په هغے باندے يقين نۀ وي نو دا علم به فائده نۀ وركوي، زندگي به ئې نۀ جوړيږي، او كه يو تن كښې ايمان وي ليكن د دين مسئلے او د الله حكم ورته معلوم نۀ وي نو هغه هم نيمگړے دے، نو علم په ايمان سره او ايمان په علم سره ښائسته كيږي۔

او ددے نه فضيلت د علم او علماؤ معلوميږي چه دوي په دنيا كښې هم خبرے كوي او په آخرت كښې به ئې هم كوي۔ دلته علم بالله مراد دے۔

فِيْ كِتٰبِ اللّٰهِ: ۱- د كتاب نه مراد [مَا كَتَبَ اللّٰهُ لَكُمْ مِنَ الْعُمُرِ] تاسو لره چه الله تعالىٰ كوم عمر ليكلے وو۔ ۲- يا ددے نه مراد د الله تعالىٰ علم دے۔ يعني په ليكلے شوي مخكني علم د الله تعالىٰ كښې۔

وَلٰكِنَّكُمْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ: يعني تاسو ته دا درنۀ ورځ نۀ ښكاره كيده او په علم كښې مو نۀ راتلله او اُوس درته دنيا يوه گينټه ښكاره شوه نو د دوي دواړه خبرے غلطے وے، په دنيا كښې لنده زندگي ورته غټه ښكاره كيده او د آخرت زندگي ورته هيڅ نۀ ښكاره كيده او د آخرت په اُوږد ژوند كښې ورته د دنيا زندگي يوه گينټه ښكاره شوه۔

فَيَوْمَئِذٍ: يعني په دے ورځ به د مشركانو، د ربوبيت د منكرينو او د محمد ﷺ د رسالت د منكرينو دا عذر د قبلولو قابل نۀ وي چه دوئ دا جرمونه د جهالت او ناپوهۍ په وجه سره كول، او نۀ به دوئ له دوباره مهلت وركړے كيږي چه د توبے او نيك عمل په ذريعه د تيرو شوو گناهونو تدارك وكړي۔

يُسْتَعْتَبُوْنَ: اَيْ لَاهُمْ يُسْتَرْضَوْنَ ۔ دوي نه به طلب د رضا د الله تعالىٰ ونۀ شي۔ يا د دوي نه به رضا كيدل نشي كيدے۔ يا طلب د توبے به ترے ونۀ شي۔ يا ((نۀ به د دوي توبه قبلولے شي))۔ يعني نۀ ئې عذر قبليږي چه معاف شي او نۀ به ورته الله تعالىٰ دا وائي چه معذوره خو نۀ وئ خو اُوس الله تعالىٰ راضي كړئ او توبه وباسئ او ددے لفظ تشريح په سورة النحل (۸۴) آيت كښې ذكر شويده۔

| وَلَقَدْ ضَرَبْنَا لِلنَّاسِ فِيْ هٰذَا الْقُرْاٰنِ مِنْ كُلِّ مَثَلٍ وَلَئِنْ |
|---|
| او يقيناً بيان كړيدي مونږ خلقو لره په دې قرآن كښې د هر قسم بيان نه او كه چرته |
| جِئْتَهُمْ بِاٰيَةٍ لَّيَقُوْلَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا اِنْ اَنْتُمْ |
| راوړې ته دوى ته يوه معجزه خامخا وائي به هغه كسان چه كفرئې كړيدې نهٔ يئ تاسو |
| اِلَّا مُبْطِلُوْنَ ﴿۵۸﴾ كَذٰلِكَ يَطْبَعُ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِ الَّذِيْنَ |
| مگر باطلې خبرې كوئ. دارنگه مهر وهي الله تعالىٰ په زړونو د هغه كسانو چه |
| لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۵۹﴾ فَاصْبِرْ اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ وَّلَا يَسْتَخِفَّنَّكَ |
| نهٔ پوهيږي. پس صبر كوه يقيناً وعده د الله تعالىٰ حقه ده او بې همته دې نكړي تا لره (بې |
| الَّذِيْنَ لَا يُوْقِنُوْنَ ﴿۶۰﴾ |
| صبره دې نهٔ كړي تا لره) (په جلتئ كښې دې وانچوى تا لره) هغه كسان چه يقين نهٔ لري. |

**تفسير:** قرآن كريم ته ترغيب وركوى. د مرگ نه پس دوباره ژوندى كيدل، د قيامت د ورځې حساب او جزاء او سزا او نور اُخروى حالات بيانولو نه پس الله تعالىٰ نبى كريم ﷺ ته خطاب كوى فرمائى چه مونږ د انسانانو د لارښودنې دپاره په دې قرآن كښې ډير زيات مثالونه او هر قسم بيان كړې چه هغه د الله تعالىٰ توحيد، د انبياؤ رشتين والے، او د مرگ نه پس د ژوند غوندې حقيقتونو پوره وضاحت كوى، او هيڅ شك او شبهه نهٔ پريدى، ليكن كافرانو او مشركانو ته ددې هيڅ فائده نهٔ رسيږى، او د عناد او سركشئ په وجه د موسىٰ او عيسىٰ عليهما السلام د نښو غوندې مطالبه كوى، حالانكه دوئ په خپله سركشئ كښې دومره اندازه مخكښې تلى دى چه كه ته د دوئ د وينا مطابق څهٔ نښه هم پيش كړې نو دوئ ته هيڅ فائده نهٔ رسوى او وائى چه دا هم څهٔ جادو او دهوكه وركول دى.

**بِاٰيَةٍ:** كه هره نښه راوړې اگركه د دوى د وينا مطابق وى.

**مُبْطِلُوْنَ** : اَىْ تَفْتَرُوْنَ الْكَذِبَ عَلَى اللّٰهِ ـ يعنى دوى وائى چه تاسو باطل پرست يئ يعنى په الله باندې دروغ جوړوئ. الله به نهٔ قيامت راولى او نهٔ حساب كتاب شته.

**كَذٰلِكَ يَطْبَعُ** : اُوس الله ددې وجه بيانوى چه كوم خلق په رشتينى نيت سره د حق

طلبګار نهٔ وي، الله تعالیٰ د دوئ په زړونو باندې دغسې مهر لګوي، زړونه ئې تور شي او دا د دوي دپاره سزا ده۔ او کله چه د انسان په زړهٔ باندې مهر ولګي نو هغه د رڼړا په خبرو څه پو هیږي، کله چرې ته د دوئ مخې ته په زړونو ننېږې پیش کړې بیا هم دوئ ایمان نهٔ راوړي۔

لَا يَعْلَمُوْنَ : کافر بې علمه دي چه د پیغمبر معجزات نهٔ پیژني، دلائلو ته نهٔ ګوري، او نهٔ په هغې باندې یقین کوي نو دا لوي جاهل دي پدې وجه ئې په زړه باندې مهر وهي۔

فَاصْبِرْ: اُوس وائي چه کله به عذاب په دوي راځي؟ نو الله فرمائي چه اې زما نبي! ته صبر او استقامت سره خپله ذمه واري پوره کوه، او یقین ساته چه د الله وعده حقه ده، هغه خپل رسولان یواځې نهٔ پریدي، د هغوئ مدد خامخا کوي او آخري عزت او غلبه هم دوئ ته حاصلیږي، لکه څنګه چه د سورت صافات په (۱۷۱، ۱۷۲، ۱۷۳) آیتونو کښې ئې فرمائیلي دي: ﴿ وَلَقَدْ سَبَقَتْ كَلِمَتُنَا لِعِبَادِنَا الْمُرْسَلِيْنَ إِنَّهُمْ لَهُمُ الْمَنْصُوْرُوْنَ وَ إِنَّ جُنْدَنَا لَهُمُ الْغَالِبُوْنَ ﴾ (او خامخا زمونږ وعده د مخکښې نه خپلو رسولانو دپاره صادره شوې ده چه یقینًا هغوئ سره به مدد کولې شي، او زمونږ لښکر به غالبه کیږي)۔ او د الله وعده رشتینې ده، دوي ته به سزا ورکوي۔ او دارنګه وعده د قیامت د راتللو هم رشتینې ده۔

وَلَا يَسْتَخِفَّنَّكَ: اې زما نبي! د مشرکانو عناد او په کفر باندې د دوئ ټینګار، او ستا خلاف د دوئ سازشونه چرته تا لره په جذبه، بې صبرئ او جلتئ کښې مبتلا نهٔ کړي چه دا ستا سره مناسب نهٔ ده۔ ستا د رب وعده حقه ده، هغه به ستا او ستا د مومنانو ملګرو سره ضرور مدد کوي، او آخر به هم تاسو ته غالبه حاصلیږي۔

اِسْتِخْفَاف دیته وائي چه یو تن راشي تا ته خبرې کوي آخر دا چه تا هم په خپله خبره کښې شکي کړي او د خپلې خبرې نه دې واړوي۔ او کله چه د سړي په خپله خبره یقین کمزورې وي نو د بل په خبرو کښې راشي نو خبره پریدي۔

نو د لَا يَسْتَخِفَّنَّكَ معنیٰ ده لَا يَسْتَجْهِلَنَّكَ۔ یعنې جاهل دې نکړي تا لره۔ او ددې حاصل معنیٰ دا ده چه تا دې بې صبره نهٔ کړي هغه کسان چه یقین ئې د الله په وعدو نشته۔

اَیْ لَا يَحْمِلَنَّكَ عَلَى الْخِفَّةِ وَالْجَهْلِ وَالطَّيْشِ بِتَرْكِ الصَّبْرِ ۔ تا دې په سپکوالي او جهالت او جذباتو راپورته نکړي چه صبر پریدې۔

۲- لَا يَسْتَفِزَّنَّكَ عَنْ دِينِكَ۔ تا دې ونهٔ خوځوي د خپل دين او د خپل مشن نه۔ (فتح البيان) وبالله التوفيق۔

علی ﷜ به بیان کولو نو خوارجو به د هغهٔ په بیان کښې د [إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ] چغه وهله، پدې خبره کښې ئې مطلب د علي ﷺ کافر گنړل وو۔ نو علي ﷜ به ورته دا آيت لوستلو۔ ﴿فَاصْبِرْ إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ وَلَا يَسْتَخِفَّنَّكَ الَّذِينَ لَا يُوقِنُونَ﴾ يعني دا خلك مونږ نشي جاهل کولې۔

## امتیازات د سورة الروم

۱- پدې کښې خصوصي د روميانو واقعه ده۔

۲- د بدر په فتح باندې د مخکښې نه بشارت (زیرې) ورکړې شویدې۔

۳- او د اثبات د آخرت دپاره گنړل دلائل عقلیهٔ پکښې ذکر شويدي۔

٤- د بې برکتئ سبب پکښې بیان شویدې (ظهر الفساد) سره۔

٥- جمع بين العلم والایمان پکښې شویده۔

ختم شو تفسير دِ سورة الروم په نعمتِ خاصه د رب العالمين سره په تاريخ: ۹ رمضان ۱٤۳٦ هـ، موافق: ۲۰۱۵ء/۲٦/٦، اسریت کالام روډ سوات۔ صباح يوم الجمعه ساعت: ٤:٥٠ بعد صلاة الفجر۔

❁❁❁❁❁

بسم الله الرحمن الرحیم

| آیاتها (۳٤) | (۳۲) سورة لقمان مکیة | رکوعاتها (٤) |
|---|---|---|

سورت لقمان مکی دے، په دے کښې څلور دیرش آیتونه او څلور رکوع دي

## تفسیر سورة لقمان

**نوم** : په دے سورت کښې د لقمان حکیمؒ قصه ذکر شوے ده، چه د هغهٔ د حکمت او هوښیارتیا خبرے او د هغهٔ نصیحتونه قرآن کریم په ډیر اهتمام سره بیان کړی دی کوم چه هغهٔ خپل ځوی ته کړی وو. په همدے مناسبت سره ددے نوم (لقمان) کیښول شوے۔

دا هم د ډیرو رازونو والا سورت دے، ډیر ژوروالے لری۔

**د نازلیدو زمانه** : دا هم مکی سورت دے۔ په دے کښې هم د شرك رد او د توحید اثبات په مختلف انداز سره شوے، چه دا د مکی سورتونو خاصه ده۔ لقمان حکیم خپل ځوی ته په نصیحت کولو کښې د شرك په رد باندے خاص زور ورکړے وو، او وئیلی ئے وو چه شرك لوی ظلم دے۔

## مناسبت

۱- مخکښې سورت کښې بشارت وو په نصرت سره نو دلته په ایمان او عمل صالح باندے بشارت ورکوی په فلاح (کامیابئ) سره۔ ﴿ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ﴾۔

۲- مخکښې سورت کښې علم او ایمان ته ترغیب وو نو دلته د هغے نه ترقی کوی او احسان ته ترغیب ورکوی چه احسان ځان کښې پیدا کړئ چه دا د ایمان او علم اعلیٰ درجه ده۔

۳- مخکښې په شرك باندے رد وو په دلائل عقلیه ؤ سره نو دلته په دلیل نقلی سره پرے رد کوی۔ چه شرك دومره قبیح عمل دے چه پخوانو پیغمبرانو هم رد کړے او دغه شان حکماؤ هم رد کړے۔ لکه لقمان حکیمؒ شرك ته ظلم عظیم وئیلے دے۔ نو اے

مشرکانو ! تاسو نهٔ د عقل خبرے منئ او نهٔ د پیغمبرانو او نهٔ د حکماؤ، نهٔ فطرت منئ نو بیا تاسو څه منئ۔ ﴿ هٰذَا خَلْقُ اللهِ فَأَرُوْنِیْ مَا ذَا خَلَقَ الَّذِیْنَ مِنْ دُوْنِهٖ﴾

٤- په سورة روم کښې جهاد او دعوت ته ترغیب وو او په سورة روم کښې ئے د هغے نتیجه په نصرت او انقلاب سره بیان کړه نو اُوس پدے سورت کښې د جهاد (مجاهدے) طریقه بنائی په واقعه د لقمان حکیم سره چه پدے طریقه جهاد وکړئ هغه دا چه دهٔ اول رد په شرك کړیدے، د عقیدے او اعمالو او اخلاقو دعوت ئے کړیدے، او دارنګه اول ئے شروع د نزدے نه کړیده چه هغه ځوی دے۔

## مقصد د سورت

١- بعض استاذان وائی چه ددے سورت موضوع ده اَلْبِشَارَةُ بِالْفَلَاحِ۔ په کامیابئ سره زیرے ورکوی۔ ﴿ وَأُوْلٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ﴾

٢- بعض وائی چه ددے موضوع ده اثبات د توحید او رد د شرك۔ او دا ماخوذ ده د واقعے د لقمان حکیم نه، او د آیت ﴿ هٰذَا خَلْقُ اللهِ فَأَرُوْنِیْ مَا ذَا خَلَقَ الَّذِیْنَ مِنْ دُوْنِهٖ﴾ نه۔

٣- مګر ظاهر دا ده چه پدے سورت کښې بیان د احسان دے، اول ترغیب دے احسان ته چه اے مؤمنانو د احسان درجے ته ځان ورسوئ، (احسان څه ته وائی ؟ اَنْ تَعْبُدَ اللهَ کَاَنَّكَ تَرَاهُ) د الله تعالیٰ داسے بندګی وکړئ لکه ګویا که چه الله ته په زړه سره ګورئ) او ددے متعلق به نورے خبرے راوړی چه احسان په څه پیدا کیږی ؟ نو په درے خبرو یو په قرآن، او بل په دلائل عقلیه ؤ کښې سوچ او فکر کولو سره، او دریم د الله په صفاتو کښې سوچ کولو سره۔

احسان په څه خرابیږی ؟ ﴿ وَمِنَ النَّاسِ مَنْ یَّشْتَرِیْ لَهْوَ الْحَدِیْثِ ﴾ یعنی په لهویاتو پسے روانیدو سره خرابیږی۔ غیر محسنین څوك دی؟ هغه مشرکان دی چه د دوی بیخی په الله باندے نظر نهٔ لګیږی، او ټول نظر ئے مخلوق طرفته دے۔ او واقعه د لقمان حکیم کښې غرض د هغه شکر او احسان ذکر کول دی، نو تاسو د هغه اقتداء وکړئ۔ او په آخر د سورت کښې ئے ﴿ وَلَا یَغُرَّنَّکُمْ بِاللهِ الْغَرُوْرُ﴾ راوړے، او د غرور خبره په هغه سورتونو کښې بیانیږی چه هلته د ایمان او د احسان بیان وی۔ لکه دا خبره په سورة الفاطر او بیا په سورة الحدید کښې راغلے ده او پدے درے وارو سورتونو کښې د الله تعالیٰ د معرفت او د ایمان او د احسان موضوع ده۔

په آخر د سورت کښې به دوه اسباب د غفلت بیان کړی چه د الله تعالیٰ نه انسان یو په دنیا او بل په شیطان سره غافله کیږی۔

که یو تن ددې سورت په حقیقی معنیٰ پوهه شو او بیا ئې په عمل کښې راغلو نو اُوچت مؤمن به ترې جوړ شی او په محسنینو کښې به داخل شی۔

## خلاصه د سورت

اول کښې ترغیب قرآن ته ورکوی او د قرآن صفات ئې راوړیدی چه دا کمالی کتاب دے، بیا ئې ددے قرآن اهل بیان کړیدی او ددوارو خبرو به مناسبت وی چه احسان په قرآن سره پیدا کیږی او دا قرآن محسنین پیدا کوی، اهل د قرآن محسنین دی۔ د محسنینو څلور صفات، احسان، اقامة الصلاة، ایتاء الزکاة، یقین بالآخرة۔

او دا څلور صفات په انسان کښې د قرآن اهلیت پیدا کوی۔ او د هغوی دپاره دوه زیری، یو د هدایت او بل د فلاح۔ بیا د هغے برعکس الله تعالیٰ توبیخ ورکوی چه د قرآن په مقابله کښې بل کتاب اخلی۔ او پدے کښې به هم احسان ته پټه اشاره وی۔ لکه روستو شان نزول نه واضح کیږی۔

بیا مؤمنانو محسنینو ته د جنت زیرے ورکوی، بیا د الله تعالیٰ د معرفت دلیلونه بیانیږی چه په هغے کښې مقصد احسان درجے ته ځان رسول او په شرك باندے رد دے۔ بیا واقعه د لقمان حکیم راوړی چه په هغے کښې د هغهٔ شکر او د هغهٔ احسان ذکر شویدے او احسان ته د رسیدو لارے ئې خودلی دی، بیا د لائل د معرفت د الله تعالیٰ دی، رد دے په هغه خلکو چه دے دلائلو ته نهٔ گوری او د پلار نیکه تقلید کوی۔ بیا ډیر علمی او قدرت دلائل بیانوی، او په آخر کښې وائی چه دوه څیزونه مو دهوکه نکړی دنیا او شیطان۔ بیا د پنځو خبرو په باره کښې فرمائی چه دا د الله تعالیٰ پورے خاص دی، ددے علم هیڅ مخلوق ته نشته۔

| الم ﴿١﴾ تِلْكَ آيَاتُ الْكِتٰبِ الْحَكِيْمِ ﴿٢﴾ هُدًى |
|---|
| الف، لام، میم۔ دا آیتونه د کتاب دی چه د حکمتونو نه ډك دے۔ هدایت دے |
| وَّرَحْمَةً لِّلْمُحْسِنِيْنَ ﴿٣﴾ الَّذِيْنَ يُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ |
| او رحمت دے دپاره د ښائسته عمل کونکو۔ هغه کسان دی چه پابندی کوی د مانځه |

| وَيُؤْتُونَ الزَّكَاةَ وَهُم بِالْآخِرَةِ هُمْ يُوقِنُونَ ﴿٤﴾ أُولَٰئِكَ عَلَىٰ هُدًى |
|---|
| او ورکوی زکوٰة او دوی په آخرت باندے هم دوی یقین لری۔ دا کسان په هدایت دی |
| مِّن رَّبِّهِمْ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴿٥﴾ |
| د طرف د رب د دوی نه، او دا کسان هم دوی کامیاب دی۔ |

**تفسیر** :الم : ددے په حقیقی معنیٰ الله تعالیٰ پوهه دے او د قرآن ډیرو رازونو ته پکښې اشاره ده۔

(۲) پدے آیتِ کریمه کښې د قرآن د عظمت او اهمیت بیان دے۔ ﴿تِلْكَ﴾ سره د قرآن کریم آیتونو طرفته اشاره شوے، او د قریب اشارے په ځای ئے د بعید اشاره راوړه پدے کښې د قرآن عظمت ښکاره کول مقصد دے۔

**الْحَكِيمِ**: (حکمة باطنی اُوچت علم ته وائی) او د (حکیم) درے معنے بیان شوی دی: قرآن د حکمتونو نه ډك کتاب دے، قرآن مُحکم کتاب دے، یعنی قیامته پورے هیڅ یو کتاب دا نۀ منسوخ کوی، او قرآن محکم کتاب دے، یعنی د هر قِسم نقصان او خلل او په خپلو خبرونو او احکامو کښې د تناقض او تضاد نه بیخی پاك دے۔

**هُدًى وَرَحْمَةً**: یعنی قرآن کریم د هدایت او د رحمت ذریعه ده۔

**لِلْمُحْسِنِينَ**: اُوس اهل د قرآن بیانوی۔ محسنین چا ته وائی؟ (نیکی کونکی) اَلَّذِيْنَ يُحْسِنُوْنَ مَعَ اللّٰهِ وَمَعَ النَّاسِ۔ یعنی نیکی د الله سره هم کوی او د مخلوق سره هم۔ د الله سره نیکی مخکښې بیان شوه [اَنْ تَعْبُدَ اللّٰهَ كَاَنَّكَ تَرَاهُ] د الله په داسے طریقه بندگی کول لکه گویا که بنده الله تعالیٰ ته گوری۔ (انتهائی توجه سره) او د مخلوق سره نیکی دا ده چه صدقه، زکاة، خدمت وغیره ورکول۔ او پدے سورت کښې ترغیب دے چه قرآن به تا له هله هدایت او رحمت جوړیږی چه تا کښې د احسان ماده راشی۔

**الَّذِيْنَ** : پدے کښې د اِحسان کونکو درے خصوصی صفتونه بیانوی چه پدے سره احسان پیدا کیږی چه دوئ مونځ اُودروی، زکاة ورکوی او په آخرت باندے ایمان لری۔

او دلته ئے درے صفتونه راوړل پدے کښې اشاره ده چه که احسان ځان کښې پیدا کول غواړے نو دا صفات ځان کښې راوله، د قرآن اهل به جوړ شے۔ او دارنګه که تا کښې احسان وی نو دا درے عملونه به کوے۔ او ددے درے صفتونو نه علاوه د اِحسان صفت

نشته.

| وَمِنَ النَّاسِ مَن يَشْتَرِي لَهْوَ الْحَدِيثِ لِيُضِلَّ |
| --- |
| او بعض د خلقو نه هغه څوك دي چه اخلي بې فائدې خبرې دپاره ددې چه واړوي خلق |
| عَن سَبِيلِ اللَّهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَيَتَّخِذَهَا هُزُوًا ۚ أُولَٰئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مُّهِينٌ ﴿٦﴾ وَإِذَا تُتْلَىٰ |
| د لارې د الله نه په غير د دليل نه او نيسي هغې لره توقې. او كله چه لوستلې شي |
| عَلَيْهِ آيَاتُنَا وَلَّىٰ مُسْتَكْبِرًا كَأَن لَّمْ يَسْمَعْهَا |
| په دهٔ باندې آيتونه زمونږ واوړي لوئي كونكې، ګويا كښې دهٔ نهٔ دي اوريدلي دا (آيتونه) |
| كَأَنَّ فِي أُذُنَيْهِ وَقْرًا ۖ فَبَشِّرْهُ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴿٧﴾ |
| ګويا كه په غوږونو د هغه كښې بوج دې نو زيرې وركړه دهٔ ته په عذاب دردناك سره. |

**تفسير** : پدې آيت كښې رټنه وركوي هغه خلكو ته چه د قرآن كريم نه په لغوياتو (لوبو، توقو او مشغلو) سره اعراض كوي او د آخرت نه انتهائي غافل وي.

شان نزول

نضر بن الحارث يو مشرك وو چه په طائف كښې وسيدو، د مكې مشركانو راوغوښتو چه راشه تا سره د پخوانو كتابونو علم هم شته او په ليك لوست باندې ښهٔ پوهيږې نو مونږ دپاره د محمد (رسول الله ﷺ) مقابله وكړه، هغه راغې او اول فارس (ايران) ته لاړو (ددوى د فارس والو سره دوستانه وه چه هغوى مجوس وو) هلته ئې د رستم او اسفنديار، او مهران او انوشيروان بادشاهانو تاريخ ولوستو او د هغه ځاى او د شام نه ئې خان سره څه كتابونه هم راوړل چه په هغې كښې د قيصر او د كسرى تاريخونه وو، او دې پدې مقرر شوې وو چه د قرآن مقابله وكړي نو دهٔ د قرآن په مقابله كښې بل كتاب رامخې ته كړو، رسول الله ﷺ به چه كله بعض كسانو ته دعوت د ايمان وركړو نو د آخرت او د جنت او جهنم خبرې به ئې وكړې چه دا ټولې غائبانه خبرې وې، نقد ماديات پكښې نهٔ وو، او سراسر تكليف پكښې وو، نو نضر بن الحارث به دغه كسانو پسې ورغلو او خپل بيټك

ته به ئې رادعوت کړل نو دوه کارونه به ئې پرې وکړل، اول بـه ئې ورته خپلې ناشنا د بادشاهانو قصې وکړې، بیا به ئې وینځې وګډه ولې، او شراب به ئې پرې وڅکل، بیا به ئې ورته وویل چه د محمد (ﷺ) مجلس غوره دې او که زما مجلس، د هغهٔ په مجلس کښې نهٔ خوراك شته او نهٔ شراب او نهٔ وینځې، او محمد (ﷺ) تاسو ته قصې کوي نو ما هم د هغه نه ډېرې ناشنا قصې وکړې. نو پدې باندې به ئې بعض کسان واړول، د هغوی د بد بختۍ او بد عملۍ د وجه نه نو الله تعالیٰ دا آیتونه نازل کړل، او پدې کښې ئې اشاره ورکړه چه ځان نه مُحسن جوړ کړه، پکار دا ده چه ستا په الله نظر ولګې چه ستا په سر باندې لوی رب دې، او ستا نظر دې په آخرت ولګی چه په هغه ورځ به تهٔ د الله مخ کښې ودرېږې. او کله چه بنده د احسان درجې ته ورسیږي نو هغه بیا په دې دهوکو باندې هیڅوك نشي اړولې. او چه کله سرسري دین ئې آوریدلې او زړه ته ئې نهٔ دې کوز شوې نو په بعض شبهاتو به واوړي. نو پدې وجه د احسان او ددې خبرې خپل مینځ کښې ژور مناسبت دې.

نو پدې کښې بله اشاره دا ده چه د انسان احسان په لهویاتو، بې ځایه خبرو، قصو او لوبو تهوقو باندې خرابیږي، پدې وجه الله تعالیٰ د ایمان والو په صفت کښې وئیلي دي: ﴿وَالَّذِيْنَ هُمْ عَنِ اللَّغْوِ مُعْرِضُوْنَ﴾ (المؤمنون: ۲) دا خلك د بې ځایه خبرو او کارونو نه مخ اړوي. ځکه چه پدې سره احسان ته رسیږي.

دا د قرآن اشاره ده او ظاهري مطلب د آیت د قرآن کریم په مقابله کښې بل کتاب اخستلو باندې رد دې. نو پدې آیت کښې په هغه خلکو هم رد دې چه په قرآن باندې نور کتابونه مخکښې کوي، نور کتابونه بنهٔ په شوق سره راخلي او د هغې تعلیمونه او درسونه او د هغې مطالعه کوي او قرآن ئې شاته ګوزار کړې وې او دې ته غته غوښه وائي او د قرآن درسونو ته د شر خوړولو درسونه وائي.

لَهْوَ الْحَدِيْثِ: دا اضافت د صفت دې موصوف ته اَيِ الْحَدِيْثَ اللَّهْوَ. یعنی هغه خبره چه هسې تماشه ده. یا اضافت بیانی دې اَيِ اللَّهْوَ مِنَ الْحَدِيْثِ. نو لهو الحدیث د تماشې والا خبرې ته وائي چه بې ځایه وي، هسې خندا پرې وکړې شي، او انسان پرې خوشحاله شي لیکن فائده ئې نهٔ وي.

ددې مصداق: ۱- عبد الله بن مسعود ﷺ به قسم خوړلو سره وئیل: چه ددې نه مراد اَلْغِنَاء (ټنګ ټکور) او ګانه بجانه ده. لکه نضر بن الحارث به دغه شان کار کولو.

۲- ضحاكؒ نه نقل دی چه لهو الحدیث شرك ته وائی.
دا هم په کښې داخلیږی څکه چه نضر بن الحارث به خلکو ته وئیل چه په شرك باندے کلك شئ؛ زما مجلس غوره دے.
۳- حسن بصریؒ بښه مصداق وئیلے دے :[كُلُّ مَا شَغَلَكَ عَنْ عِبَادَةِ اللّٰهِ مِثْلَ السَّمَرِ وَالْاَضَاحِيْكِ وَالْغِنَاءِ] هر هغه شے چه تا د الله تعالیٰ د بندګۍ نه مشغول کړی لکه د شپے قصے او کپ شپ او خنداګانے او ټنګ ټکور او ګانے بجانے.
او صاحب د فتح البیان ورسره دا ملګرے کړی چه دروغجنے قصے، او د تمبل او رباب او ستار وهل، او هر منکر کار. او ډمے او سندرغاړے اخستل.
٤- زاد المسیر او بغویؒ د قتادةؒ نه نقل کوی: [كُلُّ لَهْوٍ وَلَعِبٍ] هره تماشه او لوبه. (چه بنده د دین نه مشغوله کوی).
يَشْتَرِىْ: یعنی په بدل د قرآن او د دین کښې لوبه او تماشه اخلی. یا ئے غوره کوی.
لِيُضِلَّ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ: یعنی خلك ګمراه کوی، یا خپله ګمراه کیږی د الله د صحیح دین او د محمد رسول الله ﷺ نه په ناپوهئ سره. یعنی دا کار د ناپوهئ په وجه کوی. یعنی کوم خلك چه ددوی تابعداری کوی نو د هغوی علم نشته چه دا خو مونږ ګمراهئ ته راکاږی.
او اکثر ګانو بجانو والا فاسقان دین ته نۀ راځی، څکه چه ګانه بجانه د ګمراهئ سبب دی.
قتادةؒ وائی: [بِحَسْبِ الْمَرْءِ مِنَ الضَّلَالَةِ اَنْ يَّخْتَارَ حَدِيْثَ الْبَاطِلِ عَلٰى حَدِيْثِ الْحَقِّ].
سړی له دا ګمراهي هم پوره ده چه باطله خبره په حقه خبره باندے غوره کړی. (بغویؒ)
وَيَتَّخِذَهَا هُزُوًا: یعنی نیسی لاره د الله (چه هغه د الله تعالیٰ آیتونه دی) او دا جمله د مخکښې حراموالی دپاره علت دے، یعنی لهویات غوره کوی دپاره د ګمراه کولو د خلکو د لارے د الله تعالیٰ نه او دپاره د نیولو د لارے د الله تعالیٰ په توقه. یا ضمیر آیتونو ته راجع دے کوم چه مخکښې (تِلْكَ آيَاتُ) کښې ذکر شو. لیکن اول قول غوره دے. (فتح البیان)
عَذَابٌ مُّهِيْنٌ: چونکه پداسے محفلونو او مجلسونو د ټنګ ټکور او ګپ شپ کښې د اسلام او مسلمانانو پورے توقے کیږی نو پدے وجه الله تعالیٰ دوی ته د دوی د عمل مطابق سزا ورکوی، داسے عذاب به ورکړی چه دوی به رسوا او ذلیله کړی.

وَإِذَا تُتْلَى عَلَيْهِ آيَاتُنَا: پدے آیت کښې د لهو او لعب او د کډا او سندرو ددے پاګلانو یو لازمی صفت دا ښودلے شوے چه کله د دوئ مخے ته د قرآن کریم تلاوت کیږی نو د کبر او غرور په وجه مخ واړوی او داسے تښتی چه هډو دۀ څۀ آوریدلی نۀ دی، لکه چه ددۀ په دواړو غوږونو کښې بوج پریوتے دے او کاڼۀ شوی دی۔

او دا کار د زړۀ د ضد د وجه نه کیږی چه په غوږ به خبره واوری لیکن په منزله د نۀ آوریدو وی۔ نو ددۀ صفت دا شو چه قرآن نه مخ اړول او ددے نه ځان لری ګرځول او نورو کتابونو نه مخے ته کول لکه بعض خلک فلسفه، منطق، او علوم ریاضیه، او نور عصری علوم په قرآن مخکښې کوی او په هغے ډیره خوشحالی کوی، او د قرآن علم ورته سپک ښکاری، داسے خلک د دردناک عذاب مستحق دی۔

| إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَهُمْ جَنَّاتُ |
|---|
| یقیناً هغه کسان چه ایمان ئے راوړیدے او عملونه ئے کړیدی نیک دوی لره جنتونه |
| النَّعِيمِ ﴿٨﴾ خَالِدِينَ فِيهَا وَعْدَ اللَّهِ حَقًّا وَهُوَ الْعَزِيزُ |
| د نعمتونو دی۔ همیشه به وی په هغے کښې، وعده کړیده الله وعده حقه او هغه زورور دے |
| الْحَكِيمُ ﴿٩﴾ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ بِغَيْرِ عَمَدٍ تَرَوْنَهَا |
| حکمتونو والا دے۔ پیدا کړی ئے دی آسمانونه په غیر د ستنو نه وینئ تاسو هغه |
| وَأَلْقَى فِي الْأَرْضِ رَوَاسِيَ أَنْ تَمِيدَ بِكُمْ وَبَثَّ |
| او اچولی ئے دی په زمکه کښې مضبوط غرونه چه وئ خوزیږی په تاسو او خوارۀ کړے |
| فِيهَا مِنْ كُلِّ دَابَّةٍ وَأَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَنْبَتْنَا |
| ئے دی په هغے کښې د هر قسم حیوان نه او راورولی دی مونږ د آسمان نه اُوبه نو رازرغون |
| فِيهَا مِنْ كُلِّ زَوْجٍ كَرِيمٍ ﴿١٠﴾ هَٰذَا خَلْقُ اللَّهِ |
| کړو مونږ په هغے کښې د هر قسم بوتی فائده مند نه۔ دا پیدائش د الله تعالیٰ دے |
| فَأَرُونِي مَاذَا خَلَقَ الَّذِينَ مِنْ دُونِهِ بَلِ الظَّالِمُونَ فِي |
| نو اُوښایئ ما ته چه څه پیدا کړیدی هغه کسانو چه سوئ د الله نه دی بلکه ظالمان په |

ضَلَالٍ مُّبِينٍ ﴿۱۱﴾ وَلَقَدْ آتَيْنَا لُقْمَانَ الْحِكْمَةَ

ګمراهۍ ښکاره کښې دي۔ او یقیناً ورکړې وو مونږ لقمان ته پوهه د دین (ورته وئیلی وو

أَنِ اشْكُرْ لِلَّهِ وَمَن يَشْكُرْ فَإِنَّمَا يَشْكُرُ لِنَفْسِهِ

مونږ) چه شکر کوه الله لره او چا چه شکر اُوکړو نو یقیناً شکر کوی دپاره د فائدے د خپل

وَمَن كَفَرَ فَإِنَّ اللَّهَ غَنِيٌّ حَمِيدٌ ﴿۱۲﴾

نفس او چا چه ناشکری اُوکړه نو یقیناً الله بے پرواه دے ستائیلے شویدے۔

**تفسیر**: ایمان او عمل صالح والو ته مخکښې عام زیرے ورکړے شو چه همدا خلق کامیابیدونکی دي، او دلته دوئ سره په ډاګه وعده شوے چه دوئ به د رنګا رنګ نعمتونو والا جنتونو ته داخلولے شي، چه په هغے کښې به همیشه وسیږي، دا د الله تعالیٰ رشتینے وعده ده، او هغه په هر حال کښې غالب او په خپلو ټولو اقوالو او افعالو کښې د حکمت خاوند دے۔ او مقصد پدے دویم ځلی زیری کښې ایمان والا په ایمان کلکول او د خواهشاتو نه رامنع کول دي۔

**خَلَقَ السَّمَاوَاتِ بِغَيْرِ عَمَدٍ:**

اُوس دلائل عقلیه راوړي، پدے کښې یو مقصد دا دے چه [اَللّٰهُ قَادِرٌ عَلٰى اِيْفَاءِ الْوَعْدِ] الله تعالیٰ د وعدے په پوره کولو قادر دے ځکه چه کائنات ئے پیدا کړي۔

دویم: پدے کښې د الله تعالیٰ معرفت دے۔ دریم: دا ادلة الاحسان دي، یعنی احسان ته به خان ځنګه رسوی نو آسمان او زمکه کښې سوچ وکړه، چه دا دومره جمال او کمال او منظم مخلوق دے نو ددے خالق به څومره جمال او کمال والا وی۔

څلورم: دا دلیلونه د رد د شرك هم دي۔ لکه روستو به په مشرکانو رد وکړي۔ او هغوی ته د فکر او نظر دعوت ورکړے شوے چه د الله تعالیٰ نه سوئ د کومو باطلو معبودانو چه تاسو عبادت کوئ هغوی خو هیڅ هم نۀ دی پیدا کړي، نو بیا تاسو ولے هغوی خپل معبودان ګنړئ، حقیقت دا دے چه تاسو ظالمان یئ او په ښکاره ګمراهۍ کښې اخته یئ۔

**تَرَوْنَهَا**: یعنی تاسو وینئ آسمانونه چه په غیر د ستنو نه ولاړ دي۔ یا دا د منفی سره متعلق دے، او صفت د عَمَد دے یعنی ستنے شته خو تاسو ئے نۀ وینئ۔

**وَأَلْقَىٰ فِي الْأَرْضِ رَوَاسِيَ**: په زمکه ئے د غرونو میخونه وهلی دي، دے دپاره چه

زمکه ونهٔ خوزي، ورنه هيڅ يو شے به په خپل ځاى باندے باقي پاتے شوے نهٔ وے، او په دے باندے به اوسيدونکو انسانانو او نورو حيواناتو ته سکون او قرارے حاصل شوے نهٔ وے، د دوئ ژوند به تنگ شوے وے. او هغهٔ مختلف قِسم ځناور پيدا کړل او د زمکے په تمامو برخو کښې ئے خوارهٔ کړل. او هغهٔ د آسمان نه باران را اورولو چه د انسانانو او ځناورو د ژوندون دپاره بيحده ضروري دے، او ددے په ذريعه ئے د زمکے نه رنګا رنګ خوراکونه او دواګانے پيدا کړے چه د انساني زندگئ دپاره ډير زيات نفعمنے دي.

هٰذَا خَلْقُ اللّٰهِ : ددے ټولو ځيزونو خالق صرف الله دے، په دے کارونو کښې د هغهٔ څوك برخه دار نشته. دے وجے نه هم هغه د عبادت لائق دے. ليکن ظالمان مشرکان د ضلالت او ګمراهئ په هيبتناکو کندو کښې سرګردانه ګرځي، د کوم مقصد دپاره چه پيدا دي هغه ئے پريخودو او د بے مقصده کارونو پسے روان شو، او دوئ ته توفيق نهٔ ملاويږي چه دوئ د الله تعالىٰ په دے مخلوقاتو کښې غور او فکر وکړي او د تمامو باطلو معبودانو نه رشته ختمه کړي او خپل عزتمند تندے د الله تعالىٰ مخے ته ښکته کړي.

وَلَقَدْ آتَيْنَا لُقْمَانَ : د لقمان حکيم واقعه راوړو کښې يوه فائده رد په شرك د مشرکانو چه تاسو نهٔ عقلي دليلونه منئ او نهٔ نقلي دليل د انبياء عليهم السلام نو نهٔ د حکماؤ دليل منئ. د لقمان حکيم حکمة په عربو کښې مشهوروو، د «الکامل» په نوم باندے يو شخص وو چه هغه به د لقمان اقوال عربو ته پيش کول.

دويمه فائده : احسان ته ترغيب دے چه هغه احسان والا وو، هر وخت ئے په الله تعالىٰ باندے نظر لګيدو پدے وجه ئے خپل بچي ته ئے هم د احسان دعوت ورکړے. ﴿ إِنَّهَا إِنْ تَكُ مِثْقَالَ حَبَّةٍ ﴾ کښې ورته اشاره شويده.

دريمه فائده : ښکاره فائده دا ده چه الله تعالىٰ تاسو ته قرآن درکړو نو دا يو عظيم نعمت دے او د نعمتونو سردار دے، نو پدے باندے شکر پکار دے، او شکر ئے دا دے چه پدے باندے ايمان راوړئ او پدے باندے عمل وکړئ او ددے تلاوت وکړئ. لکه لقمان ته الله تعالىٰ عام حکمة ورکړے وو نو هغه ئے په شکر باندے مکلف کړے وو ﴿ أَنِ اشْكُرْ لِلّٰهِ ﴾ نو هغه شکر وکړو.

اول کښې الله تعالىٰ د لقمان حکمة بيانوي چه ډير حکمت والا وو، بيا د هغه کار (عبادت) بيانوي چه هغه شکر کول دي، بيا د هغه دعوت بيانوي. په دعوت کښې درے خبرے راجمع شويدي، اول عقائد او ايمانيات دي. دويم عملونه او دريم اخلاقيات او دا

په هره زمانه کښې په هر شخص باندے لازم دی۔ ﴿ إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ ﴾ او ﴿ إِنَّهَا إِنْ تَكُ مِثْقَالَ حَبَّةٍ ﴾ کښې ایمانیات ذکر دی، او په ﴿ وَوَصَّيْنَا الْإِنسَانَ ﴾ کښې عمل هم دے او اخلاق هم۔ او روستو په ﴿ أَقِمِ الصَّلَاةَ وَأْمُرْ بِالْمَعْرُوفِ وَانْهَ عَنِ الْمُنكَرِ ﴾ دا اعمال دی او [ وَاصْبِرْ، وَلَا تُصَعِّرْ، وَلَا تَمْشِ، وَاغْضُضْ، وَاقْصِدْ] دا اخلاق دی۔ او دا خبرے د الله تعالیٰ ډیرے خوښے شویدی نو ځکه ئې دے ته د حکمة خبرے وئیلی دی، او مونږ ته ئې رانقل کړیدی۔ بیا بل حکمة ئې دا کړے چه اول ئې خپل ځوی ته دین بیان کړے۔ بیا پردی ته۔ او پدے دعوت کښې هغه نور کمال دا هم کړے چه نرمی او اخلاقی انداز ئې اختیار کړے۔

## آیا لقمان نبی وو؟

د جمهورو مفسرینو وینا ده چه لقمان نبی نهٔ وو، بلکه یو حکیم او عقلمند انسان وو، چه په هغهٔ باندے الله تعالیٰ د اِلهام په ذریعه د حکمت او هوښیارتیا د ډیرو مفیدو خبرو او د نفعمندو فکرونو پیرزو کړے وه، چه په هغے کښې د تولو نه اولنئ د الله سره د شرك کولو رد او د توحیدِ ربوبیت او د توحید اُلُوهیت اقرار وو۔ د زیاتره مفسرینو د وینا مطابق دا د مصر د سوډانی علاقے وسیدونکے وو، او د یو قول مطابق د داؤد ﷺ په زمانه کښې د بنی اسرائیلو دپاره قاضی مقرر شوے وو۔ او بعض وائی چه دهٔ به فتوے ورکولے خو کله چه داود ﷺ نبی شو نو دهٔ فتوے پریخودے۔ چا ورته ووئیل دا ولے ؟ هغه ووئیل : [أَلَا أَكْتَفِيْ إِذْ كُفِيْتُ] کله چه زما د طرفنه بل باندے کار کیږی نو زهٔ ولے پدے باندے اکتفاء نهٔ کوم۔ (یعنی ما ته ضرورت ختم شو)

د بعضِ خلقو خیال دے چه په قومِ عاد باندے د عذاب راتلو نه پس چه کوم مسلمانان بچ شوی وو، د همدے خاندانونو نه یو کس وو۔ روستو دا خلق په یمن کښې آباد شول او د دغه ځای بادشاهان جوړ شول۔ لقمان هم د همدغه بادشاهانو نه یو بادشاه وو۔ د بعضو خیال دے چه دے د مصر د سوډان د خاندان یو فرد وو، لیکن په مدین یعنی په موجوده وخت کښې د عقبے په علاقه کښې اُوسیدهٔ چه ددے په وجه دده ژبه عربی وه، او دده د حکمت خبرے په عربانو کښې مشهورے شوے۔

بعض وائی چه دا د آزر په اولاد کښې وو یعنی (لقمان بن باعورا بن ناحور بن تارخ (آزر) یعنی د ابراهیم ﷺ د ورارهٔ ځوی دے۔ او زر کاله ژوندئې تیر کړے او د داود ﷺ زمانه ئې لاندے کړیده او د هغه نه ئې علم زده کړے او د هغه نه مخکښې به ئې فتوے ورکولے بیائې

پریخودے (البحر المحیط لابی حیان)

او د وهب بن منبة نه نقل دی چه دا د ایوب علیه السلام خورئے وو.

او دا د رنگ نه تور، حبشی غلام وو د یوے ښځے لیکن ډیر کمال پکښې الله تعالیٰ اچولے وو، هغه ته یوه ورځ ووئیل شو : [مَا بَلَغَ بِكَ مَا نَرَى؟] دا اُوچتے مرتبے ته څه شی ورسولے؟ هغه ووئیل : [قِلَّةُ مَنْطِقِيْ وَتَرْكُ مَا لَا يَعْنِيْنِيْ] کمو خبرو او بل لایعنی (بی مقصده) کارونو او خبرو نه ځان ساتل.

اَلْحِكْمَةَ: دلته د حکمت نه مراد (اَلْفِقْهُ وَالْعَقْلُ وَالْاِصَابَةُ فِي الْقَوْلِ وَالْعَمَلِ) دے یعنی د دین پوهه، هوښیارتیا، حقے رائے والا کیدل په خبرو او عمل کښې، (یعنی د موقعے مناسب خبره کول او عمل کول) هر وخت د الله نه یریدل او د هغهٔ په ذکر او فکر کښې لګیدلے اوسیدل. د مفسرینو د یو قول مطابق د (حکمت) نه مراد د الله تعالیٰ شکر اُوخکل دی. ګویا که د حکمت بنیاد دادے چه بنده په هر حال کښې د خپل رب شکر کونکے وی. د هغهٔ تمام ظاهری او باطنی نعمتونه یادوی او د خپل قول او عمل په ذریعه ددے شکر کوی.

او د حکمة نه مراد دلته طبابت (حکیمی/ډاکټری) نهٔ دے چه ډیر طبیبان وائی چه دا نسخه لقمانی ده. د طب عالِم ته طبیب او معالج وئیلے شی نهٔ حکیم، لیکن د عوامو اصطلاح دا جوړه شوے ده چه دے ته حکیم او حکمة وائی.

او د حکمة ښهٔ تعریف ابن دُرید کړیدے کوم چه مونږ په سورة البقره کښې ذکر کړیدے هغے ته رجوع کړیده : [كُلُّ كَلِمَةٍ وَعَظَتْكَ اَوْ نَهَتْكَ عَنْ مُنْكَرٍ اَوْ دَعَتْكَ اِلَى مَكْرُمَةٍ].

(یعنی هر هغه خبره چه تا ته نصیحت وکړی یا تا د یو منکر نه منع کړی یا دے یو کمال والا عمل ته راکاږی).

نو د لقمان په خبرو کښې هم وعظ او نصیحت او امر او نهی او ښائسته اخلاقو ته دعوت موجود دے. نو د حکمة نه مراد وعظی خبری دی چه د خلکو تربیت پرے کیږی. لکه عیسیٰ علیه السلام ته هم الله تعالیٰ حکمة (وعظی خبرے) زیاتے ورکړے وے.

او دا حکمة الله تعالیٰ مونږ ته د قرآن کریم په شکل کښې زیاتْ راکړے. او بیا چه ورسره حدیث ملګری شی هغه هم حکمت دے، نو مونږ له د نورو امتونو په نسبت زیات شکر پکار دے.

اَنِ اشْكُرْ لِلّٰهِ: ددے نه معلومه شوه چه په عالِم او حکمة والا انسان باندے شکر

واجب دے، لکه څنګه چه داود او سلیمان علیهما السلام شکر کړے وو۔ نو په تولو مؤمنانو فرض ده چه په قرآن به شکر کوی چه بنه دے چه الله تعالیٰ داسے مزیدار کتاب رالیږلے، که دا نهٔ وے مونږ به د ډیر خیر نه محروم وے او جاهلان به وے۔
شکر پنځه قاعدے غواړی: ۱- خُضُوْعُ الشَّاكِرِ لِلْمَشْكُوْرِ۔ شکر ګزار به خپل مشکور ته عاجزی کوی، ۲- وَحُبُّهٗ لَهٗ۔ هغه سره به مینه لری۔
۳- وَالثَّنَاءُ عَلَيْهِ بِهَا۔ او ددے نعمتونو په وجه به د هغهٔ صفتونه وائی۔
٤- وَاعْتِرَافُهٗ بِنِعْمَتِهٖ۔ د مشکور د نعمت اقرار به کوی۔
٥- وَاَنْ لَّا يَسْتَعْمِلَهَا فِيْمَا يَكْرَهُ۔ او دا به په هغه ځای کښې نهٔ استعمالوی کوم ځای چه مشکور بد ګڼړی۔ یعنی د هغه د مرضئ خلاف به ئے نهٔ استعمالوی۔
(بصائر ذوی التمییز للفیروز آبادی)
او د شکر تفصیل په سورة البقره کښې وګوره۔ چه د شکر څوارلس قاعدے دی۔
فَإِنَّمَا يَشْكُرُ لِنَفْسِهٖ: یعنی څوك چه د خپل رب شکر کونکے دے، ددے فائده په هر حال کښې هغهٔ ته رسیږی، د هغهٔ خالق او مالك به د هغهٔ نه خوشحالیږی، او دهٔ له د دنیا او آخرت نور زیاتی نعمتونه ورکوی، او څوك چه د نعمت ناشکری کوی، نو الله بے حاجته او ستائیلے شوے دے، هغهٔ د چا د حمد او ثناء محتاج نهٔ دے، ددے ناشکرئ نقصان هم دے ناشکره بنده ته رسیږی چه ددهٔ نه خپل نعمتونه راکاږی او د تولو نه لوی نعمت، د الله تعالیٰ رضا ده چه ددینه دا محروموله شی۔
کوم علم والا چه شکر شروع کړی، الله ورله عزت ورکوی او هغه په خلکو پورته کوی، او دنیا او آخرت ورله ورکوی۔
حَمِيْدٌ: اَیْ يَسْتَحِقُّ الْحَمْدَ لِذَاتِهٖ ۔ الله تعالیٰ په اعتبار د ذات خپل سره د حمد مستحق دے که څوك ئے ورله کوی او که نهٔ۔

| وَإِذْ قَالَ لُقْمَانُ لِابْنِهٖ وَهُوَ يَعِظُهٗ يَا بُنَيَّ |
| --- |
| او کله چه اُووئیل لقمان څوی خپل ته او هغه ته ئے نصیحت کولو، اے بچیه! |
| لَا تُشْرِكْ بِاللّٰهِ إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيْمٌ ﴿۱۳﴾ |
| شرك مهٔ کوه د الله سره یقیناً شرك خامخا ظلم لوئی دے۔ |

**تفسير**: پدې کښې د لقمان د حکمة بعض خبرې نقل کوی او د هغه د شکر بيان دے.
د لقمان حکيم بعض حکيمانه اقوال په «البدايه والنهايه» د ابن کثيرؒ او کتاب «الزهد» د احمدؒ کښې ذکر شويدی. او ابن عاشورؒ پدے مقام کښې تقريباً څلويښت تول په يو ځاى راجمع کړيدى.
لقمان حکيم خپل ځوى ته نصيحت کولو، ورته ئے وفرمايل: اے زما ځويه! هيڅوك د الله سره برخه دار مهٔ جوړوه، ځکه چه الله تعالىٰ سره شرك کول لوى ظلم دے. الله تعالىٰ انسان دے دپاره پيدا کړے چه هغه تر څو پورے ژوندے وى صرف د هغهٔ عبادت به کوى. دے وجے نه دے نه لوى ظلم به کوم وى چه بنده د خپل خالق د مرضئ مخالفت کولو سره د بل چا مخے ته سجده وکړى، لاس اُوږد کړى، مرادونه وغواړى او خپله جهولئ خوره کړى.
امام بخارىؒ د عبد الله بن مسعود ﷜ نه روايت کړے چه کله د سورتِ انعام (۸۲) آيتِ کريمه ﴿ اَلَّذِيۡنَ آمَنُوۡا وَلَمۡ يَلۡبِسُوۡۤا اِيۡمَانَهُمۡ بِظُلۡمٍ ﴾ نازل شو، نو صحابه کرامو باندے دير گران ولګيدهٔ، او وے وئيل چه په مونږ کښې څوك دے چه په ځان ئے ظلم نهٔ دے کړے؟ نو رسول الله ﷺ وفرمايل: د ظلم هغه معنىٰ نهٔ ده کوم چه تاسو پيژندلے ده، ظلم نه مراد هغه دے کوم چه لقمان خپل ځوى ته ښودلے وو چه اے زما ځويه! الله سره هيڅوك مهٔ شريکوه، ځکه چه شرك لوى ظلم دے.
لِاِبۡنِهٖ: ددے ځوى نوم ماتان وو، ابن جريرؒ او قتيبىؒ وائى چه ثاران وو.
کلبىؒ وائى: مِشۡکم وو.
قُشيرىؒ وائى چه ددهٔ ځوى او ښځه دواړه کافران وو نو لقمان به ورته هميشه نصيحت کولو تردے چه دواړو ايمان راوړو. (فتح البيان)

وَوَصَّيۡنَا الۡاِنۡسَانَ بِوَالِدَيۡهِ حَمَلَتۡهُ

او مضبوط حکم کړے وو مونږ انسان ته په مور او پلار د هغه سره (د احسان کولو) پورته

اُمُّهٗ وَهۡنًا عَلٰى وَهۡنٍ وَّفِصَالُهٗ فِىۡ

کړے وو دهٔ لره مور ددهٔ په کمزورتيا دپاسه د کمزورتيا نه او جدا کول د هغه د تيو نه په

عَامَيۡنِ أَنِ اشۡكُرۡ لِي وَلِوَالِدَيۡكَ إِلَيَّ

دوه کاله کښې دی (حکم دا دے) چه شکر کوه زما او د مور او پلار ستا، خاص ما ته

الۡمَصِيرُ ﴿١٤﴾ وَإِنۡ جَاهَدَاكَ عَلَىٰ أَنۡ تُشۡرِكَ بِي

راګرځیدل دی ستاسو۔ او که دوی زور کوی په تا باندے چه شریك جوړ کړے ما سره

مَا لَيۡسَ لَكَ بِهِ عِلۡمٌ فَلَا تُطِعۡهُمَا وَصَاحِبۡهُمَا

هغه څه چه نشته تا لره په هغے باندے علم (دلیل) نو خبره مهٔ منه د دوی او ملګرتیا کوه

فِي الدُّنۡيَا مَعۡرُوفًا وَاتَّبِعۡ سَبِيلَ

د دواړو سره په دنیا کښې نیکه ملګرتیا (ښائسته ملګرتیا) او روان شه په لاره د

مَنۡ أَنَابَ إِلَيَّ ثُمَّ إِلَيَّ مَرۡجِعُكُمۡ فَأُنَبِّئُكُمۡ

هغه چا راګرځی ما ته بیا ما طرف ته راګرځیدل دی ستاسو نو خبر به درکړم

بِمَا كُنۡتُمۡ تَعۡمَلُونَ ﴿١٥﴾

په هغه عملونو چه تاسو ئے کوئ۔

**تفسیر** : دا دوه آیتونه ادخال اِلٰهی دے یعنی پدیاآیتونو کښې د لقمان د نصیحتونو ترمینځه د الله تعالیٰ خبره ده، او دے نه مقصد د شرك بالله د رد کولو تائید دے چه د هغے ذکر د لقمان په پورتنی نصیحت کښې وکړے شو۔ یعنی شرك دومره ناکاره شے دے چه د مور او پلار تابعداری به کوے خو که هغوی هم درته د شرك حکم کوی نو په شرك کښې به د هغوی خبره نهٔ منے۔ الله تعالیٰ وفرمایل چه مونږ انسان ته دا حکم کړے چه خپل مور پلار سره ښهٔ چلن کوی خاصکر خپلے مور سره چه پوره د حمل موده ئے دا په خپله خیټه کښې پورته کړے ګرځولے، څو قِسمه کمزورئ او تکلیفونه ئے برداشت کړی، د حمل د مودے پوره کیدو نه پس ئے د زیګون او بیا دوو کالو پورے د رضاعت (پئ ورکولو) مصیبتونه وزغمل۔ نبی کریم ﷺ نه یو صحابی تپوس اوکړو چه زما د ښهٔ سلوك کولو زیات حقدار څوك دے؟ نبی ﷺ ورته وفرمایل : ستا مور۔ صحابی بیا تپوس وکړو: بیا څوك ؟ نبی ﷺ وفرمایل : ستا مور۔ صحابی تپوس وکړو : بیا څوك ؟ وے فرمایل : ستا مور۔ صحابی بیا تپوس وکړو : بیا څوك ؟ وے فرمایل : ستا پلار۔

(بخاري: ۵۹۷۱) ومسلم (٦٦٦٤)

وَهْناً عَلَى وَهْنٍ: یوه زنانه خپله هم کمزوري خِلقت والا ده او بل ئے حمل کمزوري کړي. زجاج وائی چه ددے نه مراد ډیرے کمزورئ دي، حمل یوه کمزوري، نهه میاشتو پورے هغه ګرځول بله کمزوري، بیا د هغے زیګول بلکه کمزوري، بیا تے ورکول بله کمزوري ده.

وَفِصَالُهُ فِيْ عَامَيْنِ: یعنی د تیو نه پریکول ئے په دوه کاله کښې دي. قاضي بیضاوي وائی چه دا آیت دلیل دے چه موده د رضاعت دوه کاله ده.

﴿ اَنِ اشْكُرْ لِيْ وَلِوَالِدَيْكَ ﴾ دا د (وَصَّيْنَا) پورے متعلق دے. یعنی ما انسان ته دا وصیت کړیدے چه زما طاعت او بندګي کوه اوڅ او زړهٔ سره زما بندګي اداء کوه او د مور پلار شکر هم اداء کوه) هغه داسے چه هغوئ سره ښهٔ سلوك کوه او د هغوئ هر هغه خبره منه چه په هغے کښې د الله او د هغهٔ د رسول نافرماني نهٔ وي.

سفیان بن عیینة فرمائی: چا چه پنځه وخته مونځ وکړو نو دهٔ د الله شکر وکړو او چا چه د والدینو دپاره د پنځه وخته مونځ نه روستو دعا وکړه نو هغه د والدینو شکر ادا کړو. (فتح البیان) او د والدینو سره د احسان کولو تشریح په سورة البقره کښې ذکر شویده یو ځل ئے بیا وګوره.

﴿ اِلَيَّ الْمَصِيْرُ ﴾ (ستاسو د ټولو راتلل ما طرفته دي). دے وجے نه که چرے تاسو زما او د خپل مور پلار شکر ادا کړئ نو ښه بدله به ومومئ، او که چرے نافرماني او سرکشي وکړئ نو بده بدله به ومومئ.

وَإِنْ جَاهَدَاكَ: اُوس فرمائی چه که ستا مور پلار تا په شرك مجبوره کوي نو د دوئ خبره به نهٔ منے، او تر څو پورے چه په دنیا کښې تهٔ او هغوئ یو ځاي یئ، هغوئ سره ښهٔ سلوك او نیکي کوه.

وَصَاحِبْهُمَا فِي الدُّنْيَا: یعنی اګر که ستا والدین مشرکان وي نو په شرك کښې به ئے خبره نهٔ منے، او د هغوي شرك ته به بد ګورے خو بیا به هم دنیاوي احسانات هغوي سره کوے. رسول الله ﷺ ته یوه زنانه (اسماء رضی الله عنها) راغله چه زما مور مشرکه ده آیا زهٔ هغے سره احسان او صله رحمي کولے شم؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: [نَعَمْ صِلِيْ اُمَّكِ] آو، د مور سره صله رحمي کوه. (خدمت ئے کوه، مال ورکوه، اخلاق ورسره کوه، د مؤمن اخلاق به ډیر اُوچت وي)

وَاتَّبِعْ سَبِيلَ مَنْ أَنَابَ إِلَيَّ ثُمَّ إِلَيَّ: يعنى د هغه نيكانو او مخلصو بندگانو په لاره روان شه چه ما ته رجوع كوى په طاعت او زما بندگى كوى په توبه او په اخلاص سره. چه ددے نه مراد نبى كريم ﷺ او صحابه كرام دى. يا انبياء او ټول مؤمنان دى. ځكه چه دوى ټول الله تعالىٰ ته إنابت او رجوع كوى په طاعت سره نۀ غير الله ته.

بعض مقلدين ددے نه هم تقليد ثابتوى، سيلاب راخستى وى، هر شى ته گوتے اچوى وائى چه ائمه كرامؒ منيبين دى او الله فرمائى چه د منيبينو په لاره روان شئ او پدے ټوله دنيا كښې غټ منيب امام صاحب دے نو بس د هغه په لاره به روانيږے، دا دليل اشرف على تهانوى په خپله فتاوى كښې ذكر كړيدے. دا دليل نيول سو چه خطاء او دروغ او تحريف دے، دا هيڅكله د آيت مطلب نۀ دے. بلكه د آيت مطلب دا دے چه ځان كښې انابت پيدا كړه او د منيبينو په شان عمل شروع كړه. مَنْ أَنَابَ محمد رسول الله ﷺ او ابوبكر او عمر او عثمان او على رضى الله عنهم او ټول صحابه كرام ﷺ دى نو د هغوى په تابعدارئ حكم دے چه هغوى كوم عبادتونه كوى، نو دغه شان بندگى تۀ هم وكړه. نو دوى هغه ولے پريخودل، معلوميږى چه دا مذهبى جنون دے. آيا په ټول امت كښې منيب صرف امام ابوحنيفةؒ دے؟ بله دا چه كه يو مجتهد خطاء شى، او يوه مسئله وكړى نو دا مسئله پدے وخت كښې د انابت نۀ ده بلكه انابت والا لاره د قرآن او د حديث ده. اگر كه مجتهد به پدے كار سره گناهگار نۀ وى ليكن نور خلك به د هغۀ په مسئله كښې تابعدارى نۀ كوى. نو دا آيت رد دے په تقليد باندے ځكه مقلد د قرآن او حديث لاره پريدى او د يو امام اجتهاد اخلى چه هغه خطاء كيدے هم شى.

علامه خطيب شربينيؒ وئيلى دى چه پدے آيت كښې تنبيه ده قريشو مشركانو ته په غلطئ د هغوى په تقليد د آباؤ (مشرانو) كښې او په پريخودو د اتباع د نبى كريم ﷺ كښې.

بله فائده دا ذكر كوى چه [فِيْ هٰذَا حَثٌّ عَلٰى مَعْرِفَةِ الرِّجَالِ بِالْحَقِّ، وَاَمْرٌ بِحَكِّ الْمَشَائِخِ وَغَيْرِهِمْ عَلٰى مِحَكِّ الْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ فَمَنْ كَانَ عَمَلُهُ مُوَافِقًا لَهُمَا اتُّبِعَ وَمَنْ كَانَ عَمَلُهُ مُخَالِفًا لَهُمَا اجْتُنِبَ] پدے آيت كښې تيزى وركول دى په پيژندلو د رجالو په حق سره، او علماء وغيره به د كتاب او سنت په كسوټى باندے تللے شى، د چا عمل چه ددے دواړو موافق وو، د هغه تابعدارى به كيدے شى او د چا عمل چه ددے دواړو مخالف وو نو د هغه نه به ځان ساتلے شى. (السراج المنير)

ابو یعلیٰ او طبرانیؒ وغیره د سعد بن ابی وقاص ﷛ نه او طبریؒ د ابو هریره ﷛ نه روایت کوی چه دا آیت د سعد بن ابی وقاص (﷛) او د هغهٔ د مور په باره کښې نازل شوے وو، کله چه ددهٔ مور ددهٔ د اسلام راوړو نه پس خوراك څکاك پریښے وو او وئیلی ئے وو چه تر څو پورے تهٔ د اسلام نه وانهٔ وړے، زهٔ خوراك نه کوم، نو هغهٔ ووئیل اے مورے! که چرے ستا سل (۱۰۰) روحونه شی، او هر یو نمبر په نمبر اوځی نو هم زهٔ خپل دین نهٔ پریږدم، دے وجے نه بهتره داده چه تهٔ خوراك څکاك کوه او مانه د یو نهٔ کیدونکی کار غوښتنه مهٔ کوه. نو هغے خوراك شروع کړو.

| |
|---|
| يَا بُنَيَّ إِنَّهَا إِنْ تَكُ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ فَتَكُنْ فِي صَخْرَةٍ |
| اے بچیه یقیناً دا (نیکی یا بدی) که وی په اندازه د دانے د اُوری پس شی په یو کاڼړی کښې |
| أَوْ فِي السَّمَاوَاتِ أَوْ فِي الْأَرْضِ يَأْتِ بِهَا اللَّهُ إِنَّ اللَّهَ |
| یا په آسمانونو یا په زمکه کښې رابه ولی دے لره الله تعالیٰ یقیناً الله تعالیٰ |
| لَطِيفٌ خَبِيرٌ ﴿١٦﴾ يَا بُنَيَّ أَقِمِ الصَّلَاةَ وَأْمُرْ بِالْمَعْرُوفِ وَانْهَ |
| باریك لیدونکے خبردار دے. اے بچیه پابندی کوه د مانځه او حکم کوه په نیکئ او منع کوه |
| عَنِ الْمُنْكَرِ وَاصْبِرْ عَلَىٰ مَا أَصَابَكَ إِنَّ ذَٰلِكَ مِنْ عَزْمِ الْأُمُورِ ﴿١٧﴾ |
| د بدئ نه او صبر کوه په هغه مصیبت چه اُورسیږی تا ته یقیناً دا د پخو کارونو نه دی. |

**تفسیر**: بیا د لقمان حکیم نصیحتونه ذکر کیږی. لقمان ووئیل: اے زما ځویه! که چرے د وُوری د دانے هومره هم د خیر یا شر عمل وی او هغه په یو غرهٔ کښې دننه په یو کټه، یا په آسمانونو کښې یا د زمکے په یو پټ کوټ کښې وی، نو الله تعالیٰ به دا د قیامت په ورځ راولی. ددے حساب به اخلی، او ددے مطابق جزاء یا سزا به ملاویږی. دے وجے نه الله تعالیٰ نه هیڅ یو شے پټ نهٔ دے. هر وړوکے او باریك شے هغهٔ دپاره ښکاره دے، او د هر یو خبر هغه لری.

يَا بُنَيَّ: په دعوت کښې د شفقت الفاظ وئیل زیات اثر لری.

إِنَّهَا: دا ضمیر قصه دے. او تَكُ کښې ضمیر (حَبَّةِ خَرْدَلٍ) ته. ۲- ظاهر دا ده چه انها ضمیر (حَبَّةُ خَرْدَلِ الْإِحْسَانِ وَالْإِسَاءَةِ) ته راجع دے. یعنی د نیکئ یا بدئ دانه د وُوری په

اندازه۔ او دا د (فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ) تشریح ده۔
۳- یا ضمیر خصلة د نیکئ او بدئ ته راجع دے۔
او هر کله چه پټیدل د یو څیز کله د وړوکوالی د وجه نه او کله د پردے د وجه نه او کله د لرے والی د وجه نه وی، او کله د ظلمت (تیّرے) د وجه نه وی نو دے څلورو ته ئے په ترتیب سره اشاره وکړه۔ حبة خردل اول ته اشاره ده، صخرة دویم ته اشاره ده، فی السموات: دریم حالت ته اشاره ده او فی الارض کښې څلورم ته اشاره ده۔
سوال: صخره ئے د آسمانونو او د زمکے په مقابله کښې ذکر کړیده نو آیا صخره د دوی نه بهر ده؟ جواب دا دے چه دا تعمیم بعد التخصیص دے، تقدیر د عبارت داسے دے [فَتَكُنْ فِيْ صَخْرَةٍ مِنَ السَّمٰوَاتِ وَالْاَرْضِ اَوْ فِيْ مَوْضِعٍ آخَرَ مِنْهُمَا] یعنی شی په یوه ګټه کښې د آسمان او د زمکے نه یا په نورو ځایونو کښې د آسمان او د زمکے نه۔ (احسن الکلام)
ددے صخرے نه بعض خلکو هغه ګټه مراد اخستے ده چه د زمکو د لاندے ده او په هغے باندے غوئی ولاړ دے وغیره وغیره۔ لیکن دا خبرے کمزورے دی۔ ابن عباس ﷺ ته منسوب دی چه دا صخره د اوه زمکو نه لاندے ده او دا هغه ګټه ده چه پدے باندے د بد کارو خلکو عملونه لیکلے کیږی او دے ته سجین هم وائی او د آسمان شینکی هم ددے نه ده۔ (فتح البیان) مګر پدے خبره هم دلیل نشته۔
لَطِيْفٌ: باریك بین، چه باریك باریك څیزونه وینی۔ اَيِ الْخَبِيْرُ بِبَوَاطِنِ الْاُمُوْرِ۔ یعنی په پټو څیزونو خبردار۔
او پدے آیت کښې د اِحسان د پیدا کولو طریقه داسے خودلے شویده چه الله ته انابت وکړی او پدے باندے بنده ذهن کولاؤ کړی چه زهٔ په هر ځای کښې یم، او زما د بدن یا خولے نه څه عمل راوځی نو الله تعالیٰ هغے له وینی او هغه ترے خبردار دے، او هغه به ئے خپل ځان ته د قیامت په ورځ پیش کوی۔ نو الله تعالیٰ ستا هر حرکات او سکنات او خبرے اترے او عملونه آوری او خبر دے، او بیا به دا څیزونه ټول آخرت ته حاضروی۔
يٰبُنَيَّ اَقِمِ الصَّلٰوةَ: لقمان ووئیل: اے زما څویه! مونځ اُودروه، یعنی ددے د تمامو شرطونو، ارکانو، واجباتو او سننو لحاظ ساتلو سره ئے ادا کوه، او خلقو ته د الله د بندګئ او نیکئ حکم کوه، او هغوئ د شرك، بدعت، خرابے خبرے او خراب کار او د هرے بدئ نه منع کوه، او په دے لاره کښې که تاته څهٔ تکلیف اُورسی په هغے صبر کوه۔ دا ټول کارونه د الله له خوا حتمی او واجب العمل دی۔ ۱- اَيِ الْاُمُوْرُ الَّتِيْ عَزَمَهَا اللّٰهُ وَاَوْجَبَهَا

عَلَيْهِمْ۔ هغه کارونه دی چه الله تعالیٰ پدے باندے عمل لازم کړیدے۔

شوکانیؒ لیکی چه په آیت کښې مذکوره عملونه په خاصه توګه ځکه بیان شوی چه دا د ټـمامو نیکیو بنیاد دے۔ ۲- ابن جریرؒ لیکی: د ﴿إِنَّ ذٰلِكَ مِنْ عَزْمِ الْأُمُوْرِ﴾ معنیٰ دا هم کیـدے شی چـه پورتنی کارونه د اعلیٰ ترینو اخلاقو او د نجات حاصلولو أهم ترین اعمال دی۔ قرطبیؒ د همدے تفسیر تائید کړے۔

۳- مِنَ الْأُمُوْرِ الَّتِیْ یَنْبَغِیْ لِلْإِنْسَانِ اَنْ یَّعْزِمَهَا ۔ دا هـغـه کارونه دی چه انسان لره مناسب دی چه ددے عـزم وکړی، او دا په ځان کښې خامخا راولی۔ او ددے په وجه باندے بنده په دین کښې مضبوط طیږی۔

بیا ئے زکاة ورته ذکر نکړو ځکه چه دے غریب وو، د زکاة نصاب ورسره نهٔ وو۔ نو د هغه د شان مناسب نصیحت ورته کوی۔

پـه اقامة الصـلاة کـښې اشاره ده چـه مـونځ پـه ټولو دینونو کښې لازم وو، او پـه امر بالمعروف او نهی عن المنکر سره اشاره ده چه د خپل کمال نه روستو د بل چا د تکمیل کوشش فرض دے۔ او امر بالمعروف او نهی عن المنکر د پخوانو پیغمبرانو او صالحینو صفت وو۔ په ټولو امتونو لازم وو۔

وَاصْبِرْ : او صبر عام دے پـه مـصیبتـونـو د خلـکو، او په مرضونو او په طاعت د الله تعالیٰ، او د ګناهونه صبر کولو ته شامل دے۔

| وَلَا تُصَعِّرْ خَدَّكَ لِلنَّاسِ وَلَا تَمْشِ فِي الْأَرْضِ مَرَحاً إِنَّ اللّٰهَ |
|---|
| او مهٔ کړوه اننګے خپل د خلقو سره او مهٔ ګرځه په زمکه کښې په تکبر یقیناً الله تعالیٰ |
| لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ فَخُوْرٍ ﴿۱۸﴾ وَاقْصِدْ فِيْ |
| مینه نهٔ کوی د هر لوئی کونکی، خپل صفتونه کونکی سره۔ او درمیانه روی کوه په |
| مَشْيِكَ وَاغْضُضْ مِنْ صَوْتِكَ إِنَّ أَنْكَرَ الْأَصْوَاتِ لَصَوْتُ |
| مزل خپل کښې او خکته کړه بعض آواز خپل یقیناً ډیر ناکاره د آوازونو نه خامخا آواز |
| الْحَمِيْرِ ﴿۱۹﴾ أَلَمْ تَرَوْا أَنَّ اللّٰهَ سَخَّرَ لَكُمْ مَّا فِيْ |
| د خر دے۔ آیا نهٔ ګورئ تاسو چه بیشکه الله تعالیٰ تابع کړیدی تاسو لره هغه څه چه په |

| السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ وَأَسْبَغَ عَلَيْكُمْ نِعَمَهُ |
|---|
| آسمانونو او هغه څه چه په زمکه کښې دي او پوره کړي ئې دي په تاسو باندې نعمتونه |
| ظَاهِرَةً وَبَاطِنَةً وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يُجَادِلُ فِي اللَّهِ |
| خپل ښکاره او پټ، او بعض د خلقو نه هغه څوك دي چه جګړې کوي په توحيد د الله |
| بِغَيْرِ عِلْمٍ وَلَا هُدًى وَلَا كِتَابٍ مُنِيرٍ ﴿٢٠﴾ |
| کښې په غير د علم نه او نۀ د هدايت نه او نۀ د کتاب ښکاره نه. |

**تفسير** : اُوس ورته نور اخلاق بيانوي چه انسان کښې عاجزي پيدا کوي، يعني اے زما ځويه ! کله چه خلقو سره خبرې کوې، يا هغوئ تاسره خبرې کوي، نو هغوئ سپك مۀ ګڼړه او د تکبر په وجه د هغوئ نه مخ مۀ اړوه او په کوږ مخ ورسره خبرې مۀ کوه، بلکه هغوئ سره په نرمئ، محبت او فراخ تندئ سره خبره کوه.

ترمذي په کتاب البر والصلة کښې د جابر بن عبد الله ﷺ نه صحيح حديث روايت کړے چه هره نيکي صدقه ده، او دا هم د نيکئ کار دے چه تۀ خپل وروr سره په خندين تندي ملاؤ شې. (صحيح مسلم : ٦٨٥٧) والترمذي (١٩٧٠) (واسناده صحيح)

**وَلَا تُصَعِّرْ خَدَّكَ لِلنَّاسِ** : صعر يوه بيماري وه چه په اُوښ به راغله نو د هغه څټ به ئې کوږ کړو. نو صعر په معنیٰ د ميلان او کږولو سره راځي، يعني مخ او آننګے د خلکو نه مۀ اړوه چه هغوي سپك ګڼړې او په هغوي باندې تکبر کوې لکه دا د متکبرانو طريقه ده چه چا سره ملاوېږي نو مخ ترې کوږ کړي او انسان ته نۀ ګوري، يا د مسلمان نه مخ کوږ کړي چه نۀ پرې سلام اچوي او نۀ ورسره ستړي مشي کوي، هغه درته ګوري او تا ترې مخ اړولے وي، د تواضع تقاضا دا ده لکه دا د رسول الله ﷺ طريقه وه چه چا سره به ملاؤ شو نو مخامخ به ئې ورته کتل او لاس به ئې ورکړو او هغه وخته پورې به ئې لاس نۀ راښکلو ترڅو چه به بل پرېښے نۀ وو.

او ددې معنیٰ دا هم ده چه مۀ تاووه وښکي خپل کله چه ستا په مجلس کښې د يو سړي ذکر وشي ګويا که تۀ هغه سپك وګڼړې. او ډير خلك داسې وي چه چا سره ستړي مشي نۀ کوي او سلام نۀ کوي وائي چه پدې به څه وخت ضائع کوو، حال دا چه پدې ملاويدو کښې انسان ته اجر ملاوېږي.

بیا ددې نه حالت د تادیب (ادب ورکولو) مستثنیٰ دې، چه مثلاً تهٔ خپل شاګرد یا بل مجرم ته ادب ورکوې، کعب بن مالك رضی الله عنه او نور دوه صحابه کرام چه به کله نبی کریم ﷺ خوا ته راغلل نو رسول الله ﷺ به د هغه نه مخ اړولو، سلام به ئې وا چولو، نو مخ به ئې واړولو او ام المؤمنین زینب رضی الله عنها سره ئې درې میاشتو پورې خبرې نهٔ وې کړې، هغې ته ئې ادب ورکولو. او عبد الله بن عمر رضی الله عنهما خپل ځوی سره تر مرګه پورې خبرې نهٔ وې کړې، مخ به ئې ترې اړولو. ځکه چه په یوه موقعه ترې د سنت خلاف شوې وو. لهذا په مشرك او بدعتی به سلام نشی اچولې، البته د دعوت باب ددې نه مستثنیٰ دې.

لِلنَّاسِ: اَیْ لِاَجْلِ تَحْقِیْرِ النَّاسِ. د وجه د سپك ګڼړلو د خلکو نه.

وَلَا تَمْشِ فِي الْاَرْضِ مَرَحًا: او په زمکه باندې په ډیره خوشحالیٔ سره مهٔ ګرځه چه په تکبر کښې راشې، ځکه چه الله تعالیٰ تکبر کونکې او د خلقو مخامخ فخر کونکې نهٔ خوښوی، چه دا په دې غلط خیال کښې مبتلا وی چه الله دهٔ سره مینه لری ځکه خو هغهٔ ورته دا نعمتونه ورکړی دی، ځکه چه د دنیا نعمتونه خو الله تعالیٰ کافرو بندګانو ته هم ورکوی.

پدې کښې ګډا او په ناز او نزاکت او نخرو سره ګرځېدل هم داخل دی.

مُخْتَالٍ فَخُوْرٍ : په سورة النساء (٣٦) آیت کښې ددې الفاظو وضاحت ذکر شویدې. مختال هغه متکبر چه په خپل ذهن کښې ورته ځان لوئی ښکاره کیږی. مُعْجِب بِنَفْسِهٖ وی. او فخور علی الغیر وی. یعنې خلکو باندې خپل صفات او محاسن شماری چه ما کښې دا دا کمالات دی. مؤمن له عاجزی پکار ده، مونږ په هر حالت کښې الله ته محتاج یو، که الله راله د دماغو یو رګ بند کړی نو بیا به لیونی یو، ټول کمالات به مو ختم وی.

او څه کمالات چه مونږ کړیدی نو دا راباندې الله تعالیٰ کړیدی. او دا د الله تعالیٰ د نعمتونو په مقابله کښې هیڅ نهٔ دی. او کیدې شی چه تهٔ څوك سپك ګڼړې د هغه انجام ښهٔ شی او ستا خراب شی نو فخر ته ضرورت نشته.

وَاقْصِدْ فِي مَشْيِكَ : لقمان خپل ځوی ته دا نصیحت هم وکړو چه په خپل چال او مزل کښې میانه روی اختیار کړه، یعنې د ضرورت نه بغیر مهٔ دومره تیز ځه چه کم عقل او سپك جوړ شې، او نهٔ په مزه ځه. چه څوك دریاندې د بیمار ګمان وکړی.

عبد الله بن مسعود ﷺ وائي : [ كَانُوا يَنْهَوْنَ عَنْ خَبَبِ الْيَهُوْدِ وَدَبِيْبِ النَّصَارٰى وَلٰكِنْ مَشْيًا بَيْنَ ذٰلِكَ] مسلمانان به د يهودو پشان په كبر سره د تيز مزل كولو (او توپونو) نه، او د نصاراو پشان د ميږي د مزل پشان تللو نه منع كيدلے شو. او په درميانه مزل به ورته حكم كيدے شو. (فتح البيان والبحر المحيط وروح المعاني ونظم الدرر)

ځينو مفسرينو ليكلي دي چه دے نه مقصد د يو سيدها ساده عقلمند او شريف انسان پشان مزل دے چه په هغے كښې نه څه كبر او نخره وي، نه ناز او نه رياكارانه زهد او عاجزي وي. ((او رسول الله ﷺ به داسے مزل كولو لكه د پورته خاى نه چه كوزيږي))، يعني سر به ئے خكته كړے وو او لږ تيز به روان وو او د قدمونو خاى ته به ئے كتل.

او بيا د هر شي د مزل خپله درميانه روي وي، پدے كښې به د ټريفيك د قوانينو لحاظ ساتلے شي، د جهاز خپله، د ګاړو خپله ده، مثلاً واړۀ ګاړي كه په هواره لاره باندے (۱۰۰) سپيډ كښې روان وي نو دا درميانه روي ده، او كه ددے نه بيخي زيات شي چه مثلاً (۱۵۰) ته وخيژي نو دا د ميانه روئ خلاف دے او اسراف دے. او ډير كرت بنده ته الله تعالىٰ سزا هم وركوي چه اكسيډنټ به وكړي. دغه شان د موټر سائيكل او سائيكل واخله.

وَاغْضُضْ مِنْ صَوْتِكَ: دارنګه لقمان ووئيل : خپل آواز ښكته ساته، خكه چه بغير د ضرورت نه آواز اُوچتولو سره هر شريف انسان ته تكليف رسي، لكه د خرۀ بد آواز پشان آواز نه خلقو ته تكليف كيږي، او دا بد ګڼړي، اوكله چه د چا د كريهه بدترين آواز بدي بيانول وي نو په روز مرّه محاوره كښې وائي چه فلانئے د خرۀ پشان رمباړے وهي. معلومه شوه چه بغير د ضرورت نه چغے وهل د ښو خلقو عادت نۀ دے.

مِنْ صَوْتِكَ: كښې مِنْ تبعيضيه دے، يعني بعض آوازونه خكه چه څه آوازونه په شريعت كښې په زوره راغلي دي، لكه اذان، د جهري مونځونو قراءت، تلبيه په جهر وائے، په كافر باندے به الله اكبر آواز په زوره وائے. د رسول الله ﷺ په صفت كښې راځي : [لَمْ يَكُنْ صَخَّابًا فِي الْاَسْوَاقِ] په بازار كښې به ئے چغے سورے نۀ وهلے. پدے كښې د بازار والو د مال خرڅولو دپاره چغے وهل هم داخل دي، لكه وائي : ((هر يو مال په لس لس په لس لس)).

لَصَوْتُ الْحَمِيْرِ: يعني د خرۀ آواز خراب دے او په خلكو بد لګي نو مطلب دا شو [فَلَا تَكُنْ مِثْلَ الْحَمِيْرِ] نو تۀ د خرۀ په شان مۀ جوړيږه.

خر چه کله شیطان وینی نو چغې وهي، نو ځکه رسول الله ﷺ فرمائی چه کله تاسو د خر آواز واورئ نو اَعُوذُ بالله وایئ. دارنګه خر بغیر د ضرورت نه چغې وهي. او دا دلیل دے چه څوك په اُوچت آواز سره د الله تعالیٰ ذکر کوی په غیر د شرعی دلیل نه، او دے ته لاوډ سپیکر ولګوی، او په شریکه راجمع شي، او چغې او سورے ئے جوړې کړی وی نو هغه د خر سره مشابه دے.

اَلَمْ تَرَوْا: د لقمان په نصیحتونو کښې د تولو نه اولنۍ نصیحت د شرك رد كول وو، چه دا د خالق په خلاف د مخلوق د بغاوت کولو پشان دی، دے وجے نه ددے نصیحتونو نه پس الله تعالیٰ بیا د توحید او شرك خبره چیړلے ده، او د مکے مشرکانو دپاره د رنګا رنګ نعمتونو ذکر کولو نه پس ئے دوئ ته د شرك نه د توبے کولو او صرف د خپل عبادت کولو دعوت ورکړے. او دا دلیلونه د الله تعالیٰ د معرفت هم دی.

الله تعالیٰ فرمائی : اے د مکے مشرکانو ! آیا شپه او ورځ ستاسو په لیدنه کتنه کښې دا خبره نۀ ده راغلے چه ستاسو د فائدے دپاره الله تعالیٰ هغه تول څیزونه تابع کړی کوم چه په آسمانونو کښې دی، لکه نمر سپوږمئ، ستوری او باران، او کوم چه په زمکه کښې دی لکه وُنے، نهرونه، غرونه، سمندرونه، حیوانات او معدنیات وغیره. او هغۀ په تاسو خپل نعمتونه پوره کړی دی، برابره خبره ده که هغه ظاهری وی لکه ښائسته شکل او صورت او مناسب بدنی اندامونه، اوکه باطنی وی لکه عقل او ادراك، علم او معرفت او صحیح عقیده د کتاب او سنت مطابق، د اِفراط او تفریط نه جدا کیدل، او نورے بے شماره نعمتونه چه د هغے احاطه نشی کیدے، لیکن ډیر افسوس چه تاسو سره د دومره دلیلونو او نعمتونو نه د الله تعالیٰ په وحدانیت کښې بغیر د څه نقلی یا عقلی دلیل نه او په غیر د څه آسمانی وحی نه صرف د کبر او عناد په بنیاد جګړے کوئ.

وَاَسْبَغَ: اَیْ اَکْمَلَ وَاَتَمَّ. یعنی پوره کړی او تمام کړی ئے دی.

ظَاهِرَةً وَّبَاطِنَةً: ددے نه مراد تول نعمتونه دی ځکه چه بعض نعمتونه ښکاره کیږی او بعض نۀ ښکاره کیږی. بعضو خاص مصداقات وئیلی دی (۱) چه ظاهرةً اسلام او قرآن ته وائی او باطنه سَتْرُ الذُّنُوْبِ ته وائی چه ګناهونه الله تعالیٰ پټ کړیدی

(۲) ظاهره حُسْنُ الصُّوْرَةِ. ښائسته شکل الله تعالیٰ درکړیدے. او باطنه : اَلْمَعْرِفَةُ وَاِتِّبَاعُ الرَّسُوْلِ وَمَحَبَّتُهٗ]. د الله معرفت او رسول الله ﷺ تابعداری او د الله او د رسول سره مینه. (معالم التنزیل للبغوی)

لیکن دا مصداقات کم دي او آیت کښې ددې نه هم زیات عموم دے۔
وَمِنَ النَّاسِ مَن يُجَادِلُ : ددې احسانـاتـو تقاضا دا وه چه بندګانو سمدست الله تعالیٰ منـلے وے او د هـغـه یواځې بندګی ئې شروع کړې وے، نو اُوس الله تعالیٰ زجر ورکوی چه بـعـض بـنـدګـان دومره سرکشه او ګمراهان وي چه پداسے عظیم ذات کښې جګړې کوي، کله الله نهٔ مني، او کله د هغهٔ توحید نهٔ مني او کله د هغهٔ احکام نهٔ مني۔
بِغَيْرِ عِلْمٍ : دا جـمـلـه دریم کرت راغله، یو ځل سورة آل عمران او دویم ځل سورة الحج کښې ذکر شویده۔ نو بغیر علم کښې دلیل عقلي، (وَلَا هُدًى) دلیـل نقلي د انبیاء علیهم السلام نه چه د هغوی رهنمائي وي۔
او (وَلَا كِتَابٍ مُّنِيرٍ) دلیـل وحیي، چه الله د آسمان نه رڼړا والا کتاب نازل کړے وي۔ بلکه د دوی جګړې خالص په ضد او عناد او تعنت او تقلید باندې بناء دي۔

وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اتَّبِعُوا مَا أَنزَلَ اللَّهُ

او کله چه اُووئیلے شي دوی ته تابعداري اُوکړئ د هغې چه نازل کړیدی الله تعالیٰ

قَالُوا بَلْ نَتَّبِعُ مَا وَجَدْنَا عَلَيْهِ

وائي دوی بلکه تابعداري کوو مونږ د هغه څه چه موندلی دی مونږ په هغې باندې

آبَاءَنَا أَوَلَوْ كَانَ الشَّيْطَانُ يَدْعُوهُمْ إِلَىٰ عَذَابِ السَّعِيرِ ﴿٢١﴾ وَمَن

پلاران خپل آیا اګرکه دے شیطان چه رابلي دوی لره عذاب د اُور لمبو والا ته۔ او څوک

يُسْلِمْ وَجْهَهُ إِلَى اللَّهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ

چه تابع کړي مخ خپل الله ته او هغه ښائسته عمل کونکے وي نو یقیناً دهٔ منګولې اُولګولې

بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقَىٰ وَإِلَى اللَّهِ عَاقِبَةُ الْأُمُورِ ﴿٢٢﴾ وَمَن كَفَرَ فَلَا يَحْزُنكَ

په کړئ مضبوطه او خاص الله ته انجام د کارونو دے۔ او چا چه کفر اُوکړو نو غمژن دې

كُفْرُهُ ۚ إِلَيْنَا مَرْجِعُهُمْ فَنُنَبِّئُهُم

نهٔ کړي تا لره کفر د هغه، خاص مونږ ته راګرځیدل د دوی دي نو خبر به ورکړو دوی ته

بِمَا عَمِلُوا إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ ﴿٢٣﴾

په هغې عملونو چه دوی کړیدی یقیناً الله پوهه دے په هغه خبرو چه په سینو کښې دی.

نُمَتِّعُهُمْ قَلِيلًا ثُمَّ نَضْطَرُّهُمْ إِلَىٰ عَذَابٍ غَلِيظٍ ﴿٢٤﴾

مزے ورکوو دوی ته لږ وخت بیا به محتاج کړو دوی لره عذاب سخت ته.

**تفسیر**: اوکله چه د مکے مشرکانو ته ووئیلے شی چه الله تعالیٰ چه په خپل رسول محمد ﷺ باندے کوم دین او شریعت او کوم آسمانی کتاب نازل کړے، د هغے پیروی وکړئ دے دپاره چه هغه تاسو ته الله وښائی، او د کامیابئ په لاره مو روان کړی. نو دوی وائی چه مونږ د خپل پلار نیکهٔ په لاره ځو او د دوئ د بتانو عبادت کوو. او هغوی چه کومه لاره اختیار کړیده بس هغه بهتره ده، د قرآن او سنت سره زمونږ کار نشته.

أَوَلَوْ كَانَ الشَّيْطَانُ: دا واو عاطفه دے او مطلب دادے : [أَيَتَّبِعُونَ الآبَاءَ وَلَوْ كَانَ الشَّيْطَانُ يَدْعُوهُمْ إِلَىٰ عَذَابِ السَّعِيرِ] یعنی آیا دوئ د دغه پلرونو او نیکونو پیروی کوی، اګرکه شیطان دوئ هغه شرك او بُت پرستئ طرفته رابلی کوم چه جهنم ته د داخلیدو سبب وی، چه د پلرونو او نیکونو سره به دوئ هلته اُورسولے شی ؟.

يَدْعُوهُمْ: ۱- هُمْ ضمیر أبناء ته راجع دے یعنی شیطان دا موجوده بچی دعوت کوی عذاب د جهنم ته. یعنی تاسو چه دا وایئ چه مونږ پلار نیکه پسے ځو نو دا خو د شیطان دعوت دے چه تاسو ئے اُور ته راووبللئ. یعنی ستاسو د پلار نیکه په لاره کښې خو جهنم دے.

۲- (هُمْ) ضمیر آباؤ ته راجع دے، یعنی اګرکه شیطان د دوی پلارانو ته د جهنم د عذاب دعوت ورکولو یعنی د دوی پلاران خو جهنمیان دی، کافر تیر شویدی نو دوی څنګه د جهنمیانو تابعداری کوی؟!. اول تفسیر ظاهر دے ځکه چه (يَدْعُوهُمْ) مضارع ده چه په حال او استقبال دلالت کوی.

وَمَنْ يُسْلِمْ وَجْهَهُ: اُوس پدے آیت کښې د مشرکینو په خلاف د هغه مؤمن فضیلت بیانوی کوم چه د إحسان درجے ته ورسیدو.

دلرنګه مخکښې د مشرکانو په شرك باندے زجر او رټنه ورکړے شوه نو اُوس خلکو ته د نجات لاره خودلے کیږی.

يُسْلِمْ: اَيْ اِنْقَادَ نَفْسَهٗ لِلّٰهِ۔ الله ته ئې مخ تابع كړو، يعنې د الله تعالىٰ هر حكم ئې ومنلو۔
وَهُوَ مُحْسِنٌ: او بيا په ښائسته طريقې سره عملونه هم كوي۔ په توجه سره ئې ادا كوي۔ ٢- يا د اِسلام نه مراد اخلاص دے، او د احسان نه مراد اتباع د سنت ده۔ او تفصيل ئې په سورة البقره كښې گوره۔
فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقٰى: پدے كښې اشاره ده چه څوك ځان كښې اسلام او احسان پيدا كړي نو هغه به د ارتداد نه بچ شي، پدے كښې اشاره وه هغه كسانو ته چه د نضر بن الحارث په دعوت باندے د حق نه اوړيدلى وو۔ نو الله ورته دعوت وركوي چه اسلام او احسان ځان كښې پيدا كړه، د ارتداد نه به محفوظ شے۔ او پدے كښې د فتنو نه نجات ته اشاره ده چه دا په دے دوه صفتونو سره حاصليږي۔ اِنْقِيَاد لِرَبِّ الْعَالَمِيْنَ (د الله هر حكم ته منقاد كيدل) وَالْاِحْسَانُ لِلّٰهِ (يعنى عمل په ښائسته طريقه سره ادا كول)۔
ددے وجه نه په دين باندے عمل كول د فتنو نه د بچاؤ ښكلے ذريعه ده، لكه حديث كښې هم دي: [بَادِرُوْا بِالْاَعْمَالِ فِتَنًا، يُصْبِحُ الرَّجُلُ فِيْهَا مُؤْمِنًا وَيُمْسِيْ كَافِرًا وَيُمْسِيْ مُؤْمِنًا وَيُصْبِحُ كَافِرًا] د هغه فتنو نه مخكښې عملونه وكړئ چه په هغے كښې به سړے صبا كښې مؤمن وي، او ماښام به كافر وي او ماښام به مؤمن وي او سهار به كافر وي۔
اَلْعُرْوَةُ الْوُثْقٰى كښې تمثيل ته اشاره ده يعنې چه څوك خپل رب طرفته پوره متوجه شو، او كامل اخلاص سره ئې د هغهٔ اوامر او نواهي عملي كړل، نو د هغه مثال د هغه شخص دے چه يو اُوچت غر ته ختل غواړي، او د غر نه رازوړنده مضبوطه رسئ ونيسي، او د هغے اُوچت سر ته ورسيږي، او د راغورزيدو نه محفوظ شي۔
وَمَنْ كَفَرَ: پدے كښې نبي كريم ﷺ ته تسلي وركوي، چه ددے دومره دليلونو باوجود كه يو تن په خپل كفر ټينگ ولاړ وي، نو د هغهٔ په كفر باندے خفگان مهٔ كوه، د هغهٔ د كفر ضرر تا ته نهٔ رسيږي بلكه دوئ به خامخا زمونږ خواته را واپس كيږي، او مونږ به دوئ ته د دوئ د بدو اعمالو خبر وركړو او دوئ به د هغے سزا خوري۔ الله تعالىٰ د خپلو بندگانو په زړونو كښې د پټو تمامو عقائدو او فكرونو نه ښهٔ خبر دے، دے وجے نه حساب به ډير زيات باريك او جزاء او سزا به بيخي عادلانه وي۔
نُمَتِّعُهُمْ قَلِيْلًا: سوال پيدا شو چه هركله دا شخص كافر دے او دليلونه نهٔ مني نو بيا پرے عذاب ولے نهٔ راځي؟ الله فرمائي چه دنيا كښې ورله لږے غوندے فائدے وركوو تر نيتې پوره كيدو پورے، ځكه چه د آخرت د هميشه نعمتونو په مقابله كښې ددنيا

ختمیدونکی نعمتونه انتهائی کم دی، پدے باندے دوی له غرور نهٔ دے پکار۔ یعنی الله فرمائی چه مونږ د دوی په رانیولو کښې جلتی نهٔ کوو۔ الله تعالیٰ ډیر صبرناك ذات دے۔
قَلِيۡلًا: یعنی زَمَانًا قَلِيۡلًا ۔ لږه زمانه۔ یا تَمۡتِيۡعًا قَلِيۡلًا ۔ لږے فائدے۔

| وَلَئِنۡ سَأَلۡتَهُمۡ مَّنۡ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالۡأَرۡضَ لَيَقُولُنَّ |
| --- |
| او که چرے تپوس اوکړے ته د دوی نه چا پیدا کړیدی آسمانونه او زمکه خامخا وائی |
| اللهُ قُلِ الۡحَمۡدُ لِلَّهِ بَلۡ أَكۡثَرُهُمۡ لَا |
| دوی الله تعالیٰ، ته اووایه ! صفتونه د الوهیت خاص الله لره دی بلکه ډیر د خلقو نه نهٔ |
| يَعۡلَمُونَ ﴿٢٥﴾ لِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالۡأَرۡضِ |
| پوهیږی۔ خاص د الله په اختیار کښې دی هغه څه چه په آسمانونو او زمکه کښې دی، |
| إِنَّ اللهَ هُوَ الۡغَنِيُّ الۡحَمِيۡدُ ﴿٢٦﴾ وَلَوۡ أَنَّمَا فِي الۡأَرۡضِ مِنۡ شَجَرَةٍ |
| یقیناً الله بے حاجته ستائیلے شویدے۔ او که چرته هغه څه چه په زمکه کښې دی د ونو نه |
| أَقۡلَامٌ وَالۡبَحۡرُ يَمُدُّهُ مِنۡ بَعۡدِهِ سَبۡعَةُ أَبۡحُرٍ |
| قلمونه شی او دریاب مدد اوکړی دهٔ سره (یا زیات کړی دهٔ لره) روستو دهٔ نه اووه دریابونه، |
| مَّا نَفِدَتۡ كَلِمَاتُ اللَّهِ إِنَّ اللهَ عَزِيۡزٌ حَكِيۡمٌ ﴿٢٧﴾ |
| ختم به نشی خبرے د الله تعالیٰ یقیناً الله تعالیٰ زورور دے حکمتونو والا دے۔ |

**تفسیر**: بیرته دلائلو ته واپسی کوی، پدے کښې یو د الله تعالیٰ معرفت مقصد دے چه خپل رب وپیژنی، او پدے کښې د احسان پیدا کولو ماده بیانوی چه هغه تَفَكُّرُ فِي الۡكَائِنَاتِ دے۔ او په شرك او کفر باندے رد کول او زجر ورکول دی۔
الله تعالیٰ وفرمایل چه اے زما نبی ! که چرے ته ددے مشرکانو نه تپوس اوکړے چه دا آسمانونه او زمکه چا پیدا کړی؟ نو دوئ به ووائی : الله۔ ته اووایه چه د الله شکر دے چه ستاسو په خلاف دلیل قائم شو۔ او دشمن خپله اقرار وکړو، هر کله چه تاسو اقرار کوئ چه هم هغه خالق او رازق او مالك کل دے، نو بیا تاسو د کوم دلیل په بنیاد د هغهٔ نه سوئ د نورو دروغژنو معبودانو عبادت کوئ ؟ الله وفرمایل : زیاتره مشرکانو ته د توفیق

د نهٔ ملاویدو دا حال دے چه داسے ښکاره حقیقت هم نهٔ پیژنی۔
قُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ: ددے دویم مطلب دا دے چه الله تعالیٰ کمالی ذات دے او ټول ښکلے صفتونه هغهٔ لره ثابت دی، نو هر کله چه الله تعالیٰ کمال والا دے، نو بیا تاسو ولے دے کمالی ذات ته نهٔ متوجه کیږئ؟! نو الله تعالیٰ ددے وجه بیانوی چه په الله کښ خو کمال شته لیکن اکثر خلك د الله تعالیٰ د کمالاتو نه نا خبره او ناپوهه دی، نو ځکه دا ښکلے ذات پریدی او کمزوری مخلوق ته متوجه کیږی۔
لِلّٰهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ : دا د مخکښ سره تعلق لری، سوال پیدا شو چه الله تعالیٰ مونږ نه بار بار د متوجه کیدو مطالبه کوی، نو آیا الله زمونږ توجه ته محتاج دے؟ نو جواب کوی چه هر څه خو د الله تعالیٰ دی، ستا په توجه سره نهٔ په آسمان کښ زیادت راځی او نهٔ په زمکه کښ، الله تعالیٰ د بندګانو د عبادت نه بی نیازه او بے حاجته دے او د هغه خو هسے هم ستائینه او صفت کیږی که بندګان ئے ونکړی نو د هغهٔ په صفاتو کښ نقصان نهٔ راځی لیکن ستاسو د توجه فائده تاسو ته راواپس کیږی۔ او نبی ﷺ ته تسلی ده چه که مشرکان او غیر مشرکان عبادت کوی او که نهٔ هیڅ پرواه ئے مهٔ کوه۔ دوی د ځپل ځان ضرر کوی که عبادت نکوی۔
وَلَوْ أَنَّمَا فِي الْأَرْضِ مِن شَجَرَةٍ : ١- اُوس دلیل علمی بیانوی لکه د قرآن دا طریقه ده چه د الله تعالیٰ قدرت او علم زیات بیانوی۔
٢- دارنګه مخکښ ئے ووئیل چه د آسمان او د زمکے هر څه د الله دی۔ نو اُوس وائی چه ددے نه ما سوئ ډیر ځیزونه شته چه هغه په بیان کښ نهٔ راګیریږی، هغه هم د الله تعالیٰ په علم کښ دی۔

## شان نزول

محمد بن اسحاقؒ د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت کړے چه د یهودو علماؤ د رسول الله ﷺ نه په مدینه کښ تپوس اُوکړو چه اے محمده! ستا دا وینا : ﴿ وَمَا أُوتِيتُم مِّنَ الْعِلْمِ إِلَّا قَلِيلًا ﴾ (تاسو له ډیر زیات کم علم درکړے شوے)۔ زمونږ په باره کښ ده او که ستا د قوم په باره کښ؟ نبی ﷺ وفرمایل : د دواړو په باره کښ۔ نو هغوئ ووئیل : آیا ته په ځپل قرآن کښ نهٔ لولے چه مونږ له تورات راکړے شوے چه په هغے کښ هر یو شے بیان شوے دے؟ نو نبی ﷺ وفرمایل چه دا د الله تعالیٰ د علم معمولی یوه برخه ده، دے نه پس دا آیت

كريمه نازل شو۔

(حافظ ابن كثيرؒ ليكي : د آيت شانِ نزول دليل دے چه دا په مدينه كښې نازل شوے وي) چه په دے كښې د نبي كريم ﷺ د جوابَ تائيد وو چه كه د زمكے تولے ونے پريكړے شي او ددے نه قلمونه جوړ كړے شي، او بحرِ محيط او ددے پشان د نورو اُوو سمندرونو اُوبهٔ د سياهي په توګه استعمال كړے شي او د الله تعالىٰ د كلام او كلماتو ليكل شروع كړي نو تولے ونے او د تولو سمندرونو اُوبهٔ به ختمے شي او د الله تعالىٰ كلام به ختم نشي۔

يَمُدُّهُ: يعنې امداد وكړي ددے يو درياب سره نور اُوه دريابونه۔ يا زيات كړي درياب لره نور اُووه دريابونه۔

مِن بَعْدِهِ : اَىْ بَعْدَ نَفَادِهِ يعنې روستو د ختميدو د يو درياب نه۔ او دلته وقف دے۔

فَكُتِبَتْ كَلِمَاتِ اللّٰهِ۔ او دغه قلمونه پدے سياهي سره د الله تعالىٰ كلمات او علمونه ليكل شروع كړي نو ختم به نهٔ شي۔

كَلِمَاتُ اللّٰهِ: ددے نه مراد علوم او معلومات د الله تعالىٰ دي۔ او په كلمات لفظ سره تعبير كولو كښې اشاره ده د الله تعالىٰ قدرت او علم او خبرو درے واړو ته، الله تعالىٰ خبرو كولو والا دے څكه چه قادر دے څكه چه عالِم دے، څكه چه د چا چه خبرے ډيرے وي نو علم ئے ډير وي او د چا چه خبرے ډيرے وي نو قدرت ئے ډير وي۔ او تشريح ئے په سورة الكهف تيره شويده۔

او دلته الله تعالىٰ د إنسان د ذهن مطابق يو مثال د اُوه دريابونو ذكر كړيدے ورنه اُووه دريابونه هم د الله تعالىٰ مخلوق دے، هغهٔ پيدا كړيدي، د هغهٔ د علم مطابق جوړ شويدي، د هغے نه د الله تعالىٰ كلام او علمونه زيات دي۔

| مَّا خَلْقُكُمْ وَلَا بَعْثُكُمْ إِلَّا كَنَفْسٍ وَاحِدَةٍ إِنَّ |
|---|
| نهٔ دے پيدائش ستاسو او نهٔ دوباره ژوندي كول ستاسو مګر په شان د نفس يو دي، يقيناً |
| اللّٰهَ سَمِيعٌ بَصِيرٌ ﴿٢٨﴾ أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللّٰهَ يُولِجُ اللَّيْلَ فِي النَّهَارِ |
| الله آوريدونكے ليدونكے دے۔ آيا نهٔ ګورے ته چه يقيناً الله تعالىٰ ننباسي شپه په ورځ |
| وَيُولِجُ النَّهَارَ فِي اللَّيْلِ وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ كُلٌّ يَجْرِي إِلَىٰ |
| كښې او ننباسي ورځ په شپه كښې او تابع كړي ئے دي نمر او سپوږمۍ، تول روان دي تر يو |

| أَجَلٍ مُّسَمًّى وَأَنَّ اللَّهَ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴿٢٩﴾ ذَٰلِكَ |
|---|
| نیټې مقررې ته، او یقیناً الله تعالیٰ په هغه څه چه تاسو ئې کوئ خبردار دے۔ دا دلیل دے |
| بِأَنَّ اللَّهَ هُوَ الْحَقُّ وَأَنَّ مَا يَدْعُونَ مِن دُونِهِ |
| پدے چه یقیناً الله تعالیٰ هم هغه حق دے او یقیناً هغه چه دوی رابلی سوئ د هغه نه |
| الْبَاطِلُ وَأَنَّ اللَّهَ هُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيرُ ﴿٣٠﴾ أَلَمْ تَرَ أَنَّ الْفُلْكَ تَجْرِي |
| هغه باطل دے او یقیناً الله اُوچت دے لوئی دے۔ آیا نۀ گورے ته چه یقیناً کشتئ روانے دی |
| فِي الْبَحْرِ بِنِعْمَتِ اللَّهِ لِيُرِيَكُم مِّنْ آيَاتِهِ |
| په دریاب کښې په نعمت د الله تعالیٰ دے دپاره چه دراوښائی تاسو ته د نخو خپلو نه |
| إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّكُلِّ صَبَّارٍ شَكُورٍ ﴿٣١﴾ |
| یقیناً پدے کښې خامخا دلیلونه دی دپاره د هر ډیر صبرناك ډیر شکر گذار۔ |

**تفسیر**: پدے آیت کښې د الله تعالیٰ د قدرت بیان دے۔

### شان نزول

مفسرین لیکی چه دا آیتِ کریمه د اُبیؔ بن خلف په رد کښې نازل شوے وو۔ هغۀ نبی کریم ﷺ نه تپوس وکړو چه الله انسان د مختلفو مرحلو نه تیرولو سره پیدا کړے، او د تولے دنیا انسانان ئې په صدیو کښې پیدا کړی، بیا تۀ دا څنګه وائې چه هغه به دوباره تول انسانان په یوه ورځ کښې پیدا کوی، او د دوئ نه به حساب اخلی او هر یو ته به د هغۀ د ښو یا بدو اعمالو بدله ورکوی؟ نو الله تعالیٰ دا آیتِ کریمه نازل کړو چه هغه په هر یو شی باندے قادر دے۔ هغه په یو ساعت کښې د کُن په کلمے سره دوباره تمام انسانان پیدا کوی، هغۀ دپاره یو انسان پیدا کول او تمام انسانان پیدا کول یو برابر دی۔ هیڅ یو شے د هغۀ د ارادے او فیصلے پوره کیدو مخے ته خنډ نشی واقع کیدے۔ ددے مثال د پوهے دپاره دا دے لکه یو بټن سره یو بلب او ډیر بلبونه او غټ او واړه تول په یو ځل لګیږی او هیڅ مانع نۀ وی او نۀ بټن ته پدے باندے څه تکلیف وی چه ډیر نۀ لګوی او یو لګولے شی۔ نو دغه شان د الله تعالیٰ کُنْ کلمه (او د هغه د طاقت کرنټ) که تولو انسانانو ته متوجه شی یا یو انسان ته دواړه یو شان دی۔

**اَلَمۡ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ : اُوس د الله تعالیٰ جزئی تصرفات بیانوی۔**

داسے آیت په سورتِ آل عمران (۲۷) او سورتِ حج (۶۱) کښې ذکر شویدے۔ نبی کریم ﷺ او د هغوئ په واسطے سره نورو خلقو ته وئیلے کیږی چه تاسو گورئ نه، الله تعالیٰ شپه او ورځ په یو بل کښې ورننباسی، یعنی یو د بل پسے روستو لگوی، او په دوارو کښې د حکمت او مصلحت مطابق کمے زیاتے کوی؟ او هغهٔ نمر او سپوږمئ د خپل حکم سخت پابند جوړ کړی دی، چه ددے نه هغه دواړه د یو وېښتهٔ برابر هم آوښتے نشی۔ دواړه د الله د فیصلے او ارادے مطابق را خیژی او دوبیږی تردے چه د قیامت ورځ راشی۔ او هغه حق ذات د بندگانو د ټولو اعمالو نه خبردار دے، هیڅ یو شے د هغهٔ نه پټ نه دے۔ نو ددے جملے فائده دا ده چه الله تعالیٰ دا تصرفات ستاسو د عمل دپاره کوی، که یو انسان نیك عمل نهٔ کوی نو هغه د کائناتو پیدائش معطل گنړی پدے وجه روستو د تفریع په طریقه مشرکانو ته دعوت ورکوی۔ ﴿وَاَنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعۡمَلُوۡنَ خَبِیۡرٌ﴾

یعنی ستاسو د عملونو نه خبردار دے چه تاسو پدے دنیا کښې څه کوئ، نیك عمل یا بد عمل۔

**ذٰلِكَ بِاَنَّ اللّٰهَ هُوَ الۡحَقُّ : ذٰلِكَ :** دا اشاره ده (ایلاج او تسخیر) ته، یعنی دا شپه او ورځ په یو بل کښې داخلول او د نمر او سپوږمئ پدے طریقه تابع کول دلیل دے پدے خبره چه الله تعالیٰ حق ذات دے۔

مخکښې ئے ووئیل چه دا کائنات ئے د عمل دپاره پیدا کړی هغه ئے حکمت دے۔ اُوس وائی چه ددے بدلونکے ذات الله تعالیٰ دے۔ ځکه چه دا مخلوق دے او د هر مخلوق دپاره خالق ضروری وی نو ددے نه د الله تعالیٰ وجود او د هغهٔ حق والے معلومیږی۔

**بِاَنَّ :** ددے نه مخکښې فعل پټ دے اَیۡ لِتَسۡتَیۡقِنُوۡا بِاَنَّ اللّٰهَ ۔ دا کارونه ددے دپاره وشو چه تاسو یقین وکړئ چه بیشکه الله تعالیٰ حق ذات دے۔

**وَاَنَّ مَا یَدۡعُوۡنَ :** او معلومه شوه چه د هغهٔ نه سوئ چه د کومو معبودانو عبادت کیږی، هغه ټول دروغژن او باطل دی۔ د هغهٔ ذات د ټولو نه لوئی او اُوچت دے، همدا خالق او مالك او د ټولو رب دے، او د تمامو عبادتونو مستحق صرف همدے دے۔

سوال دا دے چه د الله تعالیٰ نه ماسوئ نور معبودان څنګه باطل دی حال دا چه مشرکانو خو د ملائکو، د بعض انبیاء علیهم السلام عبادتونه کړیدی؟

۱ --- جواب دا دے چه د باطل نه مراد فانی دے۔ یعنی الله حق او ثابت ذات دے او نور

معبودان فاني كيدونكي دي۔ نو دليل شو چه بندگي هم صرف د باقي او ثابت ذات پكار ده نهٔ د فاني۔ ۲- جواب : دلته مضاف پټ دے۔ [اَىْ عِبَادَتُهٗ وَدُعَاءُهُ الْبَاطِلُ] يعني كوم معبودان چه مشركان ئے سوئ د الله نه رابللي نو د هغوي عبادت او د هغوي رابلل باطل دي۔ نو نبي او ملائك باطل نهٔ دي ليكن د هغوي عبادت باطل كار دے، نو پدے وجه هغوي ته هم په محاوره كښ باطل معبودان وئيلے كيږي۔ اول جواب غوره دے۔

**الْعَلِيُّ الْكَبِيْرُ** : د الله تعالىٰ دپاره علوّ ذاتي، علوّ مكاني، علو رُتبي درے واړه ثابت دي۔

**اَلَمْ تَرَ اَنَّ الْفُلْكَ** : دا بل دليل عقلي دے د الله تعالىٰ د تعارف او د قدرت او د هغهٔ د مهربانئ۔ او د رد د شرك دپاره۔

الله تعالىٰ وفرمايل : آيا تهٔ گورے نهٔ (يعني دے كښ سوچ وكړه او كله كله د درياب خواته ورشه چه د الله د ناشنا قدرتونو نه خبر شے) چه درياب په سطح د زمكه باندے اُوچت دے او الله تعالىٰ په خپل حكم سره بند كړيدے چه په زمكه نهٔ راوړي۔ او په درياب كښ د الله تعالىٰ د قدرت ډير لوي عجائب دي۔ پدے كښ كشتئ او لانچونه روان وي، او نهٔ ډوبيږي، او په درياب كښ ناشنا مهيان او حيوانات دي، خوږ او تريخ دريابونه دي، د سپوږمئ په وجه پدے كښ مد وجزر كيږي۔

**صَبَّارٍ شَكُوْرٍ** : د صبار او شكور د كشتئ سره ډير مناسبت دے كله چه بنده كشتئ كښ كيني نو پدے وخت كښ به راياد كړي چه د نوح ﷺ قوم الله تعالىٰ هلاك كړل او نوح ﷺ ئے په كشتئ كښ بچ كړو دا ولے هلاك شو ؟ نو د شرك او د گناهونو د وجه نه۔ نو ته به ځان سره عزم وكړے چه ددے گناهونو او شرك نه خو صبر پكار دے۔ نوح ﷺ الله بچ كړو ؟ ځكه چه شكر گزار بنده وو۔ نو په ما باندے هم شكر واجب دے۔نو چا كښ چه د صبر او د شكر ماده وي نو هغه ددے نښو نه ښهٔ عبرت اخستے شي۔

او مطلب دا دے چه ځان كښ صبر او شكر پيدا كړه نو عبرت به واخلے۔ لهٰذا دا چه چا كښ صبر او شكر وي نو هغه مؤمن وي، او مؤمن ددے نښو نه عبرت اخلي، او عام خلك د غفلت په حالت كښ سفرونه كوي، ناشنا ځيزونه ويني ليكن يوه سبحان الله هم نهٔ وائي۔ اشاره ده چه مؤمن به ويښ وي، هر شي كښ به د الله تعالىٰ قدرت ويني۔ نو د محسنينو طريقه دا ده چه هر وخت ئے د الله تعالىٰ په نعمتونو نظر لگيږي۔ او دلائلو ته هم گوري۔ او د هر نعمت په مقابله كښ شكر كوي۔

۲- يا صبّار نه مراد هغه شخص دے چه د سفر په مشكلاتو باندے صبر كوي ځكه

چه څوك د دریاب خواته نهٔ راځي نو هغهٔ ته به ددې نه څه ډیره نښه د قدرت نهٔ معلومیږي.

۳- یا صبار او شکور ئې ډیر مناسب راوړیدی ځکه چه دریاب کښې سفر کونکې د خطرې سره هم مخامخ وي او د سلامتیا سره هم، نو څوك چه د خطرې په وخت صبر کوي او د سلامتیا په حالت کښې شکر کوي نو هغه ددې نه ډیره فائده اخستې شي، په دواړو حالتونو کښې ورته الله یاد وي، نو پدې دوه لفظونو کښې د ایمان والو صفت ته اشاره ده او په مشرکانو باندې رد دې چه دوي کله په کشتئ کښې وي او هواء سخته راشي نو دوي پریشانه شي او صبر پکښې نهٔ وي، او چه کله بچ شي نو بیا تکبر کوي او د الله تعالیٰ شکر نکوي. (ابن عاشورؒ)

بیا صبار او شکور ئې د مبالغې صیغې راوړې اشاره ده چه په بعض مشکلاتو باندې صبر کول او د بعض نعمتونو شکر کول خو د کافرانو او مشرکانو هم عادت دې.

| |
|---|
| وَإِذَا غَشِيَهُم مَّوْجٌ كَالظُّلَلِ دَعَوُا اللَّهَ |
| او کله چه پټ کړي دوي لره چپې پشان د غتو وریځو، دعاگانې غواړي دوي د الله نه چه |
| مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ فَلَمَّا نَجَّاهُمْ إِلَى الْبَرِّ فَمِنْهُم |
| خالص کونکي وي هغه لره بلنه، نو هر کله چه بچ کړي دوي لره اُوچې ته نو بعض د دوي |
| مُّقْتَصِدٌ وَمَا يَجْحَدُ بِآيَاتِنَا إِلَّا كُلُّ خَتَّارٍ كَفُورٍ ﴿۳۲﴾ |
| نه درمیانه روان شي او انکار نهٔ کوي د آیتونو زمونږ نه مگر هرې لوظه ډیر ناشکره. |

**تفسیر** : پدې آیت کښې اُوس د مشرکانو احسان بیانوي چه دوي هم په بعض آوقاتو کښې مُحسنین کیږي، صرف الله ته ئې فکر وي. فرمائي چه انسان کله په دې جهازونو او کشتیو کښې سور شي او د سمندر ژورو اوبو ته اورسیږي، او پدې وخت کښې په کشتئ باندې د دریاب چپې راشي لکه د غرونو او وریځو په شان چه هغې ته کشتئ د بوسو په شان ښکاري، او پورته ئې کړي نو په دې وخت کښې مُلحد او دهري او مشرك انسان هم په خپل زړهٔ کښې ددې خبرې یقین کوي چه صرف د الله ذات دې چه هغه دې لرگي او وسپنې والا جهاز لره ددې بې رونکي سمندر نه په حفاظت سره مقصد ته رسولې شي. نو هغه نه دعاگانې شروع کړي چه اې الله! یواځې تهٔ ددې چپو نه مونږ بچ کولې

شے، او الله ته پوره متوجه وي، په زړۀ او په ژبه دواړو سره، ليکن هرکله ئے چه الله تعالیٰ راخلاص کړي نو مخکښې سورتونو کښې تیر شویدي چه دوي بيا شرك شروع کړي او ددے خلاصولو نسبت خپلو باطلو معبودانو ته کوي نو دا خود غرض انسان دے چه د حاجت په وخت ئے د الله نه غواړي او چه حاجت ئے پوره شي نو په الله باندے هيڅ پرواه نۀ کوي، بلکه اُلټه ددے نعمت نسبت غير الله ته وکړي۔

فَمِنۡهُمۡ مُّقۡتَصِدٌ: يعني لږ شان خلك پكښې درميانه روان شي، او د الله تعالیٰ سره ئے چه كومه وعده د نيكئ كړي هغه پوره كوي، حسنؒ وائي: مقتصد : اَیۡ مُؤۡمِنٌ مُتَمَسِّكٌ بِالتَّوۡحِيۡدِ وَالطَّاعَةِ ۔ لږ پکښې مؤمنان شي چه توحيد او د الله تعالیٰ يواځے بندگی مضبوطه راونيسي۔

او په دين کښې درميانه روي مطلوب ده څکه چه که څوك درميانه نۀ چليږي يا به غلو كوي يا به تفريط (نقصان)۔

او پدے جمله کښې هم يو قسم شکايت او توبيخ ته اشاره ده چه بعض پکښې متوسط شي په عمل کښې سره ددے نه چه پكار خو دا وه چه دے مُحسن شوے وے، ليکن دے درميانه شو او گوزاره ئے وكړه۔

او پدے مقتصد کښې د عکرمه بن ابی جهل حال ته اشاره ده چه كله هغه د رسول الله ﷺ نه د فتح د مکے په وخت وتښتيدو او په کشتئ کښې سور شو، نو کشتئ د چپو په وجه د خطرے سره مخامخ شوه نو کشتيبان ووېل : [اَخۡلِصُوۡا] صرف يو الله راوبلئ، نو دۀ ووېل چه ددے خبرے د وجه نه خو مونږ د محمد (ﷺ) نه راوتښتيدو چه هغه وائي د الله يواځے بندگی وکړئ او د هغه نه يواځے مدد طلب کړئ۔ بيا ئے عهد وکړو که زۀ الله تعالیٰ بچ کړم نو زۀ به د محمد ﷺ په لاس کښې لاس اږدم، نو الله تعالیٰ بچ کړو او بيرته راواپس شو او سيده راغے ايمان ئے راوړو۔ (رضی الله عنه وارضاه)

وَمَا يَجۡحَدُ بِاٰيٰتِنَاۤ اِلَّا كُلُّ خَتَّارٍ كَفُوۡرٍ : يعني كوم شخص چه ډير غدار او لوی ناشكره وي نو هغه د الله آيتونه او نښے نۀ مني او د هغے نه فائده نۀ اخلي او شکر نكوي۔ او اشاره ده چه دهوكه او بد عمل انسان كفر ته راكاږي۔ دے انسان کښې د مخکښې نه دهوكه او غدر وو نو څکه دے كار كفر ته رابنكلو۔

## ختار او كفور څوك دی؟

Scanned by CamScanner

ختار د ختر نه دے، سختے دهوکے او غدر ته وئیلے شی۔ نو ختار (ډیر دهوکه باز) ډهری دے چه الله تعالیٰ او د هغهٔ د نعمتونو نه منکر دے، او کفور مشرک دے چه د الله نعمتونه منی لیکن شریکان ورسره جوړوی۔

ددے آیت نه معلومه شوه چه جبری ایمان معتبر نهٔ دے، دارنګه د مشرك عاجزی او تضرع هم د الله تعالیٰ په نیز سبب د قبولیت د دعاګانو دے۔

| |
|---|
| يَا أَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمْ وَاخْشَوْا يَوْمًا لَّا يَجْزِي وَالِدٌ |
| اے خلقو! اُویریږئ د رب خپل نه او اُویریږئ د هغے ورځے نه چه نهٔ به شی دفع کولے پلار |
| عَنْ وَلَدِهِ وَلَا مَوْلُودٌ هُوَ جَازٍ عَنْ وَالِدِهِ شَيْئًا إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ |
| د ځوی نه او نهٔ به ځوی دفع کونکے وی د پلار نه هیڅ شے، یقیناً وعده د الله حقه ده |
| فَلَا تَغُرَّنَّكُمُ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا وَلَا يَغُرَّنَّكُم بِاللَّهِ |
| نو دهوکه دے نکړی تاسو ژوند دنیوی او دهوکه دے نکړی تاسو په الله باندے |
| الْغَرُورُ ﴿٣٣﴾ إِنَّ اللَّهَ عِندَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ وَيُنَزِّلُ الْغَيْثَ |
| دهوکه دزکونکے شے۔ یقیناً الله تعالیٰ د هغه سره علم د قیامت دے او نازلوی باران |
| وَيَعْلَمُ مَا فِي الْأَرْحَامِ وَمَا تَدْرِي نَفْسٌ مَّاذَا تَكْسِبُ |
| او هغه پوهیږی په هغه څه چه په رَحِمونو کښ دی او نهٔ پوهیږی یو نفس چه څه به کوی |
| غَدًا وَمَا تَدْرِي نَفْسٌ بِأَيِّ أَرْضٍ تَمُوتُ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ خَبِيرٌ ﴿٣٤﴾ |
| صبا له او نهٔ پوهیږی هیڅ نفس چه په کومه زمکه به مری یقیناً الله پوهه دے خبردار دے۔ |

**تفسیر**: پدے آیت کښ الله تعالیٰ دعوت ورکوی خپلے یرے او د قیامت یرے ته او دا د اِحسان د پیدا کولو طریقه ده، د خپل خالق رعایت کوه او د قیامت هیبتی ورځ ده هغے له به ورځے، هغه درنه هیره نشی، بیا وائی چه دوه څیزونه د اِحسان نه مانع دی، یو دنیا او بل شیطان۔ د دنیا د زیب وزینت په محبت کښ چه انسان ننوزی نو د الله نه به ډیر غفلت کښ واقع شی، دنیا سبب د غفلت دے د الله نه۔ دویم شے شیطان دے چه د هغه کوشش دا وی چه د انسان سینے ته ننوزی او هغه غافل کړی، مخلوق او ظاهری اسبابو

ته ئې متوجه کوي او د الله نه ئې اړوي. تردې چه د ماڼخه په حالت کښې هم ورته نور څيزونه رايادوي.

**وَاخْشَوْا:** خشيت دې ته وائي چه د يو شي نه داسې ويرېږي چه د هغه شي هيبت او عظمت زړه کښې راولي، ځکه چه دا خوف دې سره د تعظيم نه.

**وَالِدٌ عَنْ وَلَدِهٖ:** پلار او بچې ئې ځکه ياد کړل چه دا يو بل ته ډير نزدې وي، دواړه د يو بل نه په تکليف لرې کولو کښې انتهائي کوشش کوي. نو هرکله چه د قيامت په ورځ دا دواړه د يو بل نه عذاب نشي دفع کولې نو نور خلك به ئې څرنګ دفع کړي. دارنګه دا سورت مکي دې او په مکه کښې حالت دا وو چه په يو کور کښې به پلار مسلمان او ځوې کافر او برعکس وو نو الله خصوصي طور سره والد او ولد ذکر کړل چه دا دواړه د يو بل نه عذاب نشي دفع کولې. او بيا په ﴿وَلَا مَوْلُوْدٌ هُوَ جَازٍ عَنْ وَّالِدِهٖ شَيْـًٔا﴾ کښې تاکيد زيات دې ضمير فصل ئې هم راوړيدې اشاره ده چه ځوې هيڅ شې د پلار نه شي دفع کولې او دا تاکيد ئې ددې وجه نه کړې چه په مکه کښې اکثر مؤمنان ځامن او ځوانان وو. او پلاران او ميندې اکثر په شرك باندې وو. او پدې جمله کښې ئې د (ولد) په ځای مولود ووئيلو اشاره ده شفقت ته ځکه چه په مولود کښې معنیٰ اشتقاقي ته اشاره ده چه ددهٔ په ولادت باندې ئې ډير مشقت برداشت کړې او د هغه تربيت ئې کړې نو وهم کيدې شو چه کيدې شي چه په آخرت کښې به بچې ډير کوشش کوي د پلار د خلاصولو دپاره ځکه چه د هغه په تربيت کښې ئې ډير مشقت ويستلې دې نو بدله به ورکوي. نو الله دا طمعه ختمه کړه. (ابن عاشورؒ)

**وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ:** يعني د قيامت ورځ راتلل حق دي.

**فَلَا تَغُرَّنَّكُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا:** د دنيا دهوکه کول ١- يو دا دي چه د دنيا سره د سړي داسې مينه پيدا شي چه ددې پسې ولګيږي تردې چه د الله نه هم غافل شي او د آخرت نه هم. تول ژوند ئې د مال په ګټلو او لګولو کښې تير شي، او د آخرت دپاره هيڅ ونکړي، نو آخرت ته تش تور لاړ شي. ٢- دويم دا چه دنيا انسان ته لويه ښکاره شي او هرکله چه دنيا ورته لويه ښکاره شي نو ددې مصيبت به ورته لوی ښکاره کيږي، بيا به توله توجه د دنيا مصيبتونو ته وي او د الله نه به غافل وي. لکه ډير خلك همدا سوچونه کوي چه فلانې مصيبت راباندې رانشي او فلانې رانشي او خپل ځان له ئې پدې طريقه ژوند تنګ کړې وي، الله تعالیٰ ته نهٔ متوجه کيږي او په هغه توکل نهٔ کوي. نو د دنيا مصيبتونه

هم فانی دی او دنیا زیب وزینت او نعمتونه هم فانی دی، دا به لوی نهٔ گنړئ.

**الْغَرُور**: ۱- دلته د غرور نه مراد دهوکه ورکونکے شے دے یعنی شیطان. دنیا هم انسان لره د آخرت او د الله نه اړوی او شیطان هم دا دواړه کارونه کوی، لیکن دلته ئے تقسیم وکړو چه دنیا مو د آخرت نه غافل نکړی او شیطان مو د الله نه. نو دلته د هر یو دویم طرف هم مراد دے.

۲- امام راغبؒ لیکی: الغرور: كُلُّ مَا يَغُرُّ الْإِنْسَانَ مِنْ مَالٍ وَجَاهٍ وَشَهْوَةٍ وَشَيْطَانٍ. غرور هر هغه شے دے چه انسان لره دهوکه کوی که هغه مال او مشری وی یا شهوت او شیطان وی. لکه سورة آل عمران آیت (۱۴) ﴿زُيِّنَ لِلنَّاسِ حُبُّ الشَّهَوَاتِ مِنَ النِّسَاءِ﴾ ددے سره ولګوه. شهواتو سره انسان د ډیرو خیرونو نه محرومه کیږی.

**إِنَّ اللَّهَ عِندَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ**: دلته الله تعالیٰ پنځه خبرے بیانوی چه دے ته مفاتیح الغیب وائی یعنی د غیبو چابیانے. دا علم صرف الله پورے خاص دے. زجاجؒ لیکی: [فَمَنِ ادَّعٰى اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ يَعْلَمُ شَيْئًا مِنْ هٰذِهٖ فَقَدْ كَفَرَ بِالْقُرْآنِ] چا چه دا دعوه وکړه چه نبی کریم ﷺ ددے پنځو څیزونو نه په یو څیز پو هیږی هغه په قرآن کافر دے. (زاد المسیر)

## مناسبت د آیت او شان نزول

مفسرین لیکی: د مکے کافرانو به د نبی کریم ﷺ نه بار بار تپوس کولو چه هغه قیامت چه د هغے ته مونږ له دهمکی راکوے او د هغے نه مونږ یروے آخر هغه به کله راځی؟ قرآن کریم د دوئ ددے تهوقو نه ډک سوال جواب په مختلفو آیتونو کښ او په مختلفو طریقو سره ورکړے. دا آیتِ کریمه هم د دغه سوال د جواب دپاره نازل شویدے. او ددے جواب سره الله نور څلور څیزونه هم ذکر کړی چه د هغے علم د هغهٔ نه سِوئ بل هیچاته نشته.

بخاریؒ او مسلمؒ او د حدیث نورو امامانو د ابن عمر ﷺ نه روایت کړے، رسول الله ﷺ وفرمایل: ((د پنځو خبرو تعلق د غیبی څیزونو سره دے، د الله نه سِوئ دا بل څوك نهٔ پیژنی. صباله به څهٔ کیږی؟ الله نه سوئ بل هیچاته پته نشته، قیامت به کله راځی؟ الله نه سوئ بل هیچاته پته نشته، د مور په رحِم کښ څه دی؟ الله تعالیٰ نه سوئ هیڅوك نهٔ پو هیږی چه باران به کله را وریږی؟ الله نه سوئ بل هیڅوك نهٔ پو هیږی، او هیچاته پته نشته چه ددهٔ مرګ به چرته واقع کیږی؟ صرف الله ته پته ده)).

یا د پنځو وارو خبرو په باره کښې مشرکانو تپوسونه کړي وو. مجاهد وائي: یو تن د بانډے والو نه راغلو، ویے ویئیل: زما ښځه حامله ده نو ماته خبر راکړه چه هغه به کوم اولاد راوړي؟ (نارینه یا زنانه) او زمونږ علاقے قحط وهلې دي نو خبر راکړه چه باران به کله کیږي، او زهٔ د خپل ولادت نه خبر یم خو خبر راکړه چه زهٔ به کله مرم؟ نو الله دا آیت نازل کړو. (فتح البیان) چه ددے خبرو علم الله تعالیٰ د بندګانو نه پټ ساتلے دے.

او ددے خبرو په پټو ساتلو کښې فائدے دي، که بنده ګانو ته ددے علم ملاؤ شي نو ددے به ډیر سخت نقصانات وي، د قیامت د راتللو وخت چاته نهٔ دے معلوم، نو پدے وجه هر انسان او هر قوم په یره کښې وو. او د خپل مرګ وخت ورته نهٔ دے معلوم دے دپاره چه هر وخت په یره کښې وي.

۲- ابن عاشورؒ لیکي: د مشرکانو یو غرور دا هم وو چه بعث بعد الموت ئے نهٔ منلو پدے وجه چه د قیامت وخت متعین او معلوم نهٔ وو نو دا ئے نښه د نهٔ راتللو ګنړلے وه. نو ځکه به ئے تپوسونه کول چه دا به کله راځي. نو هرکله چه مخکښې د قیامت تذکره وشوه نو اُوس دا خبره بیانوي چه د قیامت د راتللو معلومات صرف الله تعالیٰ ته دے. نو ګویا که دا آیت استیناف بیاني دے یعنې جواب د سوال د مشرکانو شو.

۳- مناسبت د موضوع د سورت سره دا دے چه کله ته غواړے چه احسان درجے ته ورسیږے نو د الله تعالیٰ په عِلم باندے یقین وکړه، لکه دا خبره بار بار ذکر شوه.

٤- نزدے آیت ﴿وَاخۡشَوۡا يَوۡمًا﴾ سره مناسبت دا دے چه سوال پیدا شو چه دا ورځ به کله راځي چه مونږ ترے ویریږو؟ نو جواب وشو چه دا علم د الله تعالیٰ سره دے.

وَيُنَزِّلُ الۡغَيۡثَ: دا ئے په جمله فعلیه سره راوړو، فائده پکښې دا ده چه باران وخت په وخت بار بار نازلیږي کله چه زمکه محتاجه شي.

د باران د نازلیدو وخت صرف الله تعالیٰ ته معلوم دے. کوم خلك چه په قرآن نهٔ پوهیږي نو هغوي پدے باندے شك کوي چه دا څنګه خبره ده حال دا چه موسمیاتو والا خو خبر ورکوي چه په فلانۍ ورځ به باران کیږي. بلکه اُوس د موبائل په ذریعه د یو بے هفتے وغیره خبر درکوي.

(۱) جواب: موسمیاتو والا په یقین سره خبره نهٔ کوي بلکه داسے وائي (بارش کا امکان ہے) یعنې دا په شك سره وائي، او ډیر کرته خبره وکړي بیا هغه شان ونهٔ شي.

(۲) جواب: الله تعالیٰ په غیر د اسبابو نه د باران په وخت باندے پوهیږي، او انسانان که

پو هـه شی نو هغه د اسبابو په ذریعه چه آلات ئې نصب کړی وی، په هغې کښې د یخنۍ درجهٔ برودت معلوموی نو د هغې نه دوی وائی چه که دا یخوالے دومره سینتی گرید ته ورسیدو نو باران به کیږی، او اُوس دومره کښې روان دے۔ یا وریځو او هواګانو نه ئې معلوموی، نو دا علم غیب نهٔ دے۔ لکه ددے تشریح په یو روایت کښې داسے راغلے ده [إِذَا أَنْشَأَتْ بَحْرِيَّةً ثُمَّ تَشَاءَمَتْ فَتِلْكَ عَيْنٌ غُدَيْقَةٌ] کله چه دریابی وریځ پیدا شی او بیا گس طرفته لاړه شی نو دغه به ډیر باران کوی۔ (رواه مالك فی الموطأ)

او د بعض خلکو تجربه دا وی چه کله توره وریځ وی او د مغرب د طرفنه راشی نو غالباً په هغې کښې باران وی، لیکن دا په یقین سره نشی وئیلے بلکه تجربے دی۔ نو ددے د علم غیب سره هیڅ تعلق نشته۔

نو نجومی او کاهن چه د باران د وخت یا د مرګ د وخت خبر ورکوی نو دا سراسر دروغ وائی۔

وَيَعْلَمُ مَا فِي الْأَرْحَامِ: پدے کښې هم خلك اشکال کوی چه د ((التهرا ساونډ)) په ذریعه په رَحِم کښې د هلك او جینۍ معلومات کیږی۔ جواب: دلته هم دا خبره ده چه الله بغیر د اسبابو نه د عرش نه د رَحِم حالت پیژنی او انسان په اسبابو او آلاتو کښې ګوری نو د دواړو ترمینځ د زمکے او د آسمان فرق شو۔ داسے خو هر څوك کولے شی چه د یوے زنانه په خیټه چاره راکاږی او هغه څیری کړی او بیا ورته په رَحِم کښې وګوری چه جینۍ ده که هلك۔ د ټولے دنیا ډاکټران راجمع کړه او یوه حامله زنانه ورته مخے ته ودرولے شی، بغیر د آلاتو نه دے معلومه کړی چه دے کښې نارینه دے او که جینۍ۔

دارنګه د (مَا) نه مراد ټول حالات د رَحِم دی او کله چه نطفه رحم ته په اوله ورځ لاړه شی، نو صرف الله تعالیٰ پرے خبر دے چه دے نه به جینۍ پیدا کیږی او کله هلك، او ډاکټران پرے د آلاتو په ذریعه په اوله ورځ هم نهٔ پو هیږی۔ دارنګه مَا فِي الْأَرْحَامِ کښې ددے بچی څومره وخت پورے په رَحِم کښې پاتے کیدل، او ددهٔ نیك بختی او بد بختی، ددهٔ عمر او رزق هم دی چه ددے نه د هر ډاکټر علم اګرکه په آلاتو سره وی، هم عاجز دے۔

وَمَا تَدْرِي نَفْسٌ مَّاذَا تَكْسِبُ غَدًا: علی ﷺ به فرمایل: چه الله تعالیٰ پدے پیژندلے کیږی چه تهٔ به اراده وکړے چه زهٔ به صبا لـه دا کار کوم نو هغه به ونشی، بل کار به وکړے۔

بِأَيِّ أَرْضٍ تَمُوتُ: انسان ته د خپل مرګ وخت او په کوم زمکه به مری؟ دا پته نشته

صرف الله تعالیٰ پدې پوهه دے۔

**فائده:** دلته ئې پدې پنځه څیزونو کښې د اولنو درې څیزونو علم الله ته نسبت وکړو او په روستنو دوو کښې ئې د بندګانو نه د هغې علم نفی کړو سره ددې نه چه ددې ټولو علم د الله پورې خاص دے، او د بندګانو علم ددې نه منفی دے؟، وجه دا ده چه اولنی درې څیزونو حال ډیر لوی او هیبتی دے، نو الله ته ئې نسبت وکړو او روستنی څیزونه د بندګانو د صفاتو نه دی نو ددې خاص نسبت بندګانو ته وشو سره ددې نه چه کله د بندګانو ددې دوه څیزونو علم نفی شو نو ددې نه د ماسوئ درې څیزونو علم به ترې په طریق اولیٰ منفی وی۔

۲- پدې پنځه څیزونو ذکر کولو کښې د تمامو اکوانِ غیبیه و علم کلی ته اشاره ده، او تخصیص د پنځو پدې وجه شویدے چه سوال ددې په باره کښې شوے وو نو ددې نه دا نۀ ثابتیږی چه رسول الله ﷺ ددې پنځو نه علاوه په ټولو خبرو پوهیدو۔ آؤ د احکامِ غیبیه و علم الله تعالیٰ رسول الله ﷺ ته به د وحی په طریقه ورکوله لکه ټول شریعت جنت او جهنم او غیبی امورو خبر ئې ورکړیدے۔ او د اکوان غیبیه و کلیات ورته بیخی نۀ وو معلوم، البته په بعض اوقاتو کښې به ورته الله تعالیٰ په یوه جزئی واقعه کښې د وحی په ذریعه علم ورکړو۔

عَلِيمٌ خَبِيرٌ: یعنی پوهه دے په ظاهر او خبردار دے په باطن۔ وبالله التوفیق

## امتیازات د سورة لقمان

۱- پدې کښې د لقمان حکیم واقعه خصوصي طور سره ذکر ده۔

۲- د اِحسان د پیدا کیدو طریقې پکښې وخودلے شوے۔

۳- دلیل علمی د الله تعالیٰ پکښې ډیر اُوږد بیان شو۔

٤- د اِحسان نه مانع اسباب: لهو او غرور بِاللهِ او حُبُّ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وخودل شو۔

۵- او پنځه مفاتیح الغیب پکښې بیان شو۔

ختم شو تفسیر د سورة لقمان په توفیق د رب العزت سره په ورځ د خالی ۱۰ رمضان المبارك موافق ۲۷ جون۔ بجه: ۱۱:۵۰، اسریت/ کالام۔ وکتبه ابوزهیر سیف الله۔

بسم الله الرحمن الرحيم

| آیاتها (۳۰) | (۳۲) سورة السجدة مكية | ركوعاتها (۳) |
| --- | --- | --- |

سورة السجده مکی دے، په دے کښې دیرش آیتونه او درے رکوع دی۔

**نوم :** دے ته سورة السجده وائی ځکه چه روستو (۱۵) آیت کښې سجده راغلے ده۔

(۲) سورة الم سجده هم وائی۔ (دے دپاره چه د روستو سورة حم السجده نه راجدا شی)۔

(۳) سُوْرَةُ سَجْدَةِ لُقْمَانَ۔ (٤) سُوْرَةُ الْمَضَاجِعِ۔

## فضیلت

ترمذیؒ، نسائیؒ او حاکمؒ وغیره د جابر ﷛ نه نقل کړی چه رسول الله ﷺ به تر څو پورے سورة سجده او سورة تبارك الذی نهٔ وه لوستلے، هغه وخته پورے به نهٔ اُودهٔ کیدهٔ۔

(الترمذی فی الدعوات باب ۲۲ والدارمی فی فضائل القرآن باب۱۹ واحمد فی المسند۲/۲۹۹)۔

او رسول الله ﷺ به د جُمعے د ورځے په سهار مانځه کښې په اول رکعت کښې سورة الم سجده لوستلو او په دویم رکعت کښې سورة (هَلْ اَتٰى عَلَى الْاِنْسَانِ حِيْنٌ مِّنَ الدَّهْرِ)۔

(الدارمی فی الصلاة باب۱۹۲ واحمد ۱/۱۰۷،۳۱٦،۳۳٤، ۳۵٤)

او دا سنت طریقه الحمد لله اهل الحدیث راتینګه کړیده او د مقلدینو په عامو مسجدونو کښې ددے هیڅ نام ونشان نشته۔

**د نازلیدو زمانه :** بیهقیؒ او ابن مردویهؒ وغیره د ابن عباس ﷛ نه نقل کړی دی چه دا ټول سورت مکی دے۔ د ابن عباس ﷛ د یو بل روایت مطابق (۱۸، ۱۹، ۲۰) آیتونه مدنی دی۔

## مناسبت

۱- مخکښې د إحسان موضوع وه نو دلته د ایمان او د یقین موضوع ده۔

۲- هلته ئے وویل چه (وَاخْشَوْا يَوْمًا) د قیامت د اَهوالو نه یره وکړئ، دلته وائی چه

قیامت نه څکه وېرېږه چه بیا به آرمان کوي (رَبَّنَا اَبْصَرْنَا وَسَمِعْنَا فَارْجِعْنَا)

۳- مخکښې سورت کښې رد وکړے شو په شرك باندے په عقلي او نقلي دليلونو سره نو پدے سورت کښې فرق بيانوي د مشرك او مُوحد په مينځ کښې په دنيا او آخرت کښې.

٤- مخکښې سورت کښې د مور په خېټه کښې د حمل ذکر شو نو پدے سورت کښې مبدء، حال د قبر او حال د حشر تول ذکر کوي. (احسن الکلام).

## موضوع او مقصد د سورت

۱- بعض علماء وائي چه پدے کښې نفي د شفاعتِ قهري ده. لکه (مَا لَكُمْ مِنْ دُوْنِهٖ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا شَفِيْعٍ) نه معلومېږي. يعني په الله باندے په زوره سفارش کونکے نشته. نو رد په شرك دے. ليکن دا موضوع واضحه نهٔ ده.

۲- زمونږ شيخ محترم (ابو محمد حفظه الله) فرمائي: اَلتَّفْرِقَةُ بَيْنَ اَهْلِ الْاِيْمَانِ وَاَهْلِ الشِّرْكِ وَالْكُفْرَانِ. د ايمان والو د حال او د کافر او مشرك د حال ترمينځ فرق بيانوي. دا خبره لږه نيمګړے ده. په ښه تعبير باندے داسے وئيلے شي:

۳- چه پدے سورت کښې موضوع د ايمان او يقين ده. يعني الله تعالیٰ ترغيب ورکوي ايمان او يقين ته چه دا ځان کښې راولئ او ترهيب دے (يره ورکول دي) د هغے د ترك (پرېخودو) نه. که څوك دا ځان کښې نهٔ راولي نو تاواني کيږي. ايمان به په څه راوړي نو مُؤْمَنٌ بِهٖ به ئے درے خبرے ذکر کړي، ايمان بالله، ايمان بِآيَاتِ الله او اِيْمَان بِلِقَاءِ الله ـ کله چه ذِے د الله ذات او د هغه آيتونه ومنل نو بيا د هغهٔ د ملاقات او آخرت دپاره تيارے کوه. صرف وچ ايمان نهٔ دے بلکه تيارے ضروري دے نو دا سورت د تياري طريقه هم ښائي ﴿فَارْجِعْنَا نَعْمَلْ صَالِحًا اِنَّا مُوْقِنُوْنَ﴾ ﴿اِنَّمَا يُؤْمِنُ بِآيَاتِنَا الَّذِيْنَ اِذَا ذُكِّرُوْا بِهَا خَرُّوْا سُجَّدًا وَّسَبَّحُوْا بِحَمْدِ رَبِّهِمْ﴾ ـ (د الله کتاب او نصيحتونه آوريدل او بيا الله ته سجدے لګول او د هغه حمدونه وئيل. ﴿اَمَّا الَّذِيْنَ آمَنُوْا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ فَلَهُمْ جَنّٰتُ الْمَاْوٰى﴾ ـ هر قسم نيك عمل ته مخکښې والے کول. ﴿وَجَعَلْنَا مِنْهُمْ اَئِمَّةً يَّهْدُوْنَ بِاَمْرِنَا لَمَّا صَبَرُوْا وَكَانُوْا بِآيٰتِنَا يُوْقِنُوْنَ﴾ يعني د دين دعوت او صبر کول او د الله په وعدو يقين کول.

ورسره دا خبره بيانوي چه ايمان دوه قسمه دے (۱) ايمان بالغيب او همدا الله ته مقبول دے. (۲) ايمان بالشهاده. يعني ښکاره يو شے ليدل او بيا ايمان راوړل. نو دا الله ته قبول نهٔ دے. دا فرق به په آخر د سورت کښې وشي ﴿قُلْ يَوْمَ الْفَتْحِ لَا يَنْفَعُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا اِيْمَانُهُمْ﴾.

یعنی کله چه عذاب راغلو او بیا تن ایمان راوړی نو دا ایمان فائده مند نهٔ دے۔ او ایمان بالغیب راوړئ ورنه بیا به ددے پسے آرمان کوئ۔
او د ایمان مقابل کښې د کفر سزاګانے بیانوی چه څوک کفر کوی هغه به ډیر پریشانه وی۔
نو په سورت کښې به لفظ د ایمان او د یقین او عمل زیات وی او ددے په مقابل کښې به لفظ د ریب، تکذیب او کفر استعمالیږی۔
بیا د ایمان نه غافل کونکی څیزونه هم پدے سورت کښې ذکر شویدی، او بیرته رابیدارونکی هم ذکر دی۔ چه هغه قرآن، د الله عقلی دلائل، د مرګ رایادول، او د قیامت تذکره۔

خلاصه :

په اوله رکوع کښې ددے امت حال او په روستنۍ رکوع کښې د بنی اسرائیلو حال دے۔

| الم ﴿١﴾ تَنزِيلُ الْكِتَابِ لَا رَيْبَ فِيهِ مِن رَّبِّ الْعَالَمِينَ ﴿٢﴾ |
|---|
| الم۔ نازلول ددے کتاب نشته هیڅ شک پدے کښې د طرف د رب العالمین نه۔ |
| أَمْ يَقُولُونَ افْتَرَاهُ بَلْ هُوَ الْحَقُّ مِن رَّبِّكَ |
| آیا وائی دوی د ځان نه ئے جوړ کړیدے دا بلکه دا حق دے د طرف د رب ستا نه |
| لِتُنذِرَ قَوْماً مَّا أَتَاهُم مِّن نَّذِيرٍ |
| دے دپاره چه ته اُویروے هغه قوم چه نهٔ دے راغلے دوی ته هیڅ یره ورکونکے |
| مِّن قَبْلِكَ لَعَلَّهُمْ يَهْتَدُونَ ﴿٣﴾ |
| مخکښې ستا نه دے دپاره چه دوی په سمه لاره روان شی۔ (سمه لاره ومومی) |

**تفسیر** :الم: پدے کښې د قرآن کریم اعجاز او صدق ته اشاره ده۔
تَنزِيلُ الْكِتَابِ: پدے کښې د قرآن کریم فضیلت دے، او دے ته ترغیب ورکوی۔
مِن رَّبِّ الْعَالَمِينَ: یعنی د رب العالمین د طرفنه پکښې ریب او شک نشته او که څوک پکښې شک کوی، نو دا د هغوی خپل کار دے، او د هغوی پدے شک سره په قرآن کریم کښې واقعی شک نهٔ راځی۔

په رب العالمین لفظ کښې اشاره ده چه قرآن کریم د ټول عالَم کتاب دے، او په رب لفظ کښې اشاره ده چه الله تعالیٰ ددے کتاب په ذریعه د عالَم تربیت کوی، ځکه چه الله د عالَم جسمانی تربیت کوی نو که روحانی تربیت ونکړی، بیا به تربیت نیمګړے شی. نو قرآن به الله خامخا رالیږی ځکه چه د بندګانو د روح تربیت هم ضروری دے.

نو دا هم معلومه شوه چه څوك د الله وحی نهٔ منی نو الله ته د نیمګړتیا (نقصان) نسبت کوی. لکه ﴿إِذْ قَالُوا مَا أَنزَلَ اللَّهُ عَلَىٰ بَشَرٍ مِّن شَيْءٍ﴾ سورة الانعام (۹۱) کښې ددے تشریح ذکر شویده.

**أَمْ يَقُولُونَ افْتَرَاهُ**: پدے کښې رټنه ده انکار کونکو د قرآن ته. د الله رالیږلی کتاب نسبت دے نبی ته کوی چه دا دهٔ د ځان نه جوړ کړیدے. هیڅ کله داسے نهٔ ده بلکه:

**بَلْ هُوَ الْحَقُّ مِن رَّبِّكَ**: نو دا رد دے په دغه خلکو. چه دا خو حق کتاب دے او د طرف د رب نه راغلے دے. علماء فرمائی چه «بَلْ» په نورو مقاماتو کښې د اِنتقال دپاره راځی یعنی اِضراب انتقالی. او صرف پدے مقام کښې د اضراب اِبطالی دپاره دے. یعنی پدے سره مخکښې (اِفْتَرَاهُ) خبره باطلوی.

**لِتُنذِرَ**: اول یرېدل ضروری دی، او بیا د هغے نه روستو په سمه لاره روانیدل کیږی.

**مَّا أَتَاهُم مِّن نَّذِيرٍ**: پدے کښې یو اشاره ده چه دا قرآن د ډیر سخت ضرورت په وخت کښې راغلے دے ځکه چه دا خلك سخت محتاج وو هدایت ته، چه د نبی نه رنړا حاصله کړی.

دویم اشاره ده چه د دوی انذار ډیر سخت دے د وجه د جهل د دوی نه چه هیڅ رنړا ورسره نهٔ وه. او ددے خلکو نه مراد قریش دی، یا د عیسیٰ ﷺ د زمانے نه تر محمد رسول الله ﷺ رالیږلو پورے درمیانی موده کښې راغلی خلك مراد دی چه دے ته زمانه د فترت وائی.

**لَعَلَّهُمْ يَهْتَدُونَ**: دے دپاره چه دوئ په الله ایمان راوړی، د هغهٔ د وحدانیت اقرار اوکړی او حق دین قبول کړی او د جهنم د اور نه نجات حاصل کړی او د جنت حقدار وګرځی.

| اَللّٰهُ الَّذِیْ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْاَرْضَ وَمَا |
| --- |
| خاص الله هغه ذات دے چه پیدا کړی ئے دی آسمانونه او زمکه او هغه څه چه |
| بَیْنَهُمَا فِیْ سِتَّةِ اَیَّامٍ ثُمَّ اسْتَوٰی عَلَی الْعَرْشِ |
| په مینځ د دواړو کښې دی په اندازه د شپږو ورځو کښې بیا ئے برابر والے کړیدے په عرش |

مَا لَكُمْ مِّنْ دُوْنِهٖ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا شَفِيْعٍ اَفَلَا تَتَذَكَّرُوْنَ ﴿٤﴾

باندے، نشته تاسو لره سوئ د هغه نه هيڅ دوست او نه سفارشی، آيا نو نصيحت نه

يُدَبِّرُ الْاَمْرَ مِنَ السَّمَآءِ اِلَى الْاَرْضِ ثُمَّ يَعْرُجُ اِلَيْهِ

اخلئ تاسو۔ پروګرام کوی د کارونو د آسمان نه زمکے ته بيا خيژی هغه ته (دغه کار

فِيْ يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهٗٓ اَلْفَ سَنَةٍ مِّمَّا تَعُدُّوْنَ ﴿٥﴾ ذٰلِكَ

په هغه ورځ کښ چه ده اندازه د هغے زر کاله ده د هغے نه چه تاسو ئے شمارئ۔ دغه ذات

عٰلِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ﴿٦﴾ الَّذِيْٓ

پوهه دے په هر پټ او په ښکاره، زورور دے، رحم کونکے دے۔ هغه ذات دے

اَحْسَنَ كُلَّ شَيْءٍ خَلَقَهٗ وَبَدَاَ خَلْقَ

چه ښائسته کړے ئے دے هر هغه شے چه پيدا کړے ئے دے او شروع کړے ئے دے پيدائش

الْاِنْسَانِ مِنْ طِيْنٍ ﴿٧﴾ ثُمَّ جَعَلَ نَسْلَهٗ مِنْ سُلٰلَةٍ مِّنْ مَّآءٍ مَّهِيْنٍ ﴿٨﴾

د انسان د خټے نه۔ بيا ګرځولے ئے دے نسل ددهٔ د راخکلے شوے اُوبو سپکو نه۔

ثُمَّ سَوّٰىهُ وَنَفَخَ فِيْهِ مِنْ رُّوْحِهٖ وَجَعَلَ

بيا ئے برابر کړو هغه او پوکے اُوکړو په هغه کښ د روح خپل نه او ګرځولی ئے دی

لَكُمُ السَّمْعَ وَالْاَبْصَارَ وَالْاَفْـِٕدَةَ قَلِيْلًا مَّا تَشْكُرُوْنَ ﴿٩﴾

تاسو لره غوږ او سترګے او زړونه ډير لږ شکر کوئ تاسو۔

**تفسير** : اللّٰه الَّذِيْ: دا متعلق دے د (يَهْتَدُوْنَ) يعنی دوی لاره مونده کړی الله طرفته، چه هغه وپيژنی۔ دويم دلته بيان د عظمت د رب کيږی ځکه چه الله ددے کتاب وحی کړيده۔ لکه دا د قرآن طريقه ده چه د کتاب د عظمت بيانولو نه روستو د الله تعالیٰ عظمت بيانوی۔

اشاره کوی چه ددے کتاب راليږونکے لوی دے نو کتاب به ئے هم لوی وی۔

ددے آيت زياته تشريح په سورة الاعراف کښ ذکر شويده۔ دلته ئے خلاصه داده چه کوم الله زمکه او آسمانونه او ددے دواړو ترمينځه تمام مخلوقات په شپږو ورځو کښ

پیدا کړل، صرف هغه د عبادت لائق دے۔ او دغه الله د عرش مالك دے، دومره لوی الله دے چه مونږ ټول هغهٔ ته محتاج یو او ﴿ مَا لَكُم مِّن دُونِهِ مِن وَلِيٍّ وَلَا شَفِيعٍ ﴾ (د تمامو انسان دپاره د الله نه سوئ بل هیڅ حقیقي یار او مددګار نشته)۔

که چرے هغه څوك رسوا کول غواړي نو هیڅوك هغهٔ له عزت نشي ورکولے، او که هغه څوك هلاکول او بربادول غواړي نو څوك ئے بچ کولے نشي۔ او د هغهٔ نه سوئ د دوئ هیڅ سفارشي نشته چه که الله د دوئ د شرك او ګناهونو په وجه رانیول غواړي، د هغه په دربار کښې سفارش وکړي او د هغه د غصے نه دوی بچ کړي۔

هر کله چه د الله تعالیٰ نه سوئ بل څوك د زمکے او آسمانونو خالق نشته، او نهٔ هغهٔ نه سوئ بل څوك یار او مددګار او شفارسي شته، نو بیا ولے انسانان په دے خبره نهٔ پوهیږي چه د دغه حق ذات نه سوئ هیڅوك د عبادت لائق نشته دے۔

د (اسْتَوىٰ عَلَى الْعَرْشِ) د معنیٰ او مفهوم په بیانولو کښې د سلف صالحینو مسلك دادے چه الله تعالیٰ په عرش باندے داسے مستوی (برابر) دے څنګه چه د هغهٔ د اعلیٰ مقام سره لائق وی، نهٔ ددے نه انکار کیدلے شي، نهٔ به دا د مخلوق د صفت سره مشابه ګڼړلے شي، او نهٔ به ددے کیفیت (څرنګ والے) بیانیدلے شي۔

يُدَبِّرُ الْأَمْرَ : دا بل تعارف دے۔ او ددے دوه تفسیره دی (۱) مرجوح تفسیر دا دے چه دا د قرآن سره لګیږی یعنی الله قرآن راولیږلو د آسمان نه زمکے ته او ثُمَّ يَعْرُجُ کښې ضمیر جبریل عليه السلام ته راجع دے چه صاحب د وحی دے۔ یعنی بیا جبریل بره آسمان ته الله طرف ته ورخیژي کوم ځای چه ورله الله مقرر کړیدے۔ هغه د سهار نه مابنامه پورے راکوزیدے او ختلے شي۔ كَانَ مِقْدَارُهُ : یعنی د دغه ورځ مقدار به وے د زرو کالو په اندازه که چرته تاسو دغه وخت شمارلے او ختلے۔ نو ستاسو به په ختو کوزیدو زر کاله لګیدلی وے او د جبریل عليه السلام پرے یوه ورځ لګیږی۔ نو الله وحی نازلوی او جبریل له ئے ورکوی او په ډیره جلتئ باندے ئے خپل نبی ته رارسوی۔ لیکن دا تفسیر مرجوح دے ځکه چه يُدَبِّرُ الْأَمْرَ په قرآن کښې د کائناتو تدبیر ته وائی۔

(۲) راجح تفسیر دا دے چه دلته الامر ،قضاءِ الهی، یعنی د الله فیصلو ته وئیلے شي۔ یعنی الله د آسمان نه واخله تر زمکے پورے د خپلو مخلوقاتو متعلق د کارونو، احکامو او آوامرو تدبیر او تصرف کوی او پدے کښې فیصلے کوی۔ او زمکے طرفته ئے رالیږی، او ملائك ئے نافذوی۔ د ژوند او مرګ، د صحت او بیمارئ، د بخشش او محرومتیا، د

مالداریٔ او محتاجیٔ، د جنګ او صلح، د عزت او ذلت او د مخلوقاتو په حقله تمامې فیصلې، الله تعالیٰ د عرش دپاسه کوی، د همغه ځای نه هغه د تمامو مخلوقاتو تدبیر کوی، او هیڅ یو شے هغه له نشی عاجز کولے۔

ثُمَّ يَعْرُجُ إِلَيْهِ: یعرج کښې ضمیر (الامر) ته راجع دے یعنی بیا به د قیامت په ورځ وروخیړی دغه کارونه الله ته (ختل ځکه وائی چه په قیامت کښې به هم الله تعالیٰ بره د عرش دپاسه وی) لنډ مطلب دا چه په دنیا کښې نظام چلوی نو په آخرت کښې به ئے هم چلوی۔ نو اے بندګانو! تاسو الله ته په دنیا او په آخرت کښې محتاج یئ نو بیا ولے د هغه بندګی نهٔ کوئ۔

فِي يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ: دغه ورځ داسے ورځ ده چه که تاسو ئے شماریٔ نو زر کاله ده او د قیامت یوه ورځ ده۔ پدے باندے هیڅ اشکال نشته سوئی ددے نه چه د قیامت ورځ خو د سورة المعارج آیت (٤) نه معلومیږی چه پنځوس زره کاله ده ﴿ كَانَ مِقْدَارُهُ خَمْسِينَ أَلْفَ سَنَةٍ ﴾ او دلته وائی چه زره کاله ده؟ نو عبد الله بن عباس ﷺ په توقف باندے جواب کړیدے چه هغه ته یو سړے (ابن فیروز) راغے او ددے آیت او د سورة المعارج تعارض ئے ورته ذکر کړو چه ددے دواړو څه مطلب دے؟ نو هغه ورته ووئیل [أَيَّامٌ سَمَّاهَا اللَّهُ فِي كِتَابِهِ مَا أَدْرِي مَا هِيَ؟ وَأَكْرَهُ أَنْ أَقُولَ فِي كِتَابِ اللَّهِ مَا لَا أَعْلَمُ] چه دا څه ورځے دی چه الله په خپل کتاب کښې ذکر کړیدی ما ته پته نشته چه ددے به څه مراد وی؟ او زهٔ دا نهٔ خوښوم چه د الله په کتاب کښې هغه خبرے وکړم چه ما ته ئے پته نهٔ وی)۔ د بعضو خبرو نه توقف هم ښهٔ وی۔

(۱) لیکن عامو مفسرینو تطبیق کړیدے او وئیلی ئے دی چه ددے ورځے نه د قیامت ورځ مراد ده لیکن د قیامت ناشنا ورځ ده، وره کیږی هم او غټیږی هم۔ نو په کافرانو باندے پنځوس زره کاله ده لکه د سورة المعارج د سیاق نه معلومیږی چه ﴿ سَأَلَ سَائِلٌ بِعَذَابٍ وَاقِعٍ لِلْكَافِرِينَ لَيْسَ لَهُ دَافِعٌ ﴾ او په بعضو نورو کسانو باندے به د زرو کالو په اندازه وی۔ او په خواصو مؤمنانو باندے به داسے کمه شی لکه د ماسپښین نه ماز یګره پورے۔ او د مازیګر نه تر ماښامه پورے او بل روایت کښې دی: (كَصَلَاةٍ مَكْتُوبَةٍ) لکه د فرض مانځه په اندازه۔

(شعب الایمان وصحیح ابن حبان رقم (٧٣٣٤) وجود اسناده العراقی فی تخریج الاحیاء رقم الحدیث :۲ وقال الهیثمیؒ رواه احمد وابو یعلیٰ واسناده حسن علی ضعف فی راویه)

او د سورة الفرقان آيت (٢٤) نه هم معلوميږي ﴿ أَصْحَابُ الْجَنَّةِ يَوْمَئِذٍ خَيْرٌ مُّسْتَقَرًّا وَأَحْسَنُ مَقِيلًا ﴾ مقيل د قيلولې (غرمې) وخت دے، مراد ترې نه نيمه ورځ ده. نو حاصل دا شو چه د قيامت ورځ زر كاله ده د ورځو د دنيا نه ليكن په اعتبار د گرانوالي او سختوالي سره به په كافر باندې د پنځوس زرو كالو په شان وي.

(۲) دويم جواب دا دے چه د قيامت پنځوس زره مواقف دي، هر موقف ئے د زرو كالو په اندازه دے. نو مطلب به دا وي چه ورخيژي الله ته په هغه ورځ كښې چه د هغې مقدار د زرو كالو دے، يعني د هغې د يو موقف په اندازه دا كوزيدل ختل كيږي چه هغه زر كاله دے.

(۳) قتادة او ضحاك وئيلي دي چه د سدرة المنتهىٰ نه زمكے پورے د دنيا د ورځو نه پنځوس زره كاله اندازه ده ليكن جبريل عليه السلام ئے په يوه ورځ د دنيا كښې وهي. او د آسمان د دنيا نه زمكے پورے كوزيدل او ختل په اندازه د زرو كالو دي، پنځه سوه د كوزيدو او پنځه سوه د ختلو. (هذا كله في فتح البيان)

(٤) ځينو مفسرينو د ﴿ ثُمَّ يَعْرُجُ إِلَيْهِ ﴾ معنىٰ دا بيان كړے چه ملائك د زمكے والو تمام عملونه په صحيفو كښې ليكي، تردے چه كله دنيا خپل آخر سرته اورسيږي نو دغه ټولے صحيفے به د الله په مخ كښې پيش كړے شي. او دغه ورځ به اگركه د دنيا يوه ورځ وي، ليكن د آسمان او زمكے ترمينځه د ملائكو نه سوئ د بل چا د ختلو او كوزيدلو د مسافت په اعتبار سره به د زرو كالو برابره وي.

(٥) مجاهد (فِي يَوْمٍ) متعلق گرځولے دے د (يُدَبِّرُ الْأَمْرَ) پورے او مطلب ئے دا بيان كړے چه الله تعالىٰ د زرو كالو انتظامات او تدبيرونه ملائكو ته وركوي، چه دا د الله په نيز يوه ورځ ده، ملائك چه كله (دا سنبال كړي او ددے نه) فارغ شي، نو د راتلونكي زرو كالو نور انتظامات ورته وركړي او دا سلسله به تر قيامته پورے جاري وي.

ذَٰلِكَ عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ: يعني دغه تدبير كونكے ذات په تمامو غائبو او حاضرو څيزونو پوهه دے نو پدے كښې دهمكي ده چه هر چا ته به د هغهٔ د عمل بدله وركوي، هغه په هر حال كښې او په هر يو شئ باندے غالب دے، هغه د خپلو مخلوقاتو په باره كښې چه څهٔ غواړي فيصلے كوي، هيڅوك په دے كښې خنډ نشي واقع كيدے، او هغه په خپلو بندگانو بيحده مهربان دے، د هغهٔ فيصلے په هر حال كښې د دوئ دپاره د ښيگړے او رحمت وي.

او پدے کښې اشاره ده چه تدبیر بغیر د علم نه نشي کیدے نو دا گویا که د ماقبل دپاره دلیل دے چه الله ځکه تدبیر کوی چه هغه د هر شئ علم لری۔

الَّذِیْ اَحْسَنَ کُلَّ شَیْءٍ: یعنی هغهٔ چه څومره څیزونه پیدا کړی، د هغے پیدائش انتهائی درجه موزون او د حکمت د تقاضا مطابق دے۔ یعنی د هرشي شکل د هغهٔ د شان سره مناسب ښائسته دے، لکه د مار شکل د انسان په اعتبار سره ناکاره دے لیکن د مار سره مناسب او ښائسته دے۔ که هغه له ئے د انسان شکل ورکړے وے او روان وے نو ډیر به بدی ښکاره کیدے۔

او هغهٔ د انسان کالبوت اول د خاورے نه تیار کړو، او د هغهٔ د نسل بنیاد ئے د یوے سپکے نطفے په ذریعه کینبودهٔ، بیائے د یو مکمل انسان شکل ورکړو او په دهٔ کښې ئے روح وا چولو او دا یو ژوندے انسان جوړ شو۔ او هغهٔ د خپل پوره قدرت په ذریعه د سپکے نطفے نه په همدے جوړ شوو بدنونو کښې د آوریدنے او لیدنے کتنے صلاحیت پیدا کړو، او په دے کښې ئے درزیدونکے زړهٔ کینبودهٔ، چه د دے په ذریعه انسان پوهیږی او سوچ کوی۔ د الله تعالیٰ دا عقل حیرانوونکی کاریگری چه د غوښے یوه ټکړه آوریدل کوی، بله لیدل کوی، او دریمه د ټولو نه اهمه (یعنی زړهٔ) سوچ کوی، پوهیږی، فیصلے کوی، او انسان له قوتِ ارادی ورکوی، ډیرو خلقو ته په دے خبرو کښې د غور کولو توفیق هم نهٔ ملاویږی۔

د دے نه معلومیږی چه ((داروین)) وغیره کفار غلط وائی چه انسان اول کښې شادو وه او بیا رفته رفته ترقی کولو سره انسان ترے جوړ شو۔ بلکه الله انسان مستقل مخلوق جوړ کړیدے او د خاورے نه او بیا د نطفے نه ئے پیدا کړے۔

مِنْ سُلٰلَةٍ: راخکلے شوے ته وئیلے شي او مَنِي اگر که مرکز ئے په خصیتینو او شا او اَوْعِیَةُ الْمَنِي کښې دے لیکن د راوتو په وخت کښې د هغے اثر په ټول بدن کیږی نو ځکه ورته سلاله وائی۔

مَّهِیْنٍ: یعنی خلک ئے سپکے گنړی او چه په بدن یا کپړه ئے ولگی نو زړئے پاکوی، نو اشاره ده چه اے انسانه! ته د څومره سپکو اُوبو نه پیدا ئے او تکبر دے څومره ډیر دے، تا له خو عاجزی پکار وه۔

السَّمْعَ: غوږ ئے مقدم راوړو ځکه چه انسان اول خبره آوری بیا ورته گوری نو بیا سوچ کوی۔

وَقَالُوٓا۟ أَءِذَا ضَلَلْنَا فِى ٱلْأَرْضِ أَءِنَّا لَفِى خَلْقٍ جَدِيدٍۭ

او وائی دوی آیا کله چه ورك شو مونږ په زمکه کښې آیا مونږ به خامخا په نوی پیدائش

بَلْ هُم بِلِقَآءِ رَبِّهِمْ كَـٰفِرُونَ ﴿١٠﴾ قُلْ يَتَوَفَّىٰكُم

کښې یو بلکه دوی د ملاقات د رب خپل نه منکر دی۔ اُووایه ! وفات کوی تاسو لره

مَّلَكُ ٱلْمَوْتِ ٱلَّذِى وُكِّلَ بِكُمْ ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّكُمْ تُرْجَعُونَ ﴿١١﴾

ملائك د مرگ هغه چه مقرر کړے شویدے په تاسو باندے بیا به رب خپل ته ورګرځولے

وَلَوْ تَرَىٰٓ إِذِ ٱلْمُجْرِمُونَ نَاكِسُوا۟ رُءُوسِهِمْ

شئ تاسو۔ او که چرته اُووینے ته هغه وخت چه مجرمان به خکته کونکی وی د سرونو خپلو

عِندَ رَبِّهِمْ رَبَّنَآ أَبْصَرْنَا وَسَمِعْنَا

په نیز د رب د دوی (وائی به) اے ربه زمونږ ! مونږ اُولیدل او مونږ واوریدل

فَٱرْجِعْنَا نَعْمَلْ صَـٰلِحًا إِنَّا مُوقِنُونَ ﴿١٢﴾

نو واپس کړه مونږ چه عمل اُوکړو نیك یقیناً مونږ یقین کونکی یو۔

**تفسیر** : د مکے مشرکان چه د مرگ نه پس د دوباره ژوند نه منکر وو، په حیرانتیا او تعجب سره به ئے د نبی کریم ﷺ نه تپوس کولو چه هر کله مونږ نه روح اووځی او مونږ خاورے شو، او زمونږ وجود ورك شی، نو آیا مونږ به په نوی ژوند سره دوباره ژوندی کیږو ؟ الله تعالیٰ د دوئ د خبرے جواب ورکوی فرمائی چه دوی قیامت ځکه نهٔ منی چه دوی د خپل رب د ملاقات نه منکر دی او د هغه مخے ته د پیشئ او حاضریدو نه منکر دی، که نهٔ وی نو د مخلوق راپورته کول الله تعالیٰ ته گران دی؟! کله چه د چا پدے خبره یقین وی چه زهٔ الله پیدا کړے یم او هغه به ما وژنی او بیا به ما خپلے مخے ته ودروی نو هغه به ضرور قیامت منی او د هغے د انکار بهانے به نهٔ لټوی۔ نو پدے کښې د کافرانو غټے بد اخلاقئ ته اشاره ده۔

ضَلَلْنَا : یعنی کله چه مونږ ورك شو او ذرات مو ختم شی۔ ضلال دلته په معنیٰ د غیبوبة (ورك کیدو) سره دے۔

بِلِقَاءِ رَبِّهِمْ كَافِرُونَ : یعنی دوی د خپل رب د ملاقات نه منکر دی او دا انکار ئے په طریقه د مکابرے او عناد او ضد سره دے ځکه چه هرکله دوی دا اقرار کوی چه الله اول پیدائش کړیدے نو دا خبره هم ضروری ده چه دوی به اقرار کوی چه الله په دوباره ژوندی کولو هم قادر دے۔ (فتح البیان)

قُلْ يَتَوَفَّاكُم : الله تعالیٰ د خپل نبی ﷺ په ژبه د قیامت دے منکرینو ته اووئیل چه د مرګ د کوم ملائك په ذمه چه ستاسو د روحونو قبض کولو کومه ذمه داری لګولے شوے، کله چه ستاسو د مرګ مقرر وخت راشی نو هغه به ستاسو روحونه قبض کړی، او تاسو به دنیا نه رخصت شئ، بیا چه کله قیامت راشی نو الله تعالیٰ به تاسو ټول ژوندی کړی او د حشر په میدان کښ به د حساب او جزاء دپاره تاسو اودروی۔ یعنی که تاسو ئے غواړئ او که نهٔ خو مرګ او بیا قیامت ته راپورته کیدل ستاسو حق دی۔

مَّلَكُ الْمَوْتِ : دا یو ملائك دے چه د هغه تولو ملائکو مشر دے کوم چه په مرګ باندے مقرر دی، او روح صرف همدا یو ملائك اخلی او نوروته ئے ورکوی او هغوی ئے بیا آسمان ته پورته کوی او کوم آیت د سورة الانعام (٦١) کښ چه ﴿تَوَفَّتْهُ رُسُلُنَا﴾ راغلے دے نو د هغے مطلب دا دے چه ملك الموت ترے روح واخلی بیا ئے هغوی له ورکړی نو هغوی ته هم نسبت کیږی۔ او دا خبره په صحیح حدیث د براء بن عازب ﷺ کښ راغلے ده۔ [ثُـمَّ يَجِيءُ مَلَكُ الْمَوْتِ عَلَيْهِ السَّلَامُ حَتَّى يَجْلِسَ عِنْدَ رَأْسِهِ، فَيَقُولُ أَيَّتُهَا النَّفْسُ الطَّيِّبَةُ ! اُخْرُجِيْ إِلَى مَغْفِرَةٍ مِنَ اللَّهِ وَرِضْوَانٍ] (مسند احمد : ١٨٥٥٧ صحیح)

(بیا ملك الموت راشی تردے چه د مړی سر ته کینی او ووائی : اے پاك روحه د الله بخنے او د هغه رضا طرفته راووځه)۔

او صاحب د فتح البیان وئیلی دی چه الله امر کوی په روح ویستلو نو په یو ځای کښ ﴿اللَّهُ يَتَوَفَّى الْأَنفُسَ حِينَ مَوْتِهَا﴾ کښ نسبت هغهٔ ته شوے او بیا نورو ملائکو ته کوم چه د ملك الموت ملګری وی۔ حکم وکړی نو هغوی روح د نوکونو نه تر مرئ پورے راوباسی نو (تَوَفَّتْهُ رُسُلُنَا) خبره هم صحیح شوه، بیا ملك الموت راشی او هغه ئے ترے راوباسی۔ نو ﴿يَتَوَفَّاكُم مَّلَكُ الْمَوْتِ﴾ خبره هم صحیح شوه۔ یا الله تعالیٰ حکم ملك الموت ته وکړی نو ملك الموت روحونو ته حکم وکړی نو هغه راروان شی بیا د ملك الموت ملګری ملائك هغه قبض کړی۔ (فتح البیان)

وَلَوْ تَرَى إِذِ الْمُجْرِمُونَ: کله چه د قیامت منکرین د قیامت په میدان کښ د انتهائی

ذلت او رسوائی په سبب به د خپل رب مخامخ سر ښکته ولاړ وی، او د خپیمانتیا په خوَله کښې به ډوب وی چه په دنیا کښې ئے د آخرت نه انکار، د الله سره شرك او نور گناهونه نهٔ وے کړے نو نن به ئے دا ورځ نهٔ لیدله. بیابه روائی چه اے زمونږ ربه! کوم حقائق چه مونږ په دنیا کښې دروغژن گنړل، اوس مونږ دا په خپلو سترگو اولیدل، او د کومو خبرونه چه مونږ هلته انکار کولو، اوس مونږ هغه په خپلو غوږونو واوریدل، اوس هیڅ خبره زمونږ نه پټه نهٔ ده پاتے شوے، مونږ ته د ټولو خبرو یقین شوے، دے وجے نه تهٔ مونږ دوباره دنیا ته اولیږه دے دپاره چه مونږ د فوت شوو څیزونو تدارك وکړو، او د نیك عمل په کولو سره خپل آخرت جوړ کړو۔

ددے لو جزاء پټه ده [لَرَاَیْتَ اَمْرًا فَظِیْعًا/هَائِلًا] خامخا تا به یو لوی گبراهټ والا حالت لیدلے وے۔

اَبْصَرْنَا وَسَمِعْنَا : اَیْ مَا کُنَّا نُکَذِّبُ بِهٖ ۔ یعنی مونږ ولیدل هغه شے چه مونږ هغه دروغجن گنړلو۔

نو په قیامت کښې دوی ته دوه خبرے معلومے شوے، یو دا چه زمونږ یقین نهٔ وو او پدے ورځ خو یقین پکار وو، او بله دا چه دے له په عمل صالح سره تیارے پکار وو او دا په مونږ کښې نهٔ وو، د یقین د کمزورئ د وجه نه عمل ختمیږی، او د یقین د وجه نه عمل پیدا کیږی څکه الله دلته جمع کړیدی، او لقمان خپل څوی ته وئیلی وو : [بِقَدْرِ یَقِیْنِكَ تَعْمَلُ لِلّٰهِ] د یقین په اندازه تهٔ به د الله دپاره عمل کوے۔ د چا چه یقین مضبوط وی، د هغهٔ عملونه ډیر او ښائسته وی او د چا چه یقین کمزورے وی نو عمل ئے هم کم او کمزورے وی۔

| وَلَوْ شِئْنَا لَاٰتَیْنَا کُلَّ نَفْسٍ هُدَاهَا |
|---|
| او که چرته غوختلے مونږ خامخا ورکړے به وے مونږ هر نفس ته هدایت د هغه |
| وَلٰکِنْ حَقَّ الْقَوْلُ مِنِّیْ لَاَمْلَئَنَّ جَهَنَّمَ مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ اَجْمَعِیْنَ ﴿۱۳﴾ |
| لیکن ثابته شویده زما نه وینا چه خامخا ډکوم به جهنم د پیریانو او انسانانو ټولو نه۔ |
| فَذُوْقُوْا بِمَا نَسِیْتُمْ لِقَاءَ یَوْمِکُمْ |
| (وبه وئیلے شی) پس اُوڅکئ په سبب د هغے چه هیر کړے وو تاسو ملاقات د ورځے ستاسو |

هٰذَا إِنَّا نَسِينَاكُمْ وَذُوقُوا عَذَابَ الْخُلْدِ بِمَا

چه دا ده، یقیناً مونږ هیره وتاسو او اوڅکئ عذاب د همیشوالي په سبب د هغې عملونو

كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿١٤﴾ إِنَّمَا يُؤْمِنُ بِآيَاتِنَا الَّذِينَ إِذَا ذُكِّرُوا

چه تاسو به کول۔ یقیناً ایمان لري په آیتونو زمونږ هغه کسان چه کله نصیحت ورکړے

بِهَا خَرُّوا سُجَّدًا وَسَبَّحُوا بِحَمْدِ

شي دوی ته په هغې باندے پریوزي دوی سجده کونکي او پاکي بیانوي سره د صفتونو

رَبِّهِمْ وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُونَ (س) ﴿١٥﴾ تَتَجَافَىٰ جُنُوبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ يَدْعُونَ

د رب خپل نه او دوی لوئي نهٔ کوي۔ جدا کیږي اړخونه د دوی د بسترونه، دعاګانے غواړي

رَبَّهُمْ خَوْفًا وَطَمَعًا وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ يُنفِقُونَ ﴿١٦﴾

د رب خپل نه په یره او په طمعے سره او د هغې نه چه ورکړي دي مونږ دوی ته خرچ کوي۔

**تفسیر** : اُوس الله تعالیٰ خپل مشیئت بیانوي۔ او دا په اصل کښې د دوئ ددے التجاء او زاریٔ جواب دے چه مونږ خو په دنیا کښې د خیر او شر دواړو لارو ښودلو سره انسانانو له اختیار ورکړے وو چه څوک غواړي د جنت لاره دے اختیار کړي، او څوک چه غواړي د جهنم لاره۔ او تاسو په خپله مرضیٔ سره د جهنم لاره اختیار کړه۔ اُوس چه تاسو تمام حقائق په خپلو سترګو اُولیدل نو ددے نه پس د ایمان راوړو هیڅ فائده نشته۔ که چرے داسے ایمان زما په نیز د قبلولو وړ وے نو مابه په خپله خوښه تمام انسانان په سمه لاره راوستی وے۔ زما په نیز اعتبار هغه ایمان لره دے چه بنده هغې لره په خپلې مرضیٔ سره په دنیا کښې اختیاروي۔ او کوم انسانان او پیریان چه په دنیا کښې په خپله خوښه ایمان نهٔ راوړي نو ما د مخکښې نه دا فیصله کړے ده چه زهٔ به د دوی نه جهنم ډکومه۔ نو بندګان ئے په امتحان کښې اچولي دي او د امتحان نه روستو به ډیر خلک جهنم ته ولیږلے شي۔

**فَذُوقُوا بِمَا نَسِيتُمْ** : پدے آیت کښې الله فرمائي چه څوک جهنم ته لاړو نو دا د الله تعالیٰ ظلم نهٔ دے بلکه د خلکو خپل ظلم دے ځکه چه دوی آخرت هیر کړے وو نو د ایمان نه محروم شو او د کفر او ګناهونو په وجه جهنم ته ورسیدل۔

**بِمَا نَسِيتُمْ** : یعني تاسو د آخرت دپاره هیڅ تیارے نهٔ وو کړے، داسے مو ګرځولے وو

لکه هیر شوي۔
إِنَّا نَسِينَاكُمْ: ۱-یعنی مونږ به تاسو پریدو چه هیڅ کتل به تاسو ته نشی کیدی۔ او دا ددې دپاره پریدی چه د دوی امید ختم شی۔ ۲- مجاهدؒ وائی: تَرَكْنَاكُمْ فِي الْعَذَابِ۔ مونږ به تاسو په عذاب کښې پریدو۔ نسیان دلته په معنیٰ د ترك (پریخودو) سره دي۔
عَذَابَ الْخُلْدِ: یعنی هغه عذاب چه همیشه به وی او نهٔ به ختمیږی۔

إِنَّمَا يُؤْمِنُ: مناسبت:

۱- إِعْطَاءُ عَدَمِ الْهُدَىٰ سُوْءُ اخْتِيَارِهِمْ۔ یعنی دوی ته چه هدایت ورنکړے شو نو ددې وجه دا وه چه دوی خپل اختیار غلط استعمال کړو او لاره ئې غلطه کړے وه، آخرت به ئې هیرولو او د الله کتاب (قرآن) به ورته بیانیدو او په هغې به ئې هیڅ پرواه نهٔ کوله نو ځکه گمراه شو، که نهٔ وی بعض خلك شته چه په هغوی باندے قرآن اثر کوی، او د آخرت د ورځے نه یریږی نو هغوی لگیا دی عملونه کوی، هغوی گمراه نشو او جهنم ته لاړ نشو۔ او پدے آیت کښې د آخرت دپاره د تیاریٔ اسباب هم ذکر دی۔
۲- د قیامت د منکرینو د بد انجام بیانولو نه پس الله تعالیٰ د مخلصو مومنانو ذکر کړے۔
۳- دارنگه پدے کښې دا بیانوی چه څوك د هدایت مستحق جوړیږی او څوك نهٔ۔
الله فرمائی: چه زمونږ په آیتونو باندے په حقیقی معنو کښې هغه خلق ایمان راوړی او هغه خلك ترے فائده اخلی چه کله په دویٔ باندے قرآن کریم ولوستلے شی او نصیحت ورته وکړے شی نو د خپل زړهٔ د پاکوالی او د فطرت د پاکیزگیٔ د وجے نه دا نصیحتونه فوراً قبلوی، او د قرآن په دویٔ باندے داسے اثر پریوزی چه د اسلام په نعمت باندے د شکر اداء کولو دپاره په سجده پریوزی، او د خپل رب پاکی او د هغهٔ حمد او ثناء بیانوی، او د مکے والو غوندے د هغهٔ د عبادت نه قطعًا مخ نهٔ اړوی، بلکه په تول ژوند کښې د إطاعت او بندگیٔ جذبے او انتهائی خشوع او خضوع سره د هغهٔ عبادت کونکی وی۔
ابن عباس رضی الله عنه وائی چه دا آیت د پنځو وارو مونځونو په باره کښې نازل شوے وو، او ﴿وَسَبَّحُوا بِحَمْدِ رَبِّهِمْ﴾ نه مراد دادے چه دویٔ د سجدے په حالت کښې [ سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهِ ] یا [سُبْحَانَ رَبِّيَ الْأَعْلَىٰ وَبِحَمْدِهِ ] وائی۔
او ﴿ وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُونَ ﴾ نه مراد دا چه دا مومنان د نورو مسلمانانو سره د جماعت مونځ

ادا کولو نه د کبر او نخرے په وجه دده نهٔ کوی۔

إِنَّمَا يُؤْمِنُ : دے کښې حصر دے گویا که چا کښې چه دا تول صفتونه وی نو هغه به مؤمن وی، او که دا تول پکښې نهٔ وی نو مؤمن نهٔ دے او که بعض پکښې وی او بعض نهٔ نو نیمگرے مؤمن دے۔ او پدے کښې د ایمان تعریف بیان شویدے۔

او پدے کښې درے قسمه عبادتونو ته اشاره ده، سجده په اندامونو، تسبیح په ژبه او عدم استکبار په زړه کښې۔

او پدے آیت کښې سجده راغلے ده دے دپاره چه پدے صفت باندے نقد عمل وشی ورنه مؤمن به الله تعالیٰ ته هر وخت سجده لگوی۔

تَتَجَافَى جُنُوبُهُمْ : پدے کښې د مابنام نه روستو نوافل داخل دی لکه په حدیث د انس بن مالك ﷺ کښې هغه راغلی دی چه صحابه کرامؓ به پدے وخت کښې نوافل کول او مشرکان به اُوده کیدل او د ماسخوتن مونځ او د شپے تهجد او سهار مونځ تول پکښې داخل دی۔ لیکن مشهور قول دا دے چه ددے نه مراد د تهجدو مونځ دے۔

دے آیت کښې هم درے عبادتونه شو، مونځونه کول په بدن، دعاء د الله نه په ژبه، او خوف او طمع په زړه سره، او بل مال لگول۔

او ددے مخلصو مومنانو یو صفت دا هم دے چه الله چه دوئ له کوم مال ورکړے د هغے نه دوئ د نیکړے په کارونو کښې خرج کوی۔

| فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّا أُخْفِيَ لَهُمْ مِنْ قُرَّةِ |
|---|
| نو نهٔ پوهیږی هیڅ یو نفس په هغه نعمتونو چه پټ ساتلے شویدی دوی لره د یخوالی |
| أَعْيُنٍ جَزَاءً بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿١٧﴾ أَفَمَنْ كَانَ |
| د سترگو نه، بدله ده په سبب د هغے عملونو چه دوی کول۔ آیا پس هغه څوك چه وی |
| مُؤْمِنًا كَمَنْ كَانَ فَاسِقًا لَا يَسْتَوُونَ ﴿١٨﴾ أَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا |
| مؤمن پشان د هغه چا دے چه وی فاسق، برابر نهٔ دی۔ هرچه هغه کسان دی چه ایمان ئے |
| وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ فَلَهُمْ جَنَّاتُ الْمَأْوَى نُزُلًا |
| راوړیدے او عملونه ئے کړیدی نیك نو دوی لره جنتونه د اُوسیدو دی میلمستیا ده |

| بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۹﴾ وَاَمَّا الَّذِيْنَ فَسَقُوْا |
|---|
| په سبب د هغې عملونو چه دوی به کول. او هرچه هغه کسان دی چه نافرمانی ئې کړېده |
| فَمَاْوٰىهُمُ النَّارُ كُلَّمَا اَرَادُوْا اَنْ يَّخْرُجُوْا مِنْهَا اُعِيْدُوْا |
| نو ځائې د اوسيدو د دوی اور دے هرکله چه اراده اوکړی دوی د هغې نه ورواپس کولے به |
| فِيْهَا وَقِيْلَ لَهُمْ ذُوْقُوْا عَذَابَ النَّارِ الَّذِيْ كُنْتُمْ |
| شی په هغې کښې او وئیلے به شی دوی ته اوڅکئ عذاب د اور هغه چه وئ تاسو |
| بِهٖ تُكَذِّبُوْنَ ﴿۲۰﴾ |
| چه هغه به مو دروغژن گڼړلو. |

**تفسیر**: اوس ددے مؤمنانو د دغه صفتونو په مقابله کښې بدله بیانوی چه د دوئ رب دوئ لپاره د قیامت په ورځ چه کوم نعمتونه پټ ساتلی دی چه د دوئ سترگے به پرے یخے شی، په دے دنیا کښې د دغه نعمتونو تصور هم دوئ نشی کولے.

بخاریؒ او مسلمؒ او نورو محدثینو د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت کړے، رسول الله ﷺ وفرمایل : الله تعالیٰ فرمائی : (ما د خپلو نیکانو بندگانو دپاره داسے نعمتونه تیار ساتلی چه هغه نهٔ کومے سترگے لیدلی، او نهٔ کوم غوږ آوریدلی، او نهٔ د کوم انسان زړهٔ د هغې تصور کړے).

ابو هریره رضی الله عنه ووئیل : که تاسو غواړئ نو دا آیت ولولئ: ﴿فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّا اُخْفِيَ لَهُمْ مِّنْ قُرَّةِ اَعْيُنٍ﴾. یعنی د بعضو نعمتونو نومونه مونږ ته معلوم دی لیکن حقیقت ئې مونږ ته نهٔ دے معلوم.

علماء پدے آیت کښې دا فائده وائی چه [اَخْفَوْا اَعْمَالَهُمْ لِلّٰهِ فَاَخْفَى اللّٰهُ جَزَاءَهُمْ] دوی عمل د الله تعالیٰ دپاره پټ وکړو نو الله هم د دوی دپاره دا بدله پټه وساتله.

جَزَآءً بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ: یعنی د انسانی خیالاتو او تصوراتو نه اوچت دا نعمتونه به دوئ ته د هغه نیکو اعمالو په وجه ملاویږی کوم چه د دنیا په ژوند کښې دوئ کول.

اَفَمَنْ كَانَ مُؤْمِنًا: پدے آیت کښې د قیامت د منکرینو او د مخلصو مومنانو ترمینځه الله تعالیٰ فرق بیانوی فرمائی چه آیا مومن اوفاسق د الله تعالیٰ په نیز برابریدے شی. هیڅ کله داسے نشی کیدے. دا خبره د هغهٔ د عدالت د قانون خلاف ده. یو تن د الله

تعالیٰ منونکے او د هغهٔ یواځے عبادت کونکے دے، او بل یو تن د الله نه سرکشي کونکے، بغاوت کونکے، د هغه نه منکر او د عبادت نه انکار کونکے دے، دواړه هیڅکله نشی برابریدے۔ دا خو جمع بَيْنَ الْمُتَنَاقِضَيْن ده، او دا الله داسے نهٔ کوي نو هرکله چه دواړه نشی برابریدے نو بیا د دوی دپاره یو داسے ځای هم پکار دے چه د دوی دواړو بیلتون پکښې وشي نو ځکه جنت او جهنم ضروري شو۔

لَا يَسْتَوُونَ: صیغه د جمع ئے راوړه ځکه چه د مؤمن او د فاسق نه هر فرد د دوی مراد دے او هغه جمع ده۔ قتادة وائی : نهٔ دی برابر په دنیا کښې او نهٔ په وخت د مرګ کښې او نهٔ په آخرت کښې۔

أَمَّا الَّذِيْنَ آمَنُوا: اُوس د مومن او د کافر د مرتبو بیان دے چه کوم خلق ایمان راوړی او نیك عملونه وکړی، الله تعالیٰ به دویٔ له د اجر او ثواب په توګه جنت ورکړی چه په هغے کښې به دویٔ همیشه لپاره وسیږی۔ او کوم خلق چه په دے دنیا کښې د فسق او ګناه ژوند اختیارکړی، د دویٔ ځای به جهنم وی۔ کله چه هم د سخت غم او د انتهائی درد د وجے نه ددے نه وتل او تبنتیدل غواړی، د جهنم ملائك به دویٔ په وهلو وهلو دوباره په دے کښې واپس کړی، او د دویٔ ذلت او رسوائی زیاتولو دپاره به ورته وائی چه اُوس د اُور د هغه عذاب خوند وڅکئ چه په دنیا کښې به تاسو دا دروغژن ګڼړلو۔

الْمَأْوَى: ددے نه مراد ځای د همیشه وسیدو دے نو دا مقابل د دنیا شو چه هغه ځای د ارتحال (کوچ کولو) دے۔

اُعِيْدُوا فِيْهَا: یعنی ملائك به ئے د اُور په ګورزونو سره وهی کوم چه په سورة الحج کښې ذکر شویدی۔

| وَلَنُذِيقَنَّهُمْ مِنَ الْعَذَابِ الْأَدْنَىٰ دُونَ الْعَذَابِ الْأَكْبَرِ |
|---|
| او خامخا وبه څکوو مونږ دوی ته د عذاب نژدے نه مخکښې د عذاب لوئی نه |
| لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ ﴿٢١﴾ وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنْ ذُكِّرَ |
| دے دپاره چه دوی راوګرځی۔ او څوك دے لوئی ظالم د هغه چا نه چه بیان کړے شی دهٔ ته |
| بِآيَاتِ رَبِّهِ ثُمَّ أَعْرَضَ عَنْهَا إِنَّا مِنَ الْمُجْرِمِينَ مُنْتَقِمُونَ ﴿٢٢﴾ |
| آیتونه د رب خپل بیا مخ اړوی د هغے نه یقیناً مونږ د مجرمانو نه بدله اخستونکی یو۔ |

**تفسير :** پدې کښې دنيوي تخويف او يره ورکوي او د دويمې ډلې حال بيانوي. د مکې د کافرانو، او دارنګه د ټولو کافرانو په باره کښې وئيل شويدي چه مونږ دوئ باندې د آخرت د عذاب د وخت راتلو نه مخکښې، يعنې مخکښې ددې نه چه د کفر په حالت کښې دوئ مړه شي، دوي په مختلف دنيوي تکليفونو کښې مبتلا کوو. د قيد او بند او د قحط کالې په مصيبتونو کښې ئې آخته کوو، شايد چه دوئ د هوش نه کار واخلي، د شرك او نورو ګناهونو نه توبه کړي، او د خپل حالت اصلاح وکړي، او بتان پريدي او په يو الله باندې ايمان راوړي. نو دنياوي تکليفونه او مصيبتونه مُوْقِظ (رابيدارونکي) دي، که يو تن پدې سره راويښ نشي نو دا لوي بد بخته دې، او د مصيبت د راتللو حکمة ئې ونه پيژندلو.

**اَلْعَذَابِ الْاَدْنٰى:** ١ - نزدې عذاب نه مراد د دنيا عذاب دې، يعنې د دنيا مصيبتونه او بيماريانې. بعض وائي ددې نه مراد حدود دي، يا په بدر کښې د قريشو په تورو سره وهل دي، يا په مکه کښې په قريشو اُوه کاله قحط او لوږه راتلل دي، تردې چه دوي په کښې مردارې او هډوکي او سپي وخوړل.

٢ - يا د نزدې عذاب نه مراد د قبر عذاب دې. او دا آيت ټولو ته شامليدل صحيح دي.

**وَمَنْ اَظْلَمُ:** دا دويم مُوْقِظ (رابيدارونکې) بيانوي چه هغه قرآن کريم دې. کوم انسان ته چه د قرآن کريم د آيتونو په لوستلو سره نصيحت وکړې شي، د جنت زيرې ورکړې شي او د جهنم نه ويرولې شي، ليکن د کبر او نخرې د وجې نه د ايمان راوړو په ځاى ددې آيتونو نه مخ واړوي، دا د الله تعالىٰ په نظر کښې ډير لوى ظالم او مجرم دې. او کوم کس چه د قرآن کريم د توحيد دعوت رسيدو باوجود په خپل کفر او شرك باندې ټينګ پاتې شي، الله تعالىٰ د داسې مجرمانو نه خامخا بدله اخلي، دوئ په عذاب کښې آخته کوي، او خپلو مومنانو او متقيانو بندګانو له په دوئ باندې غلبه ورکوي.

**اَعْرَضَ عَنْهَا:** يعنې ايمان پرې رانۀ وړي او په هغې عمل ونکړي.

| |
|---|
| وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَى الْكِتَابَ فَلَا تَكُنْ فِي مِرْيَةٍ |
| او يقيناً ورکړې وو مونږ موسىٰ (عليه السلام) ته کتاب نو مۀ کيږه تۀ په شك کښې |
| مِّنْ لِّقَائِهِ وَجَعَلْنَاهُ هُدًى لِّبَنِيْ |
| د ملاقات د هغه نه (د خپل رب سره) او ګرځولې وو مونږ هغه هدايت دپاره د بنې |

| إِسْرَائِيلَ ﴿٢٣﴾ وَجَعَلْنَا مِنْهُمْ أَئِمَّةً يَهْدُونَ |
|---|
| اسرائیلو. او گرځولي وو مونږ د دوی نه امامان د دین چه لاره به ئے خودله خلقو ته |
| بِأَمْرِنَا لَمَّا صَبَرُوا وَكَانُوا بِآيَاتِنَا يُوقِنُونَ ﴿٢٤﴾ |
| په حکم زمونږ هرکله چه دوی صبر اُوکړو او وو دوی چه په آیتونو زمونږ به ئے یقین کولو. |

**تفسیر** : د قرآن کریم عادت دا دے چه د قرآن کریم د صدق دپاره تورات په دلیل کښې پیش کوی. او پدے کښې الله تعالیٰ زمونږ تصور جوړوی چه ددے امت نه مخکښې هم یو غټ اُمت د بنی اسرائیلو تیر شویدے او هغوی ته الله تعالیٰ یو کتاب ورکړے وو پدے کښې شك مه کوه نو په هغوی کښې چه کوم نیکان خلك وو الله تعالیٰ د حق دُعَاة (داعیان) وګرځول کله چه په هغوی کښې دوه صفتونه وو، یو د صبر صفت، او بل د الله په آیتونو او د هغه په وعدو باندے یقین. نو الله په خپل دین کښې او د خپل دین دپاره استعمال کړل نو اے خلکو ! تاسو ته هم الله تعالیٰ خپل خوږ کتاب راولیږلو پدے یقین وکړئ او لږ صبر وکړئ نو الله به تاسو ددے امت مشران جوړ کړی، او ډیر خیر به درکړی او ستاسو په لاس به ډیر خیر خور کړی. لیکن عامو بنی اسرائیلو نافرمانی وکړه نو الله تعالیٰ به ورسره په قیامت کښې ګوری نو دغه شان دے موجوده کافرانو سره به هم ګوری او سزا به ورکوی.

بیا د دنیا د تخویف دپاره دلیل راوړی.

او پدے آیت کښې د قرآن کریم رشتینوالے هم ذکر دے.

حاصل د آیت : اے زما نبی ! که مونږ تاته د قرآن کریم غوندے ډیر لوی کتاب درکړے نو په دے کښې د مکے والو دپاره د حیرانتیا او تعجب څۀ خبره ده ؟ مونږ ددے نه مخکښې خپل بنده او رسول موسیٰ علیه السلام له هم یو عظیم کتاب ورکړے وو، چه ددے معلومات د مکے کافرانو ته شته دے. او دا کتاب مونږ د بنی اسرائیلو دپاره د رُشد او هدایت ذریعه جوړه کړے وه، او په هغوئ کښې ئے داسے علماء پیدا کړل چه هغوئ به خلقو ته زمونږ د دین لاره ښودله، او په دے لاره کښې به چه هغوئ ته څۀ تکلیف رسیدۀ هغه به ئے برداشت کولو، صبر به ئے کولو، او زمونږ د کتاب په حقانیت او رشتینے کیدو باندے به ئے پوره یقین لرلو، نۀ د هغوئ په صبر او استقامت کښې فرق راتلو، او نۀ هغوئ زمونږ

په آیتونو کښې شک او شبهه کوله.
دے وجے نه ستا د زمانے خلقو له هم پکار دی چه په دے ایمان اُولری چه قرآن کریم د الله کلام دے. په دے کښې د بیان شوی رُشد او هدایت نه فائده پورته کړی، نورو خلقو ته د ایمان او توحید دعوت ورکړی، او په دے لاره کښې چه کوم تکلیف اُوچتول راشی هغه دے په ډیره فراخ تنډئ سره برداشت کړی.
مفسرین لیکی چه په دے کښې د مسلمانانو دپاره سخته دهمکی ده چه لکه څنګه چه د بنی اسرائیلو خلقو د تورات تحریف کولو، د رشتینے دین نه آوړیدل، او د امر بالمعروف او نهی عن المنکر د پریښودلو په وجه د الله تعالیٰ د غضب حقدار جوړ شوی وو، دغه شان ددے امت کوم خلق چه د قرآن او سنت نه آوړی، د نیکئ حکم کول او د بدئ نه منع کول پریدی، د صبر او استقامت او ایمان او یقین د دولت نه محروم شی، نو الله تعالیٰ به د یهودیانو د قوم پشان په دوئ باندے هم ذلت او رسوائی مسلط کړی.
الله تعالیٰ د سورتِ رعد په (۱۱) آیت کښې فرمایلی :
﴿إِنَّ اللّٰهَ لَا يُغَيِّرُ مَا بِقَوْمٍ حَتّٰى يُغَيِّرُوْا مَا بِاَنْفُسِهِمْ﴾ (الله تعالیٰ د هیڅ یو قوم حالت هغه وخته پورے نهٔ بدلوی څو پورے چه دا قوم خپله خپل حالت بدل نهٔ کړی).
فَلَا تَكُنْ فِيْ مِرْيَةٍ مِّنْ لِّقَائِهٖ : پدے آیت کښې هم مفسرینو ډیر توجیهات ذکر کړیدی چه آیت ئے مُعمه کړیدے. هغه واوره : ۱- فَلَا تَكُنْ فِيْ مِرْيَةٍ مِّنْ لِّقَاءِ كَ مِثْلَهٗ . (یعنی ته شک مهٔ کوه د ملاقات ستا نه د مثل د کتاب د موسیٰ ﷺ سره. یعنی تا ته به هم الله تعالیٰ د موسیٰ ﷺ په شان کتاب درکړے. دا په آیت کښې تاویل دے.
(۲) مِنْ لِّقَاءِ مُوْسٰى كِتَابَهٗ. (زجاج) شک مهٔ کوه د ملاقات د موسیٰ ﷺ نه د خپل کتاب سره یعنی موسیٰ ﷺ خپل کتاب قبول کړونو تهٔ ئے هم قبول کړه.
(۳) مِنْ لِّقَائِكَ بِالْمِحَنِ مِثْلَ مُوْسٰى . پدے کښې شک مهٔ کوه چه ته به هم د مشکلاتو سره ملاقات کوے لکه څنګه چه موسیٰ ورسره مخامخ شویدے.
(٤) مِنْ لِّقَائِكَ مُوْسٰى لَيْلَةَ الْمِعْرَاجِ . پدے کښې شک مهٔ کوه چه ستا ملاقات د موسیٰ ﷺ سره شوے په شپه د معراج. لیکن ددے معنو ددے مقام سره هیڅ مناسبت نهٔ ښکاره کیږی. په تفسیرونو کښې تمیز کول فقه فی التفسیر ده، هسے ډیر توجیهات نقل کول کمال نهٔ دے. نو ښهٔ تفسیر هغه دے چه په حدیث کښې راغلے دے. چه حاصل ئے دا دے چه لِقَاء مصدر مضاف دے فاعل ته او مراد ترے د الله لقاء (ملاقات) دے. اَیْ مِنْ

لِقَاۗءِ مُوْسٰى رَبَّهٗ فِى الطُّوْرِ ـ یعنی پدے کښې شك مهٔ کوه چه موسیٰ علیه السلام د خپل رب سره په طور کښې ملاقات کړیدے دپاره د ورکولو د کتاب۔

لَمَّا صَبَرُوْا: اهل علمو ددے ځای نه دا خبره راخستے ده چه [بِالصَّبْرِ وَالْيَقِيْنِ تُنَالُ الْإِمَامَةُ فِى الدِّيْنِ] په دین کښې مشري په صبر او یقین سره حاصلیږي۔

او په صبر سره دفع د شهواتو کیږي او په یقین سره زوال د شبهاتو کیږي۔ او د انسان نه چه غلط شهوات او شبهات دفع شو نو دا کامل شو۔

| إِنَّ رَبَّكَ هُوَ يَفْصِلُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِيْمَا |
|---|
| یقیناً رب ستا به فیصله اُوکړي په مینځ ددوی کښې په ورځ د قیامت په هغه څه کښې |
| كَانُوْا فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ ﴿٢٥﴾ أَوَلَمْ يَهْدِ لَهُمْ كَمْ |
| چه دوی په هغے کښې اختلاف کولو۔ آیا نهٔ ده ښکاره شوے دوی ته چه څومره |
| أَهْلَكْنَا مِنْ قَبْلِهِمْ مِّنَ الْقُرُوْنِ يَمْشُوْنَ فِىْ مَسَاكِنِهِمْ |
| هلاك کړیدی مونږ مخکښې د دوی نه د پیړونه، دوی ګرځي په ځایونو د اُوسیدو د هغوی |
| إِنَّ فِىْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ ۚ أَفَلَا يَسْمَعُوْنَ ﴿٢٦﴾ أَوَلَمْ يَرَوْا |
| کښې یقیناً پدے کښې خامخا عبرتونه دي، آیا نو نهٔ آوري دوی۔ آیا نهٔ ګوري دوی |
| أَنَّا نَسُوْقُ الْمَاۗءَ إِلَى الْأَرْضِ الْجُرُزِ فَنُخْرِجُ بِهٖ زَرْعًا |
| چه بیشکه روانه وو مونږه اُوبه زمکے شاړے ته نو را اُوباسو په هغے سره فصل |
| تَأْكُلُ مِنْهُ أَنْعَامُهُمْ وَأَنْفُسُهُمْ ۚ أَفَلَا يُبْصِرُوْنَ ﴿٢٧﴾ وَيَقُوْلُوْنَ مَتٰى |
| خوري د هغے نه چارپیان د دوی او نفسونه ددوی آیا نو دوی نهٔ ګوري۔ او وائي دوی کله به |
| هٰذَا الْفَتْحُ إِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿٢٨﴾ قُلْ يَوْمَ الْفَتْحِ لَا يَنْفَعُ الَّذِيْنَ |
| وي دا فیصله که یئ تاسو رشتینی۔ ووایه ! په ورځ د فیصلے فائده به نهٔ ورکوي هغه کسانو |
| كَفَرُوْا إِيْمَانُهُمْ وَلَا هُمْ يُنْظَرُوْنَ ﴿٢٩﴾ فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ |
| ته چه کفر ئے کړیدے ایمان د دوی، او نهٔ به دوی ته مهلت ورکړے شي۔ نو مخ واړوه د دوی |

وَانْتَظِرْ إِنَّهُمْ مُّنْتَظِرُوْنَ ﴿۳۰﴾

نه او انتظار کوه یقیناً دوی (هم) انتظار کونکی دی۔

**تفسیر** : پدے آیت کښې الله تعالیٰ موجوده کافرانو ته دهمکی ورکړے ده چه الله تعالیٰ به د قیامت په ورځ د انبیاء کرامو او د دوی د اُمتونو ترمینځه، او د مومنانو او کافرانو ترمینځه خپله فیصله صادره کړی، او بیا به هر یو ته پته ولګی چه په دنیا کښې څوك په حقه وو او څوك په باطل، او اُوس به د چا انجام څنګه وی۔ نو اهلِ حق به جنت ته داخل کړے شی او اهلِ باطل به جهنم ته دیکه کړے شی۔

نو پدے کښې اشاره ده چه بنی اسرائیلو په خپل کتاب کښې اختلاف وکړو الله به ورسره په قیامت کښې حساب کوی نو دغه شان که تاسو اختلاف وکړو نو تاسو سره به هم حساب کیږی۔

اَوَلَمْ يَهْدِ لَهُمْ:اَیْ اَوَلَمْ یَتَبَیَّنْ. آیا نهٔ ده ښکاره شوے۔ پدے آیت کښې د مکے کافرانو ته زجر او د فکر او نظر دعوت ورکړے کیږی چه مونږ د دوی نه مخکښې ډیر کافر او مشرك قومونه هلاك کړی دی، او دا خلق د شام سفر کوی او په مدائنِ صالح، د مدین په علاقه او د بحیرهٔ لوط په خوا تیریږی او د هغوی باقیمانده آثار په خپلو سترګو وینی، نو په دے نښانو باندے د عبرت نظر ولے نهٔ اچوی، او دا کنډرات چه دوی ته ددے قومونو د بربادئ کومے واقعے یادوی په هغے باندے دوی غوږونه ولے نهٔ ګروی، دے دپاره چه عبرت حاصل کړی او د کفر او شرك نه توبه ګار شی او په قرآن کریم او رسول الله ﷺ باندے ایمان راوړی۔

اَوَلَمْ يَرَوْا: پدے کښې رټنه ده چه دا منکرین د عقلی دلیلونو نه هم عبرت نهٔ اخلی۔

الله تعالیٰ وفرمایل چه مونږ د آسمان نه باران نازلوو، او دا قحط زده زمکے ته رسوو چه هغه د اُوبو نه بغیر مړهٔ شوے وی، بیا ددے په ذریعه مختلف قِسم بوټی زرغونوو چه د هغے نه بعضِ د دوی څناور خوری، او د څینو بوټو دانے دوی خپله خوری او په دے باندے ژوندی اُوسیږی۔ نو د مکے کافران د عقل نه کار ولے نهٔ اخلی، ولے دا سوچ نهٔ کوی چه کوم الله په خپل کامل قدرت سره باران اُوورولو بیائے بوټی زرغون کړل او ددے نه څینے انسانانو دپاره او څینے نور د دوی د څاروو دپاره د استعمالولو قابل جوړ کړل، همدا حقیقی معبود دے، د همدهٔ مخے ته سر خکته کول پکار دی۔

اَنَّا نَسُوْقُ الْمَاءَ : ددے نه مراد د باران اُوبهٔ دی۔
اَلْجُرُزِ : هغه شاړه زمکه ده چه بوټی ترے وچ شی او پریکړے شی۔ د جَرز نه دے په معنیٰ د قطع سره یعنی هغه زمکه چه گیاه ئے قطع شوی وی د اُوبو د نشتوالی په وجه۔
ابن عباس ﷜ وائی چه دا هغه زمکه ده چه لږ شان باران پرے وشی نو هیڅ فائده ورنکړی مگر هله چه هغے ته سیلابونه راشی۔ او اَصمعیؒ چه وئیلی دی چه ددے نه مراد هغه زمکه ده چه هیڅ گیاه نهٔ راټوکوی (یعنی خوره ناکه) نو دا تفسیر صحیح نهٔ دے ځکه چه د روستو (نُخْرِجُ بِهٖ زَرْعًا) خلاف دے۔
وَيَقُوْلُوْنَ : پدے آیت کښې هم رټنه ده په انکار د قیامت سره، او دا متعلق دے د (۲۵) آیت سره۔ یعنی ایمان والو به چه کله د مکے د کافرانو د ظلم او زیاتی نه تنگ راتلو سره ووئیل چه الله تعالیٰ به زمونږ او ستاسو ترمینځ د قیامت په ورځ فیصله کوی، او ستاسو د کفر او عناد به تاسو له سزا درکوی، نو هغوئ پورے به ئے توقے کولے، ځکه چه دوئ د قیامت منکر وو، او وئیل به ئے چه که تاسو واقعی رشتینی یئ، نو لږ تادی وکړئ او خپل رب ته ووایئ چه نور دے تاخیر نهٔ کوی او هغه ورځ دے راولی۔ نو الله تعالیٰ پدے آیت کښې دوئ له دا جواب ورکړو چه ددے په راتگ کښې هیڅ شك نشته، په هغه ورځ به تاسو ایمان راوړئ خو نهٔ به قبلیږی، دے وجے نه تاسو ددے نه مخکښې ایمان راوړئ، ځکه چه کله دا ورځ راشی نو بیا د کوم کافر ایمان راوړل به هغهٔ له فائده ورنهٔ کړی، ځکه چه دا بیا ایمان بالمشاهده دے او ایمان بالغیب نهٔ دے۔ اونهٔ به ورله مهلت ورکړے کیږی چه هغه د خپلو گناهونو نه توبه کړی او په اسلام کښې داخل شی۔ د عمل موقع او د توبے مهلت صرف په دے دنیا کښې ورکړے شوے۔
اَلْفَتْحُ : دا د فَتَاحَةٌ نه دے فیصلے ته وئیلے شی۔ او چونکه فتح ښکاره کیدو او کولاویدو ته وائی او په فیصلے سره هم خبره ښکاره کیږی۔
فَاَعْرِضْ عَنْهُمْ : نبی کریم ﷺ ته فرمائی چه ته د مکے د کافرانو د کم عقله خبرو او د هغوئ د دروغو بیانونو جواب مهٔ ورکوه، او پوره کوشش سره د دعوت او تبلیغ په کار کښې لگیا اُوسه، او د الله تعالیٰ د فیصلے انتظار کوه، هغه به یقیناً تا له فتح او نصرت درکوی، او ستا دشمنان به رسوا کوی، اگرکه د مکے کافران هم ستا په باره کښې د خراب خبر آوریدو انتظار کوی، دے دپاره چه د دوئ د باطل گمان مطابق تا نه دوئ خلاص شی،

لیکن د الله تعالیٰ په فیصله باندے د چا فیصله غالبه کیدے شی.
مُّنتَظِرُونَ : یعنی دوی ستا د مرګ یا د قتل انتظار کوی، یا د مؤمنانو په باره کښ انتظار کوی چه په دوی به یو عذاب راشی.

## امتیازات د سورة السجده

۱- د ایمان او د یقین تفصیلی بحث.
۲- د امامت فی الدین اسباب ئے بیان کړیدی.
۳- د ملك الموت تذکره پکښ خصوصی شویده.

ختم شو تفسیر د سورة الم السجده په فضل د رب العالمین سره په ۱۱ رمضان المبارك ۱٤۳٦ هـ موافق (۲۸/٦/۲۰۱۵) صباح یوم الاحد، بجه : ۵:٤۰. وکتبه ابوزهیر.

❁❁❁❁❁

بسم الله الرحمن الرحیم

| آیاتها (۷۳) | (۳۳) سورة الاحزاب مدنية (۹۰) | رکوعاتها (۹) |
| --- | --- | --- |

سورة الاحزاب مدنی دے، په دے کښې درے اویا آیتونه او نهه رکوع دی

## تفسیر سورة الاحزاب

**نوم :** پدے کښې د احزاب واقعه ذکر ده (چه ددے تفصیل را روان دے) چه د کفارو ډلے راغلے وے او په رسول الله ﷺ ئے حمله کوله نو دا واقعه د رسول اکرم ﷺ دپاره یوه معجزه وه، چه الله تعالیٰ د هواء او ملائکو په ذریعه د هغهٔ مدد کړے وو. د مدینے مسلمانان ئے د عربو کافرانو د حملے نه بچ کړل، او مومنان او منافقان پکښې وپیژندے شول.

**د نازلیدو زمانه :** ټول سورت په مدینه منوره کښې نازل شوے. ابن عباس اوابن زبیر رضی الله عنهم نه دغسے نقل شوی دی. دا د څلورم کال آخر او د پنځم کال ابتداء وه. د زینب رضی الله عنها د نکاح په موقعه باندے نازل شویدے.

## مناسبت

۱- مخکښې د توحید بیان وو نو اُوس د رسول الله ﷺ رسالت او د هغهٔ تابعداریٔ ته دعوت وو. یعنی هلته ایمان وو په الله تعالیٰ او د هغهٔ په ملاقات نو دلته دعوت دے ایمان ته په رسول الله ﷺ او د هغهٔ تابعداریٔ ته.

۲- مخکښې سورت کښې رد وو په شرك باندے، اُوس رد کوی په شرکی بدعاتو باندے.

۳- مخکښې سورت کښې اثبات د توحید او د آخرت وو نو پدے سورت کښې تیزی ورکوی په دعوت او تبلیغ ددے مسئلے باندے.

٤- مخکښې د مؤمن او د کافر ترمینځ فرق وو نو دلته وائی چه کله ناکله الله تعالیٰ داسے حالات او مسائل راولی چه په هغے کښې د مؤمن او د منافق ترمینځ فرق کیږی.

## مقصد د سورت

۱- دوه ذمه واریانے خودل دی (او امانت ادا کول دی) یو د پیغمبر ذمه واری ده چه هغه

به دعوت الى الله كوى. او دويمه د امت ذمه وارى ده چه هغه طاعت د رسول الله ﷺ دے. نو دے كښې داسے هم وئيلے شى چه پدے سورت كښې ترغيب دے اطاعت د رسول الله ﷺ ته او بيان د شان د رسول الله ﷺ او د هغهٔ د مخالفت ضررونه. چه څوك په دهٔ اعتراضات كوى نو د هغوى بدى به بيانوى.

۲- زمونږ شيخ محترم رستمئ فرمائى: چه پدے سورت كښې تيزى وركول دى رسول الله ﷺ ته په دعوت او په رد د بدعاتو په دولسو خطاباتو سره او تيزى وركول دى امت ته عمومًا او خصوصًا په اطاعت كولو او په توقير كولو د رسول الله ﷺ سره په شپارس خطاباتو سره. (احسن الكلام).

او پدے سورت كښې درے قسمه خطابات دى، رسول الله ﷺ ته خطاب، د رسول الله ﷺ بيبيانو ته خطاب او امت ته خطاب.

## د سورت شان نزول

دا سورت د دوه واقعو په باره كښې نازل دے، يوه واقعه د زيد بن حارثه ﷛ او بل د زينب رضى الله عنها د وادهٔ ده، او پدے واقعاتو كښې د بدعاتو رد كول مقصد وو. زيد بن حارثه ﷛ چه د رسول الله ﷺ متبنىٰ وو او بيا د هغهٔ ښځه (زينب رضى الله عنها) د طلاق نه پس رسول الله ﷺ په نكاح واخسته نو په هغے باندے خلكو ته دوه اشكالات راپيدا شو يو دا چه د متبنىٰ د ښځے سره نكاح كول هغوى ته حرام ښكاره كيدل نو اعتراض ئے وكړو، او دويم پدے وخت كښې د رسول الله ﷺ دا پنځم وادهٔ وشو (څلور ئے مخكښې وو) نو منافقانو شور جوړ كړو چه پنځمه ښځه ئے څنګه وكړه. نو الله تعالىٰ دا سورت راوليږلو او وے فرمايل چه دا د الله تعالىٰ رسول دے، الله به ورته روستو نورے هم ډيرے بيبيانے وركړى ستاسو د اعتراض څه حق دے؟ بيبيانے پدے كار خفه وے نو الله تعالىٰ هغوى ته هم تلقين وركړو چه داسے كار مهٔ كوئ. او مؤمنانو ته ئے آداب وركړل او رسول الله ﷺ ته ئے د رواج د ماتولو تلقين او بهادرى وركړه چه د هيچا نه مهٔ يريږه او مضبوط بيان وكړه.

اول كښې الله تعالىٰ خپل نبى ته څلور خطابات كوى، يو په تقوىٰ امر باندے او د منافقانو د اتباع نه ئے منع كوى او په اتباع د وحى او بل په توكل على الله باندے او بيا په رواجونو باندے رد. د سورت حاصل د آيتونو ترمينځ راځى.

| يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ اتَّقِ اللهَ وَلَا تُطِعِ الْكَافِرِيْنَ وَالْمُنَافِقِيْنَ إِنَّ اللهَ كَانَ |
|---|
| اے نبی ! اُوېرېږه د الله نه او تابعداری مهٔ کوه د کافرانو او منافقانو یقیناً الله تعالیٰ دے |
| عَلِيْماً حَكِيْماً ﴿۱﴾ وَاتَّبِعْ مَا يُوْحٰى إِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ |
| پوهه حکمتونو والا۔ او تابع شه د هغے چه وحی کیدے شی تا ته د طرف د رب ستا نه |
| إِنَّ اللهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرًا ﴿۲﴾ وَتَوَكَّلْ عَلَى اللهِ |
| یقیناً الله په هغے عملونو چه تاسو ئے کوئ خبردار دے۔ او خان سپاره په الله باندے |
| وَكَفٰى بِاللهِ وَكِيْلاً ﴿۳﴾ |
| او کافی دے الله تعالیٰ ذمه وار۔ |

**تفسیر:** يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ : دا خطاب د مدح او د عظمت د رسول الله ﷺ دے او د رسول الله ﷺ د نبوت اثبات او اقرار دے۔ پدے وجه په (يَا مُحَمَّد) سره ئے آواز نهٔ دے کړے، او د نبی په لفظ کښې اشاره ده چه تهٔ د الله تعالیٰ د طرفنه د هغهٔ د حکمونو خبر ورکونکے ئے نو پدے وجه په راتلونکو حکمونو ضرور عمل وکړه۔

پدے درے آیتونو کښې څلور خطابات دی، اول خطاب کښې روحانی سبب (تقویٰ) باندے حکم کوی، دویم دفع د موانعو کوی په ﴿وَلَا تُطِعِ الْكَافِرِيْنَ وَالْمُنَافِقِيْنَ﴾ سره، او په دریم کښې طریقه او مأخذ د دعوت ذکر ده ﴿وَاتَّبِعْ مَا يُوْحٰى إِلَيْكَ﴾ او څلورم کښې دفع د خوف او اخلاص پیدا کول په ﴿وَتَوَكَّلْ عَلَى اللهِ﴾ سره۔ او پدے حکمونو کښې مقصد رسول الله ﷺ ته په دعوت او تبلیغ باندے تیزی ورکول دی۔

اتَّقِ اللهَ: ددے امر مطلب دا نهٔ وی چه ګنے رسول الله ﷺ د الله تعالیٰ نه نهٔ یریدو او دلته ورته وائی چه د الله نه ویرېږه۔ بلکه دے ته تاکید وائی لکه رسول الله ﷺ الله ته فرمائیلی وو ﴿قَالَ رَبِّ احْكُمْ بِالْحَقِّ﴾ (اے ربه ! په حق سره فیصله وکړه)۔ نو مراد ددے نه په تقویٰ باندے ټینګیدل او همیشوالے کول دی۔

او تفسیر مدارك لیکی : [وَازْدَدْ مِنْهُ فَإِنَّهُ بَابٌ لَا يُدْرَكُ مَدَاهُ] په تقویٰ کښې زیادت پیدا کړه ځکه چه تقویٰ ډیر اُوچت باب دے چه د هغے انتهاء ته رسیدل ګران دی۔

او تقویٰ چونکه مِلَاكُ الْحَسَنَاتِ (د نیکیانو راګیرونکے شے) دے نو بیا پدے کښې د دین ټولے خبرے راګیرېږی۔

وَلَا تُطِعِ الْكَافِرِينَ: دا ورسره څکه وائي چه روستو رواجونه رد کوی او په رواجونو ماتولو باندے کافران هم خفه وو او منافقان هم۔

امام شوکانیؒ د واحدیؒ په حواله لیکلی چه په دے آیتِ کریمه کښ د (کافرانو) نه مراد ابو سفیان، عکرمه او ابو الاعور سُلَمی دے، او د (منافقانو) نه مراد عبد الله بن أُبی او عبد الله بن سعد بن ابی سرح دے۔ (لیکن عبد الله بن سعد روستو صحیح مسلمان جوړ شوے لکه څنګه چه ابو سفیان او عکرمه په اسلام مشرف شویدی رضی الله عنهم)۔

خازنؒ، خطیب شربینیؒ وغیره مفسرین لیکی چه د اُحد د غزا نه پس د مکے مشرکانو یو وفد د ابو سفیان په قیادت کښ مدینے ته راغے، او عبد الله بن اُبی، مُعَتِّب بن قُشَیر او طُعْمَه بن اُبیرق سره ملاؤ شو او د رسول الله ﷺ نه ئے مطالبه وکړه چه هغه د قریشو معبودانو باندے رد کول بند کړی، نو دا آیت نازل شو۔

او د کافرانو او د منافقانو د طاعت نه کولو مطلب دادے چه د دوی مشوره مهٔ قبلوه، او امر هم ورله مهٔ منه څکه چه دوی دشمنان دی، تا د کار نه ورانوی.

د دویٔ خو خواهش دے چه مسلمانان د اسلام نه واوړی، او خپل مشن پریدی، او د دویٔ پشان مشرکان او منافقان جوړ شی۔

عَلِيماً حَكِيماً: الله پوهه دے څکه داسے حکمونه رالیږی، او د هغه په هر کار کښ حکمتونه وی پدے وجه داسے رواجونه رد کوی، ډیر انسانان د هغه حکمتونو نه خبردار نهٔ وی۔

وَاتَّبِعْ مَا يُوحَىٰ إِلَيْكَ: یعنی د قرآن او د حدیث تابع شه او تا ته چه ددے په ذریعه کوم احکام ملاویږی د هغے تابعداری کوه، د مشرکانو په مشورو غوږ مهٔ ګروه او مهٔ صرف په خپله رائے باندے اعتماد کوه، بلکه وحی کښ د هر مشکل حل شته۔

وَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ: د رواجونو په رد کولو او د دین په بیانولو کښ به د مخالفینو د طرفنه تکلیفونه راځی، خلك به دهمکیانے درکوی، د قتل ارادے به کوی، نو الله فرمائی چه په الله تعالیٰ باندے ځان سپاره او اعتماد او بهروسه صرف په هغهٔ باندے کوه، څکه چه څوك په هغهٔ بهروسه کوی، هغه د هغهٔ کافی او د هغهٔ حفاظت کونکے او مددګار وی۔

مَا جَعَلَ اللّٰهُ لِرَجُلٍ مِّنۡ قَلۡبَيۡنِ فِيۡ جَوۡفِهٖ وَمَا

نهٔ دی گرځولی الله تعالیٰ د یو سړی دپاره دوه زړونه په یوه سینه کښې او نهٔ ئې دی

جَعَلَ اَزۡوَاجَكُمُ الّٰٓـئِیۡ تُظٰهِرُوۡنَ مِنۡهُنَّ اُمَّهٰتِكُمۡ ۚ وَمَا

گرځولی ښځې ستاسو هغه چه ظهار کوئ تاسو د هغوی نه میندې ستاسو او نهٔ ئې دی

جَعَلَ اَدۡعِيَآءَكُمۡ اَبۡنَآءَكُمۡ ؕ ذٰلِكُمۡ قَوۡلُكُمۡ بِاَفۡوَاهِكُمۡ

گرځولی د خولې بللے شوی (مُتبنیٰ) ځامن ستاسو، دا وینا ستاسو ده په خولو ستاسو

وَاللّٰهُ يَقُوۡلُ الۡحَـقَّ وَهُوَ يَهۡدِى السَّبِيۡلَ ﴿۴﴾ اُدۡعُوۡهُمۡ

(حقیقت ئې نشته) او الله وائي حق او هغه هدایت کوی نیغې لارې ته. راغواړئ دوی

لِاٰبَآئِهِمۡ هُوَ اَقۡسَطُ عِنۡدَ اللّٰهِ ۚ

په نومونو خپلو نسبت کونکی پلارانو د دوی ته دا ډیر انصاف دے په نیز د الله تعالیٰ،

فَاِنۡ لَّمۡ تَعۡلَمُوۡۤا اٰبَآءَهُمۡ فَاِخۡوَانُكُمۡ فِى الدِّيۡنِ وَمَوَالِيۡكُمۡ ؕ

نو که نهٔ پیژنئ تاسو پلاران د دوی نو وروڼه دی ستاسو په دین کښې او غلامان ستاسو دی

وَلَيۡسَ عَلَيۡكُمۡ جُنَاحٌ فِيۡمَاۤ اَخۡطَاۡتُمۡ بِهٖ وَلٰكِنۡ

او نهٔ شته په تاسو گناه په هغې کښې چه خطاء شئ تاسو په هغې سره لیکن (گناه ده)

مَّا تَعَمَّدَتۡ قُلُوۡبُكُمۡ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوۡرًا رَّحِيۡمًا ﴿۵﴾

په هغې کښې چه قصد اُوکړی زړونه ستاسو او دے الله تعالیٰ بخونکے رحم کونکے.

**تفسیر** : ددے ځای نه روستو د دوه رواجونو رد کوی او اول کښې د هغې دپاره یو تمهید بیانوی. بلکه پدے سورت کښې د ډیرو رسمونو رد دے. په عربو کښې د متبنیٰ رواج وو، متبنیٰ به ئې دیته وئیلو چه د یو سړی به غلام وو د هغه سره به ئې مینه زیاته پیدا شوه نو خلکو کښې به ئې اعلان وکړو چه دا فلانے زما ځوی شو. نو د هغوی قانون دا وو چه د هغه ښځه به ئې خپله اینګور گنړله او د خپل ځوی په شان معامله به ئې ورسره کوله، او هغه ته به ئې میراث هم ورکولو، او دا کار به ئې کله په پردو هلکانو کښې هم کولو (سوئ

د غلامانو نه) خو په غلامانو کښې زیات وو. نو رسول الله ﷺ د نبوت نه مخکښې دا کار کړے وو چه کله ئے خدیجه رضی الله عنها په نکاح واخسته نو هغې یو غلام (زید بن حارثه کلبی) رسول الله ﷺ ته په تحفه کښې ورکړو. (زید په اصل کښې غلام نۀ وو خو د مور سره په لاره روان وو، ماماګانو کره تلل) نو د عربو د عادت مطابق په دوی باندے چا حمله وکړه، مور ئے ورله وشړله او ماشوم ئے واخستو خرڅ ئے کړو نو د هغۀ نه (ظلمًا) غلام جوړ شو، مکے ته راوستے شو نو په مکه کښې خدیجے رضی الله عنها واخستو ځکه چه دا مالداره ښځه وه، د رسول الله ﷺ سره د نکاح کولو نه پس ئے هغۀ ته دا غلام وبخلو، ددۀ ورور جَلهمه بن حارثه او ددۀ ترۀ ددۀ پسے ګرځیدل چا ورته ووئیل چه په مکه کښې یو سړی سره دے چه محمد نوم ئے دے. نو دوی راغلل رسول الله ﷺ سره ملاؤ شو، او دا ئے ووئیل چه زمونږ یو هلك چا راختولے او هغه ستا غلام جوړ شوے که تۀ مونږ سره هغه پریدے نو ښۀ به وکړے، پدے موقعه کښې زید بن حارثه موجود نۀ وو چرته تلے وو، نو رسول الله ﷺ ورته وفرمائیل چه زید بن حارثه له به اختیار ورکړو که ما سره پاتے کیدو نو تاسو به ئے په زوره نۀ بوځئ؛ او که تاسو سره په خپله خوښه تللو نو زۀ به ئے نۀ منع کوم. نو هغوی ووئیل چه دا خو د انصاف خبره دے وکړه.

(د هغوی ګمان دا وو چه په غلامئ کښې څوك چرته پاتے کیدل غواړی، خپل ورور او ترۀ سره ولے نۀ ځی) پدے کښې زید بن حارثه راغلو، تپوس ئے وترے وکړو دا ډیے څه دے؟ ورور، دا ډیے څه دے؟ ترۀ. ورته ئے ووئیل چه تا له ما اختیار درکړو چه ما سره پاتے کیږے او که واپس ځے. نو د هغه د رسول الله ﷺ سره فطرةً الله تعالیٰ ډیره مینه پیدا کړے وه، هغه ووئیل چه زما سیّده! داسے کور ما ته چرته نۀ ملاویږی کوم چه ستا دے، زۀ د دوی سره نۀ ځم بلکه تا سره پاتے کیدل غواړم. (حال دا چه رسول الله ﷺ لا پدے زمانه کښې رسول شوے هم نۀ دے او دے ئے د اخلاقو نه دومره متأثر وو)

نو پدے کار سره د رسول الله ﷺ هم ورسره مینه زیاته شوه، او په قریشو باندے راوو‌تو او اعلان ئے وکړو چه خبر شئ زید زما ځوی شو نو خلکو هغۀ ته زید بن محمد وئیل شروع کړل. دا رواج همداسے روان وو، پدے کښې رسول الله ﷺ د الله نبی هم شو او دۀ پرے ایمان راوړو او د هغه سره ئے ډیرے سفرے هم وکړے لکه طائف وغیره ته.

او دا ډیر پخوانے مسلمان دے. پدے کښې کله چه مدینے ته هجرت وشو نو هلته ئے ورله زینب بنت جحش رضی الله عنها په نکاح باندے د هغۀ د ورور نه وغوښتۀ نو هغه ووئیل

چه دا خو غلام دے مونږه ئے نهٔ ورکوو۔ قریشی زنانه څنګه یو غلام ته وادهٔ شی او بیا د رسول الله ﷺ د تره لور ده۔ نو الله روستو آیتونه نازل کړل چه ﴿وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَّلَا مُؤْمِنَةٍ إِذَا قَضَى اللهُ وَرَسُوْلُهٗ أَمْرًا أَنْ يَّكُوْنَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ مِنْ أَمْرِهِمْ﴾ چه الله او رسول یوه فیصله وکړه د مؤمن سړی او ښځے اختیار نشته)۔ هرکله چه دوی دا آیت واوریدو نو سمدست خبرے ته تیار شو، بس نکاح وشوه۔

پدے کښ د دواړو کور جوړ نشو، یو بل سره ئے مزاج ونهٔ لګیدو، نو زید بن حارثه رسول الله ﷺ ته راغلو چه اے د الله رسوله! زهٔ زینب له طلاق ورکوم۔ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: الله نه ویریږه! دا مهٔ طلاقوه۔ د رسول الله ﷺ سره پدے وخت کښ خطره پیدا شوه چه هسے نهٔ چه که دا ئے طلاقه کړی او الله ما ته حکم وکړی چه ته ئے په نکاح واخله نو دا خو ډیره سخته خبره ده، ټول خلك به وائی چه د رواج خلاف ئے وکړو او خپله اینګور ئے په نکاح واخسته نو الله د هغه د مزاج خلاف کار وکړو او همغه شان وشوه۔ نو پدے کښ منافقانو خبرے شروع کړے (او کافرانو په مکه کښ) دوه قسمه خبرے، یو دا چه دے خو خپله حرام او حلال بیانوی او بیا ئے د اینګور سره نکاح وکړه۔

او بعضو مؤمنانو ته هم شك پیدا شو او منافقانو ورله زور ورکړو چه پنځمه ښځه ئے وکړه۔ (او د څلورو نه خو زیادت نا روا دے) دا هم ډیر مشکل وختونه وو۔

نو الله تعالیٰ دا سورت نازل کړو چه پیغمبر له ډیرے ښځے روا دی او په اسلام کښ د متبنیٰ رواج نشته دا غلط رواج دے۔ او رسول الله ﷺ ته ئے وفرمایل چه خبرے مضبوطے کوه او د هیچا نه یره مهٔ کوه۔

ورسره یو بل رواج ئے هم رد کړو چه هغه د ظهار رواج وو چه تفصیلی احکام ئے د سورة المجادله په اول کښ راغلی دی۔ (مختصر دا چه یو سړی به خپلے ښځے ته وویل: [أَنْتِ عَلَيَّ كَظَهْرِ أُمِّيْ - ته په ما باندے زما د مور د شا په شان ئے۔ دے الفاظو سره به هغه همیشه دپاره حرامیدله نو الله دا رواج ختم کړو چه اول خو دا خبره مهٔ وایئ دا غلطه خبره ده او که بالفرض غلطه خبره دے وکړه نو د هغے علاج کفاره ده چه غلام آزادول، که هغه نهٔ وی نو شپیته روژے نیول دی او که د هغے طاقت نهٔ لری نو بیا شپیته مسکینانو ته طعام ورکول دی) او چونکه پدے رواج کښ په عربو باندے سخته تنګی وه نو الله تعالیٰ آسانی راوسته او پدے کښ اشاره ده چه په رسم او رواج کښ تنګی او حرج وی په خلکو لهذا دا ماتول پکار دی نو پدے آیت کښ اول مثال راوړی۔

پدے آیت کښ چه چا دا خبره کړیده چه په عربو کښ یو سړے وو او هغه به وئیل چه زما په یوه سینه کښ دوه زړونه دی، نو دا آیت د هغه په رد کښ راغلے نو دا هسے خبره ده۔ هیڅ حیثیت ئے نشته۔

بلکه دا مثال دے : دا مثال د ډیرو څیزونو سره لګیږی (۱) اول د توحید سره، لکه په یوه سینه کښ دوه زړونه نهٔ وی نو دغه شان په یو عالَم کښ دوه آلِهَه نشته۔ که دوه زړونه پیدا شی او دواړه صرف یوه خبره غواړی نو یو به بیکاره وی او که دواړه د دوو مخالفو خبرو حکم ورکوی نو یو انسان به په یو وخت کښ د دوه مخالفو څیزونو غوښتونکے وی، چه دا د هر شر او فساد باعث دے، او انسان به وچوی، یو به ئے یو طرفته راکاږی، او بل به ئے بل طرفته نو ژوند به ئے خراب شی۔ دغه شان که عالَم کښ دوه آلِهَه راشی نو نظام به خراب شی۔

(۲) د اِتباع رسول سره هم لګی : په یوه سینه کښ دوه زړونه شته نو په یو عالَم کښ به دوه مستقل امامان نهٔ وی، مطلقًا امام محمد رسول الله ﷺ دے، او نور امامان به د هغه مقتدیان وی۔ لکه په یو جمات کښ دوه مستقل امامان نهٔ وی چه په یو وخت دواړه خلك ځان پسے ودروی بیا به د تولو خلکو مونځونه خراب کړی، نو که چا وویل چه زهٔ به د فلانی پسے روان یم او نور خلك به د محمد رسول الله ﷺ پسے روانیږی نو دے به ځان له ایمان فاسد کړی۔ لکه په یو وخت کښ چا په جمات کښ دوه جَمعے شروع کړے د دویمے جمع والا مونځ فاسدیږی۔ نو د محمد رسول الله ﷺ امام نه علاوه به نور مستقل امامان نهٔ نیسے، دا صحیح ده چه اول صف ته ګوره چه څنګه خکته پورته کیږی، نو دغه شان امامانو او علماؤ ته به ګورے او د رسول الله ﷺ طریقه به زده کوے۔

(۳) د ظِهار سره داسے لګی : د یو سړی دوه زړونه نشته نو دغه شان یوه زنانه مور کیدے او ښځه کیدے نشی په نسبت سره یو سړی ته۔ ښځه خو مستفرشه وی، یو قسم بیعزتی ئے کیدے شی او د مور خو اکرام او احترام کیدے شی۔ دواړو کښ ډیر فرق دے۔

(٤) مُتبنیٰ سره هم لګی : یو بچے د دوه کسانو نشی کیدے چه ستا ډے هم حقیقی ځوی شی او د بل چا هم۔ پیدا ډے د حارثه نه وی او د محمد (ﷺ) ځوی ډے شی۔ یو تن د دوه کسانو حقیقی ځوی نشی کیدے۔

اُدْعِیَاءَ کُمْ: جمع د دَعِیٌّ ده، په خوله باندے بللے شوے ځوی، یعنی متبنیٰ۔ (په خوله ځوی جوړ کړے شوے / ځوی وئیلے شوے) البته یو تن ته د شفقت دپاره داسے وئیلے شی

چه اې بچیه، اې خوږیه ! لیکن په هغه باندې به د متبنیٰ احکام نهٔ جاري کیږي چه د هغهٔ ښځه ستا اِینګور شي یا د هغهٔ نه ستر مات کړي۔
بِأَفْوَاهِكُمْ: یعنی پدې باندې دلیل نشته، هسې د خولې بې حقیقته خبره ده، څکه چه یو قول په خولې سره وي او په زړه کښې نهٔ وي، هغه باطل وي۔
وَ اللهُ يَقُوْلُ الْحَقَّ : پدې کښې اشاره ده چه دا درې واړه خبرې عقلاً هم یقیني دي او د الله په شرع کښې هم صحیح دي۔
ادْعُوْهُمْ لِآبَائِهِمْ: پدې آیتِ کریمه کښې د متبنیٰ رواج رد کوي او د هغوي په باره کښې ایمان والو ته یو ادب بیانوي چه هر یو کس دې د هغهٔ پلار طرفته منسوب کړې شي، د الله په نیز د عدل او انصاف همدا تقاضا ده، اوکه د چا د پلار معلومات نهٔ وو نو ورور یا دوست پشان الفاظو سره دې را اوبللې شي۔ اوکه یو کس چالره په غلطئ سره د هغهٔ د پلار نه علاوه بل چا طرفته منسوب کړو نو دا به د الله په نیز د نیوکې قابل نهٔ وي۔ نیوکه به په دې باندې وي چه یو کس قصداً څوک د هغهٔ د پلار نه علاوه بل چاته منسوب کوي۔
بخاريؒ او مسلمؒ او نورو محدثینو د ابن عمر رضي الله عنه نه روایت کړې چه مونږ خلقو به د رسول الله ﷺ آزاد کړې غلام (زید بن حارثه) رضي الله عنه ته (زید بن محمد) وئیلو، تردې چه د قرآن کریم دا آیت نازل شو، او په څوې باندې د نیولې شوي شخص د طلاقې کړې ښځې سره وادهٔ کول جائز شو، نو رسول الله ﷺ د زید بن حارثه طلاقې کړې ښځې زینب بنت جحش سره وادهٔ اوکړو، دې دپاره چه د جاهلیت د زمانې غلط رواج ختم شي، لکه چه الله تعالیٰ ددې سورت په (۳۷) آیت کښې فرمایلي : ﴿ لِكَيْ لَا يَكُوْنَ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ حَرَجٌ فِيْ أَزْوَاجِ أَدْعِيَائِهِمْ إِذَا قَضَوْا مِنْهُنَّ وَطَرًا ﴾ (دې دپاره چه په مسلمانانو باندې د دوئ د متبنیٰ ګڼلو د ښځو په باره کښې په هیڅ طریقه تنګي پاتې نشي هر کله چه دوئ خپل غرض د هغوئ نه پوره کړي)۔
وَمَوَالِيْكُمْ: جمع د مَوْلیٰ ده، آزاد کړې شوي غلام ته وئیلې شي۔ او دارنګه دوست ته۔ یعنی مَوْلیٰ، دوست او (فَتَایَ) (اې زما هلکه !) لفظ استعمال کړه۔ او موالي لفظ ته راوړو اشاره ده چه مبتنیٰ به اکثر په غلامانو کښې وو۔
فِيْمَا أَخْطَأْتُمْ بِهٖ: څکه چه یو تن په یوه خبره عادت وي نو ډیر وخته پورې د هغهٔ د خولې نه هغه نهٔ غورزیږي لکه یو تن د (خدائې) په لفظ اموخته وي نو ددې د پریخودو

نه روستو ډیر وخت پورې د هغه خولې له غیر اختیاري راځي.

| اَلنَّبِیُّ اَوۡلٰی بِالۡمُؤۡمِنِیۡنَ مِنۡ اَنۡفُسِهِمۡ وَاَزۡوَاجُهٗۤ اُمَّهٰتُهُمۡ |
|---|
| نبي ډیر مهربان دې په مؤمنانو باندې د نفسونو د دوی نه او بیبیانې د هغه میندې د دوی |
| وَاُولُوا الۡاَرۡحَامِ بَعۡضُهُمۡ اَوۡلٰی |
| دي او رشته داران (خاوندان د خپلولۍ) بعض د دوی نه ډیر لائق دي (په میراث کښې) |
| بِبَعۡضٍ فِیۡ کِتٰبِ اللّٰهِ مِنَ الۡمُؤۡمِنِیۡنَ وَالۡمُهٰجِرِیۡنَ اِلَّاۤ اَنۡ |
| د بعضو نه په حکم د الله تعالیٰ کښې د مؤمنانو نه او مهاجرینو نه مګر دا چه |
| تَفۡعَلُوۡۤا اِلٰۤی اَوۡلِیٰٓئِکُمۡ مَّعۡرُوۡفًا ؕ کَانَ ذٰلِکَ فِی الۡکِتٰبِ مَسۡطُوۡرًا ﴿۶﴾ |
| کوئ تاسو خپلو دوستانو سره نیکي، دې دا (حکم) په کتاب کښې لیکلې شوې. |

**تفسیر:** په دې آیتِ کریمه کښې د نبي کریم ﷺ عظمت او د امهات المؤمنین قدر او مرتبه بیان شوې. په مسلمانانو دا لازم دي چه دوئ په تمامو دیني او دنیوي کارونو کښې نبي ﷺ په خپلو ځانونو باندې مخکښې اُولري. د خپل ځانونو نه زیات د هغهٔ سره محبت وکړي. د هغهٔ حکم ډې د دوئ په ذات باندې د دوئ د خپلو حکمونو نه زیات نافذ العمل وي، د هغهٔ حقونه ډې په خپلو حقونو باندې غوره کړي، د خپل ذات نه زیات ډې هغهٔ سره محبت کوي، او د هغهٔ په خاطر ډې خپل ځانونه قربان کړي او د هغهٔ د هر حکم تابعداري ډې اُوکړي، ځکه د دنیا او آخرت د تمامو نیک بختیانو همدا یو اځینئ سرچشمه ده. صحیح بخاري کښې د ابو هریره ﷛ نه روایت دې چه رسول اکرم ﷺ وفرمایل: ((زهٔ د هر یو مومن په دنیا او آخرت کښې د تمامو خلقو نه زیات حقدار یم)). ابو هریره ﷛ ووئیل: که چرې تاسو غواړئ نو دا آیت ولولئ: ﴿اَلنَّبِیُّ اَوۡلٰی بِالۡمُؤۡمِنِیۡنَ مِنۡ اَنۡفُسِهِمۡ﴾ الحدیث. (بخاري: ۲۳۹۹)

په بخاري او مسلم کښې د انس بن مالك ﷛ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل: ((په هغه ذات مې دې قسَم وي چه د هغهٔ په لاس کښې زما ساه ده! په تاسو کښې یو کس هغه وخته پورې مسلمان کیدې نشي تر څو پورې چه هغه د خپل ځان او مال، اولاد او د تمامو خلقو نه زیات ما سره محبت ونهٔ کړي)). (بخاري: ۱۴) مسلم (۱۱۷)

اَوْلٰى بِالْمُؤْمِنِيْنَ :١- اولیٰ معنیٰ مهربانه. یعنی ته په خان دومره مهربانه نهٔ ئے څومره چه رسول الله ﷺ په تا ډیر مهربان دے، نو پدے کښ اشاره ده چه هرکله تاسو باندے نبی مهربان دے نو هغه په تاسو باندے گران احکام نهٔ راوړی نو څکه د هغهٔ تابعداری وکړئ.

٢- دلته مضاف پټ دے اَىْ رِعَايَةُ النَّبِيِّ. او اولیٰ په معنیٰ د لائق سره دے. یعنی لحاظ ساتل د نبی کریم ﷺ ډیر لائق دی د ځانونو د مؤمنانو نه. او دا معنیٰ دلته زیاته ظاهره ده لکه دا معنیٰ په سورة التوبه آیت (١٢٠) کښ راغلے وه ﴿ وَلَا يَرْغَبُوْا بِاَنْفُسِهِمْ عَنْ نَّفْسِهٖ﴾ ځان سره به د هغهٔ د نفس نه زیاته مینه نکوی.

وَاَزْوَاجُهٗ اُمَّهٰتُهُمْ : د نبی بیبیانے د مؤمنانو میندے دی یو په ادب کښ لکه د خپلے مور نه به هم ورله زیات ادب کوی، دویم په تحریم النکاح کښ، د هغوی سره نکاح کول داسے حرام دی لکه د خپلے مور سره. دا د رسول الله ﷺ د شان د وجه نه، په اُمت باندے ئے د هغه بی بیانے حرامے کړیدی. لیکن د هغوی سره خِلوت او هغوی ته په پورته نظر سره کتل جائز نهٔ دی. او دا په میراث او ژوند کښ نهٔ دے، یعنی داسے نهٔ ده چه مونږ به ترے میراث وړو او داسے هم نهٔ ده چه بدعتیان وائی چه پیغمبر ژوندے دے څکه ئے د بیبیانو سره نکاح حرامه ده.

وَاُولُوا الْاَرْحَامِ بَعْضُهُمْ اَوْلٰى بِبَعْضٍ : یعنیٰ هرکله چه د نبی بیبیانے د امت میندے شوے نو داسے نهٔ ده چه د هغوی نه به میراث وړی یا به هغوی د امت نه میراث وړی بلکه رشته دار خلق د یو بل د میراث، د مهاجرینو او نورو مومنانو نه زیات حقدار دی.

شوکانیؒ لیکی چه د اسلام په شروع کښ به خلق د هجرت، د خپل مینځی ورورلیٔ او د معاهدو په بنیاد باندے د یو بل وارثان جوړیدل، کله چه دا آیت نازل شو نو دا حکم منسوخ شو، او وراثت صرف رشته دارانو سره خاص شو. او غیر رشته دارو مومنانو او مهاجرینو دپاره د صدقے، هدیه او وصیت پشان صورتونه باقی پاتے شول. او اشاره ده چه متبنیٰ به هم میراث نهٔ وړی او د خپل خوی په شان احکام به پرے نهٔ جاری کیږی.

فِىْ كِتٰبِ اللّٰهِ : یعنی د الله په حکم کښ.

مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ : ١- دا بیان د اُولُوا الْاَرْحَامِ دے. او مطلب دا دے چه اُولُوا الْاَرْحَامِ چه مؤمنان او مهاجرین دی دوی دے خپل مینځ کښ خپلو رشته دارو ته میراث ورکوی، او د پیغمبر بیبیانو ته دے ئے نهٔ ورکوی.

۲- یا د اَوْلٰی بِبَعْضٍ سره متعلق دے، یعنی خپلوان رشته داران ډیر لائق دی چه د یو بل میراث وسی په نسبت د نورو مؤمنانو او مهاجرینو، نو پدے سره به د هجرت او عقدِ موالات او عقدِ حلف په ذریعه د میراث حکم منسوخ وی لکه چه مخکښې بیان شو۔
اَنْ تَفْعَلُوا: یعنی دغه مهاجرین او نورو عقدونو والا خو د میراث مستحق نهٔ دی البته که تاسو خپلو دوستانو سره احسان کوئ نو بهتره ده۔ وصیت ورله وکړه، یا هدیه او تحفه ورکړه۔
كَانَ ذٰلِكَ فِي الْكِتَابِ مَسْطُوراً: یعنی دا احکام په لوح محفوظ کښې د مخکښې نه لیکلے شویدی چه داسے به کوو نو که دا حکم وران شی، نو د تقدیر خبره به بدله شی، او الله چه په تقدیر کښې یو شے ولیکلو نو هغه د حکمت نه ډک وی۔ لکه وګوره چه تا سره به خپلوان تکلیف تیروی، غم او درد کښې به درسره هغه شریك وی، او میراث به ئے بل څوك وړی، دا خبره د حکمة خلاف ده۔ خو اول کښې الله تعالیٰ دا کار جائز کړے وو د یو حکمة په بنیاد، هغه دا چه د مسلمانانو خپل مینځ کښې اُلفت پیدا شی۔

| وَإِذْ أَخَذْنَا مِنَ النَّبِيِّيْنَ مِيثَاقَهُمْ وَمِنْكَ وَمِنْ نُوحٍ |
| --- |
| او کله چه واخسته مونږ د پیغمبرانو نه وعده د دوی (په تبلیغ) او ستا نه او د نوح |
| وَإِبْرَاهِيمَ وَمُوسٰى وَعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ وَأَخَذْنَا مِنْهُمْ |
| او ابراهیم او موسیٰ او عیسی ځوی د مریم (علیهم السلام) نه او اخستے وه مونږ د دوی نه |
| مِيثَاقاً غَلِيظاً ﴿۷﴾ لِيَسْأَلَ الصَّادِقِيْنَ عَنْ صِدْقِهِمْ |
| وعده مضبوطه۔دے دپاره چه هغه تپوس اُوکړی د رشتینو نه د رشتیا وینا د هغوی |
| وَأَعَدَّ لِلْكَافِرِيْنَ عَذَاباً أَلِيماً ﴿۸﴾ |
| او تیار کړے ئے دے کافرانو لره عذاب دردناك۔ |

**تفسیر**: پدے کښې رسول الله ﷺ ته خطاب دے۔ او مقصد پکښې دا دے چه دعوت الی الله وکړه، تا نه به ددے په باره کښې تپوس کیږی، ځکه چه په عالَم الارواح کښې الله تعالیٰ تا نه ددے وعده اخستے ده نو د هغے تپوس به درنه کوی چه سرته دے رسولے ده او که نهٔ، لکه د نورو پیغمبرانو نه به هم داسے تپوس کیږی۔

مِيْثَاقَهُمْ: اَىْ بِالْبَلَاغِ. وعده پدے خبره وه چه دوی به خپلو قومونو ته د الله تعالیٰ دین او پیغام رسوی.

وَمِنْكَ وَمِنْ نُّوْحٍ: ددے پنځو ذکر ئے خصوصی وکړو ځکه چه دا مشران (یعنی اُولُوا الْعَزْمِ) پیغمبران دی.

وَاَخَذْنَا: دا ورسره ځکه وائی چه وعده کله استحبابی وی، یعنی ما سره وعده وکړئ چه دا کار (مثلاً تهجد) به کوئ، نو هغوی ووائی چه صحیح ده، او میثاقِ غلیظ دا دے چه انتهائی سخته وعده وی او په هغے باندے عمل افرض الفروض (غټ فرض) وی چه د هغے نه په خلاف کولو سره بنده هلاکیږی.

لِيَسْئَلَ: لام متعلق دے په (فَعَلَ) پورے. یعنی الله دا کار پدے وجه وکړو چه الله صبا له په قیامت کښې د دوی نه تپوس وکړی. او تپوس هله کیږی چه مخکښې ورته حکم وکړی.

الصّٰدِقِيْنَ عَنْ صِدْقِهِمْ: یعنی صادقانو نه به تپوس کوی چه اے صادقانو! تاسو صدق رسولے دے، او رشتیا مو ویلی دی او که نه، د صادقانو نه مراد پیغمبران دی او صدق د هغوی تبلیغ دے.

وَاَعَدَّ لِلْكٰفِرِيْنَ: دا ددے دپاره راوړی چه تاسو کله بیان وکړئ او د هغے نه روستو ځوك كفر کوی نو الله تعالیٰ به هغوی راګیروی تاسو په هغے باندے نهٔ رانیولے کیږئ.

| يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوا اذْكُرُوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ إِذْ جَاءَتْكُمْ جُنُوْدٌ |
|---|
| اے ایمان والو! یاد کړئ نعمت د الله تعالیٰ په تاسو کله چه راغلل تاسو ته لښکرے |
| فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيْحًا وَّجُنُوْدًا لَّمْ تَرَوْهَا وَكَانَ اللّٰهُ |
| نو راولیږله مونږ په دوی باندے هوا او داسے لښکرے چه نهٔ لیدلے تاسو هغه، او دے الله |
| بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرًا ﴿۹﴾ إِذْ جَاءُوْكُمْ مِّنْ فَوْقِكُمْ |
| په هغه عملونو چه تاسو ئے کوئ لیدونکے. کله چه راغلل دوی تاسو ته د بره طرف ستاسو |
| وَمِنْ أَسْفَلَ مِنْكُمْ وَإِذْ زَاغَتِ الْأَبْصَارُ وَبَلَغَتِ |
| نه او د کوز طرف ستاسو نه او کله چه کږے شوے سترګے او اُورسیدل |

| الْقُلُوبُ الْحَنَاجِرَ وَتَظُنُّونَ بِاللهِ الظُّنُونَا ﴿١٠﴾ هُنَالِكَ |
| --- |
| زړونه مرو ته، او گمانونه كول تاسو په الله باندې قسماقسم گمانونه۔ دغه وخت |
| ابْتُلِيَ الْمُؤْمِنُونَ وَزُلْزِلُوا زِلْزَالًا شَدِيدًا ﴿١١﴾ |
| ازمينت اوكړے شو په مؤمنانو باندې او اوجرقولے شو په جرقولو سختو سره۔ |

**تفسير**: پدے خطاب كښې مقصد دا دے چه د رسول الله ﷺ تابعدارى به كوئ فِى الْمَنْشَطِ وَالْمَكْرَهِ۔ (په خوشالئ او خفگان) هر حالت كښې۔ او د منافقانو په شان به نهٔ كيږئ چه دوى د اتباع دعوه كوى ليكن كله چه تكليف راشى بيا پټيږى او تښتى، لكه دا مقصد ددے واقعے دے۔

پدے واقعه كښې نور فوائد دا دى چه تاسو ته الله تعالىٰ دار الخلافه ذركړه او غلبے دركوى نو دا د الله تعالىٰ د نظام د نافذولو دپاره، داسے نهٔ چه دار الخلافه كښې به رسمونه او رواجونه او گندونه وى، نو د خلافت مقصد د رسول الله ﷺ طريقے نافذ كول دى او د جاهلانو گندونه دے ختم شى۔

نو ددے ځاى نه دوه خطابات دى ايمان والو ته په (٩) او (٢١) آيت كښې او په مينځ كښې ئے د مومنانو او د منافقانو د حال تقابل بيان كړے او د منافقانو ئے څوارلس قبائح بيان كړى او ايمان والو ته ئے په نصرت او غلبے سره بشارتونه وركړى په غزوهٔ خندق او غزوهٔ بنى قريظه كښې۔

او پدے واقعه كښې واقعه د خندق او احزاب ده۔

## د غزوهٔ خندق يا اَحزاب واقعه

د واقعے حاصل دا دے چه په پنځم كال د هجرت كښې يهوديان د مدينے نه خيبر ته وشړل شو نو دوى هلته يوه دسيسه جوړه كړه چه عرب په مدينه باندے د حملے دپاره راپورته كوو نو حيى بن اَخطب او بعض نور كسان لاړل، مكے والو ته ئے ووئيل چه دا سړے (محمد رسول الله ﷺ) ستاسو هم دشمن دے او زمونږ هم، په دهٔ باندے په شريكه حمله كوو، غطفان قبيلے له ورغلو، هغوى هم ورسره تيار شو او نور اعراب او اَحابيش ئے راپورته كړل تهول يو ځاى شو او د يو بے ليندے نه ئے د حملے اراده وكړه (لكه دا طريقه ده چه د حق پرست په مقابله كښې تول مبتدعين، او باطل پرست يو ځاى كيږى) هغوى د

حملے دپاره یوه خاص ورځ مقرر کړه، دلته عباس ﷺ چه په مکه کښې د رسول الله ﷺ د طرفنه د جاسوس په حیث وسیدو، هغه زر خبر ورکړو چه حمله دریاندے کیدو والا ده، رسول الله ﷺ ملګری راجمع کړل چه څه وکړو؟ ډیر غټ فوج راروان دے، نو سلمان فارسی ووېل چه زمونږ فارس والو باندے چه کله په یوه علاقه حمله کیږی نو مونږ خندق (ژوره کنده) کنو، نو دشمن په هغے باندے نشی راوړیدے (او په هغه زمانه کښې د تورو جنګ وو نو پدے طریقه کار کیدو) او دا طریقه عربو ته نهٔ ورتلله، نو مُثلّث شکل سره خندق کنستو باندے ئے حکم وکړو او لس کسانو ته ئے څلویښت ګزه علاقه ورکړه چه دومره ژوره کنده به کنئ چه سرے پکښې پټیږی او دومره کولاوه وی چه اس پرے نشی رادنګلے، پدے موده کښې په صحابه کرامؓ باندے ډیره سخته لوږه هم راغلے ده، جابر ﷺ پکښې د درے څلورو کسانو دپاره دعوت وکړو نو رسول الله ﷺ ټول فوج راوغوښتو او ټولو ته هغه لږ طعام کافی ورسیدو، او د رسول الله ﷺ معجزات پکښې رابښکاره شو (څکه چه د خطرے زمانه وه دے دپاره چه د صحابه کرامو ﷺ ایمانونه نور هم مضبوط شی) او پدے کار باندے ډیره موده ولګیده، پدے وجه د رسول الله ﷺ مختلف معجزات پکښې رابښکاره شو او پدے کښې به منافقان پټیدل، او بیا چه کله کفار راورسیدل نو هغهٔ وخت هم پټیدل. او رسول الله ﷺ پکښې خپله هم کار کولو، او خیټه پورے ئے د لوږے نه دوه کاڼړی تړلی وو.

د وخت په تیریدو سره د کفارو لس زره فوج راورسیدو او د مدینے نه ګیر چاپیره تاؤ شو، قریش په یو ځای کښې او غطفان په بل ځای کښې، او نورے قبیلے اشجع، او اسلم وغیره په نورو ځایونو کښې، د خندق دے پروګرام حیران کړل، نهٔ پوهیدل چه څه وکړی؟ ډیره موده تیره شوه، د جنګ شان نهٔ وو، کله کله به د خندق غاړے له راتلل مګر مسلمانان د هغے مخے ته پراتهٔ وو، هغوی به د راوړیدو اراده کوله خو دوی به په غشو ویشتل او په هغے کښې درے څلور کرته جنګونه هم لږ لږ شان وشول، بعض مشرکان ډیر تیز او بهادر وو نو هغوی دیخوا راواوړیدل لکه عمرو بن عبد وُدّ او عکرمه بن ابی جهل او دلته ئے سخته مقابله هم وکړه لیکن زبیر بن العوام او علی بن ابی طالب (رضی الله عنهما) ورغلل او دغه کسانو نه ئے څه قتل کړل لکه د علی بن ابی طالب ﷺ او د عمرو بن عبد وُدّ واقعه مشهوره ده چه علی د ۳۰ کالو وو او عمرو بن عبد ود د (۹۰) کالو وو، او په زغره ټول پټ وو سوئ د سترګو نه نو هغه ئے په خپل ذو الفقار توره سره په سترګو

کښې ووهو او مردارئے کړو، او بل طرفته عکرمه بن ابی جهل (چه دے وخت پورے ئے لا د رضی الله عنه لقب نهٔ دے ګټلے) وتښتیدو۔

پدے موده کښې د رسول الله ﷺ نه یوه ورځ د ماسپښین، مازیګر او ماښام مونځونه هم قضاء شول، او یوه ورځ ترے د مازیګر مونځ قضاء شو۔

پدے کښې یهودیانو بله دسیسه دا جوړه کړه چه په مدینه کښې د بنو قریظه ؤ د رسول الله ﷺ سره وعده ده دا به پرے ماته کړو نو حیی بن اخطب ورغلو او هغوی ته ئے وویل چه وعده ماته کړئ۔ هغوی وویل چه وعده نهٔ ماتوو، تاسو به صبا له وتښتئ او مونږ به پدے سری باندے خراب کړئ، هغوی وویل: نهٔ تښتو، او دے ختمیدو والا دے، آخر زور ئے پرے وکړو، هغوی وعده ماته کړه، دلته په مسلمانانو انتهائی ډیره سخته راغله، ګیرچاپیره مسلمانان د کافرو ترمینځ راګیر شو لکه د جرندے د دوه پلونو ترمینځ (او دا ډیر ګران کار وی چه دومره ډیر دشمنان د سړی نه تاو شی، دا ډیر لوی اعصابی جنګ وو) رسول الله ﷺ حکم وکړو چه تاسو لاړ شئ د بنو قریظه ؤ معلومات وکړئ چه آیا رشتیا هغوی وعده ماته کړیده، زبیر رضی الله عنه درے کرته لاړو، ورته ئے وویل که وعده ئے ماته کړے وه نو ماته پټ حال ووایه او که نهٔ وه ماته کړے نو ښکاره ووایه چه خلك خوشحاله شی۔ زبیر رضی الله عنه ورغلو تپوس ئے وکړو آیا تاسو وعده ماته کړیده؟ هغوی کنځل وکړل، خبر ئے راوړو چه وعده ئے ماته کړیده نو رسول الله ﷺ ډیر پریشانه شو او څادر ئے په سر راواچولو ډیر ساعت روستو ئے وفرمایل خوشحاله شئ الله تعالیٰ به مدد رالیږی۔ پدے کښې پنځلس ورځے تیرے شوے نو الله تعالیٰ هوا رالیږله او ملائك راغلل هغوی ته ئے په زړونو کښې رعب واچولو نو ابوسفیان اعلان وکړو چه مونږ تښتو، نو د روانیدو تیاری ئے وکړه، رسول الله ﷺ حذیفه بن الیمان رضی الله عنه ولیږلو چه لاړ شه د دوی معلومات راوړه، هغه د شپے ورغے، او د خوشحالئ خبر ئے راوړو چه هغوی په تښتیدو دی، قریش چه کله وتښتیدل نو غطفان هم رخے ووهلے او په تیښته شو،

پدے کښې بنو قریظه پاتے شول نو کله چه دا غزوه ختمه شوه او رسول الله ﷺ راواپس شو، نو جبریل علیه السلام راغلو او رسول الله ﷺ ته ئے حکم وکړو چه د بنو قریظه ؤ د جنګ دپاره ځان تیار کړئ۔ نو په هغوی ئے حمله وکړه ځکه چه وعده ئے ماته کړے وه، او الله تعالیٰ د مشرکانو او د بنو قریظو په مابین کښې مخالفت پیدا کړو۔ د نعیم بن مسعود اشجعی په وجه چه دا مسلمان شو او رسول الله ﷺ ته راغلو چه په ما باندے خدمت

واچوه، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: ته يو شخص يې، ته به څه وکړې خو لاړ شه او خلکو کښې زمونږ د طرفنه پوټ واچوه چه د يو بل سره د دوی مدد کټ شي. نو هغه لاړو بنو قريظه ؤ ته ورېل چه دا خلك تبنتيدو والا دي، كه دوی په تاسو باندې جنګ کولو نو دوی نه په ګانړه کښې سړي وغواړئ بيا راغلو احزاب والو ته يې ورېل چه بنو قريظه خو د رسول الله ﷺ سره په وعده کلك دي، هغوی تاسو نه ګانړه غواړي ورله ورئې نکړئ. کله چه قريشو بنو قريظه ؤ ته ورېل چه جنګ شروع کړئ نو هغوی ورېل مونږ له به سړي په ګانړه کښې راکوئ نو دوی ورېل چه نعيم صحيح خبره کړې وه، دوی رشتيا ګانړه غواړي، او نبي ﷺ ته يې ورکوي.

پدې طريقه الله تعالیٰ د هغوی بې محبتي پيدا کړه. نو دلته رسول الله ﷺ بنو قريظه محاصره کړل لکه روستو يې واقعه راځي او تول يې راکوز کړل او ذبح يې کړل، اُوه سوه کسان وو او د هغوی زنانه او ماشومان يې غلامان او وينځې کړلې او د عربو نه په بهر خلکو يې خرڅ کړل چه عربو کښې پاتې نشي.

او په هغوی کښې بعض کسان يې د مسلمانانو سره د احسان کولو په وجه همداسې پريخودل او نور ماران لړمانان يې قتل کړل.

دا واقعه په صحابه کرامو تيره شوې وه او الله تعالیٰ يې ورته بيرته رايادوي پدې کښې د دوی او د نور امت تربيت کوي چه تاسو دا کار وکړو داسې وکړئ، او داسې مهٔ کوئ.

عَلَيْهِمْ رِيحًا : مجاهدؒ وائي دا باد صبا وو چه په احزاب والو باندې د خندق په ورځ راوليږلې شو تردې چه د دوی کټوئ يې ګوزار کړې او د دوی د خيمو موږې يې ويستل او دا هوا د مشرق د طرف نه رالوتلې وه او دا ډيره سخته يخه وه.

وَجُنُودًا لَّمْ تَرَوْهَا : دا ملائك وو چه زر کسان وو، جنګ يې ونکړو ليکن د خلکو په زړونو کښې يې رعب اچولو. مفسرين ليکي چه دې ملائکو د خيمو لرګي او د هغې مزې وشوکول او د دوی اُورونه يې مړهٔ کړل او کټوئ يې ورله اُلټه کړې او د دوی اَسونه يې خپل مينځ کښې ورننويستل او رعب يې پرې واچولو، او د دوی د لښکرو په غاړو کښې به يې د تکبير آوازونه کول تردې چه د هر قوم مشر به خپل قوم ته آواز وکړو چه اې خلکو! زما خوا ته راشئ نو کله چه به راجمع شو، هغوی ته به يې وئيل (اَلنَّجَاءَ النَّجَاءَ) ځان وباسئ، تښتئ، نو بغير د جنګ نه يې شکست وخوړو.

مِنْ فَوْقِكُمْ : دا د وادي نه بره طرف دې، او مشرقي جانب دې، او دې طرف نه غطفان

راغلي وو چه مشر ئے عُيينه بن حِصن وو او هوازن وو چه سردار ئے عوف بن مالك او اهل نجد وو چه سردار ئے طليحه بن خويلد آسدي، او د دوى سره عوف بن مالك يو ځاى شوے وو، او بنو نضير هم۔

وَمِنْ اَسْفَلَ مِنكُمْ : دا د وادي لاندے طرف جانب مغربي دے د طرف د مکے نه او ددے طرف نه قريش او د هغوى ملګرى احابيش وو چه سردار ئے ابوسفيان بن حرب وو او ابو الاعور سُلَمى او د هغه سره حيى بن اخطب په يهودو د بنو قريظه ؤ کښې د خندق د مخے نه راغلے او د هغوى سره عامر بن الطفيل وو۔

زَاغَتْ الْاَبْصَارُ: يعني سترګے د هر شي نه واوړيدے صرف دشمن ته ئے کتل چه د هر طرفنه ورته راروان وو۔ يا معنىٰ دا ده چه د سختے يرے او هيبت او حيرانتيا په وجه سترګے کروغے او کږے شوے۔

وَبَلَغَتِ الْقُلُوبُ الْحَنَاجِرَ: دا کنايه ده د سخت خوف نه۔ يعني بزدل شو او ډير پکښې بے صبره شو۔ او کله چه يره سخته شي نو پړپوس وپرسيږي نو پدے سره زړهٔ مرئ ته راپورته شي۔

وَتَظُنُّونَ بِاللهِ الظُّنُونَا : حسنؒ وائي چه منافقانو پکښې ګمانونه کول چه اوس به د محمد (ﷺ) او د هغهٔ د ملګرو بيخ وباسي۔ او مؤمنانو ويل چه الله به مونږ سره مدد کوي۔ بعض وائي دا خطاب صرف منافقانو ته دے چه دوى قسماقسم ګمانونه وکړل، چا ويل چه که دا د الله رسول وے نو مدد به ئے ورله راليږلے وے، چا ويل چه مدد به کله راځي همدا ئے وخت دے۔ چا ويل چه مونږ سره ئے دهوکه کړيده۔ پدے کښې الله تعالىٰ مؤمن او کافر ښکاره کولو۔ د حسنؒ قول غوره دے۔

ابْتُلِيَ الْمُؤْمِنُونَ: دا هم اشاره ده سختوالي د دغه حالت ته ليکن داسے سختے د مؤمنانو مخلصانو دپاره ابتلاء وي، عذاب نهٔ وي او په ابتلاء سره د دوى درجے پورته کولے شي۔ بيا د ابتلاء اثر په زړه او باطني قوتونو باندے وي څکه چه دا اعصابي جنګ وو۔ او د زلزال اثر په ظاهري اندامونو باندے وو ليکن مؤمن په دواړو حالتونو کښې ثابت قدم وي او د خپل دين نه بل طرف ته انتقال نکوي۔

وَإِذْ يَقُولُ الْمُنَافِقُونَ وَالَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ مَّرَضٌ

او کله چه وئيل منافقانو او هغه کسانو چه په زړونو د هغوى کښې مرض (شك) وو،

| مَّا وَعَدَنَا اللّٰهُ وَرَسُولُهٗ إِلَّا غُرُورًا ﴿۱۲﴾ وَإِذْ قَالَتْ |
|---|
| وعده نهٔ ده کړے مونږ سره الله او رسول د هغه مکر دهوکه. او کله چه اُووئیل |
| طَّائِفَةٌ مِّنْهُمْ يَا أَهْلَ يَثْرِبَ لَا مُقَامَ لَكُمْ فَارْجِعُوا وَيَسْتَأْذِنُ |
| یو ډلے د دوی نه اے مدینے والو! نشته طاقت ستاسو نو واپس شئ او اجازه غوختله |
| فَرِيقٌ مِّنْهُمُ النَّبِيَّ يَقُولُونَ إِنَّ بُيُوتَنَا عَوْرَةٌ وَمَا هِيَ بِعَوْرَةٍ |
| یو ډلے د دوی نه د نبی (ﷺ) نه وئیلے یقیناً کورونه زمونږ خالی دی او نهٔ دی دا خالی |
| إِنْ يُرِيدُونَ إِلَّا فِرَارًا ﴿۱۳﴾ |
| نهٔ غواړی دوی مګر تیخته. |

**تفسیر:** پدے کښې د منافقانو حال بیانوی په دغه واقعه کښې او هغوی ته رټنے دی او د هغوی بد صفتونه دی. د منافقانو نه مراد عبد الله بن اُبی ابن سلول او ددهٔ ملګری دی. او د ﴿وَالَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ مَّرَضٌ﴾ نه مراد هغه خلق دی چه د هغویٔ په زړونو کښې د شك اوشبهے بیماری وه، او هغه څوك چه هغویٔ ته د ایمان د کمزورئ په وجه سره په دے سختو حالاتو کښې د مخلص مسلمانانو په خلاف په خپل زړهٔ کښې د ختمولو موقع ملاؤ شوے وه. یا ددے نه مراد هغه خلك وو چه په دین کښې ئے هیڅ بصیرت نهٔ لرلو او منافقانو به دوی ته په شبهاتو اچولو سره دوی خپلو ځانونو ته مائل کول غوښتل. دے ټولو خلقو ووئیل چه الله او د هغهٔ رسول چه مونږ سره د فتح او نصرت کومه وعده کړے وه، هغه صرف زړهٔ له د تسلی ورکولو خبره وه. مفسرین لیکی چه دا خبره تقریباً اویا (۷۰) منافقانو کړے وه.

إِلَّا غُرُورًا: دا په (تَظُنُّونَ بِاللّٰهِ الظُّنُونَا) کښې د منافقانو د ګمان تشریح ده چه هغوی داسے ګمان وکړو. د الله وعدے ته ئے دهوکه ووئیله.

وَإِذْ قَالَتْ طَّائِفَةٌ مِّنْهُمْ: د منافقانو یو ډلے د مسلمانانو د عزم او ثابت قدمئ کمزوری کولو دپاره ووئیل چه د خندق او د سلع غرهٔ په مینځنی ځائے کښې پاتے کیدو سره تاسو د خپل بال بچ حفاظت نشئ کولے، دے وجے نه تاسو مدینے ته واپس لاړ شئ.

دا ډله د بنو سالم منافقان وو. (مقاتل) څینی وائی: دا اَوس بن قیظی او د هغه ملګری وو. او سُدیٔ وائی دا ابن سلول او د هغه ملګری وو.

يَثْرِبَ : دا هغه ځمکې نوم دے په کوم ځای کښې چه مدينه وه. علامه سهيليؒ ليکي چه دا نوم ورته پدے وجه ورکړے شو چه دے ته د عمالقه ؤ نه يو سړے چه نوم ئے يثرب بن عميل وو، راغلے وو، دلته اُوسيدلے وو. او بعض وائي : يثرب خپله د مدينے نوم دے. بيا رسول الله ﷺ دا نوم په مدينه باندے بدل کړو، دے دپاره چه څوك ددے نه بد فالي ونه نيسي، ځکه چه د يثرب په معنیٰ کښې د ملامتيا معنیٰ پرته ده.

لَا مُقَامَ لَكُمْ : يعني تاسو دپاره ځای د پاتے کيدو نشته، يا مصدر دے يعني ستاسو ايساريدل نشته پدے فوج کښې، مراد ترے نه طاقت د مقابلے دے. ډير کافران راغلي دي د دوی مقابله نشي کيدے. يا مطلب دادے چه تاسو په دے دين د محمد باندے نشئ پاتے کيدے، دا اُوس ختميږی نو ددے دين نه واپس شئ.

فَارْجِعُوا : يعني ددے ځايه نه يا د قتال نه واپس شئ يا د ايمان نه کفر ته واپس شئ.

وَيَسْتَأْذِنُ فَرِيقٌ مِّنْهُمُ النَّبِيَّ : او څه خلقو د بنو حارثه او بنو سلمه ؤ نه د نبی کريم ﷺ نه اجازت غوښتلو چه زمونږ کورونه بيخي خالي دي د سړو نه او غير محفوظ دي، څوك به ترے غلا وکړي او يره ده چه دوی به حمله وکړي او زمونږ بال بچ به تباه کړي، نو الله تعالیٰ د دوی تکذيب وکړو او وے فرمايل چه د دوی د اجازت غوښتلو اصل وجه دا نه ده چه ګنے د دوی کورونه غير محفوظ دي، بلکه دوی په څه بهانے سره د ميدانِ جنګ نه تښتيدل غواړي.

دا د منافقانو طريقه ده چه رسول الله ﷺ دشمن ته پريدی او خپله تښتي او دا څومره بې غيرتي ده چه خپل مشر دشمن ته پريدی او خپله وتښتي.

عَوْرَةٌ : هرويؒ وائي : هر هغه ځای دے چه محفوظ او مستور (پټ) نه وي، او عورت په اصل کښې په آبادیٔ وغيره کښې نيمګړتيا او نقصان ته وائي چه په هغے باندے د غل داخليدل ممکن وي.

| وَلَوْ دُخِلَتْ عَلَيْهِم مِّنْ أَقْطَارِهَا ثُمَّ سُئِلُوا |
| --- |
| او که چرته داخل کړے شي (لښکرے) په دوی باندے د طرفونو د مدينے نه بيا اُوغوښتلے |
| الْفِتْنَةَ لَآتَوْهَا وَمَا تَلَبَّثُوا بِهَا إِلَّا يَسِيرًا ﴿١٤﴾ |
| شي د دوی نه شرك خامخا راخي به هغے ته، او ايسار به نه شي دوی په هغے کښې مګر لږ |

| |
|---|
| وَلَقَدْ كَانُوا عَاهَدُوا اللَّهَ مِنْ قَبْلُ لَا يُوَلُّونَ الْأَدْبَارَ وَكَانَ عَهْدُ اللَّهِ |
| او یقیناً دوی وعده کړې وه د الله تعالیٰ سره مخکښې چه نهٔ به اړوی شاګانے او ده وعده د الله |
| مَسْئُولًا ﴿١٥﴾ قُلْ لَنْ يَنْفَعَكُمُ الْفِرَارُ إِنْ |
| تعالیٰ تپوس کړے شوے۔ اُووایه ! هیچرے فائده به درنکړی تاسو ته تیختہ، که |
| فَرَرْتُمْ مِنَ الْمَوْتِ أَوِ الْقَتْلِ وَإِذًا لَا تُمَتَّعُونَ |
| اُوتختیدلئ تاسو د مرګ نه یا د قتل نه او په دغه وخت کښې به تاسو له به فائدے |
| إِلَّا قَلِيلًا ﴿١٦﴾ قُلْ مَنْ ذَا الَّذِي يَعْصِمُكُمْ مِنَ اللَّهِ |
| درنکړے شی مګر لږه زمانه۔ اُووایه ! څوك دے هغه چه بچ کړی تاسو د الله د عذاب نه |
| إِنْ أَرَادَ بِكُمْ سُوءًا أَوْ أَرَادَ بِكُمْ رَحْمَةً وَلَا |
| که اراده اُوکړی په تاسو باندے د تکلیف یا اراده اُوکړی په تاسو د رحم کولو او نهٔ |
| يَجِدُونَ لَهُمْ مِنْ دُونِ اللَّهِ وَلِيًّا وَلَا نَصِيرًا ﴿١٧﴾ |
| به مونده کوی دوی د ځانونو دپاره سوئ د الله نه هیڅ دوست او نهٔ مددګار۔ |

**تفسیر:** پدے آیت کښې د منافقانو نور دوه بد صفتونه بیانوی، اشاره ده چه لکه چه دوی د میدان جهاد نه تختیدلو ته تیار دی، نو داسے دوی د دینِ توحید نه واپس کیدو ته تیار دی۔

**وَلَوْ دُخِلَتْ:** یعنی که دا لښکرے په دے منافقانو باندے د مدینے د ښار نه څلور واړو طرفونو ته داخلے شی او حمله وکړی او لوټ مار شروع کړی، او بیا دے منافقانو ته دغه دشمنان ووائی چه تاسو د اسلام نه انکار وکړئ، او دوباره شرك او کفر قبول کړئ نو دا خلق به د ډرے هومره هم ځپه نیولی نشی، او فوراً به د خپل کفر اعلان وکړی۔

**وَمَا تَلَبَّثُوا بِهَا إِلَّا يَسِيرًا:** ١- یعنی دوی به ایسار نشی په کلمه د کفر وئیلو سره مګر لږ او هغه دا چه که د چا نه یرېږی نو لږ په آرام به ئے قبول کړی او که د چا نه نهٔ یرېږی نو سمدست ئے قبلوی۔

٢- یا مطلب دا دے چه بیا به دوی په مدینه کښې ایسار نشی مګر لږ۔ یعنی الله به ئے هلاك کړی، او دے رسول ته به د دوی د وخکلو حکم وکړی۔ (حسن، سدی، فراء،

قتیبیؒ) اول مطلب ظاهر دے، اکثرو مفسرینو ذکر کړیدے۔

وَلَقَدْ كَانُوا عَاهَدُوا اللهَ: پدے کښې د منافقانو بل بد صفت دا دے چه دوی عهد مات کړیدے۔

الله تعالیٰ وفرمایل چه دویٔ خو د الله سره لوظ او وعده کړے وه چه دویٔ به دشمن ته خپله شا نهٔ ورګرځوی۔ دے نه مراد د بنو حارثه او بنو سلمه قبیلو خلق دی، چه دویٔ د بدر په جنګ کښې شریك شوی نهٔ وو، او مسلمانانو ته چه هلته کوم فتح او نصرت حاصل شوے وو، ددے په آوریدو سره به ئے وئیل چه که آینده کوم جنګ شو نو مونږ به په کښې خامخا برخه اخلو، لیکن د احزاب په جنګ کښې د دویٔ راز را ښکاره شو چه د دویٔ ددے خبرو د رشتیاؤ سره هیڅ تعلق نهٔ وو۔

وَكَانَ عَهْدُ اللهِ مَسْئُولًا : پدے کښې د مخکنی عهد تاکید کوی او دفع د وهم کوی، که څوك ووائی چه دوی به ددے عهد خلاف پدے وجه کړے وی چه ددے پوره کول به څه واجب نهٔ وو، نو الله فرمائی چه د الله ددے وعدے د پوره والی تپوس به کیږی۔

قُلْ لَّنْ يَّنْفَعَكُمُ: پدے کښې بل زجر دے منافقانو ته په بے لوظیٔ او تښتیدو سره۔

مِنَ الْمَوْتِ اَوِ الْقَتْلِ: د مرګ او د قتل نه مراد ځایونه د مرګ او قتل دی لکه د میدان جهاد نه تختیدل، یا د ځای د طاعون او د وباء نه تختیدل دا دواړه ګناهونه دی۔

وَاِذًا: او په دغه وخت کښې چه کله تاسو د جهاد نه وتختئ نو تاسو ته به بیا هم څه ډیرے زمانے پورے فائدے درنکړے شی، وجه دا ده چه څوك د مرګ او د جهاد نه تیخته کوی نو الله پرے بل ځای کښې مرګونه راولی، کوم کسان چه مخکښې جنګ کښې روان وی، هغه اکثر نهٔ مری او څوك چه شا ته شاته کیږی هغه مری۔

یا مطلب دا دے چه که چرے تاسو د مرګ نه تیخته کویٔ او تاسو ته ددنیا ژوند څه وخته پورے فائدے ملاؤ شی، نو دا فائدے اخستل به لږے وی او لږه موده پس به ختمیږی، او د آخرت فائدے همیشه دی، نو د ډیرو فائدو د جهاد نه ځان محروم کول په لږو فائدو باندے دا لویه بے عقلی ده۔

قُلْ مَنْ ذَا الَّذِيْ : الله تعالیٰ دویٔ ته د خپل نبی ﷺ په ژبه دا هم ووئیل :که الله تعالیٰ تاسو له ماتے درکول وغواړی، یا تاسو هلاکول وغواړی، یا په بل کوم عذاب کښې تاسو آخته کول وغواړی، نو د هغهٔ نه سویٔ به تاسو څوك بچ کړی، یاکه په تاسو رحم کوی او تاسو له زرخیزی او کامیابی او صحت او عافیت درکول غواړی، نو دا څوك بندولے

شي. حقيقت دادے چه د الله تعالىٰ نه سوئ د بندګانو دپاره نۀ څوک يار شته اونۀ مددګار. دوئ دپاره د پناهئ ددے ځاى نه علاوه د پناهئ بل ځاى نشته.

| قَدْ يَعْلَمُ اللّٰهُ الْمُعَوِّقِيْنَ مِنْكُمْ وَالْقَآئِلِيْنَ لِاِخْوَانِهِمْ |
|---|
| يقيناً پيژنى الله تعالىٰ منع کونکى (د جهاد نه) ستاسو نه او ويونکى ورونو خپلو ته |
| هَلُمَّ اِلَيْنَا وَلَا يَاْتُوْنَ الْبَاْسَ اِلَّا قَلِيْلًا ﴿۱۸﴾ اَشِحَّةً عَلَيْكُمْ |
| راشئ مونږ ته او نۀ راځى دوى جنګ ته مګر لږ. بخل کونکى دى په تاسو باندے |
| فَاِذَا جَآءَ الْخَوْفُ رَاَيْتَهُمْ يَنْظُرُوْنَ اِلَيْكَ تَدُوْرُ اَعْيُنُهُمْ |
| نو کله چه راشي يره وينے به تۀ دوى لره چه ګورى به تا ته چه اوړى به سترګے د دوى |
| كَالَّذِىْ يُغْشٰى عَلَيْهِ مِنَ الْمَوْتِ فَاِذَا ذَهَبَ الْخَوْفُ |
| پشان دهغه سړى چه بيهوشي راغلے وى په هغه باندے د مرګ نو کله چه لاړه شي يره |
| سَلَقُوْكُمْ بِاَلْسِنَةٍ حِدَادٍ اَشِحَّةً عَلَى الْخَيْرِ اُولٰٓئِكَ |
| تکليف درکوى تاسو ته په ژبو تيزو سره، حرص کونکى دى په مال باندے دغه کسانو |
| لَمْ يُؤْمِنُوْا فَاَحْبَطَ اللّٰهُ اَعْمَالَهُمْ وَكَانَ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرًا ﴿۱۹﴾ |
| ايمان نۀ دے راوړے نو برباد کړل الله تعالىٰ عملونه د دوى او دے دا کار په الله باندے آسان. |
| يَحْسَبُوْنَ الْاَحْزَابَ لَمْ يَذْهَبُوْا وَاِنْ يَّاْتِ الْاَحْزَابُ |
| ګمان کوى دوى په ډلو د کافرانو باندے چه هغوى نۀ دى تلى او که چرته راشي دغه ډلے |
| يَوَدُّوْا لَوْ اَنَّهُمْ بَادُوْنَ فِى الْاَعْرَابِ يَسْاَلُوْنَ |
| نو خوښوى (دا منافقان) چه ارمان دے چه دوى د يره وے په بانډو کښې تپوس نے کولے |
| عَنْ اَنْبَآئِكُمْ وَلَوْ كَانُوْا فِيْكُمْ مَّا قٰتَلُوْا اِلَّا قَلِيْلًا ﴿۲۰﴾ |
| ستاسو د خبرونو نه او که چرته وے دوى په تاسو کښې (نو) جنګ به نۀ وو کړے دوى مګر لږ. |

**تفسير:** مخکښې د دوى تيښته د جهاد نه ذکر شوه، نو اوس د نورو خلکو د جهاد نه منع کول ذکر کوى. او پدے کښې زورنه او يره ورکول دى.

د منافقانو څهٔ کسان به په پټه سره د مسلمانانو سره ملاویدل او داسې خبرې به ئې کولې چه په دې سره به د دوئ همتونه د جنګ کولو نه کمزوري کیدل، وئیل به ئې چه د ابوسفیان او د هغهٔ د لښکر په مقابله کښې د محمد ﷺ او د هغهٔ د ملګرو څهٔ حیثیت دے، د هغوئ یو جهرپ هم نشي برداشت کولې.

دې وجې نه هغهٔ سره خپل ځان په خطره کښې مهٔ اچوئ او زمونږ خواته راشئ او د سورو والا وُنو او میوو نه خوندونه واخلئ. الله تعالیٰ د دوئ په باره کښې وفرمایل چه دا خلق د مرګ د ویرې نه جنګ ته ډیر کم نزدې کیږي. او هغه هم صرف د ریاء او سُمعت دپاره. او که دا کم حاضریدل د الله دپاره وې نو دا به ډیر وې.

د بعضِ مفسرینو وینا ده چه یهودیانو به داسې خبرې منافقانو سره کولې، او دوئ به ئې د نبي کریم ﷺ او د مخلصو مسلمانانو سره د ملګرتیا نه بندول.

اَشِحَّةً عَلَيْكُمْ : پدې آیت کښې د منافقانو نور پنځه عیبونه بیانوي.

اَشِحَّةً: جمع د شحیح ده، د شُحّ نه دے، سخت بخل او حرص ته وائي. او دا د مخکښې آیت سره متعلق دے چه دوي تاسو د جهاد نه منع کوي او پخپله ئې هم نهٔ کوي دا ددې وجه نه چه دوي بخل کوي ستاسو په فائدو او خیر باندې یعنې چه تاسو ته څه فائده او خیر ونهٔ رسیږي. ځکه د شح معنیٰ ده عَدَمُ اِرَادَةِ الْخَيْرِ لِلْغَيْرِ - د چا دپاره د خیر اراده نهٔ ساتل. دوي کښې هیڅ خیرخواهي نهٔ وه. دارنګه دوي سره مالونه وو او هغه به ئې په غریبانو مؤمنانو نهٔ خرچ کول.

فَاِذَا جَاءَ الْخَوْفُ : پدې کښې د دوي بزدلئ ته اشاره ده، د خوف نه مراد دا دے چه کله د قتال او د حملې خبرې واوري.

كَالَّذِيْ يُغْشٰى عَلَيْهِ مِنَ الْمَوْتِ : یعنې لکه د زنکدن په وخت کښې چه د سرې سترګې بے اختیاره حرکت کوي، او نظرئې کیږې بیږې شي.

سَلَقُوْكُمْ : سلق په ژبه سره چا ته ښکاره سخته خبره کول دي. فراءٓ وائي : آذَوْكُمْ بِالْكَلَامِ. یعنې تاسو ته په خبرو سره تکلیف او ضرر درکوي. (فتح البیان)

د دوي تیرې ژبې دي چه په مسلمانانو باندې ردونه کوي او د دوي غیبتونه کوي، چه فلانئ وتښتیدو او فلانی داسې کار وکړو، او شکست د هغه د وجه نه راغلو. او کله به وائي چه په غنیمت کښې مونږ له هم برخه راکړئ ځکه چه مونږ هم تاسو سره وو او پدې کښې به سختي کوي. لکه روستو وریسې وائي چه ﴿ اَشِحَّةً عَلَى الْخَيْرِ ﴾ د مال په

حاصلولو باندے ډیر حرص کوی۔ (نو ځکه داسے تیزی کوی)۔
بعض علماؤ د سَلَقُوْكُمْ سین د استقبال دپاره او لَقُوْكُمْ ئے د لقاء او ملاقات نه اخستے دے
او معنیٰ ئے دا کړیده (اِسْتَقْبَلُوْكُمْ) زردے چه دوی به تاسو سره ملاویږی۔ (فتح البیان)
مگر اول غوره دے۔
**اَشِحَّةً عَلَى الْخَيْرِ**: سخت بخل کونکی او حرص کونکی دی په مال باندے، د مال په
حاصلولو دارنګه د مال په لګولو باندے۔ / یا دوی کښ خیر ډیر کم دے۔
**يَحْسَبُوْنَ الْاَحْزَابَ**: کله چه ډلے واپس وتښتیدے نو مدینه کښ ایسار او مدینے ته
تښتیدلی منافقانو ته وویل شو چه ډلے خو لاړے وتښتیدے نو دوی د ډیرے بزدلئ د
وجه نه وویل دا چرته کیدے شی، ترڅو چه مونږه ئے ختم کړی نۀ یو، هغوی چرته
تښتی، هغوی راغلی د همدے دپاره دی چه مدینه به ختموی۔ د الله په مدد ئے گمان هم
نۀ وو۔
یا مطلب دادے چه دوی دا گمان لرلو چه قریش او غطفان وغیره په خپل معسکر کښ
باقی پاتے دی، او شکست ئے نۀ دے خوړلے نو دوی مدینے ته راوتښتیدل چه چرته ختم
مو نکړی۔ دومره بزدلی، رعب او دهشت او حیرانتیا کښ اخته وو۔ (فتح البیان)
**وَاِنْ يَّاْتِ الْاَحْزَابُ**: یعنی کله چه احزاب راغلل نو په دوی کښ بعض کسانو د
مؤمنانو سره شرکت وکړو په نا خبرئ د حالاتو نه او که چرے دوباره احزاب راغلل نو دوی
دومره لوی بزدله دی چه دوی به د ډیرے یرے نه مدینه هم پریږدی، او باندو ته به لاړ شی
او ستاسو په باره کښ به تپوسونه کوی چه آیا محمد (ﷺ) ئے قتل کړوا وکه نۀ، آیا
صحابه کرامو ﷺ ته ئے شکست ورکړو او که نۀ۔ یعنی د جنگ میدان ته د حاضریدو نه
عاجز دی او دا نۀ خوښوی۔
**يَسْاَلُوْنَ عَنْ اَنْۢبَآئِكُمْ**: دا تپوسونه په غلط نیت او د مسلمانانو په وهلو باندے د
خوشحالی ښکاره کولو دپاره وو، ورنه هسے د مسلمانانو د خبرونو تپوس کول بد نۀ
دی۔
**مَا قٰتَلُوْٓا اِلَّا قَلِيْلًا**: یعنی که تاسو کښ دوی موجود وے نو دوی به جنگ ډیر کم
کولے، یعنی د قومیت د غیرت یا د ریاء او سمعت یا د شرم نه د یرے د وجه نه۔ د هیڅ
ثواب اراده ئے نشته، نۀ ورته دا کار د الله تعالیٰ حکم ښکاره کیږی۔

| لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَنْ |
|---|
| یقیناً شته تاسو لره په باره د رسول الله ﷺ کښې نمونه د تابعدارئ خائسته هغه چا لره |
| كَانَ يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللَّهَ كَثِيرًا ﴿۲۱﴾ |
| چه امید (عقیده) لری د الله تعالیٰ او د ورځ روستنئ او یادوی الله تعالیٰ ډیر۔ |

**تفسیر:** دا څلورم خطاب دے مؤمنانو ته او پدے کښې تاکید دے په تابعدارئ د نبی کریم ﷺ باندے او ددے خطاب مقصد دا دے چه ته څنګه مؤمن ئے چه د الله رسول په ځان سخته تیروی او ته تربے روستو کیږے، آیا ته الله او قیامت نه منے، رسول الله ﷺ جنګ ته ځی او خپله تکلیف تیروی، خپله خندق کنی او لوږه تیروی نو تاسو ئے هم په ځان تیره کړئ، بیا خبره عامه ده، یواځے د جهاد سره متعلق نه ده، نبی کریم ﷺ عبادت کوی نو تاسو به ئے هم کوئ، هغه د بی حیائی، د حرامو نه ځان ساتی، تاسو به ئے هم ساتئ، هغه په یوه طریقه لباس اچوی نو تاسو به ئے هم په هغه طریقه اچوئ، ددے وجه نه دا آیت به اصحابو د رسول الله ﷺ په عامو ځایونو کښې پیش کولو۔

سعید بن یسارؒ د ابن عمر ﷺ سره په سفر روان وو، د وتر مانځه دپاره د سورلئ نه کوز شو، ابن عمر ﷺ ورته وویل چه ته چرته ورك شوے؟ هغهٔ وائی: ما وویل زهٔ د صبا راختلو نه یریدم نو وترو ته کوز شوم۔ هغهٔ ورته وفرمایل [أَلَيْسَ لَكَ فِي رَسُولِ اللَّهِ ﷺ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ] (آیا ستا دپاره په رسول الله ﷺ کښې ښکلے اقتداء نشته؟) ما وویل: ولے نه، هغه وفرمایل: [إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ ﷺ كَانَ يُوتِرُ عَلَى الْبَعِيرِ] رسول الله ﷺ خو په سفر کښې وتر په سورلئ باندے کول۔ بخاری (۹۹۹) (مسلم: ۱۶۴۹)

معلومیږی چه مؤمن به د رسول الله ﷺ د هیڅ طریقے نه نفرت نکوی او نهٔ به هغے ته بد ګوری او نهٔ به هغے پسے خبرے کوی لکه بعض خلك رفع الیدین ته اشارے وائی او کله ورته د اسونو لکئ خوزول وائی او کله پینځو پورته کولو ته اُونه څور کول وائی۔ او د سنتو تابعدارئ ته لامذهبی وائی۔

رسول الله ﷺ فرمائی: [أَنَا أَعْلَمُكُمْ بِاللَّهِ وَأَتْقَاكُمْ لَهُ] زهٔ تاسو نه الله ډیر پیژنم او د هغهٔ نه ډیر یریږم، نو زهٔ چه یو کار کوم تاسو د هغے نه ځان ولے اُوچت ګنړئ۔ لکه په روژه کښې د ښځے ښکلول جائز دی، بعض خلك ددے نه نفرت کوی، په سفر کښې روژه ماتول

جائز دي، بعض خلك ترے نفرت كوي، رسول الله ﷺ جمع بين الصلاتين په سفر كښې كړے، او كله په حضر كښې هم، د ماښام مانځه نه مخكښې ئے دوه ركعاتو ته ترغيب وركړيدے، او بعض خلك ددے نه نفرت كوي او وائي چه دا زمونږ په مذهب كښې نشته، د دوي مذهب د څه نه جوړ دے؟! آيا د پيغمبر مذهب ددوي مذهب نهٔ دے؟! بيا دا عجيبه اسلام دے۔

په جورابو باندے ئے مسحه كړيده، په سفر كښې ئے سنت پريخوستي دي، دا سے عام احكام واخله۔ او دا آيت د روزمره زندګئ د ټولو احكامو سره لګي چه پيغمبر څنګه نكاح، څنګه واده، څنګه جنازه او تعزيه وغيره كړيده هغه شان به كولے شي۔

بيا الله تعالىٰ په دے آيت كښې درے قيدونه ذكر كړيدي، يعني دا كار هغه خلك كولے شي چه په هغوي كښې درے قيدونه او صفتونه راشي۔

اُسْوَةٌ : اسم مصدر دے د اِئْتِسَاء نه لكه قُدْوَةٌ د اِقْتِدَاء نه دے۔ په معنىٰ د اقتداء او تابعدارئ سره۔ اَىْ قُدْوَةٌ صَالِحَةٌ۔ اقتداء ښائسته، برابره۔

اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ : اقتداء كله په بد كار كښې وي مګر د رسول الله ﷺ هر كار ښائسته دے، نو څكه د هغهٔ اقتداء هم ښائسته ده۔ او دا جمله خبريه ده چه په معنىٰ كښې ئے امر پروت دے۔ يعني ښائسته اقتداء د رسول الله ﷺ وكړئ په ټولو كارونو د ژوند كښې۔ ښائسته اقتداء دا ده چه په هر كار كښې وكړے شي او پوره وكړے شي۔

فِيْ رَسُوْلِ اللهِ : ددے نه مراد محمد رسول الله ﷺ دے او دا اِضافت عهدي دے۔

لِمَنْ كَانَ : يعني دا اقتداء كونكي به څوك وي؟ او د رسول الله ﷺ په تابعدارئ باعث درے خبرے دي۔ اول : د الله تعالىٰ اُميد او بل د قيامت اُميد او بل د الله ډير ذكر كول۔ د الله اُميد دادے چه د الله تعالىٰ نه د خيرونو حاصلولو اُميد ئے وي چه الله تعالىٰ به ماله ډير خيرونه راكړي۔ د قيامت د خيرونو اُميد دا دے چه په هغه ورځ به ما ته امن او سكون ملاؤ شي، او بيا به جنت راكړے شي۔ او ددے درواړو مناسبت د اقتداء سره څه دے؟ نو دا خبره په مثال سره واضحه كيږي۔ يو بادشاه دے د هغهٔ سره ډير خير دے، څوك چه ورشي ډير مال وركوي، هر قسم اكرام ئے كوي، او حاجت ورله پوره كوي، او دغه بادشاه لوي هم دے او مهربان او سخي هم دے، په يوه علاقه كښې وي، او دغه بادشاه ته ځان رسول سخت وي، نو يو تن به ددے پسے ګرځي او واسطه به ګوري، چا ورته وويل چه دلته يو ګورنر شته هغه له ورشه د هغه په واسطه به بادشاه ته ورسيږے، نو دے لاړ شي

هغه گورنر ته ووائی چه ما بادشاه ته ورسوه چه زما حاجت پوره کړی. هغه ورته ووائی چه صحیح ده خو چه زهٔ درته څه وایم هغه به کوې، نو ورشه سپینے جامے واچوه څکه چه دغه بادشاه سپینے جامے خوښوی، عطر په ځان ولګوه، ګیره دې خرئیلے ده، دا لږه راوړده کړه، او ځان ښه برابر کړه څکه چه د هغه ملاقات دپاره دا شرطونه دی، نو دے ووائی چه ښه جی! هغه ورته وائی فلانی ورځے له راشه، سهار وختی څلور بجے راپاڅه، الغرض هغه چه ورته څه یادوی نو دے ئے طاعت کوی او خبره ئے منی څکه چه بادشاه ته ئے رسوی نو بس هغه ترے مخکښې او دے ورپسے روان شی، هغه ته وائی چه زهٔ کیناستم تهٔ به هم کینے چه زهٔ پاڅم ته به هم پاڅیږے، او چه زهٔ څه کوم هغه کوه. نو دے د هغه سره تړلے وی، د هغه نه دا تپوس هم نهٔ کوی چه دلته ولے ودریږے او ولے کینے او ولے خوب کوے. او په ما دے دا کارونه ولے وکړل؟ نو پدے مینځ کښې ئے دغه شخص بادشاه ته ورسوی او هغه ورله هرڅه ورکړی. دا د پوهے دپاره بعینه د الله تعالیٰ او د رسول مثال دے. الله تعالیٰ بادشاه دے د هغه سره هر خیر شته، او ستا دا عقیده وی چه الله خیرونه لری او بندګانو ته ئے ورکوی او بیا دے د الله تعالیٰ د عظمت عقیده وی چه الله تعالیٰ ډیر لوی شان والا دے، خو اُوس الله ته رسیدل ګران دی، مونږ کوم ځای ته ورشو چه د هغه نه فائدے واخلو، دا پته مونږ ته نهٔ وه نو پدے کښې رسول الله ﷺ الله تعالیٰ مونږ ته راوخودو چه ددے شخص پسے روان شئ، دا به تاسو ته الله تعالیٰ وښائی، نبی کریم ﷺ سرہ د الله طرفته هم رسوی او جنت ته هم. نو یو سړے چه د الله اُمید لری او د جنت امید لری نو هغه به د رسول الله ﷺ د هرے خبرے تابعداری کوی څکه چه دا الله تعالیٰ ته او جنت ته د رسولو واسطه ده، که هغه وائی کینه، کینے به او که هغه وائی ګیره پریده، پینځے اُوچتے کړه او دا دا کارونه وکړه نو بس تهٔ به هغه منے، خلاف به نهٔ کوے، د هغهٔ نه به تپوس هم نهٔ کوے چه دا ولے؟

(پدے وجه په سنت نبوی باندے به هیڅکله دا اعتراض نکوی چه دا ولے داسے وشو او ولے شویدی؟) څوک چه د سنت په باره کښې ولے ولے وائی دا نهٔ الله منی او نهٔ آخرت منی او نهٔ د محمد رسول الله ﷺ تعظیم او اکرام ئے په زړه کښې شته.

او چا چه د محمد رسول الله ﷺ د سنتو سره مینه وه او د هغے تابعداری ئے کوله، معلومیږی چه ددهٔ په زړه کښې د الله تعظیم دے او دے آخرت هم منی.

د یو تن چه الله ته فکر هم نشته او نهٔ د هغه خیرونه منی، جنت نهٔ منی نو هغه به د

رسول الله ﷺ څه تابعداري وکړي.

وَذَكَرَ اللهَ كَثِيراً : ددې معنىٰ دا ده چه الله تعالىٰ ئې ډیر یاد کړیدې، پدې کښې اشاره ده چه ددې بنده په زړه کښې د خپل رب ډیر لوی عظمت دې، د هغه نه نۀ غافل کیږي. او الله ورته ډیر لوی ښکاره کیږي پدې وجه ئې ډیر یادوي. ځکه چه کله ستا په زړه کښې د الله تعالىٰ عظمت او هیبت راغلو نو دا به غواړې چه زۀ اُوس دې الله ته ورسیږم نو واسطه به ګورې او هغه د الله تعالىٰ رسول دې. نو د دغه رسول به ډیره تابعداري کوې ځکه چه دا تا دغه عظیم ذات ته رسوي.

مثلاً که ستا په زړه کښې د یو بادشاه تعظیم او عظمت نۀ وي او هغه په یوه علاقه کښې وي او شل وزیران ووائي چه بادشاه په فلانی ځای کښې دې که د هغه ملاقات له ورځې نو راځه نو تۀ د هغوي په خبره باندې هیڅ پرواه نۀ کوې ځکه چه ددې بادشاه نه نۀ تۀ څه طمع لرې او نۀ ترې یریږې، تۀ به وائې چه خپل کار به کوي، زۀ ئې څه کوم. نو د هغه د سفیرانو او وزیرانو خبره به هم نۀ منې.

بله **فائده** : دې سورت کښې د ذکر لفظ به زیات راځي، ددې دوه حکمتونه دي، یو دا چه په ذکر د الله سره په زړه کښې د الله تعالىٰ محبت او تعظیم راځي او کله چه د الله سره محبت او تعظیم پیدا شو نو بیا د رسول الله ﷺ تابعداري پکښې راځي. دویمه وجه دا ده چه پدې سورت کښې د رواج رد زیات شویدې او دا قانون دې چه کله د یو رسم رد وشي نو په علاقه کښې انتشار او شور وشغب پیدا شي او په بیټکونو کښې مختلف قسم تبصرې پیدا شي نو الله فرمائي چه په داسې وخت کښې به خپل رب زیات یادوې.

| وَلَمَّا رَاَى الْمُؤْمِنُوْنَ الْاَحْزَابَ قَالُوْا هٰذَا مَا وَعَدَنَا |
|---|
| او هر کله چه اُولیدلې مؤمنانو ډلې د کافرانو وې وئیل دا هغه شې دې چه وعده ئې کړیده |
| اللهُ وَرَسُوْلُهٗ وَصَدَقَ اللهُ وَرَسُوْلُهٗ |
| مونږ سره الله تعالىٰ او رسول د هغه، او رښتیا وئیلی الله او رسول د هغه |
| وَمَا زَادَهُمْ اِلَّا اِيْمَانًا وَّتَسْلِيْمًا ﴿۲۲﴾ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ رِجَالٌ |
| او زیات نکړو دوی لره (دې خبرې) مګر ایمان او تابعداري کول. بعض د مؤمنانو نه سړي |

| صَدَقُوا مَا عَاهَدُوا اللّٰهَ عَلَيْهِ فَمِنْهُم مَّنْ |
|---|
| چه رښتيني كړې ئې ده هغه وعده چه كړې ئې ده د الله تعالىٰ سره نو بعض د دوى نه هغه دي |
| قَضٰى نَحْبَهٗ وَمِنْهُم مَّنْ يَنْتَظِرُ وَمَا بَدَّلُوا |
| چه پوره ئې كړو حاجت خپل او بعض هغه دي چه انتظار كوى او دوى نهٔ دے بدل كړے |
| تَبْدِيْلًا ﴿٢٣﴾ لِيَجْزِيَ اللّٰهُ الصَّادِقِيْنَ بِصِدْقِهِمْ |
| (دين) په بدلولو سره۔ دے دپاره چه بدله وركړى الله تعالىٰ رښتينو ته د رښتيا د هغوى، |
| وَيُعَذِّبَ الْمُنَافِقِيْنَ إِنْ شَاءَ أَوْ يَتُوْبَ عَلَيْهِمْ |
| او عذاب وركړى منافقانو ته كه اُوغواړى يا مهربانى اُوكړى په دوى باندے |
| إِنَّ اللّٰهَ كَانَ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿٢٤﴾ |
| يقيناً الله دے بخنه كونكے رحم كونكے۔ |

**تفسير**: د غزوهٔ احزاب په موقع د يهودو او منافقينو حالت بيانولو نه پس اُوس د مخلصو مومنانو كيفيت بيانولے شى، چه كله دوئ د كافرانو لښكر د هر طرف نه راتلونكے وليدهٔ، نو دائے وويل چه زمونږ رب خو ددے خبر مونږ ته د مخكښ نه راكړے وو چه كله مونږ د هر طرف نه راګير كړے شو، او زمونږ اضطراب او پريشانى آخر سرته ورسيږى، په دے وخت كښ به مونږ د خپل رب نه مدد غواړو او د هغهٔ مخے ته به ژړا او زارى كوو، نو د هغهٔ مدد به راشى او مونږ ته به فتح او نصرت حاصل شى۔

الله تعالىٰ په سورت بقره (٢١٤) آيت كښ فرمايلى: ﴿ أَمْ حَسِبْتُمْ أَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَأْتِكُمْ مَّثَلُ الَّذِيْنَ خَلَوْا مِنْ قَبْلِكُمْ ﴾ (آيا ستاسو دا ګمان دے چه جنت ته به لاړ شئ، حالانكه اوسه پورے په تاسو باندے هغه حالات نهٔ دى راغلى كوم چه ستاسو نه په مخكنو خلقو راغلى وو)۔ او نبى كريم ﷺ هم خبر وركړے دے چه اول به مسلمانان وازمائلے شى، بيا به الله د دوئ مدد كوى او دوئ ته به غلبه حاصليږى۔

هٰذَا مَا وَعَدَنَا اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ: هذا كښ اشاره ده دغه وخت او دغه حال ته كوم چه په (١١) آيت كښ ذكر شو۔ چه الله او رسول به وئيل چه امتحان به راځى نو دا اُوس د امتحان وخت دے۔

Scanned by CamScanner

وَصَدَقَ اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ: د الله او د هغهٔ د رسول خبر رشتین ښکاره شو، چه د دشمن فوج تیتو پره شو او په غیر د جنګ نه مسلمانانو ته فتح او نصرت حاصل شو. او الله او رسول رشتیا وئیلی دی چه هغوی وئیلی دی چه په امتحان کښې ستاسو ایمان زیاتیږی او امتحان کښې ستاسو بیشماره فائدے دی مونږ له دے ته تینګیدل پکار دی.

د ایمان فائده دا ده چه په سخت تکلیفی وخت کښې به ستا پکار راځی لکه د مرګ په وخت او د مصیبت په وخت کښې. او د منافقت او د ګناهونو ضرر دا دے چه په سخت وخت کښې به تهٔ راګیرېږے او پریشانه کیږے به.

وَمَا زَادَهُمْ اِلَّآ اِيْمَانًا وَّتَسْلِيْمًا : (زَادَ) کښې ضمیر قول ته راجع دے. یعنی دے وینا سره د دوی ایمان او تابعداری نوره هم زیاته شوه.

یا ددے موقعے نه چه مسلمانانو ته کومے پریشانئ راغلے او د منافقانو خطرناك کردار مخے ته راغے، په دے ټولو خبرو سره د مسلمانانو په ایمانونو کښې اضافه وشوه، او دوئ د الله تعالیٰ د تقدیر مخے ته غاړه کیښوده، او په صبر او لمدو سترګو سره ئے دا برداشت کړل. ایمان د مؤمن پدے وخت کښې پدے طریقه ډیریږی چه دوی دا یقین کوی چه زما الله شته، د هغه دپاره به لړه سخته او مشقت تیر کړو، دے کښې خیر دے.

دا آیت ښکاره دلیل دے چه ایمان کښې ډیروالے راځی. نو کوم علماء چه د ایمان د زیادت قائل نهٔ دی د هغوی قول ددے آیت د ظاهر نه خلاف دے.

ایمان ئے په الله تعالیٰ ډیر شو او تسلیم (انقیاد/ تابعداری) د رسول الله ﷺ وشوه.

مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ: اُوس د مؤمنانو صفت او دوی ته زیرے بیانوی چه دوی پداسے اعصابی جنګ کښې د صبر او استقامت نه کار واخستو او دوی چه د الله تعالیٰ سره د صبر او ثابت قدمئ کومه وعده کړے وه، په دے کښې دوئ رشتینی ثابت شو، دوئ د رسول اکرم ﷺ سره جهاد وکړو، نیك عمل ئے وکړو او د ګناهونو نه بچ پاتے شول.

مفسرین لیکی چه ددے نه مراد خو یا د مدینے هغه انصار دی چه هغوئ په بیعة العقبه کښې په هر حال کښې د رسول الله ﷺ سره د ملګرتیا وعده کړے وه، یا هغه صحابه کرام دی چه هغوئ نذر منلے وو چه که دوئ ته د رسول الله ﷺ په ملګرتیا کښې د جنګ موقع ملاؤ شوه، نو ثابت قدم به پاتے کیږی او د تیښتے لاره به نهٔ اختیاروی. چنانچه د دوئ نه خو ځینے د اُحد په جنګ کښې پکار راغلل لکه حمزه، مصعب بن عمیر او انس بن النضر (رضی الله عنهم) او خپل روح ئے شاباسی ته وسپارهٔ، او څوك چه بچ شول لکه

عثمان بن عفان، طلحه او زبیر وغیره (رضی الله عنهم) دویٔ د الله د فتح او نصرت او د هغهٔ په لاره کښې د شهادت انتظار کولو، او دویٔ چه د خپل رب سره کوم لوظ او وعده کړے وه په دے کښې ئے هیڅ بدلون رانهٔ وستلو او نهٔ ئے د منافقانو غونتے وعده ماته کړه، چه دیته ددے سورت په (۱۵) آیت کښې اشاره شوے، چه دے منافقانو ددے نه مخکښې د الله سره وعده کړے وه چه دویٔ به د جنګ په میدان کښې دشمن ته شا نهٔ ورګرځوی۔

صَدَقُوا: اَیْ اَکْمَلُوا وَاَتَمُّوا: دوی خپله وعده کامله او پوره کړه۔

نَحْبَهٗ: نحب په لغت کښې نذر ته وئیلے شي چه د هغے د پوره والي فیصله شوې وي۔

قَضٰی نَحْبَهٗ: اَیْ اَوْفٰی بِنَذْرِهٖ۔ یعنې خپل نذر ئے پوره کړو، بیا دا کنایه وي د موت نه، یو سړے چه مړ شي خلك وائي: قَضٰی نَحْبَهٗ۔ یعنې خپل نذر ئے پوره کړو۔ یعنې مړ شو۔

او نَحْب کله حاجت ته هم وئیلے شي او د آرزو موندلو ته هم۔ بعض مسلمانان شهیدان شو۔

وَمَا بَدَّلُوا تَبْدِیْلًا: اَیْ وَمَا بَدَّلُوا وَعْدَهُمْ۔ یعنې دوی خپله وعده نهٔ ده بدله کړے۔

او دے جمله کښې ډیر عموم دے یعنې دوی د الله تعالیٰ دین او د رسول الله ﷺ تابعداری هیڅ قسمه بدله نهٔ کړه معلومه شوه چه صحابه کرامو هیڅ قسم دین نهٔ دے پریخودے او کوم خلك چه مرتد شویدی نو هغه صحابه کرام نهٔ وو بلکه هسے برائے نام مسلمانان وو۔

لِیَجْزِیَ: لام د عاقبت دے او دا متعلق دے د (صَدَقُوا) پورے یا د (زَادَهُمْ) پورے یا د (مَا بَدَّلُوا) پورے یا د محذوف پورے (وَقَعَ جَمِیْعُ مَا وَقَعَ) (دا هرڅه چه وشو) ددے دپاره چه الله رشتینو ته د هغوی د رشتیاؤ بدله ورکړی۔

الْمُنَافِقِیْنَ: ددے نه مراد هغه خلك دي چه د هغوی عمل د صحابه کرامو د عمل خلاف وو۔

یَتُوْبَ عَلَیْهِمْ: یعنې توفیق د توبے ورکړی چه د منافقت نه توبه ویاسی۔

| وَرَدَّ اللّٰهُ الَّذِیْنَ کَفَرُوْا بِغَیْظِهِمْ لَمْ یَنَالُوْا |
|---|
| او واپس کړل الله تعالیٰ هغه کسان چه کافران دي په غصے خپلے سره، حاصل ئے نکړو |
| خَیْرًا وَکَفَی اللّٰهُ الْمُؤْمِنِیْنَ الْقِتَالَ وَکَانَ اللّٰهُ قَوِیًّا |
| هیڅ فائده او بچ کړل الله تعالیٰ مؤمنانو لره د جنګ کولو نه او الله تعالیٰ دے قوت والا |

| عَزِيزًا ﴿٢٥﴾ وَاَنْزَلَ الَّذِيْنَ ظَاهَرُوْهُمْ مِّنْ اَهْلِ الْكِتَابِ مِنْ صَيَاصِيْهِمْ |
|---|
| زورور- او راوے لیږل هغه کسان چه مدد ئے کړے وو د هغوی سره د اهل کتابو نه د قلعه |
| وَقَذَفَ فِيْ قُلُوْبِهِمُ الرُّعْبَ فَرِيْقًا تَقْتُلُوْنَ |
| ګانو د هغوی نه او وے غورزولو په زړونو د دوی کښې رعب (یره) یوه ډله تاسو وژله |
| وَتَاْسِرُوْنَ فَرِيْقًا ﴿٢٦﴾ وَاَوْرَثَكُمْ اَرْضَهُمْ وَدِيَارَهُمْ |
| او قید کوله تاسو بله ډله- او په میراث کښې ئے درکړه تاسو ته زمکه د هغوی او کورونه |
| وَاَمْوَالَهُمْ وَاَرْضًا لَّمْ تَطَئُوْهَا |
| د هغوی او مالونه د هغوی او داسے زمکه چه تاسو نۀ ده پائیمال کړے (قدم نۀ دے |
| وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرًا ﴿٢٧﴾ |
| ایخودے تاسو) او الله تعالیٰ دے په هر شی باندے قدرت- |

**تفسیر:** د غزوهٔ احزاب باقی واقعه او په رسول الله ﷺ باندے چه د الله کوم احسان وشو، هغه بیانیږی، چه الله تعالیٰ د هواء او د ملائکو د فوج په ذریعه د کفارو لښکر داسے ووهلو چه هغوئ د غم او غصے د وجے نه چاؤدل، ځکه چه د هغوئ جنګی تیاریٔ او د تمامو عرب قبائلو په مدینه باندے د چپاؤ کولو زبردست سازش ناکام پاتے شو، نۀ ئے په مدینه حمله وکړے شوه او نۀ کوم مالِ غنیمت د هغوئ لاس ته ورغے- او خلکو ته هم وشرمیدل چه سره د دومره ډیر والی او تیاریٔ نه او د اوږد سفر برداشت کولو نه ناکام راواپس شول- الله تعالیٰ د دوئ تمام جنګی چلونه ناکام جوړ کړل، او مسلمانانو ته د جنګ کولو ضرورت پاتے نشو- دے وجے نه رسول اکرم ﷺ به وئیل: [لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ، صَدَقَ وَعْدَهٗ وَنَصَرَ عَبْدَهٗ وَعَزَّ جُنْدَهٗ وَهَزَمَ الْاَحْزَابَ وَحْدَهٗ، فَلَا شَيْءَ بَعْدَهٗ] (الله نه سوئ بل هیڅوك معبود نشته، چه هغهٔ خپله وعده رشتینے وښودله، او هم هغهٔ د خپل بنده مدد وکړو، او خپل لښکر له ئے عزت ورکړو، او د کافرانو تمامو لښکرو له ئے یواځے ماتے ورکړه، ځکه چه د هغهٔ دپاسه هیڅ شے نشته)- (بخاریؒ، مسلمؒ)-

او ددے نه روستو رسول الله ﷺ وفرمایل: [اَلْآنَ نَغْزُوْهُمْ وَلَا يَغْزُوْنَا، نَحْنُ نَسِيْرُ اِلَيْهِمْ] دے نه روستو به مونږ په دوی باندے حملے کوو او دوی به په مونږ باندے حملے نشی

کول)۔ (بخاري في المغازي باب ۲۹)۔
وَكَفَى اللّٰهُ الْمُؤْمِنِيْنَ: اَىْ بِاِنْزَالِ الْجُنُوْدِ وَاِرْسَالِ الرِّيْحِ۔ يعنى الله كافى شو د مؤمنانو د طرفنه په ملائكو او د هوا په راليږلو سره۔ او د هغوى په زړونو كښې په رعب اچولو سره۔
كه نۀ وى نو دومره ډيره پريشانى وه چه رسول الله ﷺ انصار راوغوښتل او هغوى ته ئے ووېل كه تاسو غواړئ چه غطفان قبيلے سره به صلح وكړو چه د مدينے د يو كال كجورے به وركړو دے دپاره چه دوى د احزاب والو نه واپس شى۔ نو پدے كښې سعد بن معاذ او سعد بن عباده رضى الله عنهما وفرمايل : اے د الله رسوله ! كه دا د الله حكم وى نو مونږ تيار يو او كه زمونږ دپاره خبره كوے نو مونږ دے ته نۀ تيار يو، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : په تاسو شفقت كول غواړم، سعدينو ووېل چه دوى زمونږ نه په جاهليت كښې هم يوه كجوره نۀ ده خوړلے مگر هله چه ميلمانۀ به وو نو اوس په اسلام كښې ئے څنگه وركړو۔ نو وگوره د الله رسول په وخت د ضرورت او د كمزورتيا كښې كافر ته ټيكس او جزيه وركوى، ليكن بعض خلك پدے خبرو نۀ پو هيږى۔ پدے وجه د ضعف او د قوت حالت دواړه يو شان گرځوى۔

## غزا د بنو قريظه

وَاَنْزَلَ الَّذِيْنَ ظَاهَرُوْهُمْ مِّنْ اَهْلِ الْكِتَابِ: اُوس د بنو قريظه ؤ سره قتال بيانوى۔ د غزوۀ احزاب په موقع بنو قريظه يهودو خيانت وكړو، وعده ئے ماته كړه او د عربو كافرانو سره يوځاى شو، د همدوئ حال بيانيږى، چه چونكه دوئ بے لوظى وكړه او د عربو كافرانو تائيد ئے كړے وو، دے وجے نه مسلمانانو د غزوۀ احزاب نه روسته دوئ راگير كړل، كله چه رسول الله ﷺ د خندق نه راواپس شو، غسل ئے كولو نو پدے كښې جبريل عليه السلام د نورو ملائكو سره راغلو چه په كوڅو كښې ئے غبار جوړ كړے وو، رسول الله ﷺ ته ئے وفرمايل: تا خو وسله كيخوده او مونږ لا نۀ ده ايخودے، څه وكړو؟ وے فرمايل : بنو قريظه ؤ سره جنگ كول دى۔ نو رسول الله ﷺ سمدست بهر راووتو او ملگرو ته ئے اعلان وكړو: [لَا يُصَلِّيَنَّ اَحَدُكُمُ الْعَصْرَ اِلَّا فِىْ بَنِىْ قُرَيْظَةَ] په تاسو كښې دے هيڅ يو تن د مازيگر مونځ نكوى مگر په بنو قريظه ؤ كښې يعنى هغوى ته ورشئ۔ پدے كښې د مازيگر د مانځه وخت په دوى باندے په لاره كښې راغلو نو چا ووېل چه مونځ كوو او د

رسول الله ﷺ مقصد د مانځه قضاء کول نهٔ دی بلکه په جلتئ سره هلته ځان رسول دی، او چا ووئیل چه د پیغمبر حکم دے چه د بنی قریظه نه بغیر بل ځای مونځ مهٔ کوئ نو قضاء دے شی، لهذا هغوی قضاء مونځ وکړو.

بیا رسول الله ﷺ ته شکایت وشو، نو رسول الله ﷺ دواړو ته هیڅ ونهٔ وئیل، ځکه چه دواړه ډلے مجتهدین وو، په لاره کښ چه چا مونځ وکړو دوی په حدیث کښ تاویل وکړو، او چا چه مونځ هلته ورسولو نو هغوی د حدیث په ظاهر باندے عمل وکړو. ددے نه معلومه شوه چه کوم علماء په یوه مسئله کښ اجتهاد وکړی او خطاء شی نو الله تعالیٰ ئے نهٔ راګیروی.

رسول الله ﷺ مخکښ لاړو، د بنی قریظه علاقه د مسجد قباء شا ته وه. کله چه رسول الله ﷺ او د هغه لشکر جرار بنی قریظه ؤ ته ورسیدو نو بنو قریظه ئے محاصره کړل هغوی خپلو قلعه ګانو ته ننوتل، پنځه ویشت ورځو پورے دا محاصره جاری وه.

(فتح البیان)

پدے کښ د هغوی مشر کعب بن اسد خپلو کشرانو ته ووئیل چه مونږ محاصره شوی یو، یو د درے خبرو باندے عمل وکړئ، یا خو به ایمان راوړو او تاسو ته بنه معلومه ده چه دا محمد رسول الله ﷺ د الله حق رسول دے، دنیا به مو بنه شی او آخرت هم. (دا رایه ورله ډیره بنه وه لیکن بد بخته وو) هغوی انکار وکړو، دویمه خبره دا ده چه خپلے ښځے او ماشومان به مړهٔ کړو او تورے به راواخلو او د دوی پسے به وځو، جنګ به کوو شا ته به مو څه غم نهٔ وی، هغوی مو قتل کړل نو ښځے ډیرے دی نورے به وکړو او که مونږه ئے مړه کړو نو خبره ختمه، او نن د خالی ورځ ده او محمد (ﷺ) او د هغه ملګری وائی چه پدے ورځ یهودیان جنګ نهٔ کوی نو ددے خالی عزت به مات کړو او حمله به پرے وکړو او هغوی به په غفلت کښ ختم کړو. قوم ورته ووئیل چه د خالی ورځ تعظیم نهٔ ماتوو ځکه چه زمونږ مشرانو نه ددے د تعظیم نهٔ کولو په وجه شادوګان جوړ شوی وو، نو دا کار هم نهٔ کوو. هغه ورته ووئیل : [مَا بَاتَ اَحَدٌ مِنْكُمْ لَيْلَةً حَازِمًا] ستاسو په یو تن باندے یوه شپه هم د هوښیارتیا نهٔ ده راغلے کله نه چه د مور نه پیدا شوی یئ.

پدے کښ دوی جواب راولیږلو چه مونږ ته ابولبابه (ﷺ) راولیږئ چه مشوره ورسره وکړو، هغه راغلو، دوی ورته ووئیل چه څه وکړو؟ هغه ووئیل چه راکوز شئ. دوی ووئیل چه څه به راسره کوی؟ نو هغه مرئ ته اشاره وکړه چه ذبح کوی به مو.

ددے خبرے په کولو سره سمدست د هغهٔ ذهن ته راغلل چه دا خو ما د رسول الله ﷺ سره خیانت وکړو. نو هغه پدے کار خپیمانه شو او سیده مسجد نبوی ته لاړو او ستنه پورے ئے ځان وتړلو او دا ئے وویل چه ترڅو پورے زهٔ رسول الله ﷺ نهٔ یم راکولاؤ کړے ځان به نهٔ کولاووم، دلته خلك په انتظار دی نو چا رسول الله ﷺ ته وویل چه ابو لبابه باندے خو داسے واقعه راغلے ده. نو رسول الله ﷺ وفرمایل که ما له راغلے وے، ما به ورله بخنه غوښتلے وے خو هرکله چه دهٔ په خپله رائے داسے کار کړیدے نو زهٔ ئے نهٔ کولاووم تردے چه الله تعالیٰ ئے توبه نازله کړی، اُوه ورځو پورے همداسے وو تردے چه الله تعالیٰ ئے توبه نازله کړه. او رسول الله ﷺ راکولاؤ کړو.

دوی ته وویل شو چه په تاسو کښ څوك فیصله وکړی؟ نو دوی وویل چه سعد بن معاذ (ځکه چه دا د دوی په جاهلیت کښ دوست وو) سعد په اکحل رګ باندے په غزوهٔ خندق کښ لګیدلے وو، او په یو خیمه کښ پروت وو، نو حکم وشو چه هغه راولئ، هغه په خر باندے سور راغے، انصارو ته ئے وویل چه خپل مشر ته وړیاځیرئ د هغه خدمت وکړئ او د سورلئ نه ئے راکوز کړئ، په لاره کښ خلکو سعد ته تلقین ورکولو چه دا زمونږ حلفاء دی او نرمه فیصله وکړه. هغه غلے وو، (هغه مخکښ نه د الله نه سوال کړے وو چه اے الله! ما تر هغه وخته پورے مهٔ وژنه چه زما سترګے په بنو قریظه ؤ یخے نکړے. هغه د ډیر هوښیارتیا نه کار واخستو او خزرج ته ئے وویل چه تاسو به زما په فیصله رضا یئ؟ هغوی وویل: آؤ، آوسیانو ته ئے وویل چه تاسو به رضا یئ؟ هغوی وویل بالکل. رسول الله ﷺ ناست وو هغه ته ئے اشاره وکړه چه دا زما فیصله به نافذه وی (عَلٰی مَنْ هُنَاکُمْ) په هغه شخصیت باندے چه پدے ځای کښ موجود دے. دا ډیر ادب ئے د رسول الله ﷺ وکړو.

رسول الله ﷺ وفرمایل چه په ما به هم نافذه وی. نو سعد فیصله وکړه چه د دوی جنګیان دے ووژل شی او د دوی ښځے او ماشومان دے وینځے او غلامان جوړ شی. نو د الله رسول پدے فیصله ډیر زیات خوشحاله شو او دا ئے وفرمایل: [لَقَدْ حَكَمْتَ بِحُكْمِ الْمَلِكِ مِنْ فَوْقِ سَبْعِ سَمٰوَاتٍ] تا خو د هغه الله تعالیٰ فیصله وکړه چه د اُوه آسمانونو دپاسه ده. د هغه همدا فیصله خوښه وه. منافقان ډیر خفه شو چه دا خو ډیره سخته فیصله ئے وکړه، بیا سعد نزدے وفات شو. جنازه ئے چه روانه وه منافقانو وویل چه [مَا اَخَفَّ جَنَازَتَهٗ] څومره سپکه جنازه ئے ده. (یعنی سپك سړے وو. العیاذ بالله) رسول الله

ﷺ وفرمایل چه سپکه خو څکه ده چه اویا زره ملائك راغلی دی او پدے جنازه کښې شریك شویدی. او د الله عرش ددهٔ په مرگ باندے خوزیدلے دے.

پدے کښې دا کسان راوستے شو، وسله ئے وارتوله، او زنانه او ماشومان ترے جدا کړے شو، او د دوی مالونه په صحابه کرامو کښې تقسیم کړے شول. دوی د څلورو سوو نه تر اُوه سوو پورے کسان وو، دوی دپاره کنده وکنستے شوه او زبیر او علی رضی الله عنهما ودرولے شو او د دوی نه به ئے یو یو تن راوستو او په څټ به ئے وهلو او کندے ته به ئے گوزارل، ایمان ئے نهٔ راوړو، مشرکانو سره ئے مدد کړے وو او د رسول الله ﷺ سره ئے وعده ماته کړے وه. نزدے وه چه نبی کریم ﷺ او د هغهٔ ملگری ئے ختم کړی وے که د الله مدد نهٔ وے. حیی بن اخطب یهودی ته څه کسانو وویل چه دوی مونږ سره څه کوی؟ هغه وویل چه اُوسه پورے تاسو نهٔ پو هیږئ، جاهلان یئ، تاسو نهٔ گورئ چه یو یو تن رابللے شی او بیرته نهٔ راځی نور دریاندے څه کوی خو وژنی مو. او بیا ئے د بزرگئ خبرے وکړے چه [کِتَابُ اللّٰهِ عَلٰی بَنِیْٓ اِسْرَآئِیْلَ وَقَدَرٌ] دا ملحمه (جنگونه) په بنی اسرائیلو لیکلے شوی او فیصله کړے شوے ده. هغه ئے هم په څټ ووهلو او مردار ئے کړو، دا شخص د ام المؤمنین صفیه رضی الله عنها پلار دے، روستو د خیبر په غزا کښې ئے دا نیولے وه او بیا ئے په نکاح واخسته.

ددے وجه نه یهودیان اُوس ډیر په غصه دی چه مدینه او خیبر خو زمونږ علاقے دی، مونږ نه مسلمانانو نیولی دی او زمونږ مشران ئے ددے ځای نه ویستلی دی.

صَیَاصِیْهِمْ: جمع د صِیْصِیَةٌ ده، غټو قلعه گانو ته وئیلے شی.

وَقَذَفَ فِیْ قُلُوْبِهِمُ الرُّعْبَ: دا د الله تعالیٰ لوی احسان وو چه دومره خطرناك فوج (اُوه سوه کسان) که د وسلو سره راوتلی وے نو په صحابه کرامو کښې به ئے هم ډیر خون خرابه کړے وے لیکن الله تعالیٰ ترے صحابه کرامؓ محفوظ کړل او هغوی ئے هلاك کړل.

وَتَاْسِرُوْنَ فَرِیْقًا: د دوی ښځے وینځے او بچی ئے غلامان کړل او رسول الله ﷺ صحابه کرامو ته ورکړل او هغوی بیا په بهر ملکونو والو باندے خرڅ کړل دے دپاره چه ددے علاقے نه یهودیت ختم شی. یوه زنانه (ریحانه) پکښې رسول الله ﷺ وینځه جوړه کړه او هغے ته ئے د ایمان ډیر دعوت ورکړو. لیکن ایمان ئے نهٔ راوړو آخر دا چه څه موده روستو ئے خپله ایمان راوړو، رسول الله ﷺ ته یوے وینځے ددے د ایمان زیرے ورکړو نو هغهٔ هغه آزاده کړه.

وَأَوْرَثَكُمْ أَرْضَهُمْ وَدِيَارَهُمْ : یعنی مسلمانان د دوئ د پټو، باغونو، کورونو، قلعو، کدو بزو، وسلو، روپو او اشرفو او د نورو تمام منقوله جائیدادونو مالکان جوړ شول،
وَأَرْضًا لَمْ تَطَؤُوهَا: او د یو څو ورځو نه پس د خیبر د یهودیانو د زمکو هم مالکان جوړ شول۔ پدے کښې اشاره وه چه هغه زمکه به هم تاسو ته په میراث کښې درکړی چه د هغې نه د غزوهٔ احزاب ابتداء شوے وه چه هغه د خیبر زمکه ده چه هلته نه یهود راغلی وو او نور عرب ئے په جنګ راپاڅولی وو۔ نو دا زمکے او باغونه مسلمانانو ته ملاؤ شو او هغوی پرے ښهٔ مالداره شول۔ بعضِ مفسرینو د ﴿أَرْضًا لَمْ تَطَئُوهَا﴾ (داسے زمکه چه تاسو لا پیمال کړے نهٔ ده) نه مراد د مکے سرزمین، او بعضو د فارس او روم علاقے اخستے دی۔ ابن جریر طبریؒ لیکی چه کیدے شی چه دا درے واړه مراد وی۔ او عکرمةؒ وائی چه هره زمکه چه الله ئے مسلمانانو ته تر قیامته پورے ورکوی۔
**فائده** : ددے واقعے نه مونږ ته دا سبق ملاویږی چه یهود ولے هلاك شول؟ سره ددے نه چه دوی مالداره، جاګیرداره او جنګیان قوی خلك وو او کتاب والا هم وو۔ نو ددے وجه دا وه چه دوی د الله او د رسول نه بغاوت وکړو، که دا بغاوت ئے نهٔ وے کړے نو مزے به ئے کړے وے۔ نو د رسول الله ﷺ په عصیان (نافرمانئ) کښې دومره لوی تاوان دے۔

| يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِأَزْوَاجِكَ إِنْ كُنْتُنَّ تُرِدْنَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا وَزِينَتَهَا |
|---|
| اے نبی اُووایه! بیبیانو خپلو ته که چرته تاسو اراده لرئ د ژوند دنیوی او د ډول د هغے |
| فَتَعَالَيْنَ أُمَتِّعْكُنَّ وَأُسَرِّحْكُنَّ سَرَاحًا جَمِيلًا ﴿٢٨﴾ |
| نو راشئ چه فائدے درکړم تاسو ته او رخصت کړم تاسو په رخصتولو ښائسته وسره۔ |
| وَإِنْ كُنْتُنَّ تُرِدْنَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَالدَّارَ الْآخِرَةَ فَإِنَّ اللَّهَ |
| او که چرته اراده لرئ تاسو د الله او د رسول د هغه او د کور روستنی نو یقیناً الله تعالیٰ |
| أَعَدَّ لِلْمُحْسِنَاتِ مِنْكُنَّ أَجْرًا عَظِيمًا ﴿٢٩﴾ يَا نِسَاءَ النَّبِيِّ |
| تیار کړیدے دپاره د ښائسته عمل کونکو ښځو ستاسو نه اجر لوئی۔ اے بیبیانو د نبی |
| مَنْ يَأْتِ مِنْكُنَّ بِفَاحِشَةٍ مُبَيِّنَةٍ يُضَاعَفْ |
| (ﷺ) چا چه راتلل اُوکړل ستاسو نه په بی حیایئ ښکاره سره دوچنده به کړے شی |

لَهَا الْعَذَابُ ضِعْفَيْنِ وَكَانَ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيرًا ﴿۳۰﴾

هغې لره عذاب دوچنده او دے دا کار په الله باندے آسان۔

**تفسیر**: دا خطاب دے رسول الله ﷺ ته، او مقصد پدے خطاب کښې دا دے چه څوک ستا او د دین په مابین کښې حائل (مانع) واقع کیږی نو د هغه نه جدا شه، لکه که ستا بیبیانے تا حکم شرعی باندے عمل کولو او د دین ترقئ او دعوت ته نهٔ پریدی نو دوی پریده او طلاق ورکړه۔ نو پدے کښې هر انسان دپاره دا خبره شوه چه که ستا او د دین په مینځ کښې څوک حائل کیدو، ښځه یا بچے، یار دوست وغیره نو هغه پریخودل پکار دی خو د حق دعوت به نه پریخودلے کیږی۔

ددے آیتونو تعلق د مخکښې سره دا دے چه الله تعالیٰ خپل رسول ته په بنو نضیر او قریظه ؤ باندے فتح ورکړه او هغوی ته ډیر مالونه ملاؤ شو نو د رسول الله ﷺ بیبیانو مطالبه د توسعے (فراخئ) وکړه چه مونږ دپاره دے نفقه زیاته راکړے شی، نو پدے سره د رسول الله ﷺ زړهٔ ته یو قسم درد ورسیدو نو الله تعالیٰ دا آیتونه نازل کړل۔

دویم مناسبت ئے د موضوع د سورت سره دے، هرکله چه رسول الله ﷺ دٌ متبنیٰ د ښځے سره نکاح وکړه، او دغه رواج ئے مات کړو نو نورے بیبیانے د بنتوب د غیرت د وجه نه (چه دا یو طبعی امر دے) نبی کریم ﷺ ته راجمع شوے او د هغه نه ئے د ډیرے نفقے مطالبه وکړه دے دپاره چه هغه نورے بیبیانے ونکړی۔ (لکه یوه زنانه باندے چه سرے بله ښځه کوی نو هغه وائی چه تا ما له دا شے رانکړو او دا، نو بله څنګه کوے، او د هغه نه ډیره خرچه غواړی، پدے طریقه ئے تنګوی) نو پدے کار ترے رسول الله ﷺ خفه شو او د هغوی نه ئے قسم وکړو او دا ئے وویل چه زهٔ به تاسو ته یوه میاشت نهٔ نزدے کیږم۔ (دے ته تادیب وائی یعنی خپلے ښځے له ادب ورکول) او پدے ورځو کښې رسول الله ﷺ د اس نه غورزیدلے وو (څکه بشر دے) نو اړخ ئے زخمی شوے وو او خپه ئے ختلے وه نو په بالاخانه کښې خانله وسیدلو، (بعض وائی چه دا بالاخانه دوه درے میله وړاندے وه او هلته به ورله ماریه قبطیه خدمت کولو) صحابه کرامؓ به ورله بیمار پرسئ له هم راتلل، او ډیر کرته ئے هلته د جُمعے مونځونه هم کړیدی، مسجد نبوی کښې به سیدنا ابوبکر ؓ جُمعه کوله۔ هرکله چه رسول الله ﷺ نهه ویشت ورځے پس راکوز شو (څکه چه دا میاشت د نهه ویشتو ورځو وه) نو اول د عائشے رضی الله عنها کور ته ورغے او دا آیتونه ئے ورته

ولوستل نو هغې ووېل چه اې د الله رسوله! مونږ خو ستا ورځې شماروتا خو قسم دیوې میاشتې کړې او حال دا چه تهٔ په نهه ویشتم راکوز شوې، (یعني هسې نهٔ چه زمونږ په وجه دربانديې قسم مات نشي) نو هغهٔ ورته وفرمايل: مياشت د نهه ويشتو ورځو هم وی- بيا ئې هغې ته ووېل چه زهٔ تا ته يوه خبره پيش كوم خو جلتي مهٔ كوه، بلكه د مور او پلار سره پرې مشوره وكړه- (غرض ئې دا وو چه دا جينۍ بنځه ده، دنيا به غوره كړي نو هلاكه به شي او مور او پلار ئې هوښيار دي هغوى ورته د رسول الله ﷺ نه د جدائی مشوره نهٔ وركوى) بيا ئې ورته دا آيتونه ولوستل.

نو عائشې وفرمايل: آيا پدې خبره كښې به زهٔ د مور او پلار سره مشوره كوم، [فَاِنِّیٓ اَخْتَارُ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَالدَّارَ الْاٰخِرَةَ] يقيناً زهٔ الله او د هغهٔ رسول او د آخرت كور غوره كوم. رسول الله ﷺ پدې خبره ډير خوشحاله شو. (بيا چه كله وتلو نو عائشې ورته ووېل چه زما دا جواب نورو بيبيانو ته مهٔ وايه، نو رسول الله ﷺ وفرمايل: چه زهٔ الله تعالىٰ مُتَعَنِّتً نهٔ يم رالیږلې كه ما نه ئې تپوس وكړو نو زهٔ ورته وايم چه عائشې داسې جواب كړې ليكن ټولې بيبيانې متقيانې او نيكې ښځې وې هغوى الله او رسول غوره كړو) او د دوى دا جواب ئې دومره خوښ شو چه روستو آيتونو كښې راځي چه الله تعالىٰ خپل نبي ته حكم وكړو چه بس دا نهه بيبيانې ځان سره وساته او نورې بيبيانې مهٔ كوه- ځكه چه دوى الله او رسول غوره كړيدي- دا زنانه پدې وخت كښې نهه وې، عائشه، حفصه، ام سلمه، ام حبيبه، سوده، (دا د قريشو نه وې) صفيه خيبريه، ميمونه هلاليه، زينب بنت جحش اسديه او جويريه بنت الحارث مصطلقيه رضي الله عنهن.

دې آيت ته آيت التخيير وائي- يعني ښځې ته اختيار وركول چه د خاوند نه جدائي غواړې او كه نهٔ غواړې ستا اختيار دې- پدې كښې د سلف صالحينو صحيح قول دا دې چه پدې سره هيڅ طلاق نهٔ واقع كيږي، عائشه رضي الله عنها فرمائي:

[خَيَّرَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ فَاخْتَرْنَاهُ فَلَمْ يَعُدَّهُ طَلَاقًا]

(بخاري في الطلاق باب٥، ومسلم في الطلاق حديث ٣٠٠٢٦) والرضاع حديث: ٩٥،٩١)

(رسول الله ﷺ مونږ ته اختيار راكړو نو مونږ هغه لره غوره كړو، او رسول الله ﷺ دا اختيار طلاق ونهٔ شمارلو).

البته كه زنانه په جواب كښې ووائي چه ما خپل ځان غوره كړو يعني جدائي مې خوښه ده، نو پدې كښې اختلاف دې چه دا كوم قسم طلاق ګرځي؟ رجعي يا بائن؟ سيدنا عمر،

ابن مسعود، ابن عباس (ﷺ) او ابن ابی لیلیٰ او ثوریؒ او شافعیؒ وائی چه دا طلاق رجعی دی۔ او علی ﷺ او ابو حنیفةؒ، او یو روایت د مالکؒ دا دے چه دا طلاق بائن دے لیکن اول قول غوره دے۔ او دلائل ئے په شروح الحدیث او فتح البیان کښې گوره۔

د آیت معنیٰ داده چه اے زما نبی! ته خپلو ښځو ته ووایه چه که تاسو د دنیا عیش او آرام غواړئ، ښه خوراك څکاك، عُمده کپړے، زیورات او نور د ژوند سامان غواړئ، نو راشئ چه زهٔ طلاق درکړم، او طلاقه شوو ښځو له د هر انسان د حال مطابق چه کوم مال او متاع ورکول پکار وی هغه درکړم او تاسو آزادے کړم، اوکه چرے تاسو د الله تعالیٰ او د هغهٔ د رسول رضا او جنت غواړئ نو بیا د رسول الله ﷺ په کور کښې په دے یقین سره ژوند تیروئ چه الله په تاسو کښې د نیکی کونکو دپاره په جنت کښې زما په ملګرتیا کښې ډیر زیات او چت مقام تیار ساتلے۔

أُمَتِّعْكُنَّ : متعه دا ده چه یوه جوړه جامه ورکړی۔

سَرَاحاً جَمِيلاً : سراح جمیل نه مراد شرعی طلاق دے چه هغه طلاق رجعی دے۔

پدے کښې اشاره ده چه [حُبُّ الدُّنْيَا وَحُبُّ النَّبِيِّ ﷺ لَا يَجْتَمِعَانِ] د دنیا او د رسول الله ﷺ محبت دواړه نهٔ جمع کیږی۔ لکه حدیث کښې دی : [إِنْ كُنْتَ تُحِبُّنِي فَاَعِدَّ لِلْفَقْرِ تِجْفَافًا فَإِنَّ الْفَقْرَ أَسْرَعُ إِلَى مَنْ يُحِبُّنِي مِنَ السَّيْلِ إِلَى مُنْتَهَاهُ] (که ته ما سره مینه کوے نو د فقر دپاره ځان تیار کړه ځکه چه څوك ما سره مینه لری هغه ته به فقیری د سیلاب نه هم په تیزئ سره رارسیږی۔ (ترمذی (۲۳۵۰) ضعفه الالبانی ولکن اسناده حسن وحسنه الترمذی، وانظر التعقب المتوانی علی السلسلة رقم (٤٨٢) ورواه الحاکم (٧٩٤٤) وصححه ووافقه الذهبی)

تُرِدْنَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ : د الله اراده کول دا دی چه الله تاسو نه راضی شی او د رسول الله ﷺ اراده لرئ چه هغه درته حاصل شی۔

وَالدَّارَ الْآخِرَةَ: یعنی جنت او د هغے نعمتونه۔

لِلْمُحْسِنَاتِ مِنْكُنَّ : دا مِنْ بیانیه دے، تولے بیبیانے نیکانے وے لیکن مِنْ پکښې ځکه راوړی چه هغوی یره وی چه په تاسو کښې څوك نیك عمله وی نو هغوی دپاره اجر عظیم دے۔ نو هریو به وائی چه کیدے شی زهٔ نیك عمله نهٔ یم، نو کوشش به نور هم زیاتوی۔

مُحْسِنَاتٌ: دا هغه دی چه د الله بندگی هم په ښائسته طریقه کوی، او د رسول الله ﷺ طاعت کوی۔ او څوك چه الله او رسول او د آخرت کور غوره کوی، ددے وجه نه تولو

بیبیانو دا غوره کړی نو دا ټولے محسنات وے۔

يَا نِسَاءَ النَّبِيِّ: ربط: ۱- هرکله چه د رسول الله ﷺ بیبیانو هغهٔ لره غوره کړو نو الله تعالیٰ د هغوی د اکرام او د هغوی د حق د تعظیم دپاره دا آیتونه نازل کړل او پدے کښې ئے هغوی ته ښائسته آداب بیان کړل۔

۲- هرکله چه بیبیانو الله تعالی او رسول الله ﷺ او جنت غوره کړو نو اُوس دوی ته هغه امور ذکر کوی چه په هغے باندے د عمل کولو په سبب سره د الله تعالیٰ او د رسول الله ﷺ رضا او جنت حاصلیږی۔

نو پدے آیت کښې تاکید دے په ځان ساتلو د هر فحشاء نه، قول وی او که عمل، د خاوند نافرمانی، بد اخلاقی، دنیا پرستی وغیره ټولو ګناهونو ته شاملیږی۔

فَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ دغه ټیزونو ته هم شامل دے۔ دارنګه زنا ته هم شاملیږی لیکن د پیغمبر بیبیانے زنا نکوی، یعنی په خطره کښې دی، لیکن الله تعالیٰ محفوظے ساتلی دی۔ او دلته خبره په تعلیق باندے بناء ده۔ یعنی که بالفرض تاسو زنا وکړه نو دوچنده عذاب به درته ورسیږی، دا بیا بیله خبره ده چه الله تعالیٰ هغوی محفوظ کړیدی۔

مُبَيِّنَةٍ: ښکاره ورسره ځکه وائی چه په عمل کښې ئے راولی، کله د انسان په ذهن کښې یو غلط فکر تیر شی، نو هغے باندے به الله راګیرول نهٔ کوی ځکه چه هغه غیر اختیاری وی۔

ضِعْفَيْنِ: ځکه چه د چا مرتبه اُوچته وی نو په ګناه باندے د هغه سزا هم سخته وی۔

پدے کښې اشاره ده چه د رسول الله ﷺ بیبیانے د ټول عالَم د زنانو نه اشرفے او بهترے دی ځکه چه عذاب ئے په ګناه باندے دوچنده وی۔

وَكَانَ ذَٰلِكَ عَلَى اللَّهِ يَسِيرًا: پدے کښې اشاره ده چه تاسو اګرکه نبی ته منسوب یئ خو په وخت د ګناه کښې دا نسبت پکار نهٔ راځی، دا د انسان نه عذاب نشی اړولے۔ لکه حدیث کښې دی: [مَنْ بَطَّأَ بِهِ عَمَلُهُ لَمْ يُسْرِعْ بِهِ نَسَبُهُ] (ابوداود: ۳٦٤٥)

کوم انسان چه خپل عمل روستو پریخودو نو نسب ئے مخکښې نشی بوتللے۔ او الله تعالیٰ ته دا ګرانه نهٔ ده چه هغه عزتمنو ته عذاب ورکړی پدے وجه چه ملګری او مددګاران او سفارشیان او وروڼه ئے زیات دی۔

| وَمَنْ يَقْنُتْ مِنكُنَّ لِلَّهِ وَرَسُولِهِ وَتَعْمَلْ صَالِحًا |
|---|
| او چا چه تابعداري كوله ستاسو نه د الله او د رسول د هغه او عمل ئے كولو نيك |
| نُّؤْتِهَا أَجْرَهَا مَرَّتَيْنِ وَأَعْتَدْنَا لَهَا رِزْقًا كَرِيمًا ﴿٣١﴾ |
| وركوو به مونږ هغے ته اجر د هغے دوه كرته او تيار كړيدے مونږ هغے لره رزق عزتمند۔ |
| يَا نِسَاءَ النَّبِيِّ لَسْتُنَّ كَأَحَدٍ مِّنَ النِّسَاءِ إِنِ اتَّقَيْتُنَّ |
| اے بيبيانو د نبي! نهٔ يئ تاسو پشان د يو تن د نورو زنانو نه كه چرته تاسو تقوىٰ كوئ |
| فَلَا تَخْضَعْنَ بِالْقَوْلِ فَيَطْمَعَ الَّذِي |
| نو مهٔ جوروئ خبرے لره (يا : په عاجزئ سره مهٔ كوئ وينا) نو طمع به وكړي هغه كس |
| فِي قَلْبِهِ مَرَضٌ وَقُلْنَ قَوْلًا مَّعْرُوفًا ﴿٣٢﴾ |
| چه په زړه د هغه كښې مرض دے او وايئ وينا د شرع مطابق۔ |

**تفسير:** الله تعالىٰ په امهات المؤمنين كښې نيكے، صالحے او د الله او د هغهٔ د رسول اطاعت كونكے ښځے له زيرے وركړے چه الله به دوئ له دوچنده اجر وركوي، يو په دنيا كښې او بل په آخرت كښې ﷺ يا يو خو د طاعت او تقوىٰ ژوند اختيارولو په وجه، او دويم د نبي كريم ﷺ د خوشحاله ساتلو، او هغهٔ سره د ښهٔ اخلاقو او ښهٔ سلوك كولو په وجه۔ او دا زيرے ئے هم وركړے چه د دوچند اجر نه علاوه به الله تعالىٰ دوئ له په جنت كښې عُمده ترينه روزي وركوي چه د بادشاهانو په شان به په تياره راځي۔ مفسرين ليكي چه په دے آيت كښې امهات المؤمنين ته د جنت زيرے وركړے شوے۔

**يَقْنُتْ:** قنوت دلته په معنىٰ د طاعت سره دے۔

**يَا نِسَاءَ النَّبِيِّ لَسْتُنَّ :** د امهات المؤمنين نور فضيلت بيانولو دپاره، او دوئ له ددے خبرے احساس وركولو دپاره چه د دوئ نه څهٔ داسے قول او فعل صادر نشي چه دے سره د خاتم النبيين په عزت باندے عيب راشي، او دنيا والو دپاره د هغوئ د كور په خلاف د خبرو اترو موقع ملاؤ شي، الله تعالىٰ دوئ ته خطاب وكړو او وے فرمايل چه اے زما د نبي ښځو! تاسو د دنيا د عامو ښځو نه جدا يئ، تاسو ډيرے زياتے معززے ښځے ئے، ستاسو مقام ډير اُوچت دے، تاسو د خاتم النبيين بيبيانے ئے، تاسو له د خپل قدر او مرتبے

خیال ساتل پکار دی، تاسو به د خپلې مرتبې حفاظت په هغه صورت کښې وکړې شئ چه صلاح او تقوىٰ د خپل ژوند علامه جوړه کړئ۔ دے وجے نه پردو سړو سره د خبرو کولو په وخت داسې اسلوب او انداز مۀ اختیاروئ چه د کومو خلقو په زړونو کښې چه د فسق او فجور بیماري وي، هغوئ ستاسو په باره کښې غلطه شبهه شروع کړي، صرف د ضرورت مطابق خبره کوئ، او داسې لهجه اختیار کړئ چه هغه د هر شك اوشبهې نه لرې وي۔

نو پدے آیت کښې بیبیانو ته دا سبق دے چه تاسو ته فضیلت یو د رسول الله ﷺ د زوجیت په وجه حاصل دے، او بل پدے وجه چه تاسو به تقوىٰ او نیك عملي کوئ، که تقوىٰ ترې لرې شي، نو بیا یواځې د زوجیت په وجه نجات نشته لکه څنګه چه د لوط او نوح علیهما السلام ښځې د زوجیت په وجه د اُور نه خلاصې نشوې کله چه په هغوی کښې ایمان او تقوىٰ نۀ وه۔ نو خپل کوشش به کوئ او نسب او زوجیت باندې به نۀ دهوکه کیږئ۔ او د ایمان او تقوىٰ سره د رسول الله ﷺ رشته ډیره فائده ورکوی او دا ډیره اُوچته مرتبه ده۔ یو خو پدے وجه چه دوی د رسول الله ﷺ خادمانې دي، او هغه الله ته ګران دے نو دوی هم ورته ګرانې دي۔ دویم پدے وجه چه د رسول الله ﷺ بدن د دوی سره لګیدلے دے او د چا بدن سره چه د رسول الله ﷺ بدن ولګی هغه به اُور ته نۀ داخلیږی۔

لَسْتُنَّ كَاَحَدٍ مِّنَ النِّسَاءِ: اَیْ فِی الْفَضْلِ ۔ تاسو د امت د نورو زنانو په شان نۀ یئ په فضیلت کښې بلکه زما په نیز ستاسو شان ډیر اُوچت دے۔

فَلَا تَخْضَعْنَ بِالْقَوْلِ: یعني په نرمئ او ناز باندې خبرې مۀ کوئ چه د سړی طمع پیدا شي۔ په خبرو کښې خوږوالے او ناز او نزاکت او لچك مۀ پیدا کوئ۔

علماء فرمائی : [وَالْمَرْأَةُ مَنْدُوْبَةٌ اِلَى الْغِلْظَةِ فِى الْمَقَالِ اِذَا خَاطَبَتِ الْاَجَانِبَ لِقَطْعِ الْاَطْمَاعِ فِيْهِنَّ] (فتح البیان)

ښځې ته دا دعوت ورکړے شوے چه په خبره کښې دے سختي کوی کله چه پردو سړو سره خبرې کوی دے دپاره چه د هغوی طمع د دوی نه قطع شي۔ ددے مطلب دا نۀ دے چه بد اخلاقي به کوی۔ بلکه مطلب دادے چه سیده ساده خبره کوئ۔

فِىْ قَلْبِهٖ مَرَضٌ : ۱- مرض د شهوت۔ ۲- مرض د نفاق۔ ۳- مرض د تَشَوُّف اِلَى النِّسَاءِ۔ یعني چه د چا د زنانو د کتلو سره مینه وی۔

قَوْلًا مَّعْرُوْفًا: نیکه وینا دا ده چه [لَا يُطْمِعُ فَاجِرًا] یو بد کاره سړے په طمع کښې نۀ

اچوی۔

وَقُلْنَ قَوْلاً مَّعْرُوفاً: دلیل دے چه د زنانه عام آواز (بغیر د دمتوب او خوش آوازئ) نه عورت نهٔ دے۔

| |
|---|
| وَقَرْنَ فِيْ بُيُوْتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُوْلٰى |
| او اُوسیږئ په کورونو خپلو کښې او مهٔ ښکاره کوئ دول سینګار پشان د جاهلیت زوړ |
| وَأَقِمْنَ الصَّلَاةَ وَآتِيْنَ الزَّكَاةَ وَأَطِعْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ |
| او پابندی کوئ د مانځه او ورکوئ زکاة او تابعداری کوئ د الله او د رسول د هغه |
| إِنَّمَا يُرِيْدُ اللّٰهُ لِيُذْهِبَ عَنْكُمُ الرِّجْسَ أَهْلَ الْبَيْتِ |
| یقیناً غواړی الله تعالیٰ چه لرے کړی ستاسو نه پلیتی اے کور والو (د نبی ﷺ) |
| وَيُطَهِّرَكُمْ تَطْهِيْرًا ﴿٣٣﴾ وَاذْكُرْنَ مَا يُتْلٰى فِيْ |
| او پاك كړی تاسو په پوره پاكوالی سره۔ او یادوئ هغه چه لوستلے شی په |
| بُيُوْتِكُنَّ مِنْ آيَاتِ اللّٰهِ وَالْحِكْمَةِ إِنَّ اللّٰهَ |
| کورونو ستاسو کښې د آیتونه د الله تعالیٰ او حدیث د نبی نه یقیناً الله |
| كَانَ لَطِيْفاً خَبِيْرًا ﴿٣٤﴾ |
| دے باریك خیزونه لیدونکے، په هرڅه خبردار۔ |

**تفسیر:** وَقَرْنَ: دا د قرار نه دے، وسیدو ته وائی۔ یعنی بے ځایه مهٔ ګرځئ، ددے آیت نه روستو به د رسول الله ﷺ عامے بیبیانے بهر نهٔ وتلے تردے چه عامے بڼځیانے به د رسول الله ﷺ د وفات نه روستو حج ته هم نهٔ تللے، صرف عائشه رضی الله عنها به تلله۔ او دا به ئے وئیل چه الله مونږ د عباداتونه نهٔ یو منع کړی بلکه د بی ځایه ګرځیدو نه، او په جنګ جمل کښې عراق ته تللے وه بیا روستو ډیره خفه وه، او کله چه به ئے دا آیت لوستلو نو دومره به ئے ژړل چه خپله لوپټه به ئے په اُوښکو لمده کړه او دا به ئے وئیل چه مونږ ته الله تعالیٰ په کور کښې د وسیدو حکم کړے وو۔ لیکن هغه پدے کار کښې مجبوره وه، صحابه کرامؓ ورته وئیلی وو چه تهٔ راشه ستا په وجه صلحه راځی۔

او بعض وائي چه واو اصلي دے، د وقار نه د امر صيغه ده يعني تاسو په خپلو كورونو كښې په عزت وسيږئ.

وَلَا تَبَرَّجْنَ: يعني كله چه اوځئ نو د جاهليت د زمانے د ښځو پشان په ډول او سينګار كښې بے پردے مهٔ اوځئ. مفسرينو د (تبرج) تفسير دا بيان كړے چه ښځه ځان جوړ كړي او ډول او سينګار ښكاره كړي چه دے سره د نارينه ؤ جنسي خواهش را اوپاريږي، داسے باريك او برينډ لباس واغوندي چه دے سره د هغے د بدن پرده نهٔ وي، او كوشش كوي چه ددے څټ، هار او والئ وغيره خلقو ته ښكاره شي. (قاسمیؒ)

تبرج په لغت كښې اظهار الزينة (ډول ښكاره كولو) ته وائي.

۲- تَغَنُّج. يعني په ناز او نخرو او تكبر سره مزل كول. زنانه چه سيده ساده روانه وي نو خوانه ښځه بو دئ ښكاره كيږي. او چه كله په نخرو روانه وي او تنګے جامے ئے اچولي وي، نو د بو دئ نه ځوانه جوړه شي او په سړو باندے بد اثر كوي.

۳- نرئ او باريكے جامے اغوستل. [وَكُلُّ مَا يَدْعُو شَهْوَةَ الرَّجُلِ] او هر هغه شے چه د سړي شهوت راپيدا كوي دا په تبرج كښې داخليږي. (قاله القاسمیؒ) لكه نيغے بريزرے (باديانے) واچوي.

الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَىٰ: ۱- ددے نه هغه نزدے زمانه مراد ده چه د رسول الله ﷺ د نبوت نه مخكښې وه چه پدے وخت كښې به زنانو دغه شان بي حيائي كوله. سرتور سر به ګرځيده او غاړه به ئے ښكاره كيده. ۲- بعض وائي چه د نوح ﷺ دَور ته وئيلے شي. دواړه صحيح دي. او پدے كښې اشاره ده چه بي حيائي جهالت دے.

وَأَقِمْنَ الصَّلَاةَ: د مونځ دپابندئ حكم ورسره ځكه راوړي چه مونځ د بي حيايئ ضد دے، ځوك چه د مانځه پابندي كوي، هغه نه بي حيائي ختميږي.

وَأَطِعْنَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ: يعني د الله او د رسول ﷺ د تمامو اوامرو اونواهيو پابندي كوئ.

إِنَّمَا يُرِيدُ اللَّهُ: يعني تاسو ته چه د كومو ښو خبرو نصيحت شوے، او د كومو بديو نه چه منع شوي يئ، ددے مقصد دادے چه تاسو د داسے ګناهونو او ګندګيو نه لرے اوساتلے شئ چه هغه د نبي د خاندان سره مناسب نهٔ دي، او تاسو د هر هغه قول او فعل نه مكمل طور سره پاك كړے شئ چه هغے سره د روح پاكيزګي متاثره كيږي.

الرِّجْسَ: (ګندګئ) ته وائي. ګناه، شرك، شك، بدي، د شيطان عمل تولو ته شامل دے. زجاج وئيلي دي: [كُلُّ مُسْتَقْذَرٍ مِنْ قَوْلٍ أَوْ فِعْلٍ وَطَعَامٍ] هر ګنده خبره، ګنده كار او

گنده خوراك) نه وائي. بغوي وائي: [كُلُّ مَا لَا يَرْضَى اللّٰهُ بِهٖ] هر هغه شے چه الله ئے نهٔ خوښوي.
مطلب دا دے چه الله تعالىٰ چه تاسو ته دا مخکني حکمونه کوي نو پدے کښې ئے مقصد دا دے چه تاسو نه گندونه لرے کړي او (وَيُطَهِّرَكُمْ تَطْهِيْرًا) او ستاسو صفائي وکړي. نو اول تخليه شوه او دويمه تحليه.
دا آيت په دے باره کښې په ډاګه دے چه د نبي کريم ﷺ ازواج مطهرات په (اهلِ بيتو) کښې شامل دي. په صحيح مسلم کښې د عائشے رضي الله عنها نه روايت دے چه نبي کريم ﷺ يوه ورځ د سهار په وخت د تورو ويښتو نه جوړ يو څادر اغوستے را اووتلو. حَسَن راغے نو هغه ئے په دے کښې داخل کړو، بيا حُسَين راغے نو هغه ئے په دے کښې داخل کړو، بيا فاطمه راغله نو هغه ئے په دے کښې داخله کړه، بيا علي راغے نو هغه ئے په دے کښې داخل کړو، بيا نبي ﷺ وفرمايل چه اے اهلِ بيت! الله تاسو نه گندگي لرے کول غواړي، او تاسو په پوره توګه صفا کول غواړي. (مسلم: ٦٤١٤)
دے حديث نه ثابته شوه چه دا څلور کسان د نبي کريم ﷺ په کور والو کښې شامل دي. ليکن دا هرگز نهٔ ثابتيږي چه د (اهلِ بيتو) اطلاق صرف په دے څلورو باندے کيږي. دے وجے نه راجحه داده چه د نبي کريم ﷺ ازواج مطهرات په (اهلِ بيت) کښې د قرآن کريم د صريح نص په ذريعه داخل دي. او فاطمه، علي او حسن او حسين د صحيح حديث مطابق. حافظ ابن کثيرؒ وائي چه دا آيت په دے باره کښې صريح نص دے چه د نبي کريم ﷺ ازواج مطهرات په (اهلِ بيت) کښې داخل دي، ځکه چه ددے آيت د نازليدو سبب همدا بيانول دي، او کومه خبره چه د آيت د نزول سبب وي هغه د آيت په حکم کښې په طريقِ اولىٰ سره داخل وي.
يعني ددے حديث مطلب به دا وي چه اهل بيت لفظ يوازے د بيبيانو پورے خاص نهٔ دے بلکه دغه ذکر شوي خلك هم پکښې داخل دي.
وَاذْكُرْنَ مَا يُتْلٰى: اُوس ددے مخکښنو خبرو د رايادولو دپاره ماده پکار ده ځکه چه دا خبرے د انسان نه زر زر هيريږي نو داسے شے پکار دے چه دا خبره ورته بار بار رايادوي، نو په دے آيت کښې امهات المؤمنين ته حکم شوے چه د دوئ په کورونو کښې چه د قرآن کريم د کومو آيتونو تلاوت او د نبي کريم ﷺ د کومو سنتونو ذکر کيږي چه د خير او برکت ذريعه او د آدابو او اُوچتو اخلاقو سرچشمه ده، په دے کښې غور او فکر کوئ او

ددے نه نصیحت حاصلوئ، نو پدے معنیٰ (فِىْ بُيُوْتِكُنَّ) متعلق دے د (مَا يُتْلٰى) پورے۔ یا (فِىْ بُيُوْتِكُنَّ) متعلق دے د (وَاذْكُرْنَ) پورے۔ یعنی په کورونو کښې یادوئ هغے شے چه لوستلے شی چه هغه د الله کتاب او د نبی سنت دی۔ یعنی بهر وتلو ته ضرورت نشته، ستاسو کور کښې هر شے موجود دے، البته که کور کښې د قرآن او سنت بیان نهٔ وی نو بیا زنانه بهر وتلے شی لکه صحابیات به مسجد نبوی ته راتللے او هلته به ئے د رسول الله ﷺ نه د الله کتاب او د هغهٔ سنت آوریدل۔

یا معنیٰ داده چه دا نعمت تاسو تول رایادوئ چه الله تاسو له د نبی په کور کښې ځای درکړے، چرته چه د قرآن او سنت ذکر کیږی۔

وَاذْكُرْنَ: ددے ذکر (رایادولو) نه مراد دا دے چه پدے کښې فکر کوئ دے دپاره چه د الله نصیحتونو نه عبرت واخلئ۔ یا ئے خلکو ته ذکر کوئ دے دپاره چه خلك ترے نصیحت واخلی او ددے هدایت قبول کړی۔ یا ددے تلاوت او لوستل کوئ دے دپاره چه دا په یادو یاد کړئ، او دیروالے د تلاوت مهٔ پریدئ۔

مِنْ آيَاتِ اللّٰهِ وَالْحِكْمَةِ: قرطبیؒ وائی چه د تولو مفسرینو په نیز د آیات الله نه قرآن کریم او د الحکمة نه سنت نبوی مراد دے۔ او دا تفسیر د قتادةؒ دے۔

۲- مقاتلؒ وائی: د آیات او حکمة نه مراد د الله هغه اوامر او نواهی دی کوم چه په قرآن کریم کښې راغلی دی۔ ۳- یا قرآن کریم کښې داسے آیتونه هم شته چه د الله په توحید او د نبی د نبوت په صدق باندے دلیل وی او داسے آیتونه هم شته چه حکمتونه پکښې وی چه مشتمل وی په قسما قسم علمونو او شریعتونو باندے۔

لَطِيْفًا خَبِيْرًا: پدے کښې اشاره ده چه الله تعالیٰ پیژنی هغه څوك چه اهل دی د زوجیت د رسول الله ﷺ دپاره۔ او کوم اعمال او احکام چه د دوی د شان سره مناسب دی او چه کوم اسباب دی دپاره د طهارت او د بچ کیدو د رجس او پلیتئ نه۔

د لطیف معنیٰ مهربانه هم ده نو پدے کښې اشاره ده چه الله تعالیٰ به ستاسو عمل هیچرے نهٔ ضائع کوی۔

**فائده** : دا مخکنی حکمونه اگرکه د رسول الله ﷺ بیبیانو ته وشو لیکن دا احکام د امت نورو زنانو ته هم شامل دی ځکه چه د امت نورے زنانه د هغوی تابع دی ځکه چه دا قانون دے چه اعلیٰ ته کوم حکم وی، هغه ادنیٰ ته هم شامل وی۔

| إِنَّ الْمُسْلِمِينَ وَالْمُسْلِمَاتِ وَالْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ وَالْقَانِتِينَ |
|---|
| یقیناً مسلمانان سړي او مسلمانانې ښځې او مؤمنان سړي او مؤمنې ښځې او تابعداري |
| وَالْقَانِتَاتِ وَالصَّادِقِينَ وَالصَّادِقَاتِ وَالصَّابِرِينَ |
| کونکي سړي او تابعداري کونکې ښځې او رشتیني سړي او رشتیني ښځې او صبرناك |
| وَالصَّابِرَاتِ وَالْخَاشِعِينَ وَالْخَاشِعَاتِ وَالْمُتَصَدِّقِينَ |
| سړي او صبرناکې ښځې او عاجزي کونکي سړي او عاجزي کونکې ښځې او صدقه |
| وَالْمُتَصَدِّقَاتِ وَالصَّائِمِينَ وَالصَّائِمَاتِ وَالْحَافِظِينَ |
| کونکي سړي او صدقه کونکې ښځې او روژه دار سړي او روژه دارې ښځې او حفاظت |
| فُرُوجَهُمْ وَالْحَافِظَاتِ وَالذَّاكِرِينَ |
| کونکي سړي د عورتونو خپلو او حفاظت کونکې ښځې او هغه سړي چه یادونکي دي |
| اللَّهَ كَثِيرًا وَالذَّاكِرَاتِ أَعَدَّ اللَّهُ لَهُم مَّغْفِرَةً وَأَجْرًا عَظِيمًا ﴿٣٥﴾ |
| الله لره ډیر او هغه زنانه چه یادونکې دي، تیار کړیدي الله دوی لره بخښنه او اجر لوئې۔ |

**تفسیر**: پدې آیت کښې عامو مؤمنانو ته خطاب دے، او مقصد ئې دا دے چه په ځان کښې د ایمان لس شعبې راولئ؛ نو لوی زیری سره به مخامخ شئ؛ او دا د تربیت صفات دي۔

## مناسبت

مخکښې د نبي کریم ﷺ د بیبیانو احوال او حکمونه ذکر شو نو اوس د عوامو مسلمانانو دپاره بشارت او صفات بیانوي او بیا منافات نشته چه هر یو به د بل صفات راخلي۔

## شان نزول

هرکله چه د نبي کریم ﷺ د کور والو شان او صفت بیان شو نو ددې په آوریدو سره به یقیناً د عامو نارینه او زنانه مسلمانانو په زړونو کښې دا آرزو ځای نیسي چه کاش الله تعالیٰ په خپله وینا کښې څۀ زمونږ په باره کښې هم بیان کړي وې۔ لکه امام احمدؒ او

نسائی د ام سلمه رضی الله عنها نه ددے آیت شان نزول دا بیان کرے چه ښځو د رسول الله ﷺ نه تپوس وکړو، څۀ وجه ده چه په قرآن کریم کښې د نارینه وُ پشان د ښځو ذکر نۀ کیږی، نو دا آیت نازل شو۔ او دا تپوس کونکے زنانه خپله ام سلمه وه۔

او یو بلے زنانه تپوس وکړو چه آیا مونږ کښې به څه خیر نۀ وی چه د سړو تذکره په قرآن کښې کیږی او ز مونږ نۀ کیږی، نو پدے باندے دا آیت نازل شو۔

ترمذی د ام عماره انصاریه رضی الله عنها نه روایت کړیدے چه هغه رسول الله ﷺ ته راغله وے وئیل : [مَا أَرَى كُلَّ شَيْءٍ إِلَّا لِلرِّجَالِ وَمَا أَرَى النِّسَاءَ يُذْكَرْنَ بِشَيْءٍ فَنَزَلَتْ هٰذِهِ الْآيَةُ] زۀ وینم چه هر خیر سړو حاصل کړو او د ښځو په کښې هیڅ تذکره نۀ کیږی۔ نو دا آیت نازل شو۔ (چه که په زنانو کښې دا لس صفات پیدا شو نو الله به ورته بخښنه وکړی او لوی اجر چه جنت دے هغه به ورکړی)۔ نو د زنانو جدا تذکره ئے وکړه اګرکه دوی د سړو په احکامو کښې داخل دی خو د هغوی د زړه خوشحالولو دپاره داسے وشو۔

الْمُسْلِمِينَ : اول صفت اسلام دے، اسلام معنیٰ ده انقیاد (تابع کیدل) او خبره منل او په شریعت کښې د پنځو خبرو منلو ته اسلام وائی۔ کلمه توحید، صلاة، زکاة، صوم رمضان، حج۔ بیا په اسلام کښې مراتب شته کله چه مطلق ذکر شی نو ټولو ته شامل وی او کله چه د ایمان سره یو ځای شی نو بیا دغه پنځه خیزونه مراد وی۔

وَالْمُؤْمِنِينَ : دویم صفت ایمان دے چه دلته د زړه تصدیق او یقین ته وئیلے شی ځکه چه مخکښې اسلام ذکر شو هغه ظاهری اعمالو ته وئیلے شی۔

نو اُوس ئے ورپسے ایمان راوړو چه دوی کښې د ظاهری انقیاد سره سره باطنی انقیاد او د الله په وعدو پوره یقین هم شته۔

وَالْقَانِتِينَ : دریم صفت : قانت : تابعداری کونکے، عبادت گزار یا هغه خلك چه په عبادت او طاعت باندے همیشوالے کوی۔ او قنوت معنیٰ د اخلاص هم ده، او دا ئے ورپسے ځکه راوړو چه کله په عمل یا په دعویٰ د ایمان کښې اخلاص نۀ وی نو دا صفت ئے ددے وجه نه ذکر کړو۔ دارنګه کله انسان عمل کوی خو همیشوالے پکښې نۀ کوی نو قنوت ئے راوړو چه دا عمل به همیشه کوے۔

وَالصَّادِقِينَ : څلورم صفت : صدق دے، یعنی دوی په خبرو کښې رشتینی وی او کومه وعده ئے چه کړے په هغے کښې هم رشتینی دی او د دروغو او بی وعده گئ نه ځان ساتی۔ او عمل کښې به رشتینی وی۔ او هرکله چه قنوت طاعت ته وئیلے شی او کله

طاعت په دروغـه او منافقت سره کیږي نو صدق ئې راوړو چه پدې طاعت کښې به رشتینی وي.
وَالصّٰبِرِيْنَ : پنځم صفت صبر دے. په صدق کښې دوام او همیشوالے ضروري دے او چه رشتیا همیشه وئیلے کیږي نو مصیبتونه او تکالیف پکښې راځي نو د هغې دپاره ئې علاج صبر صفت ذکر کړو.
وَالْخٰشِعِيْنَ: دا شپږم صفت دے، یعنې الله ته عاجزي کونکي، د هغهٔ نه یریدونکي، د هغهٔ په عبادت کښې عاجزي کونکي. نو د مانځه او بهر د مانځه نه دواړو ته شامل ده. کله نا کله صبر د انسان طبیعت وي یا د کمزورئ د وجه نه صبر کوي نو خشوع ئې ذکر کړه. یعنې سبب د صبر تواضع ده الله تعالیٰ ته په زړه او اندامونو سره. په چا کښې چه خشوع راشي نو صفت د انقیاد پکښې خود بخود پیدا کیږي.
وَالْمُتَصَدِّقِيْنَ : اوم صفت صدقه ورکول دي، دا فرضي او نفلي دواړو ته شامل ده، او صدقه چونکه دلیل او سبب د خشوع وي نو پدې وجه ئې د خشوع پسے صدقه راوړه، ځکه چه کله د مالدارئ په وجه انسان د خشوع د صفت نه خالي وي بلکه تکبر کوي.
وَالصّٰٓئِمِيْنَ: اتم صفت روژه نیول دي، نفلي او فرضي دواړو ته شامل ده. په صوم سره په نفس کښې ایثار (قربانی) پیدا کیږي نو دا باعث ګرځي په صدقه کولو او کله په صدقه کولو کښې جذبه د ایثار نهٔ وي نو په صوم سره به جذبه د ایثار پیدا شي.
وَالْحٰفِظِيْنَ : د عورت حفاظت ئې د صوم سره نزدے راوړو ځکه چه د روژو په وجه د عورت حفاظت بنه کیږي، خو شرط دا دے چه خوراك څکاك پکښې لږ کم کوي.
وَالْحٰفِظٰتِ : سره ئې (فُرُوْجَهُنَّ) نه ذکر نکړو ځکه چه د زنانو سره عورت ذکر کول مستهجن (قبیح) دي او بل د مقام نه معلومیږي.
وَالذّٰكِرٰتِ: ددے ذکر تفصیل روستو آیت کښې راځي. پدے کښې اشاره ده چه مؤمن به هر وخت، شپه او ورځ الله تعالیٰ په زړه، ژبه سره بنه یادوي.

| وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَّلَا مُؤْمِنَةٍ اِذَا قَضَى اللّٰهُ |
|---|
| او نهٔ دي جائز مؤمن سړي او مؤمنې ښځې له چه کله فیصله کوي الله تعالیٰ |
| وَرَسُوْلُهٗٓ اَمْرًا اَنْ يَّكُوْنَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ مِنْ اَمْرِهِمْ وَمَنْ |
| او رسول د هغه د یو کار چه وي دے هغوی لره اختیار د کار د هغوی نه او چا |

يَعْصِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَالًا مُّبِينًا ﴿٣٦﴾

چه نافرمانی اُوکړه د الله او د رسول د هغه نو یقیناً دے گمراه شو په گمراهئ ښکاره سره۔

**تفسیر** : دا بـل خـطاب دے ایمان والو ته، غرض ئے دا دے چه د الله او د رسول په مقابله کښې به خپل اختیار او خپله خوښه نهٔ استعمالوئ، داسے به نهٔ وائے چه زما خپل اختیار دے چه زهٔ څه کوم هغه به کوم۔ نو دلته الله فرمائی چه تهٔ بنده ئے نو د الله او د رسول طاعت به کوے۔

## شان نزول

(۱) دا آیت د زینب رضی الله عنها په باره کښې نازل وو، ابن جریرؒ، ابن مردویهؒ د ابن عباس ﷛ نه روایت کړے فرمائی : رسول الله ﷺ زینب بنت جحش ته د زید بن حارثه سره د وادهٔ کـولـو پیـغـام ورکړو، نو هغویٔ عُذر وکړو چه زهٔ ورسره نکاح نکوم (او د هغے قوم وویل چه د قریشو یو خاندانی ښځه د یو آزاد کړے شوی غلام سره وادهٔ نشی کولے) رسول الله ﷺ ورته وفرمایل :[بَلٰی فَانْکِحِیْهِ] ددهٔ سـره نکاح وکړه۔ هغے وویل اے د الله رسوله !زهٔ به د خپـل ځان سره مشـوره وکـړم نـو دوی لا پـدے خبرو اترو کښې لګیا وو چه الله تعالیٰ دا آیت نـازل کـړو۔ هـغـے وویـل : اے د الله رسـولـه! تـا زما د نکاح دپاره غوره کړیدے؟ هغه وفرمایل : آو، هغے وویل :[اِذَنْ لَا اَعْصِیْ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ قَدْ اَنْکَحْتُهٗ نَفْسِیْ]
اُوس بـه زهٔ د رسول الله ﷺ خـلاف نـکـوم، مـا هـغــهٔ تـه ځان په نکاح ورکړو۔ د ابن عباس ﷛ په یـو بل روایت کښې دی چه رسول الله ﷺ زیـنـب تـه وویل : زما اراده ده چه زهٔ ستـا وادهٔ د زیـد بـن حـارثـه سـره وکـړم څـکـه چه ما هغه ستا دپاره خوښ کړیدے۔ هغے وویل : اے د الله رسوله ! لیکن زهٔ ئے د خپـل ځان دپاره نهٔ خوښوم۔ او زهٔ د خپـل قوم پیغله یم او ستا د ترور لور یم نو زهٔ دا کار نشم کولے نو دا آیت نازل شو (وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ)۔ یعنی د الله د امر په خـلاف بـه د دوی هیـڅ اختیار نهٔ وی۔ نو دے وویل : زهٔ خبره منم، ستا چه څنګه خوښه وی هغه وکړه، نو زید ته ئے په نکاح ورکړه او هغه ورسره واده وکړو، آه۔

لیـکـن زیـنـب ذهـنی طور سره ددے وادهٔ نه مطمئن نهٔ وه۔ زید چه کله وکتل چه ددے وادهٔ هیـڅ فائده نشته نو رسول الله ﷺ نـه ئے زینب له د طلاق ورکولو اجازت اوغوښتو، لیکن رسول الله ﷺ هغه منع کولو، لکه روستو آیت کښې راځی۔

(۲) شان نزول : ام کلثوم بنت عقبه بن ابی معیط اولنئ مهاجره وه چه هجرت ئے کړے

وو دے خپل ځان رسول الله ﷺ ته وبخلو نو رسول الله ﷺ هغه زيد بن حارثه ته ورکوله نو هغه او د هغے ورور ناراضه شو او دا ئے وویل چه مونږ خو رسول الله ﷺ غوښته او هغه ئے خپل غلام ته ورکوی، که رسول الله ﷺ ئے کوی نو مونږ تيار يو۔

نو الله دا آيت نازل کړو چه خپله خوښه به نۀ استعمالوئ۔ بيا ددے آيت حکم عام دے اګر که سبب ئے خاص دے۔

د آيت معنیٰ داده چه په يوه معامله کښې د الله او د هغۀ د رسول حکم صادر شي نو هيڅ يو مومن سړی يا ښځے له دا اختيار باقی نۀ پاتے کيږی چه ددے مخالفت وکړی او په خپله يا د بل چا په رائے باندے عمل وکړی، ځکه چه داسے کول د الله او د هغۀ د رسول سراسر نافرمانی او ښکاره طور سره ګمراهی ده۔

حافظ ابن کثيرؒ ليکی چه په دے آيت کښې ذکر شوے حکم ټولو کارونو ته شامل دے، يعنی په هره معامله کښې چه کله د الله او د هغۀ د رسول ﷺ حکم صادر شی، نو هيچا دپاره هم ددے مخالفت کول جائز نۀ دی، او نۀ د چا د قول يا رائے څۀ حيثيت باقی پاتے کيږی، لکه څنګه چه الله تعالیٰ د سورت نساء په (٦٥) آيت کښې فرمائيلی دی: ﴿ فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّى يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِي أَنْفُسِهِمْ حَرَجًا مِمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا ﴾ (ستا په رب مے دے قسم وی! دا خلق هغه وخته پورے مومنان کيدے نشی تر څو پورے چه تا په خپلو اختلافی کارونو کښې خپل فيصله کونکے اونۀ منی، بيا ستا د فيصلے په باره کښې په خپلو زړونو کښې هيڅ تکليف محسوس نۀ کړی، او پوره طور سره دا تسليم کړی)۔

صاحب د فتح البيان ليکی: دا آيت د کتاب او سنت د فيصلے د اتباع په لزوم باندے دليل دے او بل پدے خبره چه تقليد او رأی يو مذموم شے دے او د الله او د رسول د نص په مقابله کښې د هيچا خپل اختيار نشته۔

وَمَا كَانَ: ١- أَیْ لَا يَجُوزُ. ٢- لَا يَنْبَغِيْ۔ يعنی مؤمن سړی او مؤمنے ښځے له دا جائز هم نۀ دی او مناسب هم نۀ دی۔

قَضَى اللهُ: يعنی هغه فيصلے او حکمونه چه الله په قرآن کريم کښې ذکر کړيدی۔

وَرَسُولُهُ: يعنی هغه فيصلے او حکمونه چه د رسول الله ﷺ په صحيح سنت سره ثابتے وی۔

الْخِيَرَةُ: د خپل اختيار چلولو دير مثالونه دی، بعض خلک په ودونو کښې د حدودو نه

زیات تېنګ تېکور او نورې نافرمانیانې کوی، که هغوی منع کړې شی نو وائی چه زمونږ خپل واده دې خپل اختیار مو دې. که ورته وویل شی چه خور لور له میراث ورکړه نو وائی چه دا څوك ورکوی، دا زمونږ د پښتو او رواج خلاف ده. که ورته وویل شی چه پېنځې پورته کړه وائی چه زما خپله خوښه ده، دې کښې د چا څه کار دې. که ورته وویل شی چه پدې حکم باندې عمل وکړه او دا سنت طریقه ده، نو وائی چه زمونږ خپل مذهب داسې دې. مونږ به د خپل مذهب پسې روان یو. دا ټوله ګمراهي ده. ډیر خلك د رسول الله ﷺ تابعدارئ ته نهٔ تیارېږی.

وَمَن يَعۡصِ ٱللَّهَ: که څوك ووائی چه یو تن خپله خوښه استعمال کړی د الله او د رسول د حکم په مقابله کښې نو څه به وشی نو الله فرمائی چه دا عصیان دې، او ښکاره ګمراهي ده.

دلته د عصیان نه مراد خپله رائې او اختیار د قرآن او سنت په نص باندې مقدم کول دی.

امام شافعیؒ ددې آیت نه دا خبره راوخکلې ده: [أَجْمَعَ الْمُسْلِمُوْنَ عَلٰى أَنَّ مَنِ اسْتَبَانَتْ لَهٗ سُنَّةٌ مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ لَمْ يَحِلَّ لَهٗ أَنْ يَّدَعَهَا لِقَوْلِ أَحَدٍ] د ټولو مسلمانانو پدې اجماع ده چه چا ته د رسول الله ﷺ د طرفه یو سنت طریقه واضحه شی نو هغه له دا حلال نهٔ دی چه د چا د وینا دپاره ئې پریدی. که چا پریخوده نو ګمراه دې.

| وَإِذۡ تَقُولُ لِلَّذِيٓ أَنۡعَمَ ٱللَّهُ عَلَيۡهِ وَأَنۡعَمۡتَ |
|---|
| او کله چه وئیل تا هغه سړی ته چه احسان کړې وو الله په هغه باندې او احسان کړې وو تا |
| عَلَيۡهِ أَمۡسِكۡ عَلَيۡكَ زَوۡجَكَ وَٱتَّقِ ٱللَّهَ وَتُخۡفِي فِي |
| په هغه باندې، بند اُوساته ځان سره بی بی خپله، او اُویرېږه د الله نه، او پټولو تا په |
| نَفۡسِكَ مَا ٱللَّهُ مُبۡدِيهِ وَتَخۡشَى ٱلنَّاسَ وَٱللَّهُ |
| زړه خپل کښې هغه چه الله تعالیٰ راښکاره کونکې د هغې دې، او یریدلې تهٔ د خلقو نه او الله |
| أَحَقُّ أَن تَخۡشَىٰهُۖ فَلَمَّا قَضَىٰ زَيۡدٞ مِّنۡهَا |
| ډیر لائق دې چه اُویرېږې تهٔ د هغه نه نو هرکله چه پوره کړو زید (رضی الله عنه) د هغې (ښځې) نه |

وَطَرًا زَوَّجْنَاكَهَا لِكَيْ لَا يَكُوْنَ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ

حاجت، په نکاح باندے درکړه مونږ هغه تا ته دے دپاره چه نشي په مؤمنانو باندے

حَرَجٌ فِيْ أَزْوَاجِ أَدْعِيَائِهِمْ إِذَا

تنګسيا په ښځو د خولو بللے شوو بچو (متبنى ګانو) د هغوى کښ کله چه

قَضَوْا مِنْهُنَّ وَطَرًا وَكَانَ أَمْرُ اللّٰهِ مَفْعُوْلًا ﴿۳۷﴾

پوره کړى هغوى د دوى نه حاجت او دے حکم د الله تعالىٰ پوره کړے شوے۔

**تفسير :** دا بل خطاب دے رسول الله ﷺ ته او پدے کښ غرض دا دے چه د الله دين بيان کړه او په رواجونو رد وکړه په غير د خوف د خلکو نه. او خاص واقعه د زيد بن حارثه ؓ پکښ بيانيږى۔

کله چه زيد بن حارثه ؓ وادهٔ وکړو او کور ئے سم رانغلو نو هغهٔ رسول الله ﷺ نه وغوښتل چه زينب له طلاق ورکړى خو د الله رسول ورته وفرمايل چه دا ځان سره وساته او مقصد ئے دا وو چه طلاق ورنکړى نو ښه به وى، ځکه که هغه ئے طلاقه کړى او الله ما ته امر وکړى چه اُوس ئے ته په نکاح واخله نو دا خو رواج دے او ددے ماتول ګران کار دے، تولـه علاقـه کښ بـه يوه بـلوئ جوړه شى، او د بلوئ نه او د خلکو د خبرو نه بنده تنګيږى، رسول الله ﷺ هم تنګيدو، ځکه چه بشر وو. ليکن الله تعالىٰ د رسول الله ﷺ د مزاج خلاف کار وکړو او د زيد د طلاق نه روستو الله تعالىٰ هغه خپل رسول ته په نکاح ورکړه نو خلکو خبرے شروع کړے چه خلك د اينګور د نکاح نه منع کوى او خپله ئے وکړه نو الله دا آيتونه راوليږل چه د خلکو د خبرو پرواه مهٔ ساته او خپل دين کلك بيانوه۔ نو په نبى کريم ﷺ باندے د بعض خلکو شبهات پيدا شول نو د هغے جوابونه الله تعالىٰ په روستو آيتونو کښ کوى۔

د آيت معنىٰ داده چه زيد بن حارثه ؓ چه په دهٔ باندے الله تعالىٰ د اسلام او د خپل نبى د صُحبت او ملګرتيا غوښته نعمتونه کړى دى، او په دهٔ باندے نبى کريم ﷺ هم احسان وکړو چه دا ئے آزاد کړو، محبت ئے ورسره اُوکړو چه خپل متبنى ئے جوړ کړو، او د خپلے ترور د لور سره ئے ددهٔ وادهٔ اوکړو، نبى ﷺ دهٔ ته وائى چه ته خپلے ښځے له طلاق مه ورکوه، او ددے په باره کښ د الله نه يريږه، يعنى ددے حقونه ادا کوه۔ خير دے که ښځه

درسره سختی کوی نو ته ورسره نرمی کوه. ځکه چه طلاق به ددے دپاره د شرم سبب جوړ شی، او دیته به ذهنی تکلیف ورسیږی، او ته خپل خیال هم کوه، هسے نهٔ چه ددے نه پس تاته بنه بنځه ملاوّ نشی. لکه چه پورته بیان کړے شو، زینب به همیشه دپاره زید ته د خپل خاندانی شرافت احساس ورکولو، او مینځ ته به نورے سپورے ستغے خبرے راتللے. دے وجے نه زید دے له طلاق ورکول وغوښتل، نو نبی ﷺ هغهٔ ته د صبر او ضبط (کنټرول) نصیحت کولو، حالانکه نبی ﷺ د وحی په ذریعه بنهٔ پوهه وو چه طلاق کیږی به، او د الله د حکم مطابق به هغه د زینب سره وادهٔ کوی.

وَتُخْفِيْ فِيْ نَفْسِكَ مَا اللّٰهُ مُبْدِيْهِ: یعنی ((تا په زړه کښ هغه شے پټ ساتلو د کوم چه الله راښکاره کونکے دے)).

## رسول الله ﷺ په زړه کښ کومه خبره پټه ساتله؟

نو دے کښ غلط تفسیر چا دا کړیدے چه د رسول الله ﷺ په زړه کښ دا وه چه دا زنانه طلاقه کړی او زهٔ ئے په نکاح واخلم او د هغے سره ئے مینه پیدا شوه، لیکن هغه ته ئے د امر بالمعروف او د نیکے مشورے ورکولو باندے د عمل په وجه حکم وکړو چه دا مهٔ طلاقوه. او دا قول قرطبیؒ د قتادهؒ، ابن زیدؒ او نورو مفسرینو نه نقل کړیدے او ابن جریرؒ هم ذکر کړیدے او قرطبیؒ دے ته احسن قول وئیلے دے.

لیکن دا تفسیر د ډیرو وجو نه خطاء دے یو دا چه رسول الله ﷺ خو زینب د مخکښ نه لیدلے وه، د هغے د ترور لور وه، نو دا ډیره بعیده ده چه اوس ئے په زړه کښ واقع کیږی، نبی کریم ﷺ ددے نه مبرئ (پاک) دے. دویم دا چه بیا ئے ولے د زید بن حارثه دپاره پرے جرګه کوله اول نه به ئے خان له کړے وے. دریم دا چه دلته الله تعالیٰ داسے وئیلی دی چه تهٔ په زړه کښ هغه شے پټ ساتے چه الله ئے راښکاره کوی او الله کومه خبره راښکاره کړیده، د محبت او عشق کومه خبره ئے نهٔ ده راښکاره کړے بلکه الله چه راښکاره کړیده نو هغه دا روستو (وَتَخْشَى النَّاسَ) خبره ده. یعنی رسول الله ﷺ دا خبره په زړه کښ ساتله چه الله به ما ته ددے د نکاح حکم وکړی او ما ته به د خلکو نه لانجه جوړه شی. یعنی د خلکو د خبرو نه یریدل ئے په زړه کښ پټ ساتل.

او په دغه ذکر شوی تفسیر باندے علاء الدین الخازنؒ او خطیب شربینیؒ رد کړیدے.

❁ دے کښ دویم مطلب دا دے چه الله تعالیٰ ورله خبر ورکړے وو چه دا زنانه به ستا په

نکاح کښې راځي لکه خبره د سیدنا علي بن الحسینؒ نه نقل ده۔ (زاد المسیر وفتح البیان)
نو په ظاهره کښې ئې زید ته ووئیل چه دا مهٔ طلاقوه لیکن زړه کښې ئې دا وه چه دا به زما
په نکاح کښې راځي نو الله تعالیٰ دا خبره رابښکاره کړه چه هغه ئې ورله په نکاح کښې
راوسته۔ او پدې خبره ئې ملامتیا ووئیله چه تا ولې زید ته ووئیل چه (اَمْسِكْ عَلَيْكَ
زَوْجَكَ) او حال دا چه الله تا ته خبر درکړے وو چه دا به ستا ښځه وي۔ (فتح البیان)
وَتَخْشَى النَّاسَ : ١- اَيْ اَنْ يَّتَكَلَّمُوْا فِيْكَ ۔ یعني تهٔ د خلکو نه یریدلے چه دوی به تا
پسے خبرے وکړي۔ اَيْ تَخَافُ مِنْ تَعْيِيْرِهِمْ۔ یعني تهٔ د هغوی د پیغور نه یریدلے۔
٢- تَسْتَحْيِيْهِمْ۔ تا د خلکو نه حیاء کوله۔ (فتح البیان)
دلته د خشیت نه خشیتِ اعتقادي مراد نهٔ دے چه په عقیده د تعظیم او تعبّد سره یره
کوي ځکه دغه یره خو صرف د الله تعالیٰ نه کیدے شي لکه چه وَلَمْ يَخْشَ اِلَّا اللّٰهَ (توبه
:١٨) کښې مراد ده۔ بلکه د خلکو د طعنونو او د هغوی د ملامتیا نه ځان بچ کول مراد
دي۔ لکه مفسرینو دلته دغه دوه معاني کړیدي۔ (احسن الکلام)
عائشه رضی الله عنها فرمائي : که نبي ﷺ د وحي نه څه شے پټولے شوے نو دا آیت
(وَتُخْفِيْ فِيْ نَفْسِكَ مَا اللّٰهُ مُبْدِيْهِ) به ئې پټ کړے وے۔ (السراج المنیر) (بخاري : ٧٤٢٠)
وَاللّٰهُ اَحَقُّ اَنْ تَخْشَاهُ: امام بغويؒ او بیا خطیب شربینيؒ لیکي : ددے دا مطلب نهٔ دے
چه نبي ﷺ د الله تعالیٰ نه په مخکښې حالت کښې یره نهٔ کوله ځکه چه صحیح حدیث
کښې نبي کریم ﷺ فرمائي : [اَنَا اَخْشَاكُمْ لِلّٰهِ وَاَتْقَاكُمْ لَهٗ] بلکه معنیٰ دا ده چه داسے
حالاتو کښې چه یو طرف ته د خلکو نه یره کول وو او بل طرفته د الله تعالیٰ نه یره وي نو
پدے کښې به د الله تعالیٰ نه یره کول مخکښې وي په یره د خلکو باندے۔ یعني پکار دا ده
چه صرف د الله تعالیٰ نه وېره په هر حال کښې یره کولے۔
فَلَمَّا قَضٰى زَيْدٌ مِّنْهَا وَطَرًا : د زیات وضاحت دپاره الله وفرمایل چه کله زید زینب
سره وادهٔ وکړو او خپل ضرورت ئې پوره کړو، نو مونږ په غیر د ولي او گواهانو او په غیر
د مهر نه ستا وادهٔ د هغې سره وکړو، دے دپاره چه همیشه دپاره دا خبره واضحه شي چه
په ځلے باندے د نیولو ځامنو ښځو سره د هغوئ د خاوندانو د مرگ یا طلاق ورکولو نه
پس په وادهٔ کولو کښې هیڅ بدي او تنگسیا نشته۔ او د الله فیصله به بهرحال پوره
کیدله۔
زَوَّجْنَاكَهَا: پدے کښې تاریخي لحاظ سره دوه خبرے کیږي، یو دا چه دا نبي کریم ﷺ ته

الله تعالیٰ په نکاح ورکړه بغیر د نکاح او بغیر د ولی او بغیر د ګواهانو نه۔ الله ورله د عرش نه نکاح وکړه۔ او ظاهر د قرآن نه همداسے معلومیږی۔ او په روایت د بخاری کښې دی چه زینب رضی الله عنها به د په نورو بیبیانو داسے فخر کولو چه (زَوَّجَكُنَّ اَهَالِيْكُنَّ وَزَوَّجَنِيَ اللّٰهُ مِنْ نَبِيِّهٖ مِنْ فَوْقِ سَبْعِ سَمٰوَاتٍ] تاسو خپلو خپلوانو ورکړی وئ او زهٔ الله تعالیٰ خپل نبی ته د اوو آسمانونو دپاسه په نکاح ورکړے یم) (بخاری: ۷۴۲۰)

دویم په تاریخ د ابن هشام کښې دی چه الله ورله نکاح جائز کړه لیکن رسول الله ﷺ د هغے د ورور نه مطالبه وکړه نو هغوی تیار شو او زینب رضی الله عنها ته ئے زید په جرګه ورولیږلو چه هغے ته زما د طرفنه په جرګه ورشه، هغه ورغلو او هغے ته آواز وکړو او دا ئے ورته وویل چه رسول الله ﷺ تا په نکاح اخلی نو هغے ووېل: [مَا اَنَا بِصَانِعَةٍ شَيْئًا حَتّٰى اُؤَامِرَ رَبِّيْ] (مسلم فی النكاح حدیث ۸۹، والنسائی فی النكاح باب ۲۶ واحمد ۳/۱۹۵)۔

زهٔ لا هیڅ نهٔ کوم تردے چه زهٔ د خپل رب سره مشوره وکړم او د استخارے مانځه ته پاځیده۔ بیا ئے نکاح وکړه۔ او په هغے کښې عقد هم وشو او مهر هم مقرر شو۔ مګر ددے دوارو خبرو منافات نشته، دغه به هم شوی وی او الله هم ورله په نکاح ورکړه۔

لِكَيْ لَا: یعنی پدے حکم او رواج ختمولو کښې لویه فائده دا ده چه د مؤمنانو نه حرج او تنګسیا لرے کړے شی چه د یو تن د متبنیٰ ښځه به وی هغه به طلاقه کړی وی او ددهٔ به خوښه وی لیکن دے به ئے نشی کولے د رواج د وجه نه۔ او پدے کښې رد د شرك فی التحریم وشو۔ چه د ځان نه به حرام او حلال نهٔ جوړوئ ځکه چه پدے سره په بندګانو باندے حرج راځی۔

معلومه شوه چه په رسمونو او بدعاتو کښې سراسر حرج دے۔ کومو علاقو کښې په ودونو او مړو کښې رسمونه زیات وی نو حرج پکښې زیات وی، خلك په کمو مهرونو ودونه نهٔ ورکوی نو ډیر هلکان او جینکۍ بې وادهٔ ګرځی۔ او دا لوی ظلم دے۔ والله المستعان۔

| مَا كَانَ عَلَى النَّبِيِّ مِنْ حَرَجٍ فِيْمَا فَرَضَ اللّٰهُ |
|---|
| (دے دپاره چه) نهٔ وی په نبی باندے تنګسیا په هغه څه کښې چه مقرر کړیدی الله تعالیٰ |
| لَهٗ سُنَّةَ اللّٰهِ فِي الَّذِيْنَ خَلَوْا |
| دهٔ لره (ډیر نکاحونه)، طریقه د الله تعالیٰ ده په هغه انبیاؤ کښې چه تیر شویدی |

مِنْ قَبْلُ وَكَانَ أَمْرُ اللهِ قَدَرًا مَّقْدُورًا ﴿۳۸﴾

مخکښې دده نه او دے حکم د الله په اندازه مقرر کړے شوے. (تقدیر مقرر کړے شوے).

الَّذِيْنَ يُبَلِّغُوْنَ رِسَالَاتِ اللهِ وَيَخْشَوْنَهٗ

(دا) هغه کسان دی چه رسوی پیغامات د الله تعالیٰ او یریږی د هغه نه

وَلَا يَخْشَوْنَ أَحَدًا إِلَّا اللهَ وَكَفٰى بِاللهِ حَسِيبًا ﴿۳۹﴾

او نۀ یریږی د هیچا نه سویٰ د الله تعالیٰ نه او کافی دے الله تعالیٰ حساب کونکے.

**تفسیر:** پدے آیت کښې دوه تفسیرونه دی (۱) ظاهر تفسیر دا دے چه پدے کښې غرض دفع د وَهُم ده د رسول الله ﷺ او د خلکو. د رسول الله ﷺ وهم او خیال دا وو چه زۀ خو د الله پیغمبر یم او دین بیانولو دپاره راغلے یم نو ډیرے ښځے کول به د خواهش تابعداری وی، داسے نۀ چه الله رانه ناراضه شی لکه مؤمن بنده چه کله خپلے بی بی خوا ته ورځی نو هم په زړه کښې ئے راځی چه زۀ ددے مقصد دپاره پیدا نۀ یم نو الله ورله دا وَهُم او ګمان ختموی چه پدے کښې هیڅ ګناه نشته، کله چه یو کار جائز وی په هغے کښې به په زوره ګناه نۀ ګنړے، لکه د بعض تصوف والو دا طریقه وی چه د الله تعالیٰ نه ځان مخکښې کوی. او د ځان نه حلال او حرام جوړوی. دویم د خلکو ګمان دا وو چه دا څنګه نبی دے چه ډیر نکاحونه کوی، ښځے دی او دے دے، نو الله تعالیٰ دا وَهُم دفع کړو چه دا اعتراض مۀ کویٔ بلکه الله تعالیٰ د پخوا نه د انبیاء علیهم السلام د اکرام دپاره ډیرے ښځے جائز کړیدی، نو د نکاح فائده دلته بیانوی چه الله پیغمبرانو ته ولے ډیر نکاحونه ورکوی.

معنیٰ دا ده: یعنی نبی پدے باندے هیڅ ګناهګار نۀ دے چه الله ورله څه مقرر کړی وی چه هغه ډیرے بیبیانی دی او تاسو هم هغه باندے بد ګمان مۀ کویٔ. الله ورله اجازه ورکړے ده.

فَرَضَ اللهُ: اَیْ مِنْ كَثْرَةِ الْاَزْوَاجِ. یعنی چه الله ورله مقرر کړیدی چه هغه ډیرے بیبیانے کول دی.

(۲) دویم تاویلی تفسیر دے چه مَاكَانَ خبر په معنیٰ د انشاء دے، او دا په معنیٰ د مَا يَنْبَغِىْ دے. فرض الله نه مراد: تبلیغ د دین دے. او (لَهٗ) نه مراد (عَلَيْهِ) دے. معنیٰ دا ده چه نبی لره دا مناسب نۀ دی چه ځان تنګ کړی (یعنی ځان دے نۀ تنګوی) په هغه کار کښې چه

دهٔ باندے الله فرض کړيدے چه هغه تبليغ د دين دے. يعنی د دين په بيانولو کښې دے ځان نهٔ تنګوی. بلکه د الله دين دے بيان کړی دغسے پخوانو پيغمبرانو ته هم حکم وو.

او ددے ربط د ماقبل واقعے سره دا دے چه د زينب په نکاح کښې خلکو په رسول الله ﷺ باندے طعنونه وويل نو پدے آيت کښې ترغيب ورکوی چه په دے نکاح کښې فريضه د الله تعالیٰ مخلوق ته رسول دی چه هغه د شرکی رسم ترديد کول دی، نو نبی ﷺ لره نهٔ دی جائز چه پدے کار کښې څهٔ حرج محسوس کړی. دا تفسير ظاهر د قرآن نهٔ دے اول تفسير غوره دے.

سُنَّةَ اللّٰهِ: دا منصوب دے په نزع الخافض سره. اَیْ کَسُنَّةِ اللّٰهِ. يعنی تا سره داسے طريقه کوی لکه طريقه د الله تعالیٰ په پخوانو پيغمبرانو کښې چه هغوی ته الله تعالیٰ ډيرے بيبيانے ورکړے وے لکه د سليمان ﷺ زر ښځے وے درے سوه پکښې وينځے وے. او د داود ﷺ سل بيبيانے وے. (فتح البيان)

يا سَنَّ اللّٰهُ ذٰلِكَ سُنَّةً: الله تعالیٰ دا طريقه مقرر کړيده په پخوانو پيغمبرانو کښې.

الله تعالیٰ انبياء عليهم السلام ته ولے ډيرے بيبيانے ورکوی؟ يو خو د هغوی خواهش زيات وی، بدنی طاقت ئے زيات وی. دويم د هغوی ضروريات زيات وی. دريم دا چه د دين دعوت دپاره. څلورم د الله دپاره قربانی ورکوی نو ځکه ورله الله تعالیٰ خواهشات پوره کوی. پنځم دا چه پدے کښې د اُمت په زنانو باندے رحم کول دی چه کومه بی بی د نبی په نکاح کښې راشی او مؤمنه وی نو هغه جنتی شوه.

قَدَرًا مَّقْدُورًا: امر د الله تعالیٰ اندازه دے او بيا دغه اندازه اندازه کړے شويده. او پدے کښې تاکيد مقصد وی لکه د (لَيْلٌ اَلْيَلُ) او (رَوْضٌ اَرِيْضٌ) او ظِلٌّ ظَلِيْلٌ. يعنی د الله امر ډيره پخه او صحيح اندازه وی. يا معنیٰ ده: حکم د الله تعالیٰ تقدير دے مقرر کړے شوے.

اَلَّذِيْنَ يُبَلِّغُوْنَ: دا صفت يا بدل دے د مخکښې ﴿اَلَّذِيْنَ خَلَوْا مِنْ قَبْلُ﴾ نه يعنی دغه انبياء عليهم السلام دپاره ئے ځکه ډيرے بيبيانے جائز کړے وے چه دوی به د الله تعالیٰ دين رسولو. اُوچت خلك وو. (يُبَلِّغُوْنَ) مضارع ده حکايت د حال ماضيه نه دے. او پدے آيت کښې مقصد دا دے چه پيغمبرانو د الله تعالیٰ پيغامات رسولی دی، نو دغه شان به ئے تهٔ هم رسوے، او دارنګه پيغمبرانو ته الله تعالیٰ ډيرے بيبيانے ورکړی نو تا له ئے هم درکوی.

وَكَفٰى بِاللّٰهِ حَسِيْبًا: پدے کښې ېره ده هغه کسانو ته چه په پيغمبرانو باندے اعتراضونه کوی، يعنی الله تعالیٰ به د دوی سره حساب وکړی، چه په څه سبب سره

دوی اعتراضونه کول۔

| مَا كَانَ مُحَمَّدٌ أَبَآ أَحَدٍ مِّن رِّجَالِكُمْ وَلَٰكِن رَّسُولَ اللَّهِ |
|---|
| نهٔ دے محمد (ﷺ) پلار د هیڅ تن د سړو ستاسو نه لیکن رسول د الله تعالیٰ دے |
| وَخَاتَمَ النَّبِيِّينَ وَكَانَ اللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمًا ﴿٤٠﴾ |
| او آخر دے د پیغمبرانو نه، او دے الله په هر شی باندے پوهه۔ |

**تفسیر:** دا بل خطاب دے مؤمنانو ته او پدے کښې جواب د اعتراضونو دے کوم چه په نکاح د زینب رضی الله عنها کښې راپیدا شوی وو۔ او دا ذهن سازیانے دی، نو دا دفع د بل وَهم او ذهن سازی ده، هغه دا چه که تاسو وایئ چه دهٔ د اِینګور سره نکاح وکړه نو پدے خبره لږ سوچ وکړئ، د پیغمبر خو بالغ ځوی نشته، نو اِینګور به ئے د کوم ځای نه راشی۔ نو کوم اعتراض چه دوی کوی، آیا پدے خبره دوی کله سوچ کړیدے۔ زید بن حارثه رضی الله عنه خو یو پردے سړے وو، صرف د یو رواج مطابق ورته رسول الله ﷺ په خوله باندے د محبت په وجه ځوی ووئیلو نو دا خو د هغه حقیقی ځوی نشو، نو که د هغه ښځه د هغه د طلاق نه روستو په نکاح واخلی نو دے کښې څه باك دے۔

مِن رِّجَالِكُمْ: رجل بلوغ والا شخص ته وائی، د رسول الله ﷺ نا بالغ بچی ابراهیم، قاسم، او عبد الله چه بل نوم ئے طیب او مُطهر وو۔ مګر دا په وړوکوالی کښې وفات شوی وو۔

وَلَٰكِن رَّسُولَ اللَّهِ: سوال پیدا شو چه هرکله زمونږ د یو تن حقیقی پلار نهٔ دے، نو بیا څه ضرورت وو چه دهٔ د زینب سره نکاح کوله اګرکه اِینګور ئے نهٔ ده خو خلك طعنونه کوی؟ جواب وشو وَلَٰكِن رَّسُولَ اللَّهِ۔ یعنی دا پیغمبر د الله رسول دے او هغه ددے دپاره رالیږلے دے چه هغه پرے رسمونه او رواجونه ختم کړی نو دا مسئله خلکو ته رَسول فرض دی۔

وَخَاتَمَ النَّبِيِّينَ: دریم اعتراض: څه ضرورت وو چه دهٔ دا خبره رسوله بلکه بل چا ته به ئے پریخے وے، هغه به رسولے وے؟ نو جواب شو چه وَخَاتَمَ النَّبِيِّينَ۔ دا آخری نبی دے ددهٔ نه روستو بل نبی نهٔ راځی چه هغه ته د رسمونو او رواجونو رد پریدی۔ نو چا ته ئے پریدی او دا آیت دلیل دے چه دین مُکمل دے او الله تعالیٰ د دین یوه مسئله هم نورو

خلکو او امامانو ته نهٔ ده پرېښې چه هغوی ئې بیان کړي او رسول الله ﷺ نهٔ وي بیان کړي.

خَاتَمَ: مهر او تاپې ته وائي او لکه څنګه چه مهر د خط په آخر کښې لګېږي چه د هغې نه روستو په خط کښې نور لیکل نهٔ کېږي نو دغه شان رسول الله ﷺ د انبیاؤ په آخر کښې راغلو چه ددهٔ نه روستو بل رسول نشي راتللے. نو خاتم په معنیٰ د آخر سره دے لکه رسول الله ﷺ فرمایلي دي چه [وَاَنَا الْعَاقِبُ وَالْعَاقِبُ الَّذِیْ لَیْسَ بَعْدَهٗ نَبِیٌّ] زهٔ عاقب (روستنے) یم او عاقب هغه ته وائي چه د هغه نه روستو بل نبي نهٔ وي. نو د ختم نبوت عقیده د ټولو مسلمانانو اتفاقي ده، او دا په قرآن کریم او متواترو احادیثو کښې ثابته ده نو کوم قیدانیان او مرزایان چه رسول الله ﷺ آخري نبي نهٔ ګڼري دا په قرآن سره کافر دي. او د عیسیٰ ﷺ په آخره زمانه کښې راتلل په صفت د نبوت نهٔ دي بلکه په صفت د داعي او امتي دي، ددې وجه نه هغه ته به نوې وحې نهٔ کېږي بلکه په قرآن او په حدیث باندې به فیصلې کوي. لکه ﴿ وَیُعَلِّمُهُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَالتَّوْرَاةَ وَالْاِنْجِیْلَ ﴾ کښې راغلي دي. بله دا چه هغه خو پخوانے پېغمبر دے.

وَكَانَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَیْءٍ عَلِیْمًا: دا جواب د بل سوال دے چه دا علم چا ته دے چه روستو به بل نبي نهٔ راځي، کیدے شي چه راشي؟ نو الله فرمائي: الله تعالیٰ ته علم دے او هغه دا خبر ورکړیدے چه بل نبي نهٔ راځي.

دارنګه ددې معنیٰ دا هم ده چه الله په هرشي پوهه وو نو هغه ته معلوم وو چه پدې رواج کښې ډېر نقصان دے، او ددې ماتول لازم دي نو ځکه ئې پدې نبي باندې د هغې رد کړو.

| يَا اَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اذْكُرُوا اللّٰهَ ذِكْرًا كَثِيْرًا ﴿۴۱﴾ وَسَبِّحُوْهُ بُكْرَةً |
| --- |
| اے ایمان والو! یادوئ الله تعالیٰ لره په یادولو ډېرو سره. او پاکي وایئ د هغه صبا |
| وَّاَصِيْلًا ﴿۴۲﴾ هُوَ الَّذِيْ يُصَلِّيْ عَلَيْكُمْ وَمَلٰٓئِكَتُهٗ |
| او بیګاه. الله هغه ذات دے چه رحمتونه رالیږي په تاسو باندې او ملائک د هغه بخنه |
| لِيُخْرِجَكُمْ مِّنَ الظُّلُمَاتِ اِلَى النُّوْرِ وَكَانَ بِالْمُؤْمِنِيْنَ |
| غواړي تاسو لره. دې دپاره چه اُویاسي تاسو د تیارو نه رڼرا ته او دے په مؤمنانو |

رَحِيماً ﴿٤٣﴾ تَحِيَّتُهُمْ يَوْمَ يَلْقَوْنَهُ

باندې رحم کوونکې. پیشکشي د دوی به په هغه ورځ چه مخامخ شوي دوی د هغه سره

سَلَامٌ وَأَعَدَّ لَهُمْ أَجْراً كَرِيماً ﴿٤٤﴾

سلام وي او تیار کړې ئې دې دوی لره اجر عزتمند.

**تفسیر:** دا بل خطاب دې مؤمنانو ته چه رشتینې مومنان دې په هر وخت او هر حال کښې الله تعالیٰ لره یادوي، د هغهٔ پاکي، د هغهٔ حمد او ثناء او د هغهٔ لوئي بیانوي.

او د ډیر ذکر کولو حکم ورته ولې کوي؟ نو ددې یوه فائده دا ده چه په ذکر سره د الله تعالیٰ تعظیم او محبت او خوف پیدا کیږي، نو بیا د رسول الله ﷺ اتباع انتهائي آسانیږي. او دا د یو بل سره لازم ملزوم دي. دویم دا چه کله داسې څه حادثه او واقعه راپیښه شي نو د خلکو د عادت مطابق په هغې کښې مختلف قسم خبرې کیږي، او انسان پکښې د الله تعالیٰ نه غافل کیږي، نو الله تعالیٰ ایمان والو ته وائي چه د الله سره تعلق جوړ کړئ او د فضول خبرو نه ځان وساتئ چه د مقصد نه مو غافل نهٔ کړي.

اذْكُرُوا اللَّهَ: دا امر د فرضیت دپاره دې، نو څوک چه د الله تعالیٰ ډیر ذکر نهٔ کوي هغه منافق دې، ﴿وَلَا يَذْكُرُونَ اللَّهَ إِلَّا قَلِيلًا﴾.

ذِكْراً كَثِيراً: ١- ابن عباس رضی الله عنه وائي: الله تعالیٰ چه په خپلو بندګانو باندې کوم عمل واجب کړې نو د هغې یو حد ئې مقرر کړې، او د شرعي عُذر په حالت کښې ئې خپل بنده معذوره ګڼړلې، سوئ د ذکرِ الٰهي نه، ددې هیڅ حد مقرر نهٔ دې، او ددې پرېښودونکې ئې معذور نهٔ دې ګڼړلې، مګر دا چه د چا عقل ختم شي، نو الله تعالیٰ دا د خپل ذکر نه معذوره ګڼړلې. (فتح البیان)

## د الله تعالیٰ د ډیر یادولو شرطونه

١- اتباع د سنت به پکښې وي.

٢- الاخلاص. صرف د الله دپاره به وي، ریاء به پکښې نهٔ وي.

٣- اَلْفَهْمُ بِالْمَعْنیٰ. د ذکر په معنیٰ به پو هیږي نو هله به ئې ذکر کثیر شي.

٤- اَلْأَدَبُ وَالْخَوْفُ: ادب او یرې سره به ئې کوي.

## د ذکر کثیر طریقه

۱- يو د موقع او محل اذكار وئيل. لكه مسجد ته د داخليدو او وتلو اذكار، ۲- د سهار او ماښام اذكار وئيل، او داسې نور. ۳- دارنگه په ورځ كښې د قرآن كريم څه حصه تلاوت كول. او بعض تسبيحات راواخله لكه سبحان الله او الحمد لله، وغيره او درود هر څومره اندازه چه مقرر كړې په ورځ كښې. ٤- او پدې كښې تعليم او تعلم كول، يعنې د علم طلب كول، ٥- په كائناتو كښې فكر كول او د الله عظمت معلوم ول. ٦- او په دين باندې عمل كول. ۷- د الله تعالىٰ نه دعاء كول په خپله ژبه كښې.

**قاعده** : كوم ذكر له چه الفاظ مقرر وي نو هغه به په ژبه سره وائي، هغه په زړه كښې وئيل صحيح نهٔ دي، او كوم ذكر له چه الفاظ مقرر نهٔ وي، هغه په زړه كښې هم كولے شي.

د ذكر د سلو نه زياتې فائدې دي او ډير مزيدار عبادت دے، تول عبادتو نه د الله د ذكر دپاره كيږي.

وَسَبِّحُوهُ : دا تخصيص بعد التعميم دے، دا تسبيحات په ذكر كښې داخل دي ليكن ددې د خصوصيت او اهتمام د وجه نه ئې جدا راوړل. او چونكه د صبا بيگاه د تسبيح بيانولو خاص ثواب دے، دې وجې نه ددې صراحت شوے.

بعض مفسرينو د ﴿ بُكْرَةً وَّأَصِيلًا ﴾ نه د سهار او ماښام مونځ، او بعضو د سهار او مازيگر مونځ، (قتادةؒ) او بعضو ټول مونځونه مراد كړي دي، او ليكلي ئې دي چه دا آيت د پنځه واړه مونځونو د اهميت ډير لوى دليل دے. (فتح البيان)

رسول الله ﷺ د تسبيحاتو خصوصي زيات فضائل بيان كړيدي، د فائدې دپاره بعض ليكلے شي، كيدے شي كوم عبرت اخستونكے به ئې شروع كړي. سعد بن ابي وقاص ؓ فرمائي : مونږ د رسول الله ﷺ سره وو، نو وې فرمايل (آيا يو تن ستاسو ددې نه عاجز كيږي چه هره ورځ زر نيكئ وگټي، يو سړي وويل : څرنگ به زر نيكئ وگټي؟ وې فرمايل : سل كرته سبحان الله ووائي نو دهٔ لره به زر نيكئ وليكلے شي او زر گناهونه به ئې معاف شي. (احمدؒ، مسلمؒ، ترمذيؒ)

(چا چه په ورځ كښې سل كرته سبحان الله وبحمده ووئيل، گناهونه به ئې معاف شي اگر كه د درياب د ځگ په اندازه وي. (ترمذيؒ، مالكؒ، احمدؒ)

هُوَ الَّذِي يُصَلِّي عَلَيْكُمْ : په دې آيت كريمه كښې په ذكرِ الٰهي باندې د هميش والي كولو ډير زيات ترغيب وركړے شوے چه الله تاسو يادوي، دې وجې نه تاسو هم هغه

يادوئ. او دلته د (الله د صلاة) نه مراد د هغهٔ رحمت او مهرباني ده. دارنګه ثناء وئيل. يعني الله تعالىٰ په مومنانو باندے رحمت کوی او دوئ هرے ښيګړے ته رابلی، او د خپل ځان د ښهٔ يادولو نصيحت کوی، او په مونځونو او په نورو نيکيو باندے د همېش والی دعوت ورکوی. او د دوی صفت بيانوی.

او د (ملائکو د صلاة) نه مراد دادے چه دوئ مومنانو دپاره د الله په دربار کښې د مغفرت دعاء کوی، دے دپاره چه الله تعالىٰ دوئ د کفر او ګناهونو او شبهاتو او بدو اخلاقو د تيارو نه وباسی او د ايمان او اتباع سنت او د ښو اخلاقو د رڼرا نه ئے برخور کړی. دے وجے نه هغه په مومنانو باندے ډير زيات مهربان دے. او دا کارونه مؤمنانو ته د الله په ذکر سره حاصليږی. امام ابن القيمؒ وائی چه وَهٰذَا فَلَاحٌ كُلُّ الْفَلَاحِ -دا خو پوره کاميابی ده چه انسان د ذکر په وجه د تيارو نه رڼرا ته راوځی.

په ذکر سره په زړه، په مخ، په خبرو او په عملونو کښې نور پيدا کيږی.

**تَحِيَّتُهُمْ يَوْمَ يَلْقَوْنَهُ سَلَامٌ:** دے کښې اشاره ده چه مؤمنان په دنيا کښې د الله د پيشئ نه يريدلی دی، پدے وجه ئے هغه ياد کړيدے نو الله ورته ځکه په بدله کښې سلام ورکړو. يعنی الله فرمائی چه زهٔ په دوی مهربانه يم، دوی چه کله ما سره ملاؤ شی، نو زهٔ به پرے سلام واچوم او د هر قسم مصيبتونو نه به ئے بچ وساتم.

**تَحِيَّتُهُمْ:** ۱ - سلام ورالئ د الله د طرفنه ده مؤمن دپاره په وخت د مرګ کښې. دارنګه په وخت د راپورته کيدو کښې د قبر نه او بيا چه کله جنت ته داخل شی. ﴿سَلَامٌ قَوْلًا مِنْ رَبٍّ رَحِيمٍ﴾

۲- بعض وائی چه دا سلام به پرے ملائک اچوی کله چه دوی د خپل رب سره ملاويږی لکه الله فرمائی: ﴿وَالْمَلَائِكَةُ يَدْخُلُونَ عَلَيْهِمْ مِنْ كُلِّ بَابٍ سَلَامٌ عَلَيْكُمْ﴾

(الرعد: ۲۳، ۲٤)

۳- يا ددے نه مراد د مؤمنانو په يو بل باندے سلامونه او مبارکبادی ده. کله چه الله په دوی رحم وکړو او دوی ئے د عذاب نه په امن کړل نو دوی په يو بل باندے د خوشالئ او زيری ورکولو دپاره سلامونه وکړل. (فتح البيان)

**أَجْرًا كَرِيمًا:** کريم ئے ځکه راوړو چه ايمان او ذکر کرامت دے، پدے سره انسان عزتمند کيږی.

يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِنَّا أَرْسَلْنَاكَ شَاهِداً وَمُبَشِّرًا وَنَذِيرًا ﴿٤٥﴾

اے نبی! یقیناً مونږ رالیږلے ئے ته بیان کونکے او زیرے ورکونکے او یره ورکونکے۔

وَدَاعِيًا إِلَى اللَّهِ بِإِذْنِهِ وَسِرَاجاً مُّنِيرًا ﴿٤٦﴾ وَبَشِّرِ

او دعوت ورکونکے الله ته په توفیق د هغه سره او چراغ بلیدونکے۔ او زیرے ورکړه

الْمُؤْمِنِينَ بِأَنَّ لَهُم مِّنَ اللَّهِ فَضْلًا كَبِيرًا ﴿٤٧﴾ وَلَا تُطِعِ الْكَافِرِينَ

مؤمنانو ته پدے چه دوی لره د الله د طرف نه فضل لوئی دے۔ او خبره مهٔ منه د کافرانو

وَالْمُنَافِقِينَ وَدَعْ أَذَاهُمْ وَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ وَكَفَى بِاللَّهِ وَكِيلًا ﴿٤٨﴾

او منافقانو او پریده تکلیف د دوی او خان سپاره په الله باندے او کافی دے الله تعالیٰ ذمه وار۔

**تفسیر**: په دے آیتِ کریمه کښ خطاب دے نبی کریم ﷺ ته او غرض ئے دا دے چه (وُجُوبُ الدَّعْوَةِ عَلَى رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ) په نبی کریم ﷺ باندے د دین دعوت لازم دے، او د نبی کریم ﷺ هغه صفتونه بیان شوی چه هغه د هغویٔ د پیغام رسولو په ذمه واریٔ باندے رڼرا اچوی۔ چه هرکله دا داسے پیغمبر دے، نو دے به رسمونه رد کوی او تاسو به په دهٔ باندے اعتراضونه نهٔ کویٔ او دا صفتونه د رسول الله ﷺ په تورات کښ هم لیکلی وو۔

**شَاهِداً**: د قیامت په ورځ به په اُمت باندے په تبلیغ گواهی ورکوی، او د امت تصدیق به هم کوی۔ شاهد بیان کونکی ته هم وائی۔ یعنی دین بیانونکے۔

**وَمُبَشِّراً وَنَذِيراً**: شاهد کښ د دین بیان ته اشاره ده او بیا د هغے دپاسه به زیرے او یره هم ورکوے۔ نو شاهد کښ احکام شو۔ او مُبَشِّرًا وَنَذِيرًا کښ وعظ او نصیحت شو۔

یعنی هغه مومنانو له د الله د رحمت او د لوی اجر زیرے ورکونکے دے، او کافرانو او گنهگارو لره د جهنم د عذاب نه یرونکے دے، او د الله تعالیٰ د حکم او د هغهٔ د وحی مطابق خلقو ته د هغهٔ د دین، د هغهٔ د بندگیٔ او د هغهٔ د وحدانیت د اقرار دعوت ورکونکے دے۔ او خلقو لره د الله نیغے لارے ته د لار خودنے دپاره د الله روښانه چراغ دے۔

په تورات کښ ئے د رسول الله ﷺ صفات داسے نقل کړی وو: [يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِنَّا أَرْسَلْنَاكَ شَاهِدًا وَمُبَشِّرًا وَنَذِيرًا) وَحِرْزًا لِلْأُمِّيِّينَ، أَنْتَ عَبْدِيْ وَرَسُوْلِيْ، سَمَّيْتُكَ الْمُتَوَكِّلَ، لَيْسَ بِفَظٍّ وَلَا غَلِيْظٍ وَلَا صَخَّابٍ فِي الْأَسْوَاقِ وَلَا يَجْزِيْ بِالسَّيِّئَةِ السَّيِّئَةَ وَلٰكِنْ يَعْفُوْ وَيَصْفَحُ]

(بخاری فی البیوع باب ۵۰، و تفسیر سورة ۴۸، باب ۳ واحمد ۲/ ۴۴۸)

**وَدَاعِيًا إِلَى اللّٰهِ بِإِذْنِهِ:** یعنی د الله په توفیق سره به الله تعالیٰ طرفته خلکو لره رابلونکے ئے۔

**بِإِذْنِهِ:** بله معنیٰ ده حکم، نو اشاره ده چه نبی کریم ﷺ د ځان نه هیڅ نهٔ دی جوړ کړی۔

**وَسِرَاجًا مُّنِيرًا :** (شَمْسًا او قَمَرًا مُّنِيرًا ) ئے ونهٔ وئیل ځکه چه د نمر او سپوږمئ رڼا غائبیږی او سراج ستا په اختیار کښ وی د شپه او د ورځے رڼا ترے حاصلولے شے۔ دویم دا چه سراج ډیوه ده او د ډیوے نه نورے بیشماره ډیوے لګولے شی اګرکه خپله مړه شی، نهٔ د نمر او سپوږمئ نه، نو دغه شان د رسول الله ﷺ نه ټول علماء هدایت حاصلولے شی۔ (فتح البیان)

| اَفَلَتْ شُمُوْسُ الْاَوَّلِيْنَ وَشَمْسُنَا | ❁ | اَبَدًا عَلٰى اُفُقِ الْعُلٰى لَاتَغْرُبُ |
|---|---|---|

د پخوانو نمرونه پریوتی دی او زمونږ نمر به همیشه دپاره نهٔ پریوزی۔

**مُنِيرًا:** د رسول الله ﷺ په سنتو کښ خپله هم رڼا ده او بل شے هم درته روښانه کوی، تیارے نه دے راوباسی۔ یعنی داسے ډیوه چه ډیرے رڼا والا ده۔ نو د رسول الله ﷺ رڼا تیزه او چمکداره ده که چرے د ډیوے رڼا کښ کموالے وی، نو د انسان طبیعت پرے خفه کیږی۔ او دا دلیل دے چه هرکله رسول الله ﷺ ډیره رڼا ده چه هر څه ئے روښانه کړیدی لکه د نمر په شان نو بیا بل نمر ته ضرورت نشته، نو دغه شان د رسول الله ﷺ نه روستو بل نبی راتللو ته هم ضرورت نشته۔

**وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِيْنَ:** یعنی کومو خلکو چه ددے ډیوے نه رڼا حاصله کړے ده هغوی ته به زیرے ورکوی۔

**فَضْلاً كَبِيْرًا:** ددے نه مراد جنت او په هغے کښ د الله دیدار دے۔

**وَلَا تُطِعِ الْكَافِرِيْنَ :** یعنی د کافرانو او منافقانو دعوت مهٔ منه، او دوی چه تا ته کوم ضرر درکوی او ردے بدے او طعنونه دربانده د زینب په نکاح کښ وائی، نو پدے بانده صبر وکړه او د دوی د خبرو پسے غوږ مهٔ وره بلکه دا پریده، هیڅ توجه مهٔ ورکوه او خپل دین بیانوه۔ او د عفوے او درګذر نه کار اخله۔

یا مطلب دا دے چه تهٔ د دوی ضرر پریده یعنی دوی ته ضرر مهٔ ورکوه الله به ورسره کوری او خپل دین بیانوه۔

وَتَوَکَّلْ عَلَی اللّٰهِ: یعنی که دوی تا پسے هر څومره خبرے وکړی نو دوی تا ته هیڅ نشی وئیلے په الله بهروسه کوه، هغه به ستا دین پوره کوی، او دوی ستا مخ نیوے نشی کولے۔

**فائده** : امام قرطبیؒ د قاضی ابوبکرؒ نه نقل کړیدی چه د نبی کریم ﷺ اوه شپیته (۶۷) نومونه دی، او یو بل روایت ئے راوړیدے چه د هغه یو سل اتیا (۱۸۰) نومونه دی او چا چه یو کم سل نومونه لیکلی دی نو دوی د نبی کریم ﷺ تشبیه د الله سره وړکوی۔

| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نَكَحْتُمُ الْمُؤْمِنَاتِ ثُمَّ طَلَّقْتُمُوهُنَّ |
|---|
| اے ایمان والو! کله چه نکاح کوئ تاسو د مؤمنو ښځو سره بیا مو طلاقے کړے هغه |
| مِنْ قَبْلِ أَنْ تَمَسُّوهُنَّ فَمَا لَكُمْ عَلَيْهِنَّ |
| مخکښې ددے نه چه تاسو رسیدل اُوکړئ هغوی ته نو نشته تاسو لره په هغوی باندے |
| مِنْ عِدَّةٍ تَعْتَدُّونَهَا فَمَتِّعُوهُنَّ وَسَرِّحُوهُنَّ |
| هیڅ عدت چه شمارئ تاسو هغے لره نو فائدے ورکړئ هغوی ته او پریدئ دوی لره |
| سَرَاحًا جَمِيلًا ﴿۴۹﴾ |
| په پریخودو ښائسته سره۔ |

**تفسیر**: د زید بن حارثه او د زینب بنت جحش د نکاح او طلاق واقعے او په دے ضمن کښې ګنړ احکام بیان شو چه په هغے کښې طلاق وو روستو د دخول نه او پس د عدت تیریدو نه نو اُوس مناسب ده چه مسلمانانو دپاره ددے زنانه د عدت حکم بیان کړے شی چه هغے له د نکاح نه پس او د کور والی نه مخکښې طلاق ورکړے شی۔

**مضمون** : بیا روستو رسول الله ﷺ ته خطاب دے چه ستا دپاره کومے ښځے حلالے دی او کومے حرامے، او مؤمنانو له کومے حلالے او کومے حرامے، بیا مسئله د قَسم (نمبر) ده چه ډیرے بیبیانو کښې آیا په نبی باندے قَسم واجب دے او که نه۔ نو الله فرمائی چه نه دے واجب۔ بیا په (۵۲) آیت کښې پابندی ده په نورو نکاحونو باندے۔

بیا خطاب دے ایمان والو ته چه په هغے کښې ادب د دعوت او طعام ذکر دے، بیا مسئله د حجاب ده، چه د نبی د بیبیانو نه پرده وکړئ او هغوی به ئے تاسو نه کوی او دغه شان

عام مؤمنان. بيا پلارانو وويل چه آيا مونږ به هم ترے پرده كوو نو وويل شو چه (لَاجُنَاحَ عَلَيْهِنَّ فِيٓ آبَائِهِنَّ) پلارانو او نورو نزدے خپلوانو دپاره اجازه ده.

بيا اِعْتِنَاء بِشَانِ النَّبِيِّ ﷺ ذكر دے يعنى ددے پيغمبر قدر وكړئ او درود او سلام پرے ووايئ، بيا په دوه آيتونو كښې منع كوى د ايذاء الرسول نه يعنى رسول الله ﷺ ته ضرر ورنكړئ بلكه عامو مؤمنانو ته هم ضرر مهٔ وركوئ، گنے سختو عذابونو سره به مخامخ شئ.

او په آخرى ركوع كښې مسئله د حجاب دوباره بيانيږى او په منافقانو تفصيلى رد دے. د دنيا تخويف هم وركوى (وَقُتِّلُوْا تَقْتِيْلًا) او د آخرت تخويف هم چه جهنم ئے ځاى دے. او ددے وجه بيانوى چه دوى رسول الله ﷺ پريخے دے او خپلو سادات او كبراؤ پسے روان شويدى. او په آخرى ركوع كښې بيا منع كوى د ضرر وركولو نبى ﷺ ته او دا وائى چه خپله خوله صحيح استعمال كړئ، آخرى آيت كښې انسان ته، خاصكر منافقانو ته حكم دے چه امانت كښې خيانت مهٔ كوئ او خپله ذمه وارى سنبال كړئ.

## د دخول نه مخكښې د طلاقے شوے ښځے حكم

په داسے ښځه باندے عدت تيرول واجب نهٔ دى، ځكه چه ښځه عدت په دے وجه تيروى چه يقين ئے راشى چه ددے په رَحِم كښې هيڅ بچے نشته، او په مذكوره صورت كښې يقينى طور سره د ښځے رَحِم د بچى د وجود نه پاك دے.

اوكه چرے د هغے مهر مقرر شوے وو نو هغے له به نيمائى مهر ملاويږى، او څهٔ مال يا جوړه جامے د زړهٔ ساتنے په توګه وركول مستحب دى، اوكه چرے د هغے مهر مقرر شوے نهٔ وو، نو د خاوند د مالى لحاظ ساتلو سره به هغے له څهٔ مال وركړے شى، او په غير د ضرر رسولو نه به هغه خپل كور والو كره تلو ته پرېښودے شى.

او ددے آيت ربط د مخكښې سره دا دے چه اے مؤمنانو! تاسو د كافرانو او منافقانو په شان مهٔ كيږئ په ضرر وركولو كښې بلكه كومے بيبيانے چه تاسو د نزديكت نه مخكښې طلاقے كړے نو ستاسو په هغوى باندے هيڅ حق پاتے نهٔ دے نو هغے ته به په هيڅ طريقه اذيت او تكليف نهٔ وركوئ.

حافظ ابن كثيرؒ او نورو مفسرين ليكى چه ددے آيت كريمه نه ګڼ احكام اخستے شوى دى:

۱ - کلمه د نکاح کلمه وئیلو سره صرف عقد مراد کیدلے شي. په قرآن کریم کښې په دے معنیٰ باندے دلالت کونکے دده آیت نه زیات صریح بل هیڅ یو آیت نشته دے.
۲ - د مباشرت (کور والی) نه مخکښې ښځې له طلاق ورکول جائز دي.
۳ - ثُمَّ طَلَّقْتُمُوهُنَّ: ابن عباس ﷺ، ابن المسیبؒ، حسن بصریؒ او زین العابدینؒ وغیره دده آیت نه استدلال کړے چه د نکاح نه مخکښې طلاق نهٔ واقع کیږی. نبی کریم ﷺ فرمایلی دی چه د نکاح نه مخکښې طلاق نشته.

(ابن ماجه : ۲۰۴۹) صحیح الجامع (۷۵۲۳) واسناده صحیح)

امام بخاریؒ د عبد الله بن عباس ﷺ قول نقل کړیدے : [جَعَلَ اللّٰهُ الطَّلَاقَ بَعْدَ النِّکَاحِ] الله تعالیٰ طلاق د نکاح نه روستو مقرر کړیدی. (بخاری فی الطلاق باب۸) او هغه به دا هم وئیل چه الله دے په ابو عبد الرحمن (عبد الله بن مسعود ﷺ) باندے رحم وکړی چه هغه وائی چه طلاق مخکښې د نکاح نه واقع کیږی (چه دے ته د کُلما طلاق وئیلے کیږی یعنی هر کله چه زهٔ د کومے ښځے سره نکاح کوم هغه دے په ما باندے طلاقه وی) او دا به ئے وئیل [اَخْطَأَ فِیْ هٰذَا]

یعنی د ابن مسعود ﷺ اجتهاد پدے خبره کښې خطاء دے. ځکه چه الله تعالیٰ طلاق روستو د نکاح نه ذکر کړیدی او داسے ئے نهٔ دی وئیلی [اِذَا طَلَّقْتُمُ الْمُؤْمِنَاتِ ثُمَّ نَکَحْتُمُوْهُنَّ] (چه تاسو کله مومنو ښځو له طلاق ورکړئ بیا ورسره نکاح وکړئ). او دا د جمهورو ائمه کرامو مذهب دے چه طلاق قبل النکاح نهٔ تعلیقًا واقع کیږی او نهٔ تنجیزاً. او پدے باره کښې دیارلس احادیث موجود دی چه دا مقام ئے د تفصیل نهٔ دے.
٤ - د علماؤ اتفاق دے چه کومے ښځے له د مباشرت نه مخکښې طلاق ورکړے شی په هغے باندے هیڅ عدت نشته. هغه د طلاق نه پس فورًا وادهٔ کولے شی. البته که د مباشرت نه مخکښې خاوند مړ شی نو ښځه به څلور میاشتے او لس ورځے عدت تیروی.
۵- فَمَا لَکُمْ عَلَیْهِنَّ مِنْ عِدَّةٍ: نه دا هم معلومه شوه چه د نزدیکت نه مخکښې طلاق ورکولو نه پس د ښځے عدت نشته، او که د خلوت صحیحه نه روستو طلاق ورکړی آیا پدے باندے به عدت وی او که نهٔ ؟
بعض علماء لکه امام احمدؒ وغیره وائی چه په خلوتِ صحیحه سره هم عدت په زنانه باندے واجبیږی لیکن پدے باره کښې هیڅ صحیح مرفوع حدیث نشته.
٦ - په آیت کښې د (فَمَتِّعُوْهُنَّ) نه مراد دادے چه که د داسے ښځے مهر مقرر وی نو هغے

تـه بـه نیمائی مهر ملاویږی، (دا د هغې متعه ده) اوکه د هغې هیڅ مهر مقرر نۀ وی نو هغې تـه بـه څـۀ مال ورکړے شی۔ لکه جوړه جامه، لوپټه، پړونے او پیزار وغیره۔ او ددے وجـه دا ده چه په طلاق سره په ښځه باندے وحشت او خفګان راځی نو دا متعه به د هغې وحشت او خفګان زائله کړی۔

**تَعۡتَدُّوۡنَهَا** : یعنی ((چه تاسو شمارئ هغې لره/ پوره کوئ د هغې شمار لره))۔ او نسبت ئې سړو ته وکړو اشاره ده چه عدت د سړو حق دے، لکه د (فَمَا لَكُمۡ) نه هم معلومیږی۔

۷- کـه څوك داسے قِسم ښځه طلاقوی نو طریقه ئې دا ده چه هغې ته به یو کرت ووائی چه تۀ طلاقه ئې، نو پدے سره به هغې باندے طلاق بائن واقع شی۔ (ابن عباس ﷺ)

یعنی پدے سره به ددے نکاح ماته شی۔ دا طلاق بائن په شریعت کښې راغلی دی، او طلاق بائن پدے معنیٰ باندے چه الفاظ کنائی ورته ووائی، په مرفوع احادیثو کښې نشته، البتـه د بعض صحابه کرامو او د تابعینِ عظامو په آثارو کښې په طریقه د اجتهاد باندے شته۔ شریعت کښې یا طلاق رجعی دی، یا مغلظ دی۔

**سَرَاحًا جَمِيۡلًا** : (په ښائسته طریقه پریخودل) دادی چه هغې ته ئې څه ورکړی وی نو هغه ترے بیرته ونۀ غواړی او همدا د ښائسته اخلاقو تقاضا ده۔ دارنګه سراح جمیل دا هم دے چه که مالداره وی نو د مالدارئ مطابق هغې ته متعه ورکړی او که غریب وی نو د هغې مطابق ورکړی۔ (فتح البیان)

| |
|---|
| يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِنَّا أَحۡلَلۡنَا لَكَ أَزۡوَاجَكَ اللَّاتِي آتَيۡتَ أُجُورَهُنَّ |
| اے نبی! یقیناً مونږ حلال کړیدی تا لره بیبیانے ستا هغه چه ورکړیدی تا مهرونه د هغوی |
| وَمَا مَلَكَتۡ يَمِينُكَ مِمَّا أَفَاءَ اللَّهُ عَلَيۡكَ |
| او هغه چه مالك ئې دے ښے لاس ستا د هغې وینځو نه چه راواپس کړیدی الله تا ته |
| وَبَنَاتِ عَمِّكَ وَبَنَاتِ عَمَّاتِكَ وَبَنَاتِ خَالِكَ وَبَنَاتِ خَالَاتِكَ |
| (د کافرانو نه) او لونړه د ترۀ ستا او لونړه د ترینډو ستا او لونړه د ماما ستا او لونړه د ماسی |
| اللَّاتِي هَاجَرۡنَ مَعَكَ وَامۡرَأَةً مُؤۡمِنَةً إِنۡ وَهَبَتۡ نَفۡسَهَا لِلنَّبِيِّ |
| ګانو ستا هغه چه هجرت ئې کړے وی تا سره او هغه ښځه مؤمنه که بخی ځان خپل نبی |

| إِنۡ أَرَادَ ٱلنَّبِيُّ أَن يَسۡتَنكِحَهَا خَالِصَةٗ لَّكَ |
|---|
| ﷺ ته که چرته اراده لری نبی ددیے چه نکاح اوکړی د هغې سره (دا) خالص دی تا لره |
| مِن دُونِ ٱلۡمُؤۡمِنِينَۗ قَدۡ عَلِمۡنَا مَا فَرَضۡنَا عَلَيۡهِمۡ |
| سوئی د نورو مؤمنانونه، یقیناً مونږ ته پته ده هغه څه چه مقرر کړیدی مونږ په دوی |
| فِيٓ أَزۡوَٰجِهِمۡ وَمَا مَلَكَتۡ أَيۡمَٰنُهُمۡ |
| باندیے په باره د ښځو د دوی کښې او هغه وینځو کښې چه مالك وی ښې لاسونه د دوی، |
| لِكَيۡلَا يَكُونَ عَلَيۡكَ حَرَجٞۗ وَكَانَ ٱللَّهُ غَفُورٗا رَّحِيمٗا ﴿٥٠﴾ |
| دیے دپاره چه نهٔ وی په تا باندیے تنگسیا او دیے الله بخنه کونکے رحم کونکے۔ |

**تفسیر**: پدیے آیت کښې رسول الله ﷺ ته خطاب کوی او دا خبره بیانوی چه هغه دپاره کومے بیبیانے جائز او کومے ناجائز دی، ځکه چه هغه هم مکلف بنده دیے، د هر څه آزادی هغه دپاره هم نهٔ وه۔ اگرکه د رسول الله ﷺ دپاره الله تعالیٰ په باب د نکاح کښې آزادی زیاته ورکړے وه د هغې وجوهات څه مخکښې بیان شو چه هغهٔ ته د دین دعوت ورپه غاړه وو او زنانه یو لوی امت دیے نو هغوی ته د ښځو په ژبه بنه دعوت کیږی، سرہے تولے خبرے د پردو ښځو مخامخ نشی ذکر کولے۔

اودیے دپاره چه د رسول الله ﷺ د عربو د عامو قبیلو سره خپلولی راشی دیے دپاره چه خپلوان د هغه د دعوت نه متأثره شی۔

په دیے آیتِ کریمه کښې الله تعالیٰ د نکاح هغه قِسمونه بیان کړی چه هغه ئے د خپل رسول ﷺ دپاره حلال کړی وو۔ په دیے کښې د ټولو نه مخکښې هغه امهات المؤمنین وے چه هغوئ سره نبی ﷺ مهر مقررولو نه پس وادهٔ کړے وو، برابره خبره ده که مهر مخکښې وی اوکه په نیتیے سره وی۔ د دوئ نه پس هغه ښځے چه د مالِ غنیمت په توگه د نبی ﷺ په برخه کښې راغلی وے، لکه صفیه او جویریه رضی الله عنهما، نبی ﷺ دا آزادے کړے او وادهٔ ئے ورسره وکړو، او ریحانه او ماریه قبطیه د ابراهیم ﷺ مور چه دائے د وینځے په صفت وے۔ او نبی ﷺ له هغه ښځے هم حلالے وے چه هغه اخستلے شوے وے، یا کومو ښځو چه خپل ځان نبی کریم ﷺ ته وربخښلے وو لکه میمونه بنت الحارث، زینب بنت خزیمه ام المساکین، ام شریك بنت جابر او خوله بنت حکیم (رضی الله عنهم)۔

مِمَّا أَفَاءَ اللّٰهُ عَلَيْكَ: یعنی د هغې نه چه الله تا ته د کافرو نه راواپس کړیدی او په تا باندې ئې د هغې مهربانی کړیده.

پدې آیت کښې (د مالِ غنیمت په توګه د حاصل شوې ښځې) قید صرف د افضلیت بیانولو لپاره دې، یعنی داسې ښځې تاله د هغه ښځو نه بهترې دی چه هغه اخستلې شوی وی. نو دا قید احترازی نهٔ دې چه ګنې رسول الله ﷺ دپاره چا نه اخستلې شوې یا هبه شوې وینځه حلاله نهٔ وه. هغه هم ورله حلاله وه لیکن دلته د غنیمت تذکره د خپلې مهربانۍ ذکر کولو دپاره ده.

وَبَنَاتِ عَمِّكَ: دا تشریح ده د (آتَيْتَ أُجُورَهُنَّ) یعنی تهٔ چه مهر ورکوې او ستا دپاره د هغوی سره نکاح حلاله وی هغه به څوک وی؟ نو د هغهٔ د ترهٔ لونړه، ترور لونړه، ماما لونړه او د ماسی ګانو لونړه، چه د دوی سره وادهٔ کول جائز وو، چه هغویٔ مدینې ته هجرت کړې وو.

وَبَنَاتِ عَمِّكَ وَبَنَاتِ عَمَّاتِكَ: ددې نه مراد قریشیه زنانه دی.

وَبَنَاتِ خَالِكَ وَبَنَاتِ خَالَاتِكَ: د ماما لونړه او د ماسیګانو لونړه. ددې نه مراد د بنو زهره ؤ زنانه دی.

**فائده** : عم او خال ئې مفرد راوړو څکه چه هغه په معنیٰ د جنس دې او عمات او خالات ئې جمع راوړو څکه چه عمه او خاله د جنس دپاره نهٔ استعمالیږی. (قرطبیؒ والنیسابوریؒ)

اللَّاتِي هَاجَرْنَ مَعَكَ: ددې قید نه معلومه شوه چه د نبی ﷺ دپاره هم د غیر مهاجرې ښځې سره نکاح جائز نهٔ وه. او دا قول غوره دې او دلیل پرې حدیث د ام هانیٔ رضی الله عنها دې چه هغه وائی ما باندې رسول الله ﷺ جرګه وکړه لیکن ما ورته عذر پیش کړو نو هغه عذر قبول کړو، بیا الله دا آیت نازل کړو نو هغه وائی چه زهٔ د رسول الله ﷺ دپاره حلاله نهٔ وم څکه چه ما هجرت نهٔ وو کړې.

(الترمذی فی تفسیر سورة ۳۳باب۱۷ وحسنه وقال الذهبی فی اسناده باذان متکلم فیه)

او په یو روایت کښې دی چه نبی کریم ﷺ اراده وکړه چه ما سره نکاح وکړی نو زما نه منع کړې شو څکه چه ما هجرت نهٔ وو کړې. او د سورة الانفال (۷۲) آیت کښې ذکر شوی وو ﴿وَالَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يُهَاجِرُوا مَا لَكُم مِّن وَلَايَتِهِم مِّن شَيْءٍ﴾ کومو خلکو چه هجرت نهٔ دې کړې نو دوی سره به ولایت نهٔ کوئ او نکاح خو لوی ولایت دې.

اَنْ يَّسْتَنْكِحَهَا : یعنی که یوې زنانه نبی ته خپل ځان بخښلو او د نبی اراده وه چه زهٔ ئې په نکاح اخلم یعنی بغیر د مهر نه نو دا د (آتَيْتَ اُجُوْرَهُنَّ) په مقابل کښې شو۔

﴿ خَالِصَةً لَّكَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴾ دا ددې روستنی حکم سره لګی یعنی د نبی کریم ﷺ نه علاوه د نورو مومنانو هیچا دپاره جائز نهٔ دی چه یوې داسې ښځې سره بغیر د ولی او مهر نه وادهٔ وکړی چه هغې خپل ځان هغهٔ ته وربخښلې وی۔ او ددې وجه دا ده چه عام مؤمنان به مهر ځکه ورکوی چه پدې کښې اشاره شی چه اې زنانه ! ستا زما په نیز ډیر شرافت دې، زهٔ به ستا اکرام کوم نو واخله دومره مال۔ په خلاف د یوې زنانه چه د نبی سره نکاح کول غواړی نو دا د ښځې لویه مرتبه ده چه یو نبی ئې قبلوی، پدې وجه دا لوی منقبت او فضیلت د مهر او مال په مقابله کښې شو۔

قَدْ عَلِمْنَا : الله تعالیٰ فرمائی چه ما په مومنانو باندې د نکاح په حقله کوم شرطونه ضروری کړی دی د هغې پابندی کول لازم دی، او کومې خبرې چه په دې باره کښې د رسول الله ﷺ سره خاص دی، هغه د عامو مسلمانانو دپاره مثال نشی جوړیدې، دې وجې نه دوئ لپاره په یو وخت کښې د څلورو نه زیاتو ښځو سره وادهٔ کول جائز نهٔ دی، او نهٔ دا جائز دی چه څوك په غیر د مهر، ګواهانو او په غیر د ولی نه یوې ښځې سره وادهٔ اُوکړی۔ او د وینځو په حقله شرط دادې چه دا به د غزا نه پس ګرفتاره شوې وی، څهٔ داسې ښځه به نهٔ وی چه د هغې ګرفتارول جائز نهٔ وی، یا د کوم قوم چه د مسلمانانو سره معاهده را روانه وی د هغوی نه به وینځه نهٔ جوړوی۔ یا پردئ وینځه بغیر د مهر نه په نکاح واخلی بلکه د هغې دپاره به هم مهر مقررول ضروری وی۔

نو د ((مَا فَرَضْنَا )) نه تېول مخکښی او نور احکام مراد دی، او خاصکر د مهر د فائدو علم هم الله تعالیٰ ته دې چه یو پکښې د زنا د شکل نه ځان بچ کول دی،

دویم د زنانو عزت کول دی۔ د زنانه د زړه دلجوئی ده۔ د سړی رغبت او مینه او رشتینوالې رابښکاره کول وی۔

وَمَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُمْ : دا په اَزْوَاجِهِمْ باندې عطف دې [اَیْ وَقَدْ عَلِمْنَا مَا فَرَضْنَا عَلَيْهِمْ فِیْ مَامَلَكَتْ اَيْمَانُهُمْ] مونږ ته معلوم دی هغه حقوق او شرطونه او مال چه مونږ په دوی باندې په باره د وینځو کښې مقرر کړې۔ چه هغه شرطونه مخکښې بیان شو۔

لِكَيْلَا يَكُوْنَ عَلَيْكَ حَرَجٌ : دا د اول د آیت سره لګیږی یعنی مونږ ستا دپاره نکاح د دغه زنانو او د وینځو سره جائز کړه، او دارنګه کومه ښځه چه ځان تا ته بخښی دا جائز

شوه دے دپاره چه تا ته څه تنگی محسوس نشی۔ او دا تنگسیا په دوه څیزونو کښې مراد ده (۱) یو لِیُ نَشْرِ الذِّیْن۔ یعنی د دین په خورولو کښې تکلیف او تنگی رانشی۔

(۲) حَرَج لِی الْعَیْش۔ یعنی په ژوند کښې تنگی نهٔ وی ځکه چه یو تن داعی الی الله وی، او ښځه ئے نهٔ وی نو پریشانه کیږی، دلته په زړه کښې به ئے خواهش وی او هغه به نهٔ پوره کیږی، او بل طرفته به د دین کار ورپه غاړه وی، نو ډیر تکلیف کیږی۔ نو الله ورله دا حاجت پوره کړو، کله چه د انسان په کور کښې ژوند فراخه وی نو انسان په آسانئ سره دعوت کولے شی۔

| |
|---|
| تُرْجِیْ مَنْ تَشَاءُ مِنْهُنَّ وَتُؤْوِیْ |
| تهٔ روستو کولے شے (د نمبر نه) هغه بی بی چه اُوغواړی تهٔ د دوی نه او یو ځائے کولے شے |
| إِلَیْكَ مَنْ تَشَاءُ وَمَنِ ابْتَغَیْتَ مِمَّنْ |
| ځان سره هغه چه اُوغواړے ته، او هغه څوك چه تهٔ لټوے (یو ځائے والے د هغے) د هغے نه |
| عَزَلْتَ فَلَا جُنَاحَ عَلَیْكَ ذٰلِكَ أَدْنٰی أَنْ تَقَرَّ أَعْیُنُهُنَّ |
| چه جدا کړیده تا نو نشته گناه په تا باندے، دا نزدے ده دے ته چه یخے به وی سترگے د دوی |
| وَلَا یَحْزَنَّ وَیَرْضَیْنَ بِمَا آتَیْتَهُنَّ كُلُّهُنَّ |
| او غمژنے به نهٔ وی او خوشحاله به وی په هغه څه چه تهٔ ئے ورکوے دوی ته ټولو ته |
| وَاللّٰهُ یَعْلَمُ مَا فِیْ قُلُوْبِكُمْ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِیْماً حَلِیْماً ﴿۵۱﴾ |
| او الله پوهیږی په هغه څه چه په زړونو ستاسو کښې دی او دے الله پوهه صبرناك دے۔ |

**تفسیر:** الله تعالیٰ خپل نبی ﷺ ته د بیبیانو د ساتلو، پریښودلو، او د دوئ ترمینځه د نمبر تقسیمولو په سلسله کښې پوره اختیار ورکړے وو، او دا هر څهٔ د هغهٔ ﷺ سره د الله د انتهائی محبت نښه وه۔ هغوئ ته اجازت ورکړے شوے وو چه د خپلو ښځو نه چه کومه یوه غواړے په غیر د طلاق نه ترے جدائی اختیارولے شے، او د چا خواته چه غواړے شپه تیره کړه او مباشرت اُوکړه۔ ځکه چه کله په انسان باندے د ښځو د طرفنه پابندیانے وی نو بیا د دین کار ورته سختیږی نو ځکه الله تعالیٰ د خپل پیغمبر نه د ښځو قسم (نمبر) وارولو او دا ئے پرے لازم نهٔ کړو۔

شوکانیؒ لیکي چه ددې آیت د نازلیدو نه مخکښې د تولو بیبیانو ترمینځه نمبر تقسیمول واجب وو، دې نه پس د نبي ﷺ دپاره وجوب منسوخ شو، او هغوئ له اختیار ورکړے شو چه د چا خواته غواړي ورتللے شي، او چالره چه غواړي بغیر د طلاق نه پرېښودلے شي۔ چنانچه د عائشے، حفصے، ام سلمے او زینب (رضی الله عنهن) ترمینځه ئے نمبر تقسیم کړو، او سوده، جویریه، ام حبیبه، میمونه او صفیه خواته به چه کله ئے زړهٔ غوښتل نو د دوئ ترمینځه به ئے نمبر لګولو او ورتللو به۔ (فتح البیان)

او اګرکه په رسول الله ﷺ باندې نمبر په ښځو کښې واجب نهٔ وو لیکن هغهٔ به بیا هم د زنانو د زړونو خوشحالولو دپاره نمبر تقسیمولو، او دا به ئے فرمایل:

[اَللّٰهُمَّ هٰذَا قَسْمِیْ فِیْمَا اَمْلِكُ فَلَا تُؤَاخِذْنِیْ فِیْمَا تَمْلِكُ وَلَا اَمْلِكُ]

اے الله دا زما نمبر دے په هغه څه کښې چه زهٔ ئے اختیار لرم نو ما مهٔ رانیسه په هغه کار چه تهٔ ئے اختیار لرے او زهٔ ئے اختیار نهٔ لرم)۔

یعنې هغه دا چه بعضو سره زیاته مینه کوم او د بعضو سره د هغوی په نسبت کمه۔ اشاره وه د عائشے رضی الله عنها محبت ته۔ نو رسول الله ﷺ ته سره ددې نه چه اختیار وو لیکن بیا به ئے هم ډیر احتیاط کولو چه ما نه بې عدلي ونشي او الله رانه ناراضه نشي۔

د عبد الله بن عباس ﷺ وینا ده چه په دې آیت کښې صرف د هغه ښځو حکم بیان شوے چه هغوئ نبي کریم ﷺ ته بغیر د مهر نه خپل ځان وربخښلے وو۔ د هغوئ نه ځینے رسول الله ﷺ چانړ کړے، او ځینے ئے پرېښودې، بیا دغه ښځو نورو خلقو سره وادهٔ ونهٔ کړو۔ ددې قول تائید د عائشے رضی الله عنها د هغه حدیث نه کیږي چه امام احمدؒ او امام بخاریؒ روایت کړے چه دې به دغے ښځو له پیغور ورکولو، تردې چه دا آیت نازل شو، نو عائشے رضی الله عنها نبي ﷺ ته ووئیل: [مَا اَرٰی رَبَّكَ اِلَّا یُسَارِعُ فِیْ هَوَاكَ] زهٔ وینم چه ستا رب ستا په خواهش پوره کولو کښې جلتي کوي۔

د ابورزین ﷺ نه روایت دے چه رسول الله ﷺ اراده وکړه چه بعض بیبیانے (سوده) طلاقے کړي، نو کله چه هغوی پدې خبرے شوے نو رسول الله ﷺ ته راغلے او ورته ئے ووئیل چه مونږ ته طلاق مهٔ راکوه او تهٔ زمونږ د حقوقو نه آزاد ئے، تهٔ چه مونږ له د خپل نفس او د مال نه څه مقرروے ستا خوښه ده، نو الله دا آیت نازل کړو ﴿تُرْجِیْ مَنْ تَشَآءُ مِنْهُنَّ﴾ نو رسول الله ﷺ د هغوی نه سوده او میمونه، او جویریه او ام حبیبه او صفیه د نمبر نه جدا کړے نو د دوی ترمینځ به ئے چه څنګه خوښه وه د خپل نفس او د مال نه په نمبر سره

ورکولو او هرچه عائشه، حفصه، ام سلمه، او زینب وے نو دوی ته به ئے د نفس او د مال نه په نمبر کښې برابروالے کولو- (فتح البیان)

بعضو ونیلی دی چه په دے آیت کښې نبی ﷺ له اختیار ورکړے شوے چه ته د خپلو ښځو نه چاله چه غواړے طلاق ورکړه او چاله چه غواړے اُوساته-

وَمَنِ ابْتَغَيْتَ مِمَّنْ عَزَلْتَ : یعنی که تا چا لره د نمبر نه جدا کړی وی او بیرته غواړے چه هغه په نمبر کښې داخله کړے نو هم ستا دپاره اختیار دے- نو دا یے لوظی نهٔ ده-

ابْتَغَيْتَ : اَیْ اِیْوَائَهَا - یعنی چه ته غواړے د هغے یو ځای کول د خپل ځان سره- او په نمبر کښې داخلول د هغے-

سوال دا دے چه هرکله پیغمبر د بیبیانو نه بعضو لره نمبر نهٔ مقرروی او نزدیکت ورسره نهٔ کوی نو بیا هغه به پدے نکاح کښې څه کوی؟ جواب دا دے چه د رسول الله ﷺ په نکاح کښې جنت وو، دا عزت ئے بس دے چه د ټول امت مور شوه، او د رسول الله ﷺ سره په جنت کښې یو ځای والے ئے په نصیب شو- او نمبر خو وړه خبره ده، او زنانه خاصکر کونډے ښځے هغے ته دومره حاجت هم نهٔ لري- او بله دا چه یوه ښځه چه د نبی سره نکاح کول غواړی نو لره سخته به هم تیره وی-

ذٰلِكَ اَدْنٰٓى اَنْ تَقَرَّ اَعْيُنُهُنَّ : ددے اختیار حکمة بیانوی چه کله ستا بیبیانو ته معلومه شی چه الله تاله دا اختیارات درکړی دی نو ټولے به مطمئنے وی، او کومے چه تا پریښی وی هغوئ به غمژنے کیږی نهٔ، او ستا په مرضئ اوخواهش به راضی وی- ځکه چه کومه زنانه خپل حق گنړی نو بیا هغه د خاوند نه خفگان کوی چه ما ته حق پوره ملاؤ نشو- او چه کله هغوی پدے پوهه شی چه زمونږ په رسول الله ﷺ هیڅ حق نشته نو بیا چه رسول الله ﷺ هغوی ته لږ څه ورکوی، هم خوشحاله به وی-

كُلُّهُنَّ: رسول الله ﷺ به تر مرګه پورے په نمبر کښې تقسیم کولو او کوم اختیارات چه درکړے شوی وو نو هغه ئے استعمال نکړل، یو ئے خپل نفس راګیرولو، او بل ئے په افضل باندے عمل کولو، صرف دا چه د سوده رضی الله عنها نمبر ئے عائشےؓ ته ورکړو- (ځکه چه هغه بوډئ زنانه وه او په خپله خوښه ئے دا کار کړے وو لکه مخکښې روایت ذکر شو)

وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا فِىْ قُلُوْبِكُمْ: الله تعالیٰ مومنانو ته خطاب کوی فرمائی چه هغه ستاسو د زړونو پټے خبرے هم پیژنی- تاسو خپلو څینو ښځو ته زیات مائله کیږئ او څینو ته

کم، هغه ته دا معلومه ده، او هغه د اعزاز او اکرام په توګه خپل رسول (ﷺ) له هغه اختیار ورکړے چه د هغې تفصیل پورته تیر شو۔

| لَا يَحِلُّ لَكَ النِّسَاءُ مِنْ بَعْدُ وَلَا أَنْ تَبَدَّلَ |
| --- |
| نهٔ دي حلالے تا لره زنانه روستو ددے (څلورو قسمونو) نه او نهٔ دا چه ته بدلے کړے |
| بِهِنَّ مِنْ أَزْوَاجٍ وَلَوْ أَعْجَبَكَ حُسْنُهُنَّ |
| په دوی باندے نور (قِسمونه) بیبیانے اګر که خوشحالوی تا لره ښائست د هغوی |
| إِلَّا مَا مَلَكَتْ يَمِينُكَ وَكَانَ اللَّهُ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ رَّقِيبًا ﴿٥٢﴾ |
| مګر هغه چه مالك وی ښے لاس ستا او دے الله تعالیٰ په هر شی باندے نګهبان۔ |

**تفسیر:** ددے آیتِ کریمه په تفسیر کښې د علماؤ څو اقوال دی :

(۱) ابن عباسؓ، مجاهدؒ او ضحاکؒ وغیره فرمائی چه دا آیت مُحکم دے، او نبی ﷺ د نهه بیبیانو نه علاوه د نورو ښځو سره د وادهٔ کولو نه منع شوے وو، پدے وجه چه دے زنانو الله او رسول او کور د آخرت غوره کړے وو نو الله دوی ته د بدلے ورکولو په طور خپل نبی د نورو نکاحونو نه منع کړو۔ او دویم د دوی د طلاقو نه ئے منع کړو۔ او دا ظاهر تفسیر دے۔ نو د (مِنْ بَعْدُ) نه مراد [مِنْ بَعْدِ التِّسْعِ الَّتِيْ اِخْتَرْنَكَ اِكْرَامًا لَهُنَّ وَتَخْفِيْفًا عَلَيْكَ] یعنی روستو د نهه بیبیانو نه چه ته ئے غوره کړے ئے، دا ددے دپاره چه د دوی اِکرام وشی او په تا باندے آسانی راشی۔

(۲) ځینے وائی چه ددے آیت حکم د (۵۱) آیت په ذریعه منسوخ شوے، یعنی اول کښې دا حکم وو چه ددے نهه امهات المؤمنین نه علاوه جائز نهٔ وے لیکن روستو زمانه کښې الله تعالیٰ خپل نبی ته زیاتے هم جائز کړے او (۵۱) آیت ئے نازل کړو۔ لیکن هغوی د امهات المؤمنین د زړهٔ ساتلو دپاره د بل چا سره وادهٔ نهٔ دے کړے۔

شوکانیؒ هم دے رائے له ترجیح ورکړے۔ او هغه آیت اګر که په ترتیب کښې مخکښې او دا منسوخ آیت روستو دے مګر په لیکلو کښې برعکس کار شویدے۔ او ددے تائید په قول د عائشه رضی الله عنها سره کیږی چه هغه فرمائی :

[مَا مَاتَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ حَتّٰى أُحِلَّ لَهُ النِّسَاءُ] (ترمذی : ۲۰۶۸) رسول الله ﷺ وفات نشو تردے چه هغه دپاره ټولے زنانه حلالے شوے۔ (واسناده صحیح- البانیؒ)

(۳) أبی بن کعب رضی الله عنه او عکرمة او مجاهد وغیره فرمائی چه په (۵۰) آیت کښې چه کوم څلور قسمونه د زنانو ذکر شو نو صرف هغه ستا دپاره حلالې دی، او د هغې نه علاوه نور قسمونه تا لره جائز نهٔ دی لکه یهودیه، نصرانیه، مجوسیه، وثنیه، هغه مؤمنه چه هجرت ئې نهٔ وی کړے ځکه چه دا امهات المؤمنین نشی ګرځیدلے۔
او د ﴿إِلَّا مَا مَلَكَتْ يَمِينُكَ﴾ نه معلومیږی چه دغه زنانه (سوئی د مؤمنے نه) که د وینځې په صفت د رسول الله ﷺ لاس ته راځی نو هغه هم ورله جائز ده، ځکه چه وینځه په امهات المؤمنین کښې نهٔ داخلیږی۔ نو د مِنْ بَعْدُ نه مراد به (مِنْ بَعْدِ الْأَصْنَافِ الْأَرْبَعِ) وی۔ (یعنی روستو د څلور قسمه بیبیانو نه)۔
صاحب د محاسن التنزیل هم ددے رائے حمایت کړے، او ددے په تائید کښې ئې د أبی بن کعب رضی الله عنه دا قول نقل کړے چه الله تعالیٰ په (۵۰) آیت کښې د نبی ﷺ لپاره یو څو قسمه ښځو سره وادهٔ کول حلال ګرځولی دی، بیا ئې په دے آیت کښې ووئیل چه د مذکوره قسمونو ښځو نه علاوه بل چا سره وادهٔ کول ستا دپاره جائز نهٔ دی پاتے شوی۔
ترمذی د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت کړے چه ددے آیت په ذریعه نبی کریم ﷺ د مومنو مهاجرینو ښځو نه علاوه د نورو ښځو سره د وادهٔ کولو نه منع شوے۔ چنانچه مسلمانو ښځو نه علاوه نورے ښځې هغهٔ لپاره حرامے شوی دی۔
وَلَا أَن تَبَدَّلَ بِهِنَّ مِنْ أَزْوَاجٍ: ددے تبدیل نه مراد دا دے چه یوه بی بی طلاقه کړی او د هغې په بدله کښې د بلے سره نکاح وکړی۔ دارنګه د عربو جاهلیت والو طریقه دا وه چه د یو بل سره به ئې بیبیانے بدلولے۔
رَّقِيبًا: یعنی ستاسو او د زنانو تولو احوالو ته ګوری نو د خپل علم او حکمة مطابق احکام رالیږی۔

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَدْخُلُوا بُيُوتَ النَّبِيِّ إِلَّا أَن يُؤْذَنَ لَكُمْ

اے ایمان والو! مهٔ داخلیږئ کورونو د نبی ﷺ ته مګر چه اجازت اُوکړے شی تاسو ته

إِلَىٰ طَعَامٍ غَيْرَ نَاظِرِينَ إِنَاهُ وَلَٰكِنْ إِذَا دُعِيتُمْ

یو خوراک ته، نهٔ به ئې انتظار کونکی د پخیدلو د هغې لیکن کله چه اُوبللے شئ تاسو

| فَادْخُلُوْا فَإِذَا طَعِمْتُمْ فَانْتَشِرُوْا وَلَا مُسْتَأْنِسِيْنَ |
|---|
| نو ورننوځئ نو كله چه خوراك اُوكړئ نو خواره شئ او (مه ايساريږئ) مينه كونكى د |
| لِحَدِيْثٍ إِنَّ ذٰلِكُمْ كَانَ يُؤْذِي النَّبِيَّ فَيَسْتَحْيِيْ مِنْكُمْ وَاللهُ |
| خبرو كولو، يقيناً دا كار تكليف وركوى نبى ﷺ ته نو حياء به كوى ستاسو نه او الله |
| لَا يَسْتَحْيِيْ مِنَ الْحَقِّ وَإِذَا سَأَلْتُمُوْهُنَّ مَتَاعاً فَاسْأَلُوْهُنَّ |
| حيا نكوى د بيان د حق نه او كله چه غواړئ تاسو د دوى نه څه سامان نو غواړئ د دوى نه |
| مِنْ وَرَاءِ حِجَابٍ ذٰلِكُمْ أَطْهَرُ لِقُلُوْبِكُمْ وَقُلُوْبِهِنَّ |
| روستو د پردے نه دا طريقه ښه پاكونكے ده زړونو ستاسو لره او زړونو د دوى لره |
| وَمَا كَانَ لَكُمْ أَنْ تُؤْذُوْا رَسُوْلَ اللهِ وَلَا أَنْ تَنْكِحُوْا |
| او نۀ دى جائز تاسو لره چه تكليف وركړئ رسول الله ﷺ ته او نۀ دا چه نكاح اُوكړئ |
| أَزْوَاجَهٗ مِنْ بَعْدِهٖ أَبَداً إِنَّ ذٰلِكُمْ كَانَ عِنْدَ اللهِ عَظِيْماً ﴿٥٣﴾ |
| تاسو د بيبيانو د هغه سره روستو د هغه نه هيڅكله، يقيناً دا كار دے د الله په نيز لوئى۔ |
| إِنْ تُبْدُوْا شَيْئاً أَوْ تُخْفُوْهُ فَإِنَّ اللهَ كَانَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْماً ﴿٥٤﴾ |
| كه چرے ښكاره كوئ تاسو څه شے يائے پټوئ نو يقيناً الله په هر شى باندے پوهه دے۔ |

**تفسير** : پدے آيت كښې مؤمنانو ته خطاب دے چه پدے كښې هم ډير غرضونه دى (۱) ادب د طعام، (۲) ادب الدعوة ـ (۳) د رسول الله ﷺ د ضرر نه ځان وساتئ۔

(٤) د هغه د بيبيانو احترام او ادب ئے خودلے دے او د داسے خبرو نه ئے منع كړيده چه د نبى ﷺ او د امهات المؤمنين دپاره د ذهنى ضرر باعث جوړيږى۔ او پدے آيت كښې د حِجاب (پردے) مسئله هم ده۔

### شان نزول

دا آيتونه د رسول الله ﷺ د زينبے سره د وادۀ د وليمے په موقعه كښې نازل شوى وو۔

كله چه د زينب رضى الله عنها نكاح وشوه او رسول الله ﷺ خپل كور ته راوستله نو د شپے نه پس ئے صبا له د وليمے دعوت وكړو او ګډ ئے حلال كړو، او په خلكو ئے غوښه او

روتئ وخوړله۔ انس بن مالك ﷺ ئے پدے وخت کښ خادم وو، هغه ته ئے وویل چه لاړ شه او څوك چه په لاره کښ وینے هغه دے دعوت ته راوله۔ (لکه دا د دعوت ښه طریقه ده چه حاضرو خلکو ته دعوت وکړے شي، او پدے دعوتونو کښ انتهائی سادگی وه، د خلکو خفگانونه هم نهٔ وو چه ما ته ئے دعوت نهٔ دے کړے) هغه لاړو او خلك ئے رادعوت کړل، نو پدے کښ بعض ملګری ډیر وختی راغلل چه طعام لا پوخ نهٔ وو او کوټه کښ کیناستل، طعام چه وخوړل شو نو بیا هم څه کسان ناست وو، د رسول الله ﷺ آرزو وه چه ملګری پاڅیږی (ځکه چه د ناوے کوټه ده او دوی هم ناست دی، دے وخت کښ لا پرده نهٔ وه نازله شوے، نو رسول الله ﷺ ته تکلیف شو، هغه د خپلے بی بی سره یو اڅے والے غوښتو۔ مګر بعض ملګری پدے تکلیف پو هه نشو، پدے کښ نبی ﷺ پاڅیدو (دے دپاره چه ملګری هم پاڅیږی، په خوله ئے ورته نشو وئیلے چه پاڅیږئ ځکه چه حیاء پکښ ډیره زیاته وه) لیکن هغوی ته احساس ونشو، نبی ﷺ لاړو په نورو بیبیانو باندے وګرځیدو، او هغوی ورله مبارکی ورکړه او بیرته راواپس شو چه وے کتل همغه ملګری بیا ناست دی، پدے کښ رسول الله ﷺ بیرته واپس شو (ځکه که هغه ورننوزی نو ملګری به نور هم په ناسته باندے کلك شي) نو صحابه کرامؓ چه دا حالت ولیدو پو هه شول نو په جلتئ سره پاڅیدل، کله چه کوټه خالي شوه، رسول الله ﷺ چه کله کوټے ته ننوتو نو الله تعالیٰ پدے دوران کښ دا آیتونه راولیږل۔

انس بن مالك ﷺ فرمائی چه زهٔ وریسے وم یوه خپه مے دننه او بله مے بهر وه نو رسول الله ﷺ پرده راوا چوله او ما ته ئے وویل چه روستو شه۔

او د پردے په مسئله کښ د عمر ﷺ ډیره دلچسپی وه، مخکښ نه به ئے وئیل چه اے د الله رسوله! ستا کوټے ته نیك او فاجر او منافق داخلیږی او ستا بیبیانو ته ګوری، دا زما خوښه نهٔ ده، دوی ته امر وکړه چه بی اجازته نهٔ راځی، رسول الله ﷺ به فرمایل چه د الله امر نشته، آخر دا آیتونه الله تعالیٰ د عمر ﷺ د رائے او خواهش مطابق نازل کړل۔

ابن سعدؒ د انس بن مالك ﷺ نه روایت کړیدے چه د پردے حکم د رسول الله ﷺ د زینب سره د وادهٔ په موقعه کښ نازل شو او دا پنځم کال د هجرت وو، او د هغه ورځے نه ئے بیبیانے په پرده کښ کړے او زهٔ د پنځلسو کالو وم۔

نو پدے آیت کښ بیا یو ادب د دعوت دا دے چه د دعوت دپاره چا کره بی ضرورته ډیر وختی مهٔ ځه چه د پروګرام نه مخکښ دے علاقه مصروفه کړی وی۔ د دعوت په وخت

کښې ورځه. بیا چه کله روټئ وخورې نو زر وځه مګر که خدمت ته ولاړ وې، یا بل ضرورت وو نو خیر دے. د انسانانو قسماقسم کارونه وي، خاصکر مشران خلك ډیر ضرورتونه لري، په دین او دنیا کښې ئې وخت لګی نو هغه ورله مهٔ ضائع کوه.

اِلَّآ اَنۡ یُّؤۡذَنَ لَکُمۡ : یو ادب دا شو چه بې اجازته به د چا کوټې ته نهٔ داخلیږې.

غَیۡرَ نٰظِرِیۡنَ اِنٰىهُ : اَیۡ غَیۡرَ مُنۡتَظِرِیۡنَ اِدۡرَاکَهٗ وَنُضۡجَهٗ . چه تاسو به د هغې د تیارئ او د پخیدو انتظار نهٔ کوئ. دے کښې ادب دا دے چه د ولیمې طعام ته به ډیر وختی نهٔ ځئ، یو خو دا د حرصناکو طریقه ده، او دویم پدے کښې کور والو ته تکلیف ملاویږی.

اِنَا د مصدر صیغه ده د اَنٰی یَاْنِیۡ اِنًا نه. ددے معنیٰ ده وخت راتلل او وخت ته رسیدل.

نو معنیٰ ده : یعنې ((نهٔ یئ انتظار کونکی د وخت د تیارئ د هغے)).

اِذَا دُعِیۡتُمۡ فَادۡخُلُوۡا: یعنی د دعوت په وخت کښې راځئ، نهٔ مخکښې او نهٔ روستو.

او دُعِیۡتُمۡ نه معلومه شوه چه بغیر د دعوت نه په طریقه د طفیلیت سره د چا طعام ته ورتلل هم منع دي، او حدیث کښې دي : [دَخَلَ سَارِقًا وَخَرَجَ مُغِیۡرًا] (ابو داود : ۳۷٤۱) وفی اسناده ابان بن طارق مجهول و حسنه الحافظ ابن حجر فی مقدمة تخریج المشکاة) قال العقیلی : ویروی من قول ابی هریرة بسند جید، الضعفاء الکبیر ۱٦۱/۲ للعقیلی)

دا انسان غل ننوتو او لوټ کونکے ووتو) یعنی پټه ننوتو او په زوره ئې د هغوی روټئ وخوره. نو دا ګناهګار دے. پدے ادب پاندے ځومره مسلمانان عمل نکوی، چه صرف دومره واوری چه د فلانی وادهٔ دے، بس راروان شوے وي، خیټه ئې په اُوبو کښې اچولی وي، د وریژو دوه دانو ته ئې ایمان بهیللے وي.

فَانۡتَشِرُوۡا: دا بل ادب دے چه کله خوراك وکړئ نو زر واپس او خوارهٔ شئ، د استراحت او ګپ شپ دپاره ایساریدل جائز نهٔ دي.

وَلَا مُسۡتَاْنِسِیۡنَ لِحَدِیۡثٍ : اَیۡ کُوۡنُوۡا غَیۡرَ مُسۡتَاْنِسِیۡنَ . شئ تاسو نهٔ خوښونکی د خبرو اترو. یا لَاتَمۡکُثُوۡا مُسۡتَاْنِسِیۡنَ . تاسو مهٔ ایساریږئ پداسے حال کښې چه خبرے خوښونکی یئ. دا بل ادب دے یعنی د خوراك نه روستو د ګپ شپ دپاره هم مهٔ ایساریږئ.

یُؤۡذِی النَّبِیَّ: دا کار نبی ﷺ ته ضرر رسوی ځکه چه په هغهٔ او د هغهٔ په کور والو به کور تنګ کړئ، او هغه خبرے به کوئ چه نبی به ئې نهٔ خوښوی.

زجاج وائی چه رسول الله ﷺ به د دوی اُوږدے خبرے د کرم او عزت د وجه نه برداشت کولے نو الله د دعوت حاضرینو ته ادب وخودو.

Scanned by CamScanner

فَيَسْتَحْيِ مِنكُمْ: رسول الله ﷺ به د زړه د کمزورتیا نه شرم او حیاء کوی چه څنګه ملګرو ته ووائی چه پاځیږئ، لاړ شئ، په ځان ئے ددے وینا وس نهٔ کیږی، او الله خو څکه حیاء نکوی چه د هغه طاقتونه مضبوط دی، د چا نه نهٔ شرمیږی چه د حق بیان پریدی. نو الله د عیبژن څیزونو نه حیاء کوی لیکن د حق د بیان نه حیاء نکوی. نو حیاء او نهٔ حیاء دواړه د الله تعالیٰ صفتونه دی.

وَإِذَا سَأَلْتُمُوهُنَّ : دا بل ادب دے یعنی کله چه تاسو د رسول الله ﷺ د بیبیانو نه یا د نورو زنانو نه څه ضروری تپوس کوئ، یا ترے بل څه ضروری څیز غواړئ چه مثلاً کاسه، څمڅئ وغیره راکړه نو د دیوال او دروازے نه شا ته نه ئے غواړئ. او ددے نه معلومه شوه چه په کور باندے دروازه یا پرده لګول ضروری دی.

وَرَاءِ حِجَابٍ: د پردے اخوا نه. ددے نه علماء دلیل نیسی چه د رسول الله ﷺ د بیبیانو پرده ډیره سخته وه، ددے حکم نه روستو هیڅا د رسول الله ﷺ یوه بی بی هم نهٔ ده لیدلے، برابره ده په نقاب کښ وی او که په غیر نقاب کښ. بلکه د هغوی شخص پټول هم ضروری وو تردے چه په کجاوه کښ به کینولے شوے. او دا صرف د امهات المؤمنین په باره کښ دے، نهٔ د عامو زنانو. د عامو مومناتو دپاره مخ پټول افضل دی.

ذَٰلِكُمْ أَطْهَرُ لِقُلُوبِكُمْ: بد نظری د زړه د خرابولو لوی سبب دے، په مانځه به ولاړ وی او پردئ زنانه به ورته مخے ته مخے ته کیږی. نو څومره چه نظر محفوظ وی نو زړهٔ ئے پاک وی. او پدے سره شیطان له په ذهن کښ د خرابو خیالونو پیدا کیدلو موقع نهٔ ملاویږی.

وَمَا كَانَ لَكُمْ : دا اُوم ادب دے. چه رسول الله ﷺ ته به هیڅ قسم ضرر نهٔ ورکوئ، که په هره طریقه سره وی، او هغهٔ ته تکلیف ورکول یو دا دی چه یو تن د هغهٔ د سنت خلاف وکړی، او د یو حدیث نه معلومیږی چه یو تن قبلے ته لاړے توکړے نو رسول الله ﷺ قوم ته ووئیل چه دا مانځه ته مهٔ مخکښ کوئ څکه چه دهٔ الله او د هغهٔ رسول ته ضرر ورکړو. (ابوداود: ۴۸۱) واسناده صحیح)

وَلَا أَن تَنكِحُوا أَزْوَاجَهُ مِن بَعْدِهِ أَبَدًا : اتم ادب : د رسول الله ﷺ د وفات نه روستو به د هغهٔ د بیبیانو سره نکاح هیڅکله نهٔ کوئ څکه چه دا د امت میندے دی او اولاد لره د مور سره نکاح حرامه ده. دویمه وجه دا ده چه دا به د رسول الله ﷺ په جنت کښ هم بیبیانے وی، دریمه وجه دا ده چه پدے کښ د رسول الله ﷺ احترام پائیمال کیږی. که د چا

یو مشر وی او د هغهٔ د ښځے په باره کښې څوك دا خبره وکړی نو کشرانو ته په هغې باندے غصه ورځی چه دا خو بی ادبی ده، سره د هغې نه چه هغه شرعاً جائز کار دے، نو دغه شان الله تعالیٰ هم د اُمتی دپاره د خپل رسول د بیبیانو په نکاح کولو کښې ناراضه کیږی۔

بیا ددے بیبیانو نه مراد هغه دی چه رسول الله ﷺ ورسره دخول کړے وی برابره ده چه وینځه وی او که آزاده۔ البته د دواړو ترمینځ فرق داسے دے چه رسول الله ﷺ د کومے آزادے ښځے سره نکاح تړلی وی اگرکه دخول نهٔ وی شوے نو هم په امت باندے حرامه ده او هرچه وینځه ده نو که رسول الله ﷺ ورسره دخول نهٔ وی کړے نو جائز ده۔

(کذا فی شرح المنهاج للرملی- فتح البیان)

## شان نزول

ابن ابی حاتمؒ او ابن مردویهؒ د ابن عباس ﷺ نه نقل کړی چه یو سړی ووئیل چه دے به د رسول الله ﷺ د وفات نه پس د هغهٔ د څینو بیبیانو سره وادهٔ کوی، نو ﴿وَمَا كَانَ لَكُمْ أَنْ تُؤْذُوا رَسُولَ اللَّهِ﴾ آیت نازل شو، او الله تعالیٰ د نبی ﷺ نه پس امهات المؤمنین سره وادهٔ کول تمامو مسلمانو دپاره حرام کړل۔

قتادهٔ فرمائی : طلحه بن عبید الله ﷺ وفرمایل : که رسول الله ﷺ وفات شو نو زهٔ به عائشه رضی الله عنها سره نکاح کوم۔ (خکه چه دے کښې ډیر کمالات دی) او کیدے شی چه دا خبره بعض منافقانو هم کړی وی۔

مفسر ابو السعودؒ لیکی چه ددے نه اندازه کیږی چه د الله په نیز د نبی کریم ﷺ څومره لوی مقام دے۔ دے وجے نه په (٥٤) آیت کښې د دهمکیٔ په توګه الله تعالیٰ وفرمایل چه تاسو برابره خبره ده که یوه خبره ښکاره کوئ (لکه چه بعضِ منافقانو د هغویٔ ﷺ د بعضِ ښځو سره په غلط نیت د وادهٔ خبره وکړه) یائے په خپلو زړونو کښې پټه ساتئ هغهٔ ته د هر څهٔ پته ده، او هغه به ددے تمامو پټو او ښکاره ګناهونو بدله خامخا تاسو له درکوی۔

﴿لَا جُنَاحَ عَلَيْهِنَّ فِي آبَائِهِنَّ وَلَا أَبْنَائِهِنَّ وَلَا إِخْوَانِهِنَّ﴾

نشته ګناه په دوی باندے په پلارانو د دوی او نهٔ په ځامنو د دوی او نهٔ په ورونو د دوی

| وَلَا أَبْنَاءِ إِخْوَانِهِنَّ وَلَا أَبْنَاءِ أَخَوَاتِهِنَّ وَلَا نِسَائِهِنَّ |
| --- |
| او نهٔ په وريرونو د دوى او نهٔ په خوريونو د دوى کښې او نهٔ په ښځو د دوى کښې |
| وَلَا مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُنَّ وَاتَّقِينَ اللَّهَ |
| او نهٔ په هغه کښې چه مالك وى ښى لاسونه د دوى، او يره کوئ د الله تعالىٰ نه |
| إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدًا ﴿٥٥﴾ |
| يقيناً الله تعالىٰ په هر شى باندے حاضر ناظر دے۔ |

**تفسير:** سوال پيدا شو چه پلاران او خامن به هم ددے زنانو سره د پردے نه اخوا خبرے کوى نو پدے آيت کښې د هغے جواب وشو په طريقه د استثناء سره۔ نو دلته د هغه رشته دارانو ذکر دے چه د هغوئ نه د رسول الله ﷺ د ښځو او د نورو مسلمانو ښځو دپاره پرده کول ضرورى نهٔ دى، او دوئ سره په غير د پردے کولو نه خبرے کول جائز دى۔ پلار نه مراد پلار، نيکهٔ او د نيکهٔ پلار دے۔ خامنو نه مراد خامن او د هغوئ خامن او د خامنو خامن، او د ورونو د خامنو او د خويندو د خامنو نه مراد نمسى هم دى۔

او د (ښځې) نه مراد د يوے رائے مطابق صرف مسلمانانے ښځے دى، او بله رائے داده چه په ﴿وَلَا نِسَائِهِنَّ﴾ کښې اضافت نه مراد صرف د ښځو جنس طرفته اشاره ده، د دے وجے نه مسلمانو او د اهل کتابو ښځو نه د مسلمانانو ښځو پرده نشته۔ او همدا رائے حقه ده۔ ﴿وَلَا مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُنَّ﴾ نه بعض خلقو استدلال کړے چه د ښځے غلام د هغے محرم دے۔ او د بعضو خيال دے چه د ښځے غلام هغے لپاره د پردى سرى حيثيت لرى، او دلته صرف وينځے مراد دى۔ ليکن اول قول صحيح دے، د احاديثو مطابق دے۔

بيا ددے آيت او د سورة النور د آيت (۳۱) فرق دا دے چه دا آيت اجمال دے او د سورة النور آيت کښې ددے تفصيل شويدے۔ او دواړو کښې د پردے حکم دے۔ او کوم علماء چه داسے فرق کوى چه د سورة النور آيت د حجاب په باره کښې دے، نو هلته ئے ډير کسان ذکر کړيدى، او دا آيت د خلوت په باره کښې دے او خلوت د کمو کسانو سره کيږى، نو پدے وجه ئے دلته کم ذکر کړيدى۔ او د وَمَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُنَّ نه صرف وينځے مراد کوى۔ (احسن الکلام)

نو دا فرق ضعيف بلکه خطاء دے۔ وجه دا ده چه په اسلام کښې دا قاعده ده چه کومو

سره ته ډول سینګار ښکاره کول جائز وی نو د هغوی سره خلوت هم جائز وی، هغه د محارمو نه ګرځي. څکه محارم هغه چا ته وائی چه د هغوی سره ابدی نکاح حرامه وی او د چا سره چه ابدی نکاح حرامه وی، هغوی سره خلوت جائز وی. لکه وروړ سره نکاح ابدی حرامه ده نو زینت ورته ښکاره کولے شي، نو دغه شان خلوت هم ورسره کولے شي. دغه شان سخر واخله. نو کوم خلك چه ددے دواړو ترمینځ فرق کوی د هغوی سره هیڅ دلیل نشته او پدے خبره ئے پوره سوچ نهٔ دے کړے. او دلته کم محارم ذکر شو څکه چه په سورة النور کښ هغه پوره ذکر شویدی.

نو صحیح خبره دا ده چه د (وَمَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُنَّ) نه مراد وینځه او غلامان دواړه دي، ام حکیم رضی الله عنها د خپل غلام سره سفر کړے وو.

**فائده**: علماؤ لیکلی دی چه په دے آیت کښ د ترهٔ او ماما ذکر نهٔ دے راغلے ددے وجه امام شعبیؒ او زجاج دا وئیلے ده چه ترهٔ او ماما به خپل خوی ته حال ووائی نو ددے نه به نقصان پیدا شی لهذا دوی دپاره هم نظر مکروه شو. لیکن دا خبره انتهائی ضعیفه ده اګرکه امام شعبیؒ تابعی دے او د عبد الله بن عباس رضی الله عنه شاګرد دے لیکن خبره ئے خطاء ده، د حدیث او د قرآن خلاف ده. حدیث کښ دی: د افلح په نوم باندے یو شخص د عائشےؓ کور ته راتللو نو عائشےؓ نهٔ پریخودو، هغه ووېل: زهٔ ستا رضاعی ترهٔ یم، عائشےؓ ووېل: [اِنَّمَا اَرْضَعَتْنِي الْمَرْاَةُ] ما له خو ښځے تے راکړے نهٔ سړی. پدے کښ رسول الله ﷺ راغے عائشےؓ ورته د هغهٔ قصه وکړه نو رسول الله ﷺ وفرمایل: اجازه ورکړه [فَلْيَلِجْ عَلَيْكِ فَاِنَّهٗ عَمُّكِ مِنَ الرَّضَاعَةِ] دا دے تا کره راننوزی څکه چه دا ستا رضاعی ترهٔ دے. عائشه رضی الله عنها فرمائی: دا په هغه وخت کښ چه په مونږ باندے پرده وهلے شوے وه.

بخاری (۵۲۳۹) مسلم (۳۶۴۸)

د حفصےؓ په کور کښ د هغے ترهٔ خبرے کولے، دا څوك دے؟ هغے وفرمایل: دا زما رضاعی ترهٔ دے. وے فرمایل: لږ احتیاط کوئ چه پردے سړے ستاسو کور ته رانشی.

دویم دا چه پدے آیت او د سورة النور په آیت کښ دا دواړه ذکر دی. (وَلَا اَبْنَاۗءِ اِخْوَانِهِنَّ) (وَلَا اَبْنَاۗءِ اَخَوٰتِهِنَّ) ابن الاخ ورارہ دے نو ترور له جائز شو چه د ورارهٔ سره خلوت وکړی نو ددے برعکس واخله. ترهٔ له د وریرے سره خلوت جائز شو څکه چه دواړه په درجه کښ یو شان دی.

دارنګه ابن الاخت (خوریئ) له جائز دی چه ترور سره خلوت وکړی نو دغه شان ماما له

جائز دی چه د خورزے سره خلوت وکړی۔
بله وجه د غلطئ: دا ده چه دوی چه کوم علت وئیلے دے چه خپلو ځامنو ته به حال ووائی نو دغه علت خو په پردئ ښځه کښې هم جاری کیږی چه هغه به هم خپلو ځامنو ته حال ووائی چه فلانئ جینئ داسے داسے ده نو بیا پکار ده چه د ښځے دپاره ښځے ته کتل هم مکروه شی۔
وَاتَّقِيْنَ اللهَ: د احکامو بیانولو نه پس الله تعالیٰ امهات المؤمنین ته نصیحت کوی چه دوئ په هر حال کښې د الله نه ویریږی، دوئ له ئے چه کوم حدونه مقرر کړی، د هغے نه تجاوز اُونهٔ کړی، د بل چا په مخکښې خپل ډول ښکاره نهٔ کړی، او پرده کول پریے نهٔ ږدی چه د نامحرمو نارینه ؤ نظرونه په دوئ پریوزی، او دا خبره همیشه یاده لری چه الله تعالیٰ د دوئ او د نورو تمامو انسانانو اعمال او حرکات وینی، چرته داسے ونشی چه د قیامت په ورځ هغه د دوئ په خلاف گواه جوړ شی، او هلاکت او بربادی د دوئ انجام جوړ شی۔

| |
|---|
| إِنَّ اللهَ وَمَلَائِكَتَهُ يُصَلُّوْنَ عَلَى النَّبِيِّ يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا صَلُّوْا |
| یقیناً الله او ملائك د هغه رحمتونه وائی په نبی ﷺ باندے اے ایمان والو! درود وایئ |
| عَلَيْهِ وَسَلِّمُوْا تَسْلِيْماً ﴿٥٦﴾ |
| په هغه باندے او سلام اُووایئ په سلام کولو سره۔ |

**تفسیر:** عنوان د آیت دے وُجُوْبُ الصَّلَاةِ عَلَى النَّبِيِّ ﷺ ۔ په رسول الله ﷺ باندے درود وئیل لازم دی۔
(۲) اَلْاِعْتِنَاءُ بِشَانِ النَّبِيِّ ﷺ۔ د رسول الله ﷺ د شان او مرتبے قدر کول لازم دی۔

مناسبت:

۱- د موضوع سره مناسبت دا دے چه رسول الله ﷺ ستاسو داعی دے نو د هغه اتباع هم وکړئ او د هغه عزت هم وکړئ۔ ۲- مخکښې د رسمونو رواجونو په رد کولو سره منافقانو د هغه پسے خبرے شروع کړے نو الله مؤمنانو ته وائی چه تاسو ددهٔ اهتمام او عزت وکړئ، د الله په نیز باندے د رسول الله ﷺ ډیر قدر دے ددے وجه نه ئے اول خپل درود ذکر کړو بیا د ملائکو معلومیږی چه په آسمان او زمکه دواړو کښې هغه د ډیر زیات احترام قابل دے۔ په آسمان کښې الله تعالیٰ او ملائك په هغهٔ باندے درود لیږی، نو اے

خلكو! زما تابعداري وكړئ نو تاسو هم په هغهٔ باندے درود او سلام وليږئ.
او دا عزت او شرافت ورلـه ددے دپاره هم بيانوي چه هيڅوك د هغهٔ د ذات او د هغهٔ د بيبيانو په باره كښ هيڅ ناكاره فكر په زړهٔ كښ رانهٔ ولي.
بـخاري د ابو العاليةؒ نه روايت كړے چه د (الله د درود) نه مراد د ملائكو په محفل كښ د هـغهٔ ذكرِ خير دے. او د (ملائكو د درود) نه مراد د هغهٔ دپاره د بركت دعاء ده او هغه دپاره بخنـه غوښتـل دي. حافظ ابن القيم رحمه الله په خپـل كتاب «جلاء الافهام» كـښ د «صلاة» يعني درود معنىٰ په تفصيل سره بيان كړے.
چه صلاة يو رحمت ته وائي، دويم لغت كښ اَلثَّنَاء وَالْمَغْفِرَة، وَالْاِعْتِنَاءُ بِالشَّان ته وئيلے شي. يعنـي الله د خپـل نبـي صفتونه ذكر كوي، هغه ته بخنه كوي او د هغه لوي شان خلكو ته ذكر كوي يعني آفرين پرے وائي.
د مؤمنانو صلاة دعاء تـه وئيلے شي. بيا دعاگانے به په كومو الفاظو كولے شي. نو بخاريؒ د كعب بن عجره ﷺ نه او احمدؒ، ابوداوُدؒ، نسائيؒ، ابن خزيمةؒ، ابن حبانؒ او حاكمؒ د ابو مسعود بدري ﷺ نـه نـقل كړي، چه صحابه كرامو د نبي ﷺ نـه تپوس وكړو چه [قَدْ عَرَفْنَا السَّلَامُ عَلَيْكَ] مونږ تا ته سلام كول پيژنو، (يعني اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ) [فَكَيْفَ نُصَلِّيْ عَلَيْكَ؟] نو په تا باندے درود څنګه وليږو، نو نبي ﷺ وفرمايل: داسے وايئ: [اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلىٰ مُحَمَّدٍ وَعَلىٰ آلِ مُحَمَّدٍ، كَمَا صَلَّيْتَ عَلىٰ إِبْرَاهِيْمَ وَعَلىٰ آلِ إِبْرَاهِيْمَ إِنَّكَ حَمِيْدٌ مَجِيْد. اَللّٰهُمَّ بَارِكْ عَلىٰ مُحَمَّدٍ وَعَلىٰ آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ عَلىٰ إِبْرَاهِيْمَ وَعَلىٰ آلِ إِبْرَاهِيْمَ إِنَّكَ حَمِيْدٌ مَجِيْد].
د همدے حديث نه استدلال كولو سره امام شافعي رحمه الله وئيلي دي چه د مانځه په آخري تشهد كښ درود وئيـل واجب دي، ځـوك چه دا قـصدًا پـريدي د هغهٔ مونځ نهٔ صحيـح كيـږي. د امام احمدؒ او ابن مردويهؒ هم دا رائے ده، ليكن د جمهورو رائے داده چه واجب نهٔ دي بلكه سنتِ مؤكده دي، او كه ځوك دا پريدي نو ددهٔ مونځ كيږي.
قرطبيؒ د علماؤ اتفاق په دے خبره نقل كړے چه په هر مسلمان باندے په ټول عمر كښ يو ځل درود وئيل واجب دي، باقي حالتونو كښ مستحب دي. بعضِ خلقو وئيلي دي چه د نبي كريم ﷺ د ذكر كيدو په وخت هم په هغوئ باندے درود ليږل واجب دي. او بعضو وئيلي دي چه په هر مجلس كښ يو كرت درود وئيل واجب دي. تفصيل دپاره د حافظ ابن القيم «جلاء الافهام» او د حافظ ابن كثير «تفسير القرآن العظيم» او د قنوجيؒ

((فتح البیان)) وګوره.

او دا حدیث د کعب بن عجره ﷺ ددې خبرې دپاره هم دلیل دې چه په درود کښې به منقول الفاظ لوستلې شي، ددې وجه نه صحابه کرامؓ سره ددې نه چه عرب وو خو د ځان نه ئې د درود الفاظ جوړ نکړل بلکه د رسول الله ﷺ نه ئې تپوس وکړو.

او همدا راجح قول دې. البته د ځان نه د رسول الله ﷺ دپاره په خپله ژبه کښې دعاء کولې شي لکه داسې ووائي [وَالصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ] لیکن دا به درود نۀ وی بلکه هسې دعاء به وی.

او ددرود دپاره ډیر الفاظ نقل دی، څه اُوږده او څه لنډ چه په جلاء الافهام کښې ئې تفصیل کتلې شي.

نو درود تاج، درود لکهی یا اَلصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ عَلَیْكَ یَا رَسُوْلَ اللهِ ) وئیل چه نقل نۀ دی ددې لوستل منع دی. ځکه چه درود عبادت دې او بناء د عباداتو په نقل او په اتباع ده.

د درود دپاره څلویښت فائدې دی چه حافظ ابن القیم په جلاء الافهام کښې جمع کړیدی، او زمونږ د شیخ په ((فتاوی الدین الخالص)) کښې هم نقل شویدی.

درود وئیلو سره د الله تعالیٰ په حکم باندې عمل راځي، د الله تعالیٰ ذکر هم دې، د رسول الله ﷺ حق ادا کول دی او د خپل ځان حق ادا کول دی، ځکه چه څوك رسول الله ﷺ ته دعاء وکړی نو د هغه دپاره هم قبلیږی. په یو ځل درود وئیلو سره لس رحمتونه نازلیږی، او لس درجې پورته کیږی او لس ګناهونه رژیږی، او څوك چه یو کرت درود ووائي نو الله به پرې لس کرته درود (رحمتونه) ووائي. (الحدیث) صحیح مسلم رقم (۹۳۹)

د رسول الله ﷺ د محبت د پیدا کیدو ذریعه ده. د غمونو د ختمیدو لاره هم ده.

دا درود هر وخت وئیلې شي لیکن بعض اوقاتو کښې مقرر شویدې لکه مسجد ته ننوتو او وتو وخت کښې وغیره.

وَسَلِّمُوْا تَسْلِیْمًا: دا سلام په کوم ځای کښې مراد دې؟ نو یو په مانځه کښې، بل په مجلس کښې به پرې صحابه کرامؓ سلام اچولو. بل چه قبر له ئې ورشې نو سلام به پرې اچوې.

او پدې کښې لغوی معنیٰ هم مراد کیدې شي اګرکه دا به اشاره وی تفسیر به نۀ وی یعني ((غاړه کیږدئ تابعداری د رسول الله ﷺ ته په غاړه کیخودو سره)). (فتح البیان)

اهل علم وائي چه یواځې سلام ذکر کول په احادیثو کښې نۀ دی نقل چه بنده داسې

ووائي (اَلسَّلَامُ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ، اَلسَّلَامُ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ) بلكه دا د درود سره شريك راغلے دے۔ البته د مانځه په تشهد کښې راغلے دے مگر عامو ځايونو کښې چه سلام راغلے وی نو هلته به ورسره درود هم ملگرے کوی۔

| إِنَّ الَّذِينَ يُؤْذُونَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهُ لَعَنَهُمُ |
|---|
| يقيناً هغه کسان چه ضرر ورکوی الله او رسول د هغه ته لعنت کريدے په دوی باندے |
| اللّٰهُ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَأَعَدَّ لَهُمْ عَذَاباً مُّهِيناً ﴿٥٧﴾ |
| الله تعالیٰ په دنيا او آخرت کښې او تيار کړے ئے دے دوی لره عذاب سپکونکے۔ |
| وَالَّذِينَ يُؤْذُونَ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ بِغَيْرِ مَا |
| او هغه کسان چه ضرر ورکوی مؤمنانو سړو او مؤمنو ښځو ته په غير د هغے جرم نه |
| اكْتَسَبُوا فَقَدِ احْتَمَلُوا بُهْتَاناً وَإِثْماً مُّبِيناً ﴿٥٨﴾ |
| چه کړے وی دوی نو يقيناً پورته کړو دوی (په ځان باندے) بهتان (بدنامه) او گناه ښکاره۔ |

**تفسير:** اُوس هغه خلکو ته زورنه ورکوی چه د رسول الله ﷺ احترام نهٔ کوی بلکه هغه ته ضررونه ورکوی۔

يُؤْذُوْنَ اللّٰهَ: د الله ايذاء د متشابهاتو نه ده، بعض صورتونه ئے دا دی چه الله ته د ولد يا د شريك نسبت وکړی۔ لکه حديث کښې دی: [يُؤْذِيْنِي ابْنُ آدَمَ] دويم د الله دوستانو سره دشمنی کول۔ لکه [مَنْ عَادٰى لِيْ وَلِيًّا فَقَدْ آذَنْتُهُ بِالْحَرْبِ]۔

(۳) انکار د آخرت نه۔ [وَشَتَمَنِيْ وَلَمْ يَكُنْ لَّهُ ذٰلِكَ] نو د الله تکذيب کول چه الله وائی آخرت به راځی او دے وائی نهٔ به راځی۔ (٤) زمانے ته کنځل کول۔ [يُؤْذِيْنِي ابْنُ آدَمَ يَسُبُّ الدَّهْرَ وَاَنَا الدَّهْرُ]۔ بعض خلك ميرمن (مالك د شی) ته کنځل کوی،

(٥) نِسْبَةُ الْقَبَائِحِ اِلَى اللّٰهِ۔ الله ته بد نسبت کول لکه ﴿يَدُ اللّٰهِ مَغْلُوْلَةٌ﴾ د الله لاس تړلے شويدے۔ (اِنَّ اللّٰهَ فَقِيْرٌ) ۔ (٦) حديث مخکښې ذکر شو چه قبلے ته مخامخ لاړے تو کل۔ (يعنی بی ادبی کول)۔ (٧) عکرمهٔ وائی چه الله تعالیٰ ته اذيت دا دے چه تصويرونه جوړ کړے شی او هغه کار وکړے شی چه صرف الله ئے کوی لکه تصويران تراشل وغيره۔

یعنی د حیواناتو مجسمے جوړے کړے شی او د پیدائش په صفت کښې د هغهٔ سره مشابهت اختیار کړے شی۔ (۸) د الله په اسماء او صفاتو کښې الحاد (کجروی) کول، هغهٔ ته خدا او ګاډ او تغرن او تکری وئیل۔ د هغهٔ د ښکلے نومونو او صفتونو نه انکار کول او په هغے کښې تاویلات کول۔ (فتح البیان)

وَرَسُولَهُ: رسول الله ﷺ تـه ضـررونـه هـم ډیر صورتونه دی (۱) د هغه سره قتال کول۔ (۲) کـنـځـل ورتـه کـول۔ (۳) د هغهٔ بدن ته ضرر ورکول لکه د هغهٔ غاښونه مبارک ئے په اُحد کښې شهیدان کړل) (٤) د هغهٔ د بیبیانو بی عزتی کول۔

(۵) د هغه د اصحابو رضی الله عنهم بی عزتی کول۔ [وَمَنْ اَبْغَضَهُمْ فَبِبُغْضِىْ اَبْغَضَهُمْ]

(٦) – حدیث کښې دی [وَاللّٰهُ يَكْرَهُ اَذَى الْمُؤْمِنِ] الله تعالیٰ مؤمن ته تکلیف ورکول بد ګڼړی۔ (ابن ماجه: ۳۷۷۵) واسناده صحیح)

(۷) – مُخَالَفَةُ حُكْمِهٖ۔ د رسول الله ﷺ د حکم مخالفت کول۔

(۸) – تَرْكُ الْاِتِّبَاعِ۔ د هغهٔ تابعداری پریخودل۔

(۹) – هر هغه قول او فعل چه رسول الله ﷺ تـه ضرر ورکوی۔ چه د هغے نه یو د رجالو تقلید کول او هغه په اتباع د سنت باندے غوره کول دی۔ (فتح البیان)

نو د استاذ، پیر، مُرشد او عالِم طریقه او عمل او خبره د رسول الله ﷺ دپاسه کول او د هغے نه مخکښې کول هغهٔ ته لوی ضرر ورکول دی۔

(۱۰) د رسول الله ﷺ په خاندان او اهل بیتو باندے طنز او طعن وئیل۔

طبریؒ د ابن عباس رضی الله عنه نـه نـقـل کړی چه دا آیت د هغه خلقو په باره کښې نازل شوے وو چه هغوئ صفیه رضی الله عنها سره د رسول الله ﷺ د وادهٔ پـه مـوقـع باندے په نبی ﷺ باندے طعن او تشنیع کړے وه۔ صاحب د محاسن التنزیل لیکی چه ددے آیت د زینب بنت جحش رضی الله عنها د وادهٔ د واقـعے سره زیات تعلق دے۔ نبی ﷺ چه کله هغے سره وادهٔ اوکړو نو منافقانو بیے خبرے جوړے کړے چه محمد د خپل ځوی د طلاق کړے ښځے سره وادهٔ کړے دے۔

وَالَّذِيْنَ يُؤْذُوْنَ الْمُؤْمِنِيْنَ: پـدے آیت کـښې زجر ورکـوی هـغـه خـلـکـو تـه چـه نورو مؤمنانو سرو او ښځو ته ضررونه ورکوی۔

مـومـنـانو سړو او ښځو ته هم په غیر د شرعی سبب نه ضرر ورکول حرام دی، او په دے کښې هر هغه خبره او کار داخل دے چه هغے سره مومنانو ته تکلیف رسیږی۔

که څوك د يوې ګناه ارتکاب وکړي چه د هغې په وجه په هغهٔ باندې حد جاري کړې شي، يا تعزيري طور سره ورله سزا ورکړے شي نو دا د مسلمان په ضرر کښې داخل نهٔ ده.
دغه شان که يو کس خپل يو مسلمان ورور ته په ضرر رسولو کښې ابتداء وکړي مثلًا کنځل وکړي، يائے ووهي، او دويم کس د بدلے په توګه هغهٔ ته کنځل وکړي، يائے ووهي نو دا هم مسلمان له په تکليف ورکولو کښې نهٔ داخليږي.
ابن ابی حاتمؒ د عائشے رضی الله عنها نه او ابوداود او احمد سعيد بن زيد ﷺ نه مرفوعًا روايت کړے چه [إِنَّ مِنْ أَرْبَى الرِّبَا الْاِسْتِطَالَةُ فِيْ عِرْضِ الْمُسْلِمِ بِغَيْرِ حَقٍّ] د الله په نيز د تولو نه لوی سود دا دے چه څوك ناحقه د يو مسلمان په عزت باندې ژبه را اُوږده کړي.
(ابوداود: ٤٨٧٨) مسند احمد (١٦٥١) باسناد صحيح)
فضيل بن عياضؒ فرمائي چه هر کله سپی يا خنزير ته په ناحقه تکليف ورکول حرام دی، نو يو مسلمان ته به ضرر رسول څنګه حلال شي ؟!.
په يو مؤمن پسے کتاب ليکل، د هغهٔ عيبونه وئيل او غيبتونه ئے کول، په لاس يا په خوله سره هغهٔ ته ضرر ورکول تولو ته شامليږي.
ددے بعض صورتونه دا دی چه د مسلمان په بيعه (سودا) باندې بيعه (سودا) کول. هغه يو سودا اخلی نو تهٔ پرے ورمخکښې شے چه ما له ئے راکړه. د هغهٔ په ريټ باندې ريټ کول. د هغهٔ د نکاح د جرګے دپاسه جرګه کول. امام شافعیؒ دا هم وئيلی دی چه بل مسلمان د مخے نه خوراك کول کله چه هغهٔ ته تکليف وی دا هم پکښې داخل دے.
زمخشري ليکلی دی چه ابن عونؒ (د عبد الله بن مسعود ﷺ شاګرد) به خپل دکانونه صرف اهل ذمه ؤ ته په کرايه ورکول (نهٔ مسلمان ته) څکه چه پدے کښې د کال په تيريدو کښې يو رعب دے. (رحمه الله ورضی عنه). (محاسن التاويل للقاسمیؒ)
مفسرين ليکی چه امير المؤمنين عمر فاروق ﷺ د شپے دا آيت ولوستلو نو ډير سخت خفه شو او سيده ابی بن کعب ﷺ خوا ته ورغلو ورته ئے ووېل چه ما د الله د کتاب نه دا آيت ولوستو او زهٔ ئے ډير سخت ويرولم څکه چه زهٔ خو خلکو ته ضرر ورکوم او هغوی وَهم، نو هغه ورته وفرمايل: [إِنَّكَ لَسْتَ مِنْهُمْ، إِنَّمَا أَنْتَ مُؤَدِّبٌ، إِنَّمَا أَنْتَ مُعَلِّمٌ] (تهٔ پدے ضرري خلکو کښې نهٔ ئے داخل څکه چه تهٔ خو خلکو ته ادب او تعليم ورکوے)،
(قاسمیؒ)
يعنی ورانکاری وهے، او قرآن کښې خو (بِغَيْرِ مَا اكْتَسَبُوْا) راغلے دے.

صاحب د فتح البیان لیکلی دی چه بعض مفسرین وائی چه دا آیت د هغه زناکارو په باره کښې نازل وو چه دوی به د مدینے په لارو کښې د ښځو پسے روان وو، هغوی به ئے چیړلے او هغوی به پدے کار خفه وے۔

مؤمنان د خوب نه رابیدارول، هغوی ته شور کول، د هغوی په بسترو باندے خپے اړول، د هغهٔ کتاب بې اجازته کتل، د هغهٔ چپړے او څپلئ بې اجازته وړل۔ بے وخته د هغه کره ورتلل او د شپے ئے د خپل مقصد دپاره راپاڅول۔ او لوی ضرر دا دے چه په هغوی باندے بهتانونه وائی او مؤمن ته کافر وئیل او دا وئیل چه دا فلانے کافرو لره لګیا دے کار کوی۔

بې ضرره انسان جنتی وی، په خپله خبره، په خپل ګرځیدو او په خپل عمل سره هیڅ مسلمان ته ضرر مهٔ ورکوه، لیکن که مونږ ځان ته فکر وکړو، زمونږ په خبرو او په یو ځای کښې ایساریدو سره څومره ضرر ایمان والو ته ملاویږی۔

| |
|---|
| يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ قُل لِّأَزْوَاجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَاءِ الْمُؤْمِنِينَ يُدْنِينَ |
| اے نبی ! اُووایه بیبیانو خپلو ته او لونړو خپلو ته او بیبیانو د مؤمنانو ته چه زوړند کړی |
| عَلَيْهِنَّ مِن جَلَابِيبِهِنَّ ذَٰلِكَ أَدْنَىٰ أَن يُعْرَفْنَ فَلَا |
| په ځانونو دپاسه د لویو پړونو خپلو نه دا ډیره نزدے ده چه دوی به وپیژندلے شی نو نهٔ به |
| يُؤْذَيْنَ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴿٥٩﴾ لَّئِن لَّمْ يَنتَهِ الْمُنَافِقُونَ |
| شی تنګولے او دے الله تعالیٰ بخنه کونکے رحم کونکے۔ که چرے منع نهٔ شول منافقان |
| وَالَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ وَالْمُرْجِفُونَ فِي الْمَدِينَةِ |
| او هغه کسان چه په زړونو د دوی کښې مرض دے او ډنډوره کونکی په مدینه کښې |
| لَنُغْرِيَنَّكَ بِهِمْ ثُمَّ لَا يُجَاوِرُونَكَ |
| خامخا راتیز به کړو مونږ تا لره په (جنګ) د دوی باندے بیا به نشی اُوسیدلے دوی تا سره |
| فِيهَا إِلَّا قَلِيلًا ﴿٦٠﴾ مَّلْعُونِينَ أَيْنَمَا ثُقِفُوا |
| په هغے کښې مګر لږ۔ لعنت کړے شویدے په دوی کوم ځائے چه اُومندلے شی |

| أُخِذُوا وَقُتِّلُوا تَقْتِيلًا ﴿٦١﴾ سُنَّةَ اللّٰهِ فِي الَّذِيْنَ |
|---|
| وبه نیولے شي او وبه وژلے شي په وژلو سره۔ پشان د طریقے د الله تعالیٰ په هغه کسانو کښ |
| خَلَوْا مِنْ قَبْلُ وَلَنْ تَجِدَ لِسُنَّةِ اللّٰهِ تَبْدِيْلًا ﴿٦٢﴾ |
| چه تیر شوے دي مخکښ او هیچرے به اُونۀ مومے د طریقے د الله دپاره بدلول۔ |

**تفسیر:** اُوس بیا مسئله د حجاب او رد په منافقانو کیږي۔

## شان نزول

د نبی ﷺ په زمانه کښ به زنانه د شپے قضاءِ حاجت له وتلے نو بعضِ منافقانو به دا وینزے وګڼړلے، یا په دغه بهانه به ئے په هغویٔ باندے آوازونه کول، نو الله تعالیٰ دا آیتِ کریمه نازل کړو، او هغویٔ ته ئے حکم وکړو چه کله اُوځي نو اُوږدۀ څادرونو سره دے خپل ځانونه د پورته نه لاندے پورے پټ کړي، دے دپاره چه ضرر رسونکی او شر پسند خوانانو ته معلومه شي چه دا د شریف خاندان آزادے ښځے دي، وینزے نۀ دي، نو بیابه د خپلو شرارتونو نه منع شي۔

طبريؒ د ابن عباس ﷺ نه نقل کړي، الله تعالیٰ مسلمانو ښځو ته حکم ورکړو چه کله دویٔ د قضائے حاجت دپاره د خپلو کورونو نه اُوځي نو د خپلو سرونو د پاسه نه دے څادرونه زوړند کړي او مخونه دے پټ کړي، او یوه سترګه دے ښکاره وساتي۔ ابن ابی حاتمؒ د ام سلمے رضی الله عنها نه روایت کړے چه کله دا آیت نازل شو نو د انصارو ښځو په ډیر زیات وقار سره تور څادرونه واچول او بهر به وتلے۔

## مناسبت

هرکله چه د ایمان والو د اذیت نه منع وکړے شوه نو اُوس د بعض کسانو نه د اذیت د دفع کولو دپاره طریقه ذکر کوي چه هغه زنانه دي چه دوی دے ستر کوي نو منافقان فاسقان به ورته ضرر نشي ورکولے۔ (فتح البیان واحسن الکلام)

**يُدْنِيْنَ:** رانزدے دے کړي په ځانونو خپلو۔

**جَلَابِيْبِهِنَّ:** جمع د جِلْبَاب ده، پړوني ته وئیلے شي چه د لوپټے نه لوی وی او د تول بدن نه تاویږی او بهر ته وتلو وخت کښ ئے زنانه استعمالوی۔ برابره ده چه د شړیٔ نه وی یا څادري وی۔ په عربو کښ د ټوپو والا برقعے نۀ وے، اګرکه دا ډیره پردے والا برقعه ده۔

ددے جلباب د اغوستو طریقه به دا وه چه کومے ښځے به ډیره پرده کوله نو په سر به ئے دا پړونے واچولو او ټول مخ به ئے پکښې پټ کړو صرف یوه سترګه به ئے ښکاره وه. لیکن دا کار په هغوی باندے واجب نۀ وو. او د جلباب دویمه طریقه دا وه چه په سر به ئے واچولو تندی پورے به ئے وینښته پټ کړل او لاندے د زنے به ئے پټے کړے او مخ به ئے ښکاره کیدو، دا قسم پرده د عامو مؤمنو ښځو وه، خو اکثرو زنانو به داسے حجاب کاوه چه مخ به ئے هم پکښې پټاوه. ځکه چه د مخ پټول افضل او بهتر عمل دے، خاصکر د فتنے او د فساد په زمانه کښې خو مخ ورله پټول پکار دی.

ذَٰلِكَ أَدْنَىٰ: ددے فائده بیانوی چه د کومے زنانه به پرده نۀ وه نو دا به اکثر وینځے وے او وینځو پسے به منافقانو توقے کولے او آوازونه به ئے ورپسے کول، هغوی به ئے تنګولے، نو کله چه به حُره (آزاده) ښځه دغه شان بی پردے ووتله نو دا به هم منافقانو وینځه ګڼړله، هغے پسے به ئے هم خبرے کولے او کله چه به یوه زنانه پرده نشینه وه، خلکو به نشوه تنګولے، نو الله وفرمایل: پرده وکړئ چه منافقان مو نۀ تنګوی.

او ددے آیت همدا ظاهر تفسیر دے. او په د هر دور کښې همدغه شان معامله د ښځو سره کیږی کومه چه بے حیاء او بی پردے وی نو سړی ئے ډیره تنګوی او کله چه حیاء ناکه وی نو خلك ئے عزت کوی.

أَن يُعْرَفْنَ: اَیْ اَنَّهَا الْحُرَّةُ. یعنی ویه پیژندلے شی چه دا آزاده ښځه ده. وینځه نۀ ده.

فَلَا يُؤْذَيْنَ: نو ضرر به نۀ ورکړے کیږی د منافقانو او مرضیانو د طرف نه. او په هغه زمانه کښې به زنانه مساجدو ته هم راتللے او د شپے به بهر ته وتلے.

لَّئِن لَّمْ يَنتَهِ الْمُنَافِقُونَ: اُوس منافقانو ته زجر او تخویف دنیوی دے دپاره د تاکید د تیر شوی حکم.

د منافقانو د ضرر رسولو او د هغوئ د کردارونو نه نبی کریم ﷺ او مسلمانان پریشان وو، دے وجے نه الله تعالیٰ دوئ له دهمکی ورکړه چه که دوئ د خپلو خبیثو حرکتونو نه منع نشول نو هغه به خپل رسول ﷺ او مسلمان د دوئ په خلاف را پاڅوی او دوئ به په هغوئ مسلط کړی، چه ددے په نتیجه کښې به دا خلق د مدینے نه بهر اُوځکلے شی.

قرطبیؒ لیکی چه په آیت کښې مذکوره درے صفتونه د منافقانو دی. دا خلق نفاق والا، د زړۀ بیمار او په مسلمانانو کښې ویره خورونکی وو او ډنډوره کونکی وو.

يَنتَهِ الْمُنَافِقُونَ: اَیْ مِنْ اِیْذَاءِ النِّسَاءِ. یعنی که منافقان زنانو ته د ضرر ورکولو نه منع

نشو۔
وَالَّذِيْنَ: دا او روستو (وَالْمُرْجِفُوْنَ) تــول عـطـف د صـفـت دے په صفت باندے او دا درے واړه د مـنـافـقـانـو صـفـات دي۔ يعني په عقيده کښې ئے نفاق (يعني کفر) دے او په زړونو کښې ئے مرض دے يعني پردو ښځو ته ميلان او د هغوی تنګول او هغوی پسے د دروغو پراپيګنډے کونکی دي۔
وَالْمُرْجِفُوْنَ :ډنډورچيان چـه د مـؤمـنـانـو د پريشانه کولو دپاره غلط او دروغ خبرونه خـوروي، يـا پـه مؤمنانو باندے د بدنامے لګولو خبرے خوروي۔ او منافقان پدے کښې ډير کـامـيـاب وي، چـه فلانی خو دومره دومره پيسے واخستے، فلانے د يهودو ملګرے شو، او حال دا چـه هـغـه بـه صـحـيـح مؤمن وي۔ او کله وائي چه هغه دے مـسـلمانانو شکـسـت وخـوړو، کـلـه وائـي دومره ووژلے شول۔ چه پدے سره د مسلمانانو زړونه خکته کوی او د هـغـوی هـمـت مـاتـوی۔ ددے وجـه نه چه څوك خبره کوی نو بی تحقيقه به ئے نۀ منے۔ مـنـافـقـان د کافرانو آلۀ کار وی هغوی ددے دپاره مقرر کړی وی چه د مـسـلمانانو همتونه خکته کړی۔
لَنُغْرِيَنَّكَ بِهِمْ : اَیْ لَـنُحَرِّشَنَّكَ وَلَنُسَلِّطَنَّكَ عَلَيْهِمْ۔ يـعـنی تا به راتيز کړم، او تا به په دوی باندے مـسـلط کړم۔ يعنی زۀ به تا ته امر وکړم چه دوی قـتـل کړه يا ئے وشړه۔
دا منافقان يره ول دی په انسانانو باندے، ځکه چه منافقان د الله نه نۀ يريږی۔
مَلْعُوْنِيْنَ: ١ – دا متعلق دے د لَايُجَاوِرُوْنَكَ۔ پورے۔
يـعـنـی دوی بـه تاسو سره نۀ پاتے کيږی په مدينه کښې مګر لږ وخت، په داسے حال کښې چه دوی باندے به لعنت شوے وی۔
٢ – ظـاهـر دا ده چه دا دوی ته ښيرے دی۔ معنیٰ دا ده : په دوی لعنت کړے شوے او د الله د رحـمـت نـه لـرے کړے شوی دی، او د رسول الله ﷺ او د مـسـلـمـانـانو پـه نظرونو کـښې مبغوض جوړ کړے شوی دی، الله دے دویٔ تباه کړی۔
اَيْنَمَاثُقِفُوْا اُخِذُوْا وَقُتِّلُوْا : يـعـنـی دا خلك چه هرچه ته وی نو دوی به نيولے شی او دوی بـه ووژلے شی۔ يـعـنی الله به حکم وکړی چه قـتـل ئے کړئ او وے باسئ لکه همداسے وشوه کله چه سورت براءة نازل شو نو رسول الله ﷺ دوی راجمع کړل او وے فرمايل : اے فـلانـيـه پـاڅيږه ووځـه ځـکـه چـه تـۀ مـنافق ئے او اے فلانيه تۀ هم پاڅيږه نو خپلوانو د مسجد نه ويستل۔ (فتح البيان)

ددې آيتونو نه دا فقهي مسئله هم معلومېږي چه کوم خلك پردئ زنانه واده شوې يا غير واده شوې تبنتوي نو دوی هم د قتل لائق دي، دې ته خاطف او مخطوفه وائي ځکه چه دا خلك مور او پلار او خپل قوم ته ضرر ورکوي او په عوامو کښې غلط عادت جوړوي۔ مګر دا کار هر سړې نشي کولې بلکه اهل اقتدار خلك ئې کولې شي۔

سُنَّةَ اللّٰهِ فِي الَّذِيْنَ : يعني دروغ جوړونکو او ضرر رسونکو منافقانو سره الله تعالیٰ هميشه راسې داسې سلوك کړې چه هغوی باندې ئې لعنت کړې او هغوی ئې نيولی او وژلي او ذليله کړي ئې دي۔ زجاج وائي چه پخوا زمانه کښې به هم منافقانو ورانې کولو نو الله به پيغمبرانو ته حکم وکړو چه دوی قتل کړئ۔

يا من قبل کښې بدر ته اشاره ده۔

| يَسْـَٔلُكَ النَّاسُ عَنِ السَّاعَةِ قُلْ إِنَّمَا عِلْمُهَا عِنْدَ اللّٰهِ |
|---|
| تپوس کوي ستا نه خلق په باره د قيامت کښې اُووايه ! يقيناً علم د قيامت د الله سره دې، |
| وَمَا يُدْرِيْكَ لَعَلَّ السَّاعَةَ تَكُوْنُ قَرِيْبًا ﴿۶۳﴾ |
| او څه پوهه کړې ئې تۀ چه شايد قيامت به وي نزدې۔ |

**تفسير**: پدې کښې زجر دې منافقانو ته په تپوس کولو په غير د ضرورت او حاجت نه۔

د مکې مشرکانو به د توقو په توګه او د مدينې منافقانو به د امتحان په توګه رسول الله ﷺ نه دا تپوس کولو چه قيامت به کله راځي او مقصد ئې پدې کښې د رسول الله ﷺ تنګول وو، بې مناسبته اوبې ځايه به ئې وويل چه قيامت به کله راځي او څومره وخت به ورته پاتې وي؟ نو الله تعالیٰ د نبي کريم ﷺ په ژبه دوئ له جواب ورکړو او بيا ئې ورله د آخرت عذاب بيان کړو۔

جواب دا دې چه ددې علم خو صرف الله ته دې، ددې خبر هغۀ نۀ کوم نبي له ورکړې، نۀ کوم ملائك له، او دوئ ته ئې د دهمکئ په توګه ووئيل، تاسو ته څۀ معلومه ده چه ددې وخت نزدې راغلې دې، او تاسو خپل انجام ته رسيدونکي يئ۔

وَمَا يُدْرِيْكَ : او تۀ څه پوهه کړې ئې د قيامت په وخت باندې۔ يعنې تا ته ددې علم نشته۔ مَا يُدْرِيْكَ لفظ چه کله راشي نو نبي ته ئې خبر نۀ وي ورکړې او مَا اَدْرَاكَ کښې ئې

خبر ورکړے وی۔

لَعَلَّ السَّاعَةَ تَكُونُ قَرِيباً: قیامت خو یقینی نزدے دے، نو لَعَلَّ (کیدے شی) لفظ ولہ ولے استعمالوی؟ (۱) مفسرینو یو جواب دا ورکړے چه لَعَلَّ په معنیٰ د یقین سره دے۔ یعنی یقیناً قیامت نزدے دے۔ (۲) لیکن حق داده چه دا رَجاء په نسبت سره مخاطب ته ده، نۂ په نسبت د الله تعالیٰ، یعنی امید ورلره د قیامت د نزدے والی۔ یعنی قیامت درته معلوم نۂ دے خو وګنړه چه نزدے راروان دے۔

| |
|---|
| إِنَّ اللَّهَ لَعَنَ الْكَافِرِينَ وَأَعَدَّ لَهُمْ سَعِيراً ﴿٦٤﴾ |
| یقیناً الله تعالیٰ لعنت کریدے په کافرانو او تیار کړے ئے دے دوی لره اُور لمبو والا۔ |
| خَالِدِينَ فِيهَا أَبَداً لَّا يَجِدُونَ وَلِيّاً وَلَا نَصِيراً ﴿٦٥﴾ |
| همیشه به وی په هغے کښې همیشه، نۂ به مومی دوی دوست او نۂ مددګار۔ |
| يَوْمَ تُقَلَّبُ وُجُوهُهُمْ فِي النَّارِ يَقُولُونَ يَا لَيْتَنَا |
| په کومه ورځ چه اړولے راړولے به شی مخونه د دوی په اُور کښې وائی به اے ارمان دے |
| أَطَعْنَا اللَّهَ وَأَطَعْنَا الرَّسُولَا ﴿٦٦﴾ وَقَالُوا |
| چه مونږ تابعداری کړے وے د الله او مونږ تابعداری کړے وے د رسول۔ او وائی به دوی |
| رَبَّنَا إِنَّا أَطَعْنَا سَادَتَنَا وَكُبَرَاءَنَا |
| اے ربه زمونږ! یقیناً مونږ تابعداری کړے وه د سردارانو (دنیوی) او مشرانو (د دین) |
| فَأَضَلُّونَا السَّبِيلَا ﴿٦٧﴾ رَبَّنَا آتِهِمْ ضِعْفَيْنِ مِنَ الْعَذَابِ |
| نو ګمراه ئے کړو مونږ د نیغے لارے نه۔ اے ربه زمونږ! ورکړه دوی ته دوچنده د عذاب نه |
| وَالْعَنْهُمْ لَعْناً كَبِيراً ﴿٦٨﴾ |
| او لعنت اُوکړه په دوی باندے لعنت لوئی۔ |

**تفسیر**: پدے آیتونو کښې د هغه کافرانو انجام بیان شوے چه هغوئ قیامت ته او د نبی کریم ﷺ نبوت ته د دروغو نسبت کوی، چه الله تعالیٰ دوئ د خپل رحمت نه لرے کړی دی، او دوئ لـه ئے د جهنم بلیدونکے اُور تیار ساتلے، چه په دے کښې به د ننوتلو نه

پس ددے نه هیڅ کله نۀ اوځي، او نۀ به هلته د خپل ځان دپاره څوك یار او مددګار بیامومي چه هغه په دے مشکل ترین ساعت کښې د دوئ په کار راشي، او کله چه دوئ پر مخے په مخونو باندے په جهنم کښې اوړی راوړی، لکه څنګه چه غوښه په اُور کښې وریتولو دپاره اړولے راړولے شي، دے وخت کښې به دوئ په چغو چغو ژاړی، او ډیر افسوس او نا امیدئ سره به وائی چه اے کاش ! مونږ په دنیا کښې د الله او د هغۀ د رسول خبره منلے وے نو نن به زمونږ دا حالت نۀ وے۔

وَقَالُوا رَبَّنَا: پدے کښې سبب د عذاب بیانوی چه هغه د رسول الله ﷺ تابعداری پریخودل او د مشرانو سردارانو پسے روانیدل دی۔ بیا به هلته د دوی په تابعدارئ پښیمانه وی او د رسول الله ﷺ د تابعدارئ ارمان به کوی۔

یعنی وائی به چه اے زمونږ ربه ! په کفر او شرك کښې چه زمونږ کوم سرداران وو، مونږ د دوئ په خبرو کښې راغلو او د دوئ تقلید او پیروی مو وکړه، نو دوئ مونږه ګمراه کړو، دے وجے نه تۀ دوئ له اُوس دوچند عذاب ورکړه او په دوئ باندے ډیر لوی لعنت را اولیږه، او په سخت ترین او رسوا کُن عذاب کښې ئے آخته کړه۔

امام شوکانیؒ او ابن القیمؒ لیکی چه دا آیتِ کریمه د تقلید په رد کښې ډیر لوی دلیل دے، او د هغه چا دپاره د عبرت چابك دے چه هغوئ د قرآن نه لرے وی او د خلقو تقلید کوی او ګمراهی نیغه لاره ګنړی۔

بیا د ائمه کرامو تقلید پدے کښې څنګه داخلیږی حال دا چه پدے خو (فَاَضَلُّوۡنَا السَّبِيۡلَا) راغلے دے، او ائمه کرام خو انسان ګمراهئ ته نۀ راکاړی؟ نو جواب دا دے چه استدلال کله په طریقه د دلالت مطابقی سره وی، کله تضمنی او کله التزامی طریقے سره وی۔ نو دارنګه کله په دلالة النص سره وی او کله په اشارة النص سره، نو دلته اشارة النص داسے دے چه تۀ کله یو مشر ګمراه کړے نو دا چغه به وهے او ارمان به کوے، نو دغه شان که تۀ د یو نیك مشر پسے روان شوے او په یوه مسئله کښې د هغه په وجه خطاء شوے، آیت او حدیث دے پریخودو د هغۀ د اجتهادی خطائی په وجه نو دا ارمان به کوے اګر که هغه مشر به جنتی وی۔

سَادَتَنَا: جمع د سیّد یا د سائِدْ ده، کُبَرَاء جمع د کبیر ده، مصداقات ئے دا دی : ساده رُؤَسَاءُ الْقَوۡمِ ۔ (د قوم مشران او لیډران) دی۔ او کبراء د قوم اشراف یعنی علماء دی۔ نو ساده په دنیا کښې او کبراء په دین کښې وی۔ لکه کعب بن الاشرف او نضر بن الحارث

وغیره ئې دینی مشران او ابوجهل او ابن ابی ابن سلول ئې د ملك او علاقې مشران وو.
ددې نه معلومه شوه چه هر هغه مشر چه سړې کفر او شرك او گناه ته راکاږی نو هغه پسې به نۀ ورځې.

ضِعْفَيْنِ : ددې جواب په بل ځای کښې راغلې دې چه الله به ورته ووائی چه د هر یو ستاسو دپاره دوچنده عذاب دې لیکن تاسو نۀ پوهیږئ. (الاعراف :۳۸)

| يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا لَا تَكُوْنُوْا كَالَّذِيْنَ آذَوْا مُوْسٰى |
|---|
| اې ایمان والو! مۀ کیږئ پشان د هغه کسانو چه ضرر ئې ورکړې وو موسیٰ (علیه السلام) |
| فَبَرَّأَهُ اللّٰهُ مِمَّا قَالُوْا وَكَانَ |
| ته نو بچ اُوساتو هغه لره الله تعالیٰ د هغې خبرو نه چه هغوی وړېې وئیلی وو او وو هغه |
| عِنْدَ اللّٰهِ وَجِيْهًا ﴿٦٩﴾ |
| په نیز د الله مخوریز. (عزتمند) |

**تفسیر:** پدې رکوع کښې بیا منع کول دی د ایذاء (ضرر ورکولو) رسول الله ﷺ ته او په طاعت د الله او د رسول امر کوی او خپل قول او عمل برابر کره.

په دې آیتِ کریمه کښې الله تعالیٰ مسلمانانو ته وائی چه دوئ د بنی اسرائیلو پشان نۀ کیږی چه هغوئ موسیٰ علیه السلام باندې عیب وئیلو سره هغهٔ له تکلیف ورکړې وو، نو الله تعالیٰ ښکاره کړه چه دا خلق کوم عیب په هغهٔ لگوی هغې نه هغه بیخی پاك دې.

یعنی اې مسلمانانو! تاسو هم خپل رسول له ضرر مهٔ ورکوئ، لکه څنگه چه بعضِ منافقانو او ضعیف الایمان خلقو د زید بن حارثه او د زینب بنت جحش وادهٔ، طلاق، او بیا د زینب سره د رسول الله ﷺ د وادهٔ واقعه ذکر کوله او په هغهٔ (ﷺ) به ئې طعن او تشنیع کوله.

وَجِيْهًا: ۱- مُسْتَجَابَ الدَّعْوَةِ. (چه دعاء ئې بنه قبلیږی) ۲- مقبول. ۳- مُحَبَّبًا. یعنی محبوب. او هغه انسان چه مرتبه ئې اُوچته وی.

نو پدې کښې اشاره ده چه موسیٰ علیه السلام د الله په نیز مخوریز او مستجاب الدعوات وو نو دا آخری رسول خو به خامخا مخوریز وی او دعاء ئې قبلیږی نو دا به درته بنیرې وکړی تباه به شئ ددهٔ مخالفت او بی عزتی مهٔ کوئ.

**فائده :** صاحب د ((محاسن التنزیل)) لیکی چه عامو خلقو او د علم ډیرو دعویدارو، د انبیاء کرامو د خپل رب په نیز د مخوریز کیدو بهانه جوړه کړے او د هغوئ نه ئے د حاجت د پوره کیدو دعاء غوښتل جائز ګرځولی۔

دا عقیده لری چه د نبی یا د ولی د خواهش مطابق د الله په اراده او د هغهٔ په مشیت کښ بدلون راځی، او د الله په نیز د دوئ وسیله اختیارول داسے دی لکه څنګه چه د دنیا د حاکمانو خواته غتو خلقو سره سفارش کیږی۔

دا عقیده، د توحید د عقیدے سراسر خلاف ده، څکه الله نه سوئ بل هیڅوك د نفع او نقصان رسونکے نشته، دے وجے نه د هغهٔ نه سوئ بل څوك په هیڅ یو حیثیت سره هم رابلل صحیح نهٔ دی۔ د الله په نیز د نبی کریم ﷺ د ټولو انبیاء کرامو نه اُوچت مقام دے، لیکن هغهٔ انسانانو له د نفع، نقصان او د رُشد او هدایت اختیار نهٔ لرلو۔ د الله تعالیٰ په حضور کښ صرف د عملِ صالح وسیله جائز اوصحیح ده۔ الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ اَللّٰهُ الصَّمَدُ ﴾ (صمد) حاجت روا ته وائی، چه هغهٔ ته بندګان د مدد طلب کولو دپاره ورځی۔ او په آیت کښ د خبر معرّف باللام کیدل د حصر فائده ورکوی، یعنی صرف د الله ذات حاجت روا دے، د هغهٔ نه سوئ د هغهٔ نور مخلوق بندګان او غلامان دی۔

همدا مضمون الله تعالیٰ په سورتِ بقره (۱۸۶) آیت کښ په ډاګه بیان کړے، فرمائی : ﴿ وَإِذَا سَأَلَكَ عِبَادِيْ عَنِّيْ فَإِنِّيْ قَرِيْبٌ أُجِيْبُ دَعْوَةَ الدَّاعِ إِذَا دَعَانِ ﴾ (که زما بندګان تانه زما په باره کښ تپوس اوکړی، نو ورته ووایه چه زهٔ نزدے یم، د رابلونکی رابلل قبلوم هر کله چه هغه ما رابلی)۔

## موسیٰ علیه السلام ته د ضرر ورکولو مثالونه

كَالَّذِيْنَ آذَوْا مُوْسٰى : ۱- موسیٰ علیه السلام ته د بنی اسرائیلو ضرر ورکولو واقعه امام بخاریؒ د ابو هریره رضی الله عنه نه مرفوعًا روایت کړے چه موسیٰ علیه السلام ډیر زیات شرمیدونکے انسان وو، د خپل بدن ډیره زیاته پرده به ئے کوله، د بنی اسرائیلو خلقو به ګمان کولو چه د موسیٰ په بدن کښ ضرور څهٔ عیب شته دے چه د هغے په وجه د خپل بدن دومره سخته پرده کوی۔ برګے مرض دے یا اُدْرَه بیماری ده۔

(اُدْرَه یوه بیماری ده چه په هغے سره خصیی وپړسیږی یوه کولمه وشوکیږی او هغه د خصیو ځای ته راکوزه شی۔ یا دا یو مرض دے چه خصیتین پکښ وپړسیږی او ډیر

زيات غټ شي ځکه چه يوه ماده پکښ راجمع شي يا هوا پکښ بنده شي)
(مصباح اللغات).

يوه ورځ لمبلو دپاره لاړ، نو خپلې جامې ئې په يو کاڼړي باندې کيښودلې۔ هغه کاڼړي د الله په حکم سره د هغهٔ جامې واخستې او وتښتيدهٔ او موسىٰ ﷺ امسا راواخسته او کاڼړي پسې ئې روستو منډې کړې، او آواز ئې ورته وکړو (ثَوْبِيْ حَجَرُ، ثَوْبِيْ حَجَرُ) اې کاڼړيه! زما جامې، کاڼړيه زما جامې! تردې چه د بني اسرائيلو يوې ډلې خواته ورسيدهٔ۔ خلقو چه وکتل نو هغوى موسىٰ ﷺ ډير ښائسته وليدو چه نهٔ په هغه برګې مرض وو، نهٔ بل کوم جسماني عيب۔ او پدې کښ کاڼړې هم ودريدو نو موسىٰ ﷺ د هغهٔ نه جامې راواخستې او په امسا سره ئې هغه درې يا څلور يا پنځه ګوزاره ووهلو تردې چه په هغې کښ ئې اثر وکړو۔ (بخاري في الانبياء باب ٢٨ والترمذي في تفسير سورة ٣٣ باب ٢٤)۔

مفسرين ليکي چه په دې آيت کښ دې واقعې طرفته اشاره ده۔

(پدې حديث کښ د شريعت يو قانون دا ذکر دې چه کله په يو مقام کښ مفسدت (فساد) کم وي او مصلحت زيات وي نو د هغې اختيارول جائز وي دلته د عورت ښکاره کيدل لږ عيب دې، او د موسىٰ ﷺ نه تهمت لرې کيدل ډير مصلحت دې نو ځکه د ډير مصلحت دپاره لږ مفسدت اختيار شويدې، او معلومه شوه چه په برېنډه غسل کول په يواځې ځاى کښ جائز دي، د موسىٰ ﷺ معجزه او د الله قدرت هم معلوم شو چه بغير د څه ظاهري سبب نه د کاڼړي تښتيدل وشو)۔

٢- قارون يوې ښځې ته پيسې ورکړې چه په موسىٰ ﷺ باندې د زنا تهمت ولګوى نو هغه قسم ورکړو او بيا هغې اقرار وکړو لکه دا واقعه د سورة القصص په آخر کښ د قارون په واقعه کښ ذکر شوې وه۔

٣- تاريخي رواياتو کښ دي چه الله تعالىٰ هارون ﷺ په يو غر کښ وفات کړو چه موسىٰ ﷺ هم ورسره وو، کله چه موسىٰ ﷺ بني اسرائيلو ته د هغه د وفات خبر ورکړو نو دوى پرې اعتراض وکړو چه دا موسىٰ ﷺ وژلې دې ځکه چه هغه به مونږ سره نرمي کوله او دا مونږ سره سختي کوي، نو دهٔ د هغهٔ سره د بني اسرائيلو د وجه نه حسد وکړو او قتل ئې کړو۔ دارنګه د هغه نه ئې مشري اخستې، کله چه دا خبره موسىٰ ﷺ ته ورسيده نو هغوى ته ئې ووېل: هلاك شئ، هغه خو زما ورور وو، آيا ستاسو دا خيال دې چه زهٔ به هغه قتل کړم؟، ليکن خلکو نهٔ منله نو هغه د الله نه دعا وکړه چه اې الله! زما

نه دا تهمت لرے کړه نو الله د هارون علیه السلام د مرګ کښ ددوی مخے ته راوستو او دوی ولیدو چه هغه نۀ دے وژلے۔ دا تاریخی قصه ده۔

٤-د بنی اسرائیلو خلقو به موسیٰ علیه السلام ته قِسما قِسم تکلیفونه رسول، هغه ته ئے وویل ﴿لَنْ نُّؤْمِنَ لَكَ حَتّٰى نَرَى اللّٰهَ جَهْرَةً﴾ او ﴿لَنْ نَّصْبِرَ عَلٰى طَعَامٍ وَّاحِدٍ﴾ او سامری سخے جوړ کړو چه پدے سره ئے موسیٰ علیه السلام خومره خفه کړے وو۔

زمونږ نبی کریم ﷺ له هم منافقانو او کافرانو قِسما قِسم تکلیفونه ورکړی وو۔ ام المؤمنین عائشه رضی الله عنها باندے ئے (غیرِ حق) د بدکارئ الزام ولګولو، یو ځل د مالِ غنیمت د تقسیم په وخت یو انصاری (ذو الخویصره) ووئیل چه دا هغه تقسیم دے چه دے سره د الله خوشحالی مقصد نۀ دے۔ او د زید او زینب واقعه پورته تیره شوه۔ نبی ﷺ هم د دعوت او تبلیغ په لاره کښې تمام تکلیفونه وزغمل نو الله تعالیٰ د هغوئ مقام وچت کړو، او د هغوئ دشمنان ئے ذلیله او رسوا کړل۔

| |
|---|
| يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَقُوْلُوْا قَوْلًا سَدِيْدًا ﴿٧٠﴾ يُصْلِحْ لَكُمْ |
| اے ایمان والو ! اُویریږئ د الله نه او وایئ وینا برابره (د شریعت سره)۔نو برابر به کړی تاسو لره |
| أَعْمَالَكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوْبَكُمْ وَمَنْ يُّطِعِ |
| عملونه ستاسو او وبه بخی تاسو ته ګناهونو ستاسو او چا چه تابعداری اُوکړه |
| اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ فَقَدْ فَازَ فَوْزًا عَظِيْمًا ﴿٧١﴾ |
| د الله او د رسول د هغه نو یقیناً کامیاب شو په لویه کامیابئ سره۔ |

**تفسیر:** دا آخری خطاب دے مؤمنانو ته په تقویٰ سره او په نیغو خبرو کولو سره۔

د قول سدید مصداقات

١- الصدق۔ (رشتینی خبره کوه)۔ (٢) العدل۔ (د انصاف خبره)۔ (٣) الصواب۔ د حق مطابق خبره کول، چه هغه دلیل وی د سلامتیا د زړۀ۔ ځکه چه د چا زړه سم وی نو خبرے به ئے هم سمے وی او چه زړه ئے کوږ وی نو خبرے به ئے هم کږے وی۔ د یو انسان تقویٰ او بی تقوائی د هغۀ د خولے نه معلومیږی۔

يُصْلِحْ لَكُمْ أَعْمَالَكُمْ : د روغو خبرو کولو فائده دا ده چه ستاسو اعمال به الله برابر

کړي، کـه غـواړے چه الله درله عمل برابر کړي او بیا ئے درله قبول کړي نو نیکے او سیده خبرے کـوه۔ حافظ ابن کثیرؒ وائي (يُوَفِّقْكُمْ لِلْأَعْمَالِ الصَّالِحَةِ) تـاسـو تـه بـه الله تعالیٰ تـوفیـق درکـړي د نیـکـو اعمالو)۔ علماؤ د نیك عمل د توفیق په اسبابو کښ یو سبب دا لیکلے دے چه خپله خوله صحیح استعمالوه۔ لکه دا آیت پرے دلیـل دے۔

او دا الـفـاظ ئے ډیر ښه په مناسب ځای کښ راوړل چه د رسـول الله ﷺ پسے کړے خبرے مـۀ کـوئ چه پـنـځـمے ښـځے ته څه ضرورت وو، او دے رواج ماتولو ته څه ضرورت وو، لاتـجے جوړېږي، نورے ښځے ډیرے وے، د اینګور نکاح ته څه ضرورت دے، دا ټولے کړے خبرے وے۔ نـو الله وفـرمـایـل چـه د الله نه یره وکړئ، د هغۀ په احکامو او فرائضو باندے عـمـل وکـړئ او پـه هر حال کښ درستـه او حقه خبره کوئ۔ او په هر څه کښ د رسـول الله ﷺ تـابـعـداري وکـړئ چه لویه کامیابی درته ملاوه شي، د جهنم نه خلاص شئ او جنت درته ملاؤ شي۔

| |
|---|
| إِنَّا عَرَضْنَا الْأَمَانَةَ عَلَى السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَالْجِبَالِ فَأَبَيْنَ |
| یقیناً مونږ پیش کړو امانت په آسمانونو او زمکه او غرونو باندے نو انکار اُوکړو هغوی |
| أَنْ يَحْمِلْنَهَا وَأَشْفَقْنَ مِنْهَا وَحَمَلَهَا الْإِنْسَانُ إِنَّهُ |
| ددے نه چه پورته کړي دا او ویریدل ددے نه او پورته کړو دے لره انسان یقیناً دغه انسان |
| كَانَ ظَلُوماً جَهُولاً ﴿٧٢﴾ لِيُعَذِّبَ اللهُ الْمُنَافِقِينَ |
| دے ظالم او جاهل۔ (عاقبت دا شو) چه عذاب ورکړي الله تعالیٰ منافقانو سړو |
| وَالْمُنَافِقَاتِ وَالْمُشْرِكِينَ وَالْمُشْرِكَاتِ وَيَتُوبَ اللهُ |
| او منافقو ښځو ته او مشرکانو سړو او مشرکو ښځو ته او مهرباني وکړي الله تعالیٰ |
| عَلَى الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ وَكَانَ اللهُ غَفُوراً رَّحِيماً ﴿٧٣﴾ |
| په مؤمنو سړو او مؤمنو ښځو او دے الله بخونکے رحم کونکے۔ |

**تفسیر** :إِنَّا عَرَضْنَا الْأَمَانَةَ : ددے آیت مطلب دا دے : [بَيَانُ قِلَّةِ خَوْفِ الْإِنْسَانِ مِنَ اللهِ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَى وَكَثْرَةِ خَوْفِ الْكَائِنَاتِ] یعنی د انسان یره د الله نه کمه ده، او د کائناتو یره د الله تـعـالیٰ نه زیاته ده، او مقصود دا دے چه منافقان، کافران او فاسقان د الله نه دومره نۀ

یریږی او کائنات د الله نه ډیر یریږی. او بناء په یو تفسیر پدے آیت کښې زجر دے خائنانو ته. چه الله تعالیٰ چا ته امانت وسپارلو نو پکار ده چه هغه ادا کړی، نو رسول الله ﷺ ته ئے د دعوت امانت وسپارلو، او مونږ ته ئے د هغهٔ د اطاعت امانت وسپارلو نو پدے کښې چه څوك خیانت کوی هغوی ته الله تعالیٰ رټنه ورکوی. او چونکه پدے سورت کښې ئے آداب او اخلاق او احکام بیان کړل چه دا لوی امانت وو. نو اُوس پدے آیت کښې زجر ورکوی هغه چا ته چه پدے امانت کښې خیانت کوی.

د تفسیر په کتابونو کښې ددے آیت نه هم یوه مُعمه جوړه شوے ده، اته، لس تفسیرونه ئے کړیدی چه په انسان باندے آیت ګډوډ شی. قاعده دا ده چه د قرآن ظاهر ته به کتلے شی کوم چه د لغتِ عربی سره برابر وی، او سلفو چه کوم تفسیر کړے وی د هغے مطابق به تفسیر کولے شی.

(۱) صحیح تفسیر دا دے (چه دا صاحب د فتح البیان د ابن عباس ﷺ نه نقل کړے) چه د امانت نه مراد (فَرَائِضُ الْاِسْلَام) یعنی د دین احکام دی. لکه ایمان، مونځ، روژه، زکاة، حج، غسل د جنابت او حفظ د فرج دے، چا یو وئیلی دی او چا نور خو ټول راجمع کړه. نو الله دا ټول فرائض آسمان، زمکے او غرونو ته پیش کړل، دوی ئے راوغوښتل (ځکه چه دوی کښې شعور شته، د الله په خبره پوهیږی) دوی ته ئے ووئیل چه تاسو به زما پدے فرائضو عمل شروع کړئ او دا امر د اختیار دپاره وو لکه د (عَرَضْنَا) لفظ نه معلومیږی ځکه چه عرض چا ته یوه خبره پیش کول دی بغیر د لازمولو نه په هغهٔ باندے. نو دا امر وجوبی نهٔ وو بیا خو به دوی خامخا کولے. نو کائناتو ووئیل چه مونږ پدے عمل وکړو نو څه به وشی؟ نو الله وفرمایل: جنت ته به داخلیږئ او که عمل مو ونکړو. نو اُور ته به ځئ نو هغوی د الله د عظمت او خوف د وجه نه دے امتحان ته تیار نشو او دا ئے ووئیل چه مونږ ته دا امانت مهٔ سپاره هسے نهٔ چه نقصان به رانه وشی نو تباه به شو، نو ستا حکم ماتول او اُور مونږ ته ډیر غټ ښکاره کیږی لهذا مونږ دا نشو کولے.

لیکن دوی ته غیر اختیاری کارونه حواله شویدی، لکه آسمان ته ئے وئیلی دی چه بره ودریږه او زمکه ئے لاندے خوره کړه خو جنت او جهنم ورله نشته.

او انسان چه کله الله تعالیٰ پیدا کړو (آدم ﷺ) هغهٔ ته ئے دا امانت پیش کړو، هغه ووئیل چه زهٔ پرے عمل وکړم نو څه به ملاویږی؟ وے فرمایل: جنت او د هغے نعمتونه او که عمل پرے ونشی نو اُور دے ځای دے، نو دهٔ سره ددے نه چه اُور پکښې دے د جنت په

حرص باندے دا امانت قبول کړو لیکن د انسان په ماده کښې د ظلم او جهل ماده ده (دلته آدم ﷺ نهٔ دے مراد بلکه د مطلق انسان ماده بیانوی) نو دے د الله حکم ماتوی نو ظالم دے او د حکم د ماتولو په عاقبت او عذاب باندے نهٔ پوهیږی۔

بیا لِیُعَذِّبَ اللّٰهُ کښې الله فرمائی چه اول ئے امانت بار کړو بیا پدے باندے عمل نهٔ کوی، او دا کوم خلك پرے عمل نکوی؟ نو منافقان مشرکان ئے نکوی، او دریم مؤمنان دی چه دوی پرے عمل کوی لیکن تقصیر ترے کیږی نو ددے وجه نه (وَیَتُوْبَ اللّٰهُ) الله به پرے مهربانی کوی او دوی سره به آسانی کوی او تقصیر به ورته معاف کوی۔

نو پدے کښې اشاره ده چه تاسو ته د رسول الله ﷺ تابعداری کول یو امانت درکړے شویدے، ددے د ماتولو نه ویریږه، الله به سزا درکړی، آسمان او زمکه د الله د عذاب نه یریږی او اے جاهل انسانه! تهٔ د الله نه نهٔ یریږے۔ دا ددے آیت دعوت شو۔

او دا تفسیر د ټولو سلفو دے۔ پدے باندے دا اشکال کول صحیح نهٔ دی چه آسمانونه او زمکه او غرونه څنګه خبرے وکړی؟ جواب دا دے چه پدے ټولو کائناتو کښې الله تعالیٰ شعور اچولے دے چه د الله په خبره پوهیږی، او د الله نه یریږی، هغه پیژنی، لکه سورة الاسراء آیت (٤٤) کښې تیر شویدی ﴿تُسَبِّحُ لَهُ السَّمٰوٰتُ السَّبْعُ وَالْاَرْضُ وَمَنْ فِيْهِنَّ﴾۔

فَاَبَيْنَ اَنْ يَّحْمِلْنَهَا: یعنی د امانت د پورته کولو نه ئے انکار وکړو۔ او دا انکار په درجه ددے کښې نهٔ وو چه د الله حکم ئے رد کولو بلکه دا مشوره وه۔

وَاَشْفَقْنَ مِنْهَا: دا هم دلیل دے چه دا انکار پدے درجه کښې نهٔ وو چه د الله خبره ئے رد کوله بلکه د امانت نه ویریدل چه دا خو د الله ډیر لوی امانت دے هسے نهٔ چه زمونږ نه ددے خلاف وشی نو تباه به شو۔

اِنَّهٗ كَانَ ظَلُوْمًا: دلته (ه) ضمیر جنس انسان ته راجع دے، نهٔ آدم ﷺ ته۔

ظَلُوْمًا: اَیْ بِعِصْيَانِ رَبِّهٖ ـ د خپل رب په نافرمانئ باندے۔ او جَهُوْلًا: بِحَقِّ اللّٰهِ ـ د الله په حق نا خبره دے۔ ٢- جَهُوْلًا بِالْعِقَابِ ـ یعنی د الله په عذاب باندے ناخبره دے، که دهٔ ته د الله عذاب معلوم وے نو دهٔ به دا کار نهٔ کولے۔ خو دوی د الله ډیر حقونه نهٔ پیژنی نو څکه ترے ماتیږی۔

لِيُعَذِّبَ: پدے کښې لام د عاقبت دپاره دے۔ یعنی ددے امانت د بار کولو انجام دا راووتو چه الله به منافقانو ته سزا ورکړی څکه چه دوی دا امانت صحیح طریقے سره نهٔ ادا کوی۔

یعنی د انسان په اُوګو باندے ئے دا امانت اچولے دے که عمل پرے ونکړی نو عذاب به ورکړی او که عمل ئے پرے وکړو (وَیَتُوْبَ) الله به پرے مهربانی وکړی.

وَیَتوبَ: ۱- الله به ئے په خپل طاعت کښې استعمال کړی، نو چا کښې چه ایمان دے هغه به د دے امانت مطابق استعمال کړی.

۲- یَتُوْبَ کښې اشاره ده چه که پدے امانت کښې ترے څه تقصیرات وشی نو الله به ورله توفیق د توبے ورکړی او بیا به ئے ترے قبوله کړی.

دا ددے آیت صحیح تفسیر دے. نور تفسیرونه د تبصرے دپاره وګوره.

(۲) دویم: سُدیؒ پکښې یو غلط تفسیر کړیدے چه ددے نه مراد هابیل او قابیل دی.

(۳) قفالؒ دا په مجاز باندے حمل کړیدے چه دلته پیش کول نشته بلکه دا په تعلیق باندے حمل دے یعنی بالفرض والتقدیر که زهٔ امانت آسمان او زمکے ته پیش کړم نو دوی به ئے بار نکړی، ویه یریږی د الله نه، او انسان ته ئے که پیش کړم نو دے ظالم او جاهل دے، دے به ورانے کوی. او هغه وائی چه دا آیت د ﴿ لَوْ اَنْزَلْنَا هٰذَا الْقُرْآنَ عَلٰى جَبَلٍ ﴾ پشان په تعلیق بناء دے. مګر صحیح دا ده چه هر یو جدا جدا آیتونه دی.

(۳) تفسیر: د زجاجؒ دے چه زمونږ مشائخ ئے غوره کوی (مګر غوره نهٔ دے) هغه دا چه حمل دلته په معنیٰ د خیانت سره دے، او امانت حکم ته وائی. نو معنیٰ دا ده چه مونږ امانت یعنی خپل حکمونه کائناتو ته پیش کړو چه دا احکام قبول کړئ او دوی ته ئے چه کومه مناسبه ذمه واری وسپارله، آسمانه تهٔ پورته ودریږه او زمکے تهٔ خکته شه نو هغوی د خیانت نه یریږی، یعنی پدے حکم کښې خیانت نهٔ کوی او انسان ته الله تعالیٰ د مانځه، روژے، زکاة وسپارل نو هغه پکښې خیانت کوی نو منافقانو سړو او ښځو ته به پکښې عذاب ورکړی کوم چه خائنان دی.

دا تفسیر هم ضعیف دے، ځکه چه حمل په معنیٰ د خیانت سره اخستل د لغتِ عربی خلاف دی. دویم دا چه دا د سلفو د تفسیر سره مخالفت دے.

د علی بن الحسینؒ په باره کښې راځی چه هغهٔ به کله مانځه ته ودریدو نو رنګ به ئے زیړ شو، چا ورته وویل: دا ولے؟ هغه به ونیل چه دا هغه امانت دے چه الله تعالیٰ آسمان او زمکے او غرونو ته پیش کړے وو نو هغوی نهٔ دے بار کړے، اُوس مونږ ته سپارلے شویدے نو آیا مونږ به دا ښائسته طریقے سره وکړو او که نهٔ. نو صحابه کرامو او تابعینو هم اول تفسیر کړیدے.

(٤) دلته صاحب د تدبر قرآن بل غلط تفسیر کړیدے او خبره ئے اُلټه کړیده چه پدے آیت کښې د انسان صفت دے او د کائناتو بدی ذکر ده۔ یعنی آسمان او زمکے ته الله امانت پیش کړو نو هغوی قبول نکړو ځکه چه هغوی کښې استعداد نهٔ وو۔ او هر چه انسان دے نو دهٔ کښې استعداد وو لکه ظلوم او جهول لفظ کښې ورته اشاره ده۔ او دا کمال د انسان دے۔ دا هم غلط مطلب دے بلکه پدے آیت کښې د انسان بدی ذکر ده۔

(٥) چا د امانت نه عقل اخستے دے، نو کائناتو عقل نشو بارولے او انسان ځان کښې عقل راوستو۔ دا هم بی ځایه تفسیر دے۔ وبالله التوفیق۔

## امتیازات او خصوصیات د سورت

١- خطابات د رسول الله ﷺ۔

٢- خطابات د مؤمنانو۔

٣- خطابات د ازواج مطهراتو۔

٤- دوه امانتونه پکښې ذکر شول۔

٥- د غزوهٔ احزاب خصوصی واقعه پکښې ذکر ده۔

٦- د تبنی، او ظهار مسئله، او د رسول الله ﷺ د بیبیانو واقعات او د زید نوم پکښې ذکر دے۔

٧- د حجاب مسئله پکښې ذکر ده او د عرض الامانة خبره پکښې راغلے ده۔

٨- آداب الدعوة پکښې ذکر دی۔

ختم شو تفسیر د سورة احزاب په رحمت د رب العزت۔ رمضان ١٥ جولائی ٢/ ٢٠١٥ء

❀❀❀❀❀

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ ○

| آیاتها (٥٤) | (٣٤) سورة سبأ مكية (٥٨) | ركوعاتها (٦) |
| --- | --- | --- |

سورت سبا مکی دے، په دے کښې څلور پنځوس آیتونه، او شپږ رکوع دی

## تفسير سورة سبأء

**نوم** : د ﴿لَقَدۡ كَانَ لِسَبَإٍ فِي مَسۡكَنِهِمۡ آيَةٌ﴾ نه اخستے شوے۔ د سبا والو واقعه پکښې ناشنا ده، د سورت د موضوع سره هم تعلق لری۔

**د نازليدو زمانه** : ابن مردویۃ او بیهقیؒ په خپل کتاب «الدلائل» کښې د ابن عباسؓ نه روایت کړے چه دا سورت په مکه کښې نازل شوے۔

قرطبیؒ لیکی دا سورت د ټولو په نیز مکی دے، صرف (٦) آیت په باره کښې اختلاف دے، د بعضو په نیز دا آیت مدنی دے۔

## مناسبت

١- شان د رسول الله ﷺ وو، نو اوس وائی چه دا رسول صادق (رشتینی) دے وے منئ۔

٢- هلته نبی کریم ﷺ ته د وحی په اتباع باندے امر وو ﴿وَاتَّبِعۡ مَا يُوحَىٰ﴾ دلته د وحی د بیانولو طریقه بیانیږی، چه دا وحی به څنګه بیانوے، په داسے داسے طریقه سره۔

## موضوع او مقصد د سورت

١- زمونږ مشائخ وائی چه څلور خبرے دی، ١-توحید، ٢- رسالت د رسول الله ﷺ، ٣- صدق د قرآن۔ ٤- اثبات د آخرت۔ او څوك چه دا نهٔ منی نو په هغوی باندے به ردونه کوی۔

او په مکی سورتونو کښې ذهن سازیانے زیاتے وی۔ عقیده، نظریه جوړه ول او توجه پیدا کول وی۔

٢- غوره او جامع موضوع دا ده چه په دے سورت کښې [بَيَانُ كَمَالِ حَمۡدِهِ سُبۡحَانَهُ]

یعنی پدے سورت کښې د الله تعالیٰ د کامل حمد بیان دے۔ او د الله تعالیٰ کمالِ حمد ډیر څیزونه غواړی۔ ❁ يَقْتَضِيْ شُكْرَهٗ ۔ د الله تعالیٰ کامل حمد د هغهٔ د شکر تقاضا کوی۔ پکار ده چه بندګان ئے شکر وکړی۔ او دا سورت به په شکر باندے ډیر زور ورکوی تر واقعه د اهل سبا پورے۔

❁ وَكَمَالُ حَمْدِهٖ يَقْتَضِيْ اِتْيَانَ السَّاعَةِ ۔ د الله د کمالِ حمد تقاضا دا ده چه قیامت به راځی۔ ﴿ وَلَهُ الْحَمْدُ فِي الْاٰخِرَةِ﴾ څوك چه آخرت نهٔ منی نو هغه د الله کامل حمد نهٔ منی، دنیا خو تنګه او وړه ده، دلته که د هغهٔ په حمدونو باندے اکتفاء وکړے شی نو بیا خو پوره حمدونه د الله دپاره نهٔ ونیلے کیږی۔ که آخرت رانشی نو بیا خو به د مؤمن او کافر فرق ونشی نو الله ته به د عیب او د نقصان نسبت وشی او دا خو د حمد خلاف ده۔ نو کمال حمد د الله تقاضا کوی د اثبات د آخرت۔ نو د آخرت د اثبات دپاره ډیر څیزونه وی یو پکښې کمال حمد د هغهٔ دے۔

❁ وَكَمَالُ حَمْدِهٖ يَقْتَضِيْ اِرْسَالَ الرَّسُوْلِ وَاِنْزَالَ الْكِتَابِ ۔ د الله کامل حمد تقاضا د رسول د رالیږلو او د کتاب د نازلولو کوی۔ ځکه که الله کائنات پیدا کړی او هیڅ رسول او کتاب ورته راونهٔ لیږی نو دا مخلوق عبث پریخودل دی او پدے سره د الله بی ادبی راځی۔ نو د هغهٔ د کمال تقاضا دا ده چه کائنات ئے پیدا کړل او انسان تے پکښې یو مقصد له پیدا کړو۔ او ددے مقصد پته انسان ته نهٔ وه نو الله تعالیٰ رسولان او کتابونه راولیږل چه ددے په ذریعه ئے بندګان خبر کړل۔ نو الله کامل حمد والا دے ځکه ئے رسول رالیږلے دے، نو په دهٔ باندے اعتراض مهٔ کوئ چه دا لیونے او ساحر دے، نو په قرآن هم اعتراض مهٔ کوئ ﴿ لَنْ نُّؤْمِنَ بِهٰذَا الْقُرْاٰنِ﴾ پدے سره ځان تباه کوے۔

❁ وَكَمَالُ حَمْدِهٖ يَقْتَضِيْ رَدَّ الشِّرْكِ] د الله کامل حمد تقاضا کوی د رد شرك کوی، یعنی الله تعالیٰ د ټولو صفتونو مالك دے، او دا د هیچا نشته نو بیا پدے کښې ورسره هیڅوك شریك نشته۔

نو پدے سورت کښې به په ﴿ قُلِ ادْعُوا الَّذِيْنَ زَعَمْتُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ﴾ سره په شرك رد وی۔

او قرآن چه ددے موضوعاتو نه کوم تعبیر کوی هغه ډیر جامع وی، مونږه ئے صرف خلاصه راواخسته۔ نو پدے کښې به د رسول الله ﷺ شان هم بیانیږی او هغهٔ ته به طریقے د تبلیغ ذکر کوی۔

## خلاصه :

اول نه د الله حمد او د هغهٔ علم ذکر کوی، بیا ئے زجر ورکړے منکرینو د آخرت ته، او د اثبات د آخرت دپاره ئے دلیلونه ونیلی دی، یو علم د الله او بل حکمة د الله. ددے دواړو تقاضا دا ده چه آخرت به راځی. بیا د کافرانو په رسول الله ﷺ باندے اعتراض کول چه دے دعوه کوی چه قیامت به راځی نو دا مونږ ته لیونے ښکاره کیږی. نو الله پرے رد کوی چه قیامت راتلل د الله د حمد تقاضا ده، او څوك چه آخرت نهٔ منی نو هغه گمراهان دی. بیا درے واقعے راوړی یو د داود ؑ او بل د سلیمان ؑ او بل د اصحاب سبا چه په هغے کښې مختلف حکمتونه دی چه روستو به راشی د واقعاتو نه روستو بیا په شرك باندے رد کوی بیا به طرق التبلیغ وی، بیا به د مشرانو او کشرانو برائت بیانیږی په آخرت کښې، بیا په آخره کښې رسول الله ﷺ ته د تبلیغ او دعوت طریقے ښائی او سورت په تخویف باندے ختموی.

| اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ لَهٗ |
|---|
| ټول صفتونه د اُلوهیت خاص الله لره دی هغه ذات دے چه د هغه په اختیار کښې دی |
| مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ وَلَهُ |
| هغه څه چه په آسمانونو او هغه څه چه په زمکه کښې دی او خاص هغه لره |
| الْحَمْدُ فِی الْاٰخِرَةِ وَهُوَ الْحَكِیْمُ الْخَبِیْرُ ﴿۱﴾ |
| صفتونه د کمال دی په آخرت کښې او هغه حکمتونو والا دے خبردار دے. |

**تفسیر**: د الحمد لله مطلب دا دے چه الله تعالیٰ د خپل ځان صفت هم کوی او بندگانو ته پدے کښې امر دے چه تاسو د هغهٔ حمدونه ووایئ. نو هغه ذات د کامل تعریفونو لائق دے چه هرڅه د هغهٔ دی، بیا دنیا نیمگړے ده، د الله پوره حمدونه نهٔ وئیل کیږی نو په آخرت کښې به ئے ملائك هم وائی، مؤمنان به ئے هم وائی، په جنت کښې به جنتیان د الله حمدونه وائی.

د (الحمد) نه مراد هغه تمام تعریفونه دی کوم چه د زمکے او آسمان ترمینځه کیدے شی، ددے ټولو حقدار صرف الله تعالیٰ دے چه هغه د آسمانونو او زمکے او په دے کښې د هریو خیز مالك دے، هغه په دے کښې چه څنگه غواړی تصرف کوی، او هغه ټول نعمتونه چه رب العالمین بندگانو له ورکړی، هغه ټول هغهٔ پیدا کړی، دے وجے نه په

آسمانونو او زمكه كښې د موجود مخلوقاتو په وجود باندے د الله تعريف بيانول، ګوياكه د هغهٔ په هغه نعمتونو باندے تعريف بيانول دي كوم چه هغه خپلو بندګانو له وركړي۔ (فتح البيان)

وَلَهُ الْحَمْدُ فِي الْآخِرَةِ: او لكه څنګه چه په دنيوي زندګئ كښې صرف دا مالكِ كل د تمامو كمالي صفتونو حقدار دے، د آخرت په زندګئ كښې به هم هغه د تمامو صفتونو او تعريفونو حقدار وي۔ جنتيان چه كله د خپل رب په فضل او كرم سره جنت ته اُوليږلے شي، نو د هغهٔ صفتونه به كوي، د هغهٔ حمد او ثناء به بيانوي، وائي به: ((تمام صفتونه الله لره دي چه هغهٔ مونږ سره خپله وعده رشتينے كړه))۔ (زمر: ٧٤)۔

او وائي به: ((تمام تعريفونه هغه الله لره دي چه هغهٔ مونږ دلته را اورسولو))۔ (اعراف: ٤٣)۔ او وائي به:

((تمام صفتونه هغه الله لره دي چه هغهٔ مونږ نه غم او درد لرے كړو))۔ (فاطر: ٣٤)۔

او چاچه مونږ په خپل فضل او كرم سره دے جنت ته داخل كړو۔ (فاطر: ٣٥)۔

معلومه شوه چه رب العالمين لكه څنګه چه په دنيا كښې د تمامو تعريفونو مستحق دے، دغه شان هغه په آخرت كښې هم د تمامو تعريفونو مستحق دے، او لكه څنګه چه هغه د دنيا مالكِ كل دے، دغه شان هغه يواځے د آخرت هم مالك دے، او هغه په خپلو ټولو كارونو كښې حكمت والا دے، او د خپلو مخلوقاتو د اعمالو او اسرارو نه ښهٔ خبر دے۔

بيا پدے آيت كښې الله تعالىٰ جمع بين الملك والحمد كړيده۔ يعني بادشاهي او حمدونه ئے جمع كړيدي، او په روستو آيت كښې ئے جمع بين العلم والرحمة كړيده چه هغه عليم او رحيم دے، او دا كمال دے ځكه چه بادشاهي سره حمد نهٔ جمع كيږي، خلك د بادشاهانو بدي بيانوي۔ او الله تعالىٰ داسے بادشاه دے چه ددهٔ ستائينه او صفتونه كيږي۔ او علم او رحمت جمع كول كمال دے، ځكه چه الله د مجرمانو په حال عالم دے او بيا هم پرے مهربانه دے۔ او دا كمال دے۔

| يَعْلَمُ مَا يَلِجُ فِي الْأَرْضِ وَمَا يَخْرُجُ مِنْهَا |
|---|
| پوهيږي په هغه څه چه داخليږي په زمكه كښې او په هغه څه چه را اُوځي ددے نه |
| وَمَا يَنْزِلُ مِنَ السَّمَاءِ وَمَا يَعْرُجُ فِيهَا وَهُوَ الرَّحِيمُ |
| او په هغې چه راكوزيږي د آسمان نه او هغه چه خيژي په آسمان كښې او هغه رحم كونكے |

| |
|---|
| الْغَفُوْرُ ﴿٢﴾ وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَا تَأْتِيْنَا السَّاعَةُ |
| بخنه کونکے دے۔ او وائی هغه کسان چه کفرئے کریدے ولے نهٔ راځی مونږ ته قیامت |
| قُلْ بَلٰى وَرَبِّيْ لَتَأْتِيَنَّكُمْ عَالِمِ |
| ته اُووایه ! آؤ قسم دے په رب زما راځی به قیامت تاسو ته، عالم دے الله تعالیٰ |
| الْغَيْبِ لَا يَعْزُبُ عَنْهُ مِثْقَالُ ذَرَّةٍ فِي السَّمَاوَاتِ وَلَا فِي الْأَرْضِ |
| په پټو څیزونو، نهٔ پټیږی د هغه نه په اندازه د ذرے په آسمانونو او نهٔ په زمکه کښې |
| وَلَا أَصْغَرُ مِنْ ذٰلِكَ وَلَا أَكْبَرُ إِلَّا فِيْ كِتَابٍ مُّبِيْنٍ ﴿٣﴾ |
| او نه ورو کے ددے نه او نهٔ لوئی مگر په کتاب ښکاره کښې دی۔ |

**تفسیر** : الله تعالیٰ نه هیڅ یو شے پټ نهٔ دے، هغه د آسمانونو او زمکے ترمینځه د هر یو شیٔ نه خبر دے۔ په زمکه کښې چه څهٔ ننوزی لکه د باران اُوبهٔ، دانے، مړی، او خزانے۔ او زمکے نه چه کوم شے را اوځی یعنی وُنے، بوټی، غلے او حیوانات او نورے خزانے، او د آسمان نه چه څهٔ نازلیږی یعنی باران، واوره، ګلئ، بریښنا، د بندګانو روزی، برکات، ملائك او آسمانی صحیفے، او څهٔ چه آسمان طرفته خیژی یعنی ملائك او د بندګانو عملونه، نیك او بد، ددے ټولو علم صرف الله ته دے، او هغه د خپلو توبه کونکو بندګانو ګناهونه معاف کوی او بیا پرے رحم کوی۔

وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا : سمدست په کافرانو رد کوی چه دوی د الله تعالیٰ کامل حمد نهٔ پیژنی نو پدے وجه د قیامت نه انکار کوی۔

د مکے مشرکانو به د آخرت نه انکار کولو، او وئیل به ئے چه ددے ژوندګیٔ نه پس بله ژوندګی نشته، الله تعالیٰ د نبی کریم ﷺ په ژبه د هغویٔ ددے باطلے عقیدے رد کړے چه دا ستاسو کچه خیال دے، په هغه رب مے دے قسم وی چه هغه په تمامو غیبی کارونو باندے عالِم دے، قیامت به خامخا راځی۔ ددے علام الغیوب نه د آسمانونو او زمکے ترمینځه د ذرے هومره هم څهٔ شے پټ نهٔ دے، او نهٔ ددے نه وروکے یا لوی شے۔ هر شے او هره خبره د هغهٔ په علم کښې ده او په لوح محفوظ کښې درج ده۔ د انسانانو هډوکی او د هغویٔ د جسمونو ټکړے چرته چه هم وی او څومره چه هم خورے وی، هغهٔ ته د یو یو ذرے پته ده، او د قیامت په ورځ د یو (کُن) لفظ په ذریعه به دا ټول په یو وخت کښې

راجمع کړی او داسے به ئے ژوندے کړی لکه څنګه ئے چه اول ځل پیدا کړے وو۔

وَرَبِّیْ: دا دریم سورت دے چه په هغے کښې په ذات د رب باندے د قیامت په باره کښې قسم راغلے۔ نو دلته یو ځل اثبات د آخرت په قسم سره وشو، دویم په دلیل سره چه الله په هر شی عالم دے، هره ذره پیژنی هغه به راژوندیٔ کړی۔ قیامت هغه چاته ګران دے چه په هر شی علم نهٔ لری، نو د الله علم تقاضا کوی چه قیامت به راځی۔

| لِيَجْزِىَ الَّذِيْنَ آمَنُوْا وَعَمِلُوا |
|---|
| (راځی به) ددے دپاره چه بدله ورکړی هغه کسانو ته چه ایمان ئے راوړے او عملونه ئے کړی |
| الصَّالِحَاتِ أُولٰئِكَ لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّرِزْقٌ كَرِيْمٌ ﴿٤﴾ وَالَّذِيْنَ سَعَوْا |
| نیک دغه کسان دوی لره بخښنه ده او رزق عزتمند دے۔ او هغه کسان چه کوشش کوی |
| فِيْ آيَاتِنَا مُعٰجِزِيْنَ |
| په آیتونو زمونږ، پداسے حال کښې چه عاجز کونکی وی (الله لره په خپل ګمان) (مقابله کونکی) |
| أُولٰئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مِّنْ رِّجْزٍ أَلِيْمٌ ﴿٥﴾ وَيَرَى الَّذِيْنَ |
| دغه کسان دوی لره عذاب دے د بد عذاب نه دردناک۔ او پوهیږی هغه کسان |
| أُوتُوا الْعِلْمَ الَّذِىْ أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ |
| چه ورکړے شویدے ورته علم چه هغه کتاب چه نازل شویدے تاته د طرف د رب ستا نه |
| هُوَ الْحَقَّ وَيَهْدِىْ إِلٰى صِرَاطِ الْعَزِيْزِ الْحَمِيْدِ ﴿٦﴾ |
| هغه حق دے، او هدایت کوی لارے د عزتمند ستائیلے شوی ذات ته۔ |

**تفسیر**: مشرکان قیامت نهٔ منی یو ددے راتلل نا ممکن ګنړی نو د هغے جواب خو ورته مخکښې وشو، دویم پدے وجه ئے نهٔ منی چه پدے کښې فائده نشته نو الله ورته پدے آیت کښې د قیامت د راتګ فائده او حکمة بیانوی۔

لِيَجْزِىَ: دا متعلق دے د (لَتَأْتِيَنَّكُمْ) پورے۔ یعنی خامخا به راځی ددے حکمة او فائدے دپاره چه الله ایمان او عمل صالح والو ته د هغوی بدله ورکړی چه هغه بخښنه او عزتمند رزق د جنت دے۔ نو مغفرت باطنی بدله ده او رزق کریم ظاهری بدله۔ نو که قیامت

رانشی نو ددے مطلب خو به دا شی چه د الله دپاره خواری کوه، او هیڅ به نهٔ درکوی، او نـهٔ بـه درتـه گـوری او نهٔ به درباندے پرواه لری، نو دا د مهربانه ذات څو مره بی ادبی ده، او هغهٔ ته د بد اخلاقئ نسبت دے۔ نهٔ، بلکه الله د خپلو نیکانو بندگانو عمل هیڅکله نهٔ ضائع کوی او ددے ډیره غټه بدله ورکوی۔ بله دا چه د الله دشمنان موجود دی نو هغوی لـه سزا ورکـول ضروری دی، که هغوی له سزا ورنکړی نو دا خو جمع بین المتناقضین شی، دوست او دوشمن به یو شان شی۔ نو ځکه فرمائی :

وَالَّذِيْنَ سَعَوْا : یـعـنـی کـوم خـلـك چـه دا کـوشش کوی چه زمونږ آیتونه مغلوبه او خکته کړی۔

فِيْٓ اٰيٰتِنَا : اَیْ فِیْ اِبْطَالِ اٰیٰتِنَا ۔ یعنی کوشش کوی په باطلولو د آیتونو زمونږ کښ۔

فِیْ تَحْرِیْفِ اٰیٰتِنَا : په تحریف د هغے کښ۔

مُعٰجِزِیْنَ : یـعـنـی دا کـوشـش د دوی د زده کـولـو دپـاره نـهٔ دے بلکه د هغے د مقابلے کـوشش کـوی چه الله عاجزه کړی، چه الله به د دوی نه خپل دین سر ته نهٔ رسوی۔ یا دوی گـمـان کـوی چـه دوی بـه د الله د رانیـولو نه بچ شی او الله به عاجز کړی او دوی ته به هغه سزا ورنکړی۔

وَيَرَى الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ : پـدے کـښ د قیامت د راتـللو بل حکمة ذکر کوی۔ دا د (لِيَجْزِیَ) پورے، او دارنگه د (لَتَاْتِيَنَّكُمْ) پـورے هم متعلق کولے شی، اول ظاهر دے۔ یعنی الله نـیـکانو مؤمنانو له بدله ولے ورکوی؟ دا ددے دپاره چه وینی او پته ولگی هغه کسانو تـه چـه دنیـا کښ ورتـه د ایمان او د الله د معرفت علم ورکړے شویدے چه مونږ چه په کوم کتـاب ایمان راوړے وو، هغه یقینی کتاب وو یعنی الله مؤمنانو ته وروښائی چه دوی چه کـوم ایمان راوړے وو نو هغه حق وو، یعنی دا ورته وربښائی چه تاسو په حقه وئ۔ دوی ته د خپل ایمان حقانیت وربښائی۔

وَيَهْدِیْٓ :پدے کښ دوه تفسیره دی (١) دا عطف دے په (الْحَقَّ) باندے۔ یعنی علم والو تـه دا هم پـتـه ولگی چه دے قرآن هدایت کولو لارے د الله ته۔ یعنی دا پته ورته ولگی چه دا قـرآن حق کتاب وو او دا د هدایت کتاب وو۔نو په دنیا کښ د مؤمنانو علم الیقین دے او په (وَيَرَی) کښ دا وائی چـه د دوی بـه عیـن الیـقیـن راشـی نـو بس حق الیقین ته به ورسیږی۔ نو که قیامت رانشی، بیا خو د مؤمنانو علم الیقین ضائع شو۔ الله ورته وائی چه یقین ولرئ په قیامت او بیا قیامت رانغے نو یقین خو خراب او ضائع شو۔

الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ : ددیے نه مراد هغه خلك دی چه الله پیژنی، د ایمان علم ورسره دیے، نو دیے کښې ټول مؤمنان مراد دی، او بعضو صرف اهل کتاب مؤمنان لکه عبد الله بن سلام ﷺ وغیره مراد اخستی دی.

(۲) دویم تفسیر : دا مستقل کلام دیے او دا د اهل کتابو نه په حقانیت د قرآن باندیے دلیل نقلی راوړل دی، او دا په مقابله د (مُعٰجِزِیْنَ) کښې ذکر کیږی یعنی د مکے مشرکان خو د الله د آیتونو نه انکار کوی، لیکن د اهلِ کتابو علماء لکه عبد الله بن سلام ﷺ او د هغهٔ نور مومنان ملګری یقین لری چه قرآن کریم د الله حق کتاب دیے، ځکه چه په تورات کښې د آخرت، بعث بعد الموت، تقدیر او په لوح محفوظ کښې د بندګانو اعمالو د لیکل کیدو په حقله چه کوم خبرونه بیان شوی، همدا په قرآن کریم کښې هم موجود دی، دیے وجے نه کله چه دویٔ د قرآن آیتونه آوری نو د دویٔ یقین زیاتیږی چه دا هم د الله کتاب دیے. او دا یقین هم لری چه دا کتاب د الله شریعت او د هغه نیغے لارے ته رهنمائی کوی. (فتح البیان ورجحه)

وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا هَلْ نَدُلُّكُمْ عَلٰى رَجُلٍ يُّنَبِّئُكُمْ

او وائی هغه کسان چه کفرئے کریدیے آیا نهٔ ښایو تاسو ته یو سړیے چه خبر درکوی تاسو

اِذَا مُزِّقْتُمْ كُلَّ مُمَزَّقٍ اِنَّكُمْ لَفِيْ

ته چه کله ذره ذره شئ تاسو په پوره ذره ذره کیدو سره یقیناً تاسو به خامخا په

خَلْقٍ جَدِيْدٍ ﴿۷﴾ اَفْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اَمْ بِهٖ

نوی پیدائش کښې یئ. آیا جوړ کریدی دهٔ په الله باندیے دروغ (قصداً) یا په دهٔ باندیے

جِنَّةٌ بَلِ الَّذِيْنَ

لیونتوب دیے (پیریان دی) (چه غیر اختیاری دروغ وائی) بلکه هغه کسان

لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ فِي الْعَذَابِ وَالضَّلٰلِ الْبَعِيْدِ ﴿۸﴾

چه ایمان نهٔ لری په آخرت باندیے په عذاب کښې او په ګمراهئ لرے کښې دی.

**تفسیر** : پدیے آیت کښې د کافرانو اعتراض په رسول الله ﷺ باندیے ذکر کیږی، او هغوی ته رټنه ورکرے کیږی، دوی وائی پیغمبر چه د قیامت په باره کښې کوم بیان کوی،

دا غلط دے، نو ربط ئے د مخکښ سره دا دے چه مخکښ ئے ووئیل چه قیامت به نهٔ راځی نو دلته اُوس دا بیانوی چه څوك د قیامت تذکرے کوی نو دوی په هغهٔ اعتراض کوی، او څوك چه قیامت راتلل ذکر کوی نو هغهٔ ته لیونے یا مُفتَرِیُ (ځان نه دروغ جوړونکے) وائی۔ نو الله اول د دوی قبیحه خبره رانقل کوی، او دوی ته پدے خبره کافران وائی، بیا پرے دوه ردونه کوی۔ او بیا تفصیلی جواب په ﴿ وَلَقَدْ آتَيْنَا دَاوُدَ مِنَّا﴾ سره۔

وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوا : یعنی کافران یو بل ته د مسخرے او توقو په طریقه وائی چه آیا تاسو ته یو داسے انسان اُوښایو چه په خپلو لیونو فکرونو او خیالاتو کښ دے حده پورے رسیدلے چه دا وینا کوی چه کله مونږ مړهٔ شو او خاورے شو، نو الله به مونږ دوباره ژوندی کوی۔

أَفْتَرَى عَلَى اللهِ كَذِباً : مطلب دا دے چه دا سړے خو غلی کُلِّ حَال دروغ وائی خو دهٔ سره څهٔ عقل او هوښیارتیا ده نو دا په الله باندے دروغ تړی او وائی چه ماته الله دا خبره د وحی په ذریعه ښودلے ده، یا واقعی دهٔ ته لیونتوب لګیدلے چه د هغے اثر دادے چه داسے ګډے وډے خبرے کوی او غیر اختیاری دروغ وائی۔

جِنَّةٌ جنون ته وائی۔ مراد ترے بی اختیاره دروغ وئیل دی۔ دلته افتراء او حال د جنون دواړه د کذب (دروغو) قسمونه دی، یعنی دروغ په دوه قسمه دی یو قصدی او عمدی دی چه انسان په خبره ښه پوهه وی چه داسے نهٔ ده خو دروغ وائی چه همداسے ده۔ او بل غیر اختیاری دروغ دی چه دا په حالت د جنون کښ وئیلے کیږی۔ (تلخیص المفتاح)

بَلِ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُونَ: دا اول جواب دے د دوی د آخرت نه د انکار او د توقو، او دا جواب د دوی د انجام په خودلو سره دے، یعنی پدے نبی کښ هیڅ لیونتوب او افتراء نشته بلکه د آخرت منکرین په عذاب کښ اخته دی، او په ګمراهئ کښ پراتهٔ دی او یو تن چه په عذاب او ګمراهئ کښ ننوتو نو هغه پدے خبره څه پوهیږی۔

فِي الْعَذَابِ : ١- دا په آخرت کښ مراد دے او (الضَّلَالِ الْبَعِيْدِ) دنیا کښ مراد دے۔ او دا ضلال بعید څکه دے چه هره نیکی چه بنده کوی نو د آخرت په یره ئے کوی، او چه آخرت نهٔ منی نو په هر قسم فساد او ګډو وډو به روان وی، شرك، کفر، زنا، غلا، قتل هر شے به کوی نو پوره ګمراه به شی۔

صاحب د فتح البیان ددے جواب حاصل داسے کوی چه خبره داسے نهٔ ده څنګه چه دے خلکو ووئیله، بلکه دا هغه خلك دے چه د پوهے نه ګمراه شویدی او حقائق نهٔ پیژنی نو

پدے وجه ئے په آخرت کفر وکړو او د رسول په راوړی دین باندے ایمان رانهٔ وړو نو ددے په سبب سره دوی به په آخرت کښې په همیشه عذاب کښې وی او اُوس په ګمراهۍ لرے کښې دی د حق نه- (فتح البیان)

۲- دویم دا چه (فی العذاب والضلال) دواړه په دنیا او آخرت دواړو کښې مراد دے. ځکه چه څوك آخرت منی نو هغه په عذاب کښې نهٔ دے او څوك آخرت نهٔ منی، هغه په سخت عذاب کښې راګیر دے، پدے طریقه چه د آخرت نهٔ منونکو باندے چه کله معمولی شان تکلیف راشی نو ډیر زیات پریشانه وی، د دنیا د رزق او ژوند دپاره ئے ډیره سخته پریشانی وی، چه مړ شم دا لړه زندګی مے ده بیا به څه کوم- نو د مرګ، او د مصیبت او د رزق دپاره ډیر پریشانه وی- په خلاف د مؤمنانو چه په هغوی که لوی مصیبت هم راشی نو ډیر نهٔ پریشانه کیږی بلکه آخرت رایاد کړی چه آخرت شته، د دنیا مصیبتونه او نعمتونه همیشه نهٔ دی، که مرګ راغے نو الله به مے دائمی ژوند ته نقل کړی نو په آخرت باندے ایمان راوړل د زړهٔ راحت دے او په آخرت باندے ایمان نهٔ راوړل د زړهٔ عذاب دے.

❁ یا دا رد دے د هغوی په قول باندے په طریقه د لف نشر مرتب سره یعنی دوی چه نسبت د افتراء یو صادق او بری ته کوی نو دا د دوی دپاره ضرور سبب د عذاب دے، او دوی چه عاقل او هوښیار ته نسبت د جنون کوی نو دا د دوی د ضلال سبب او علامت دے- (احسن الکلام)

| أَفَلَمْ يَرَوْا إِلَىٰ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ مِنَ |
|---|
| آیا نو نهٔ ګوری دوی هغه څه ته چه مخکښې د دوی دی او هغه چه روستو د دوی دی د |
| السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ إِنْ نَشَأْ نَخْسِفْ بِهِمُ الْأَرْضَ أَوْ |
| آسمان او د زمکے نه که اُوغواړو مونږ داخل به کړو دوی لره په زمکه کښې یا به |
| نُسْقِطْ عَلَيْهِمْ كِسَفًا مِنَ السَّمَاءِ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً |
| راګوزار کړو په دوی باندے ټکړے د آسمان نه یقیناً پدے کښې خامخا نخه ده |
| لِكُلِّ عَبْدٍ مُنِيبٍ ﴿٩﴾ |
| دپاره د هر بنده رجوع کونکی (الله تعالیٰ ته)- (د حق طلبګار) |

**تفسیر** : پدے آیت کښې یو تخویف دنیوی دے چه دا خبرے مهٔ کوئ ورنه الله به درله تنګ درکړی او هلاك به مو کړی۔ او دویم پدے کښې استدلال دے په اثبات د آخرت چه اے منکرینو ! تاسو څنګه آخرت نهٔ منئ، آیا تاسو د الله دومره لوی کائناتو ته نهٔ ګورئ، دا چا پیدا کړی ؟ لکه دا دلیل الله تعالیٰ په سورة ق آیت (٦) کښې هم ذکر کړیدے ﴿ اَفَلَمۡ یَنۡظُرُوۡۤا اِلَی السَّمَآءِ فَوۡقَهُمۡ کَیۡفَ بَنَیۡنٰهَا وَزَیَّنّٰهَا وَمَا لَهَا مِنۡ فُرُوۡجٍ ﴾

نو کوم ذات چه دا عظیم او قابلِ رعب مخلوقات پیدا کړیدی چه انسانان ئے د دوی مخے او شا نه بلکه د هر طرف نه راګیر کړیدی آیا هغه پدے قادر نهٔ دے چه دا وړوکے شان مخلوق یعنی بنیادم دوباره ژوندے کړی۔

شوکانیؒ لیکی چه په دے آیت کښې دوه خبرے بیان شوی : یوه دا چه کوم الله د زمکے او آسمان په پیدائش باندے قادر دے هغه یقیناً په دے قدرت لری چه ددے نه وړوکے مخلوق یعنی انسان دوباره پیدا کړی۔ د سورتِ یٰس په (٨١) آیت کښې الله تعالیٰ فرمایلی دی : ﴿ اَوَلَیۡسَ الَّذِیۡ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضَ بِقٰدِرٍ عَلٰۤی اَنۡ یَّخۡلُقَ مِثۡلَهُمۡ بَلٰی ﴾

(آیا کوم ذات چه آسمانونه او زمکه پیدا کړی، هغه د دوئ پشان خلقو په دوباره پیدا کولو قادر نهٔ دے، هغه یقیناً په دے قادر دے)۔

او دویمه خبره داده چه کوم قادرِ مطلق ذات چه داسے یرونکے آسمان او زمکه پیدا کړی دی چه انسان لره ئے د څلور واړو طرفونو نه راګیر کړی، هغه په دے هم قادر دے چه هغه د قیامت په منکرینو باندے زر تر زره عذاب نازل کړی، یا خو ئے د قارون پشان په زمکه باندے خښ کړی، او یا د آسمان نه یوه ټکره د هغوئ په سرونو باندے را اُوولی۔

**مَا بَیۡنَ اَیۡدِیۡهِمۡ وَمَا خَلۡفَهُمۡ** : ددے نه مراد ټول طرفونه دی، یعنی په انسان باندے آسمان او زمکے د هر طرفنه احاطه کړیده۔

**اِنَّ فِیۡ ذٰلِكَ لَاٰیَةً** : یقیناً پدے زمکے او آسمان او د الله په کامل قدرت کښې د هر هغه بنده دپاره د ایمان راوړو لویه نښه پرته ده، خو چه په زړه سره الله ته راواپس کیږی او د هغهٔ سره تعلق جوړ ساتی، او سوچ او فکر نه کار اخلی چه دغه رب چه آسمان او زمکه ئے پیدا کړی آیا دا ئے عبث پیدا کړی؟ دغه ذات چه دومره قدرت لری نو آیا ما دوباره نشی ژوندے کولے، منیب وی، ضدی نهٔ وی، ضدی له پدے خبرو هیڅ فائده نهٔ کیږی۔

وَلَقَدْ آتَيْنَا دَاوُدَ مِنَّا فَضْلًا

او یقیناً ورکړے وو مونږ داود (عليه السلام) ته د زمونږ طرف نه غوره والے (وئیلی وو مونږ)

يَا جِبَالُ أَوِّبِي مَعَهُ

اے غرونو تسبیح وایئ (رجوع کوئ الله ته) دده سره۔ او (تابع کړی وو مونږ)

وَالطَّيْرَ وَأَلَنَّا لَهُ الْحَدِيدَ ﴿١٠﴾ أَنِ اعْمَلْ سَابِغَاتٍ

مارغان او نرمه کړے وه مونږ دهٔ لره اُوسپنه۔ (ورته وئیلی مو وو) چه جوړوه پوره زغرے

وَقَدِّرْ فِي السَّرْدِ وَاعْمَلُوا صَالِحًا إِنِّي بِمَا

او اندازه کوه په جوړولو د کړو کښې او عمل کوئ نیك یقیناً زهٔ په هغه عملونو

تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿١١﴾

چه تاسو ئے کوئ لیدونکے یم۔

**تفسیر** : پدے کښې د داود (عليه السلام) مختصره واقعه راوړی پدے کښې (١) یو مقصد : بَيَانُ قُدْرَةِ اللهِ عَلَى الْبَعْثِ ۔دے، یعنی الله تعالیٰ په بعث بعد الموت باندے قادر دے، وګوره په دنیا کښې الله تعالیٰ داود (عليه السلام) له غرونه تابع کړی وو او هغهٔ ته ئے په لاس کښې وسپنه نرمه کړے وه لکه د شمعے په شان نو کوم ذات چه د وسپنے په نرمولو قادر دے نو دغه ذات د مړی په راژوندی کولو خامخا قادر دے۔

دویم دا متعلق دے د اول د سورت سره۔ د موضوع د اول جزء سره چه د الله تعالیٰ کامل حمد تقاضا د هغهٔ د شکر کوی، وګوره داود (عليه السلام) الله تعالیٰ رالیږلے وو، هغه ډیر غټ شکر ګزار بنده وو، غرونو، او مارغانو به هم ورسره د الله شکر او ذکر کولو، نو د هغه عبادات ئے ذکر کړی۔

(٣) مقصد : دا دلیل دے د صدق د رسالت۔ الله تعالیٰ داسے ذات دے چه پیغمبران رالیږی، الله تعالیٰ داود (عليه السلام) ته نبوت ورکړے وو نو آیا دا څه بعیده ده چه محمد رسول الله (صلى الله عليه وسلم) ته نبوت ورکړی؟۔ بالکل نهٔ۔

(٤) دا دلیل نقلی دے په توحید باندے چه الله تعالیٰ داود (عليه السلام) ته دومره نعمتونه ورکړی وو او هغه پکښې د الله شکر کړیدے او په توحید سره ئے د هغهٔ بندګی کړیده نو

تاسو له هم د الله یو اځې بندګی پکار ده۔

(۵) پدے کښې د مخکښې (عَبۡدٍ مُّنِيبٍ) تشریح ده۔ یعنی مخکښې د الله سره د تعلق جوړونکو او رجوع کونکو ذکر وشو چه دوی د الله په عظیمو نښو کښې غور او فکر کوی او عبرت حاصلوی، نو پدے مناسبت سره الله تعالیٰ دلته د خپلو دوه نبیانو واقعه ذکر کوی چه د هغوی یو لوی صفت دا وو چه هغوی به په هر حال کښې خپل رب یادولو او په توبه او استغفار کښې به مشغول وسیدل، او غرونو او مارغانو به هم ورسره انابت کولو۔

فَضۡلاً : ددے نه مراد یو نبوت دے۔ ۲- زبور کتاب۔ ۳- الملك۔ (بادشاهی)۔

٤- كَثۡرَةُ الۡعِبَادَةِ ۔ (د الله ډیره بندګی کول)۔ ٥- كَثۡرَةُ الۡاَزۡوَاجِ ۔ ډیرے بیبیانے الله ورکړے وے۔

٦- یو د هغے نه دا وو چه الله تعالیٰ ورته په خپل قدرت سره څه کائنات تابع کړی وو لکه غرونه او مارغان او وسپنه نرمول۔

يَا جِبَالُ: اَیۡ قُلۡنَا لَهُمۡ : یعنی غرونو او مارغانو ته مو حکم کړے وو چه کله داؤد ﷺ د خپل رب تسبیح بیانوی نو تاسو هم د هغهٔ سره تسبیح بیانوئ۔

اَوِّبِیۡ: ابو مَیۡسَرَةَ وائی چه تاویب په لغت د حبشه کښې په معنیٰ د تسبیح سره دے۔ او خپله معنیٰ ئے ده : رجوع کول۔ اَیۡ اِرۡجِعِیۡ اِلَی اللّٰهِ تَعَالٰی مَعَهٗ ۔یعنی رجوع وکړئ الله ته ددهٔ سره۔ او د غرونو تسبیح وئیلو مطلب دا دے چه الله تعالیٰ به غرونو ته قدرت ورکړو چه د داود ﷺ سره تسبیح ووائی۔ یا به ئے په هغے کښې تسبیح راپیدا کړه او دا د داود ﷺ معجزه وه چه غرونو به تسبیحات وئیل او خلکو به آوریدل۔

وَالطَّيۡرَ: دا منصوب دے فعل ئے پټ دے۔[اَیۡ وَسَخَّرۡنَا الطَّيۡرَ] او مونږ تابع کړی وو هغه لره مارغان۔ لکه سورة ص (۱۹) آیت کښې راځی۔ ﴿وَالطَّيۡرَ مَحۡشُوۡرَةً كُلٌّ لَّهٗۤ اَوَّابٌ﴾مارغان به ورته راجمع کړے شوی وو او دا ټول الله ته راګرځیدونکی وو۔

وَاَلَـنَّا لَهُ الۡحَدِيۡدَ: او مونږ هغهٔ دپاره اُوسپنه د موم غونته نرمه جوړه کړے وه۔ ابن عباسؓ وائی لکه د وړو په شان۔ حسنؒ وائی لکه د شمعے په شان چه په غیر د اُور نه به نرمه وه۔ او سُدیؒ وائی لکه د لمدے ختے په شان یا د اغږلے شوی وړو او د شمعے (موم) په شان چه څه کار به ئے پرے خوښ وو هغه به ئے پرے کولے شو چه اُور او په څټك باندے وهلو ته ضرورت نهٔ وو۔

اَنِ اعۡمَلۡ سٰبِغٰتٍ : يعنى مونږ هغهٔ ته حكم كړے وو چه جوړه وه كاملې او غټې زغرې چه ټول بدن پټوى.
سٰبِغٰتٍ : دا صفت دے د موصوف محذوف اَىۡ دُرُوۡعًا سٰبِغٰتٍ. يعنى زغرے كاملې.
الله ورته دا حكم ولې كړے وو، وجه دا وه چه داود عليه السلام مجاهد پيغمبر وو او د جهاد سره ئے ډيره مينه لرله، او جهاد دپاره خو زغرے ضرورى دى. دارنګه د هغه د خپلو لاسونو ګټه خوښه وه، نو الله تعالىٰ ورله وسپنه نرمه كړه چه بغير د اُور او بغير د ټكولو نه به ئے د هغې نه كړئ جوړولے.
امام قرطبىؒ ليكلى دى چه داود عليه السلام كله بادشاه شو نو داود عليه السلام به په بنى اسرائيلو كښې په پټه د خپل ځان او د سيرت په باره كښې د خلكو نه تپوسونه كول، نو يو ملائك ورته د انسانى شكل جوړولو سره مخے ته راغے نو دهٔ ترے تپوس وكړو چه ته ددے بادشاه (داود) په باره كښې څه وائے؟ نو هغه ووئيل : [نِعۡمَ الۡعَبۡدُ لَوۡلَا خَلَّةٌ فِيۡهِ].
ډير ښهٔ بنده دے خو كه يو خوئى پكښې نهٔ وے. داود ووئيل : هغه څهٔ دى؟ وے فرمايل : (دے د بيت المال نه خوراك كوى او كه دهٔ د خپل لاس د كسب نهٔ خوراك كولے نو ددهٔ فضائل به پوره شوى وے)
نو هغه راواپس شو او د الله نه ئے دعا وكړه چه دهٔ ته يو كسب وښائى او ورته ئے آسان كړى نو الله تعالىٰ ورته د زغرو د جوړولو علم وخودلو لكه الله په سورة الانبياء كښې فرمايلى دى : ﴿ وَعَلَّمۡنٰهُ صَنۡعَةَ لَبُوۡسٍ لَّكُمۡ ﴾ نو الله ورته وسپنه نرمه كړه نو هغه به په نيمه ورځ او نيمه شپه دومره زغرے جوړولے چه هغه به د زرو درهمو برابرے وے، ترد ے چه ددے نه ئے ډير مالونه وګټل او ژوند ئے فراخه شو او په فقيرانو او مسكينانو به ئے صدقے كولے، او خپله دريمه حصه مال به ئے د مسلمانانو په مصلحتونو (فائدو) كښې لګولو، نو داود عليه السلام اولنے هغه شخص دے چه زغرے ئے جوړے كړيدى او مخكښې ددے نه به زغرے د وسپنے تختو په شكل كښې استعماليدلے. (القرطبى ٢٦٧/١٤)
وَقَدِّرۡ فِى السَّرۡدِ : ((او اندازه لګوه په كړو جوړولو كښې)). يعنى مناسبو حلقو والا زغرے جوړه وه. ځكه چه كه كولاوو كړو والا وى نو بيا پكښې غشے او توره ننوزى، او كه ډيرے تنګے وى، نو په بدن باندے درنيږى. سرد په اصل كښې د زغرے اُودل او جوړول او په څرمنے كښې كنړ كولو ته وئيلے شى. مفسر بقاعىؒ وئيلى دى چه ((په دغه زغرو كښې ميخونه نهٔ وو، او بعضو خلكو دغه زغرے ليدلے وے نو هغه ما ته داسے خبر راكړے

دے. او چه وسپنه نرمه وه نو ميخونو وهلو ته حاجت نهٔ وو) (نظم الدرر ۱۵۹/۶)
زجاج وائی : سرد : تَقْدِيْرُ الشَّيْءِ اِلَى الشَّيْءِ لِيَأْتِيَ مُتَّسِقًا بَعْضُهُ فِيْ اِثْرِ بَعْضٍ مُتَتَابِعًا) يو شے بـل شی سره اندازه کول دے دپاره چه په ترتيب سره راشی، چه بعض د بعضو نه روستو وی پـرله پسے. ددے وجه نه د سرد الکلام هم دغه معنیٰ ده. چه کلام په ترتيب سره پرله پسے وچليږی. (نظم الدرر)

دويمه معنیٰ دا ده چه دا خو دنياوی کسب دے نو ددے دپاره د ورځے يو وخت اندازه کړه، تولـه ورځ پـدے مـهٔ لګوه بلکه ډير وخت د عمل صالح دپاره صرف کړه چه هغه اصلی مقصد دے. (قاله الرازیؒ)

وَاعْمَلُوا صَالِحاً: يعنی مونږ هغهٔ ته او د هغهٔ اهل او عيال ته حکم کړے وو چه تاسو تـر څـو پـورے ژونـدی يئ نـو پـه نيک عـمـل کـښ لګيا وسئ، ځکه چه مونږ ستاسو د تمامو اعمالو نه خبر يو، او د قيامت په ورځ به تاسو له ددے بدله درکوو.

ددے نـه مـعـلـومـه شـوه چه د دنيا کار به دومره نهٔ کوے چه تا د نيک عمل نه منع کړی، کـه څـوک د دنيـا کـاروبار کوی او نيک عمل نکوی نو دا لوی مجرم دے، د ژوند د مقصد نـه خبر نـهٔ دے، او کـه څـوک نيک عـمـل کوی، او دنيا نهٔ کوی نو دنيا به ئے خرابه شی نو دواړه کارونه ضروری دی.

او چـونـکـه زغرے جوړول عبادت هم وو ځکه چه د جهاد دپاره ئے تيارے کولو، نو داسے کار کول پکار دی چه دنيا هم پکښ وی او ثواب هم.

**فائده :** قـرطبیؒ ليکی : دا آيت دليـل دے چه اهل الفضـل (غـوره خلك، لکه علماء او مشران) کسبونه يادولے او کولے شی، او دا د دوی مناصبو (فضيلتونو) ته هيڅ نقصان نهٔ رسـوی، بـلـکـه پـدے سره د دوی پـه فضيلت او غوره والی کښ نور زياتوالے پيدا کيږی ځـکه چه پدے سره د دوی په زړونو کښ تواضع او استغناء د غير نه پيدا کيږی. او د چا د احسان نه خالی حلال کسب دے.

| وَلِسُلَيْمَانَ الرِّيْحَ غُدُوُّهَا |
|---|
| او (تابع کړے وه مونږ) دپاره د سليمان (عليه السلام) هوا، سحر وخت کښ مزل د هغے |
| شَهْرٌ وَّرَوَاحُهَا شَهْرٌ وَاَسَلْنَا |
| يوه مياشت وو او مازيګر وخت کښ مزل د هغے يوه مياشت وو او بهَولے وه (روانه کړے وه) |

| لَهُ عَيْنَ الْقِطْرِ وَمِنَ الْجِنِّ مَنْ يَّعْمَلُ |
|---|
| مونږ هغه له چینه د تانبې او د پیریانو نه هغه څوك وو چه كارونه به ئې كول |
| بَيْنَ يَدَيْهِ بِإِذْنِ رَبِّهٖ وَمَنْ يَّزِغْ مِنْهُمْ |
| د هغه په مخکښې په حکم د رب د هغه سره او څوك چه به كوږ شو د دوی نه |
| عَنْ أَمْرِنَا نُذِقْهُ مِنْ عَذَابِ السَّعِيْرِ ﴿١٢﴾ |
| د حکم زمونږ نه ویه څکوو مونږ هغه ته د عذاب د اور لمبو والا نه. |

**تفسیر** : واقعه د سلیمان علیه السلام راوړی ❁ پدې کښې هم یو غرض اثبات د آخرت دے، چه الله تعالیٰ څومره ناشنا قدرتونه سلیمان علیه السلام ته ورکړی وو نو دغه قادر ذات به قیامت هم راولی. ❁ دویم پدې کښې ترغیب دے شکر کولو ته. لکه د (مَحَارِيْبَ) لفظ نه معلومیږی او روستو (اِعْمَلُوْا آلَ دَاوٗدَ شُكْرًا) راغلے دے. ❁ دریم : په دے کښې توحید ثابتول دی. څکه چه د خلکو عقیده وه چه پیریان په غیبو پوهیږی او پیریانو به هم دا دعوه کوله چه مونږ په غیبو پوهیږو. نو دے واقعه کښې نفی د علم الغیب ده د جناتو نه. ﴿اَنْ لَّوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ الْغَيْبَ مَا لَبِثُوْا فِي الْعَذَابِ الْمُهِيْنِ﴾ . څوك چه د غیر الله دپاره د غیبو عقیده لری نو دا د الله صفت غیر الله ته ورکوی چه ددے نه ډیر فسادات پیدا کیږی. ❁ او پدے کښې د سلیمان علیه السلام فضیلت دے چه دا د الله حق نبی دے او د قوم خدمت ئې کړیدے محاریب او تماثیل او جفان ئې جوړ کړیدی. دا ټول ایمانی فائدے دی.

وَلِسُلَيْمَانَ : اَیْ وَسَخَّرْنَا . یعنی مونږ د سلیمان علیه السلام دپاره هواء هم مسخره کړے وه، چه د هغے په چپو باندے به سور شو او د هغهٔ د لرګی نه جوړے کشتئ به تمام سازو سامان سره د صبا په وخت د یوے میاشتے مسافت وهلو، او د بیګاه په وخت به ئې د یوے میاشتے. یعنی سلیمان علیه السلام به په یوه ورځ کښې د دوو میاشتو مزل کولو.

قرطبیؒ د حسن بصریؒ نه نقل کړی چه صبائی به د دمشق نه روان شو نو د غرمے آرام به ئې په اِصْطَخر کښې وکړو او د دے دواړو ترمینځ د یوے میاشت پیاده مزل دے، بیا به د اصطخر نه روان شو نو شپه به ئې په کابل یا بابل کښې وکړه او دا هم د میاشت مزل دے.

بعض وائی چه سهار ناشته به ئې په ((رَیْ)) کښې وکړه نو د ماښام روټئ به ئې په ((سمرقند)) کښې خوړه. (فتح البیان)

وَأَسَلْنَا لَهُ عَيْنَ الْقِطْرِ: إِسَالَه بَیَه ولو ته وئیلے شي۔ قطر تانبے ته وائی۔
تانبه به ورله د اُوبو د چینے په شان بهیدله، نو هغه به راخسته او د دیوالونو په مینځ کښې به ئے اچوله، او آبادیانے به ئے جوړولے، نو په اُور باندے ویلی کولو ته ضرورت نهٔ وو۔
دارنګه د هغے نه به هغهٔ قِسما قِسم آلات او نور د ضرورت څیزونه جوړول۔
مجاهدؒ وائی چه تانبه به په خپل معدن کښې داسے بهیدله لکه د چینے نه چه اُوبه راوځی دا ددے دپاره چه د هغهٔ د نبوت دلیل وګرځی۔ مفسرین وائی د سلیمان علیه السلام نه روستو خلك د هغهٔ د ورکړے شوے معجزے نه فائده اخلی او تانبه استعمالوی۔
مخکښې ددهٔ نه دا بیخی نهٔ نرمیده نهٔ په اُور سره او نهٔ په بل څه سره۔ او مطلب دا دے چه مونږ د تانبے چینه د سلیمان علیه السلام دپاره بهیه ولے وه لکه څنګه چه مونږ داود علیه السلام دپاره وسپنه نرمه کړے وه۔ پدے کښې هم اشاره ده بعث بعد الموت ته چه کوم ذات د تانبے او وسپنے په ویلی کولو قادر دے نو هغه د مړی په راژوندی کولو هم قادر دے۔
وَمِنَ الْجِنِّ: اَیْ وَسَخَّرْنَا مِنَ الْجِنِّ۔ یعنی مونږ تابع کړی وو هغه دپاره د پیریانو نه هغه څوك چه د هغه مخامخ به ئے کارونه کول۔ نو هغه به ترے کارونه اخستل لکه آبادیانے، دیوالونه جوړول، کوهیان کنستل وغیره۔
بِإِذْنِ رَبِّهِ: نه معلومه شوه چه دا د الله په حکم تابع وو او د جادو په ذریعه نهٔ وو۔
وَمَنْ يَزِغْ مِنْهُمْ عَنْ أَمْرِنَا: ۱- دا تخویف دنیوی دے یعنی پیریانو ته مونږ دا خبر ورکړے وو چه په دوی کښې چه څوك د سلیمان علیه السلام د حکم نه سرغړونه وکړی، نو هغه له به د اُور سزا سخته ورکوو۔ بعضِ مفسرین وائی چه نافرمانه پیریانو له به په دنیا کښې د اُور عذاب ورکړے کیدهٔ۔ سُدیؒ وائی چه الله یو ملائك مکلف کړے وو چه هغهٔ به نافرمان پیرے د اُور په چابك باندے وهلو چه هغے سره به هغه اُوسوزیدهٔ او ایره به شو۔
۲- یا دا تخویف اُخروی دے یعنی په هغه زمانه کښې هم مونږ پیریانو ته دا خبر ورکړے وو او اُوس هم دوی ته دا خبر دے چه څوك زمونږ د احکامو نه سرواړوی او تابعداری نهٔ کوی نو هغهٔ ته به هم د جهنم اُور ملاویږی څکه چه جنات هم د انسانانو په شان په احکامو باندے مکلف دی۔ او همدا تفسیر ظاهر دے۔ او پدے کښې اشاره ده چه جنات د الله سره مهٔ شریکوئ څکه چه دوی هم د الله عاجز او مکلف مخلوق دے، سزا ورله شته۔
نو پدے کښې د مکے په مشرکانو باندے رد دے۔

يَعْمَلُوْنَ لَهٗ مَا يَشَاءُ مِنْ مَّحَارِيْبَ وَتَمَاثِيْلَ

جوړول به دوی هغه لره څه چه به هغه غوښتل عبادت خانې، او کتهونه (نمونې د آبادۍ)

وَجِفَانٍ كَالْجَوَابِ وَقُدُوْرٍ رّٰسِيَاتٍ اِعْمَلُوْا

او خانکونه (کاسې) پشان د حوضونو او کټوۍ مضبوطې ولاړې په ځائې، عمل کوئ

آلَ دَاوُدَ شُكْرًا وَقَلِيْلٌ مِّنْ عِبَادِيَ الشَّكُوْرُ ﴿۱۳﴾

اې اولاد د داود (ﷺ) شکر لره، او لږ دی د بندګانو زما نه شکرګذار خلق۔

**تفسیر:** دغه شیطانانو به سلیمان ﷺ له دنګ محلونه اوکورونه، مجسمې، د حوض پشان د خوراك لوښی، او د تانبې یا کاڼړی لوی لوی دیګونه جوړول چه هر وخت به په چُولو (نغرو) باندې پراته وو او په هغې کښې به خوراکونه پخیدل۔ مفسرین لیکی چه مجسمې یا خو د حیواناتو نه علاوه د نورو څیزونو وې، یا د سلیمان ﷺ په شریعت کښې د انبیاء علیهم السلام او صالحینو مجسمې جوړول جائز وو، دې دپاره چه د دوئ په لیدلو باندې خلق نصیحت حاصل کړی، او اسلام دا جواز منسوخ کړو، لیکن دا خبره د صحیح حدیث خلاف معلومیږی [اُولٰئِكَ اِذَا مَاتَ فِيْهِمُ الرَّجُلُ الصَّالِحُ بَنَوْا عَلٰى قَبْرِهٖ مَسْجِدًا وَصَوَّرُوْا فِيْهِ تِلْكَ الصُّوَرَ، اُولٰئِكَ شِرَارُ الْخَلْقِ عِنْدَ اللهِ]۔

(دوی داسې خلك وو چه کله به په دوی کښې نیك سړې وفات شو نو دوی به د هغه په قبر باندې مسجد جوړ کړو او بیا به ئې په هغې کښې دغه تصویرونه کیخودل، دا خلك د الله په نیز ډیر بد ترین دی)۔ (صحیح بخاری: ۴۲۷) مسلم (۱۲۰۹)

ددې نه معلومیږی چه مسجدونه په قبرونو باندې جوړول او په هغې کښې د نیکانو تصاویر جوړول او کیخودل دواړه د شرك او فساد عمل دې۔

نو راجحه خبره همدا معلومیږی چه دغه مجسمې دې ساه څیزونو وې۔ څکه چه د تورات د نصوصو نه همدا ثابته ده چه انسانی اوحیوانی تصویرونه جوړول ددې انبیاؤ په شریعتونو کښې هم جائز نهٔ وو۔

**وَتَمَاثِيْلَ:** د تماثیل بله معنیٰ ده کتهونه، لکه په حدیث د ابوداود کښې مِثَال کټ ته وئیلې شویدې۔ (نَزَلْتُ عَنِ الْمِثَالِ عَلَى الْحَصِيْرِ) (ابوداود: ۲۷۱)

**مَحَارِيْبَ:** جمع د مِحراب ده هر اُوچت ځای ته وئیلې شی، ددې نه مراد اُوچتې بنګلې او

آبادیانے او شریف مجالس دی چه عام خلك ورته نهٔ راځی او نهٔ د وسیدو ځایونه وی.
مېرَدَ وائی : محراب ورته هله وائی چه هغے ته په پوړو باندے ختل کیږی.
قتادۃ او ضحاكؒ وائی چه محاریبو نه مراد دلته مساجد دی لکه بیت المقدس ئے هم ورله جوړ کړے وو.
وَجِفَانٍ: جمع د جَفْنَةٌ ده، لویه کاسه، خانکونه وغیره.
كَالْجَوَابِ: جمع د جَابِيَةٌ ده د حوض کندے ته وئیلے شی. یا لوی حوض چه اُوبه راجمع کوی.
وَقُدُورٍ رَّاسِيَاتٍ: یعنی غټے کټوئ او دیګونه چه په نغرو باندے مضبوط پراته وی. بعض وائی دا د تانبے کټوئ وے. او بعض وائی چه شیطانانو د مضبوطو غرونو د لوی کانړونه تراشلے وے. بعض وائی دا د دومره لوئی کټوئ وے چه په پارسنګ (پوړئ) به خلك ورختل او دا په یمن کښ وے.
اعْمَلُوا آلَ دَاوُودَ شُكْرًا : یعنی مونږ سلیمان علیه السلام او د هغهٔ اهل او عیال ته حکم ورکړو چه مونږ په تاسو کوم احسانات کړی او د نعمتونو باران مو کړے، ددے د شکر اداء کولو دپاره هر وخت زمونږ په بندګئ کښ لګیا وسئ، مونځ کوئ، زکاة ورکوئ او تمام اوامر او نواهی په ځای باندے راوړئ.
شُكْرًا: دا مفعول لهٔ دے. یعنی تاسو عملونه د شکر د وجه نه وکړئ. یا حال دے یعنی شَاكِرِيْنَ ـ په داسے حال کښ چه شکر کونکی یئ. یا مفسرین لیکی چه په دے آیتِ کریمه کښ اشاره ده چه د عملِ صالح اداء کول د الله تعالیٰ د احساناتو او انعاماتو د شکر په توګه کیدل پکار دی، نهٔ د اُمید او ویرے په وجه سره، او دا چه د الله شکر اداء کول واجب دی، او دا چه شکر د عمل په ذریعه اداء کیږی نهٔ صرف په ژبه سره.
او دارنګه اشاره ده چه دا انبیاء علیهم السلام سره د لوی حکومت او ډیرو معجزاتو نه هم هغه مکلف وو په عبدیت د الله تعالیٰ سره.
وَقَلِيلٌ مِّنْ عِبَادِيَ الشَّكُورُ : پدے کښ الله تعالیٰ د مخلوق نه یو شکایت کوی، او د دوی یو قسم بدی بیانوی چه زما اکثر بندګان ناشکره دی، چه د خپل مَوْلیٰ احسانات په ځان نهٔ منی او د هغهٔ بندګی نهٔ کوی.
الشَّكُورُ: هغه انسان ته وائی چه عمل کوی د الله په طاعت او د هغهٔ د نعمتونو شکر کوی. ابن عباس رضی الله عنه وائی چه د شکور نه مراد موحدین دی. او شکور هغه شخص دے

چه د الله زیات شکر گذار وي او خپل پوره وس او کوشش پدے کښې خرچ کوي، چه زړه او ژبه او اندامونه ئې په الله باندے مشغول وي چه عقیده هم لري او اقرار هم کوي او عمل هم کوي۔ ابن عباس ﷺ دا هم فرمائي : چه په هر حال کښې شکر کوي۔ هرکله چه هغوی ته دا حکم وشو نو د داود ﷺ په باره کښې نقل دي چه هغه د شپے او د ورځے وختونه په خپل اهل باندے تقسیم کړي وو، نو هیڅ داسے ساعت به نۀ راتلو مګر یو انسان به د داود ﷺ د کورنۍ نه په مانځه ولاړ وو۔ (القرطبي وفتح البیان)

یعنې کور به د عبادت نه نۀ خالي کیدو، دے ته د الله بندګي او شکر وائي۔

| فَلَمَّا قَضَيْنَا عَلَيْهِ الْمَوْتَ مَا دَلَّهُمْ عَلٰى مَوْتِهٖ |
|---|
| نو هرکله چه فیصله اوکړه مونږ په هغه باندے د مرګ، ونۀ خودلو دوی ته مرګ د هغه |
| إِلَّا دَابَّةُ الْأَرْضِ تَأْكُلُ مِنْسَأَتَهٗ فَلَمَّا خَرَّ |
| مګر حیوان د زمکے (یو چینجے)، خوړله ئې امسا د هغه نو هرکله چه راپریوتو سلیمان |
| تَبَيَّنَتِ الْجِنُّ أَنْ لَّوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ الْغَيْبَ |
| ښکاره شو پیریان (خلقو ته) چه که چرته دوی پو هیدلے په غیبو باندے |
| مَا لَبِثُوْا فِي الْعَذَابِ الْمُهِيْنِ ﴿١٤﴾ |
| نو وخت به نۀ وے تیر کړے دوی په عذاب سپکونکي کښې۔ |

**تفسیر :** ابن جریرؒ او ابن ابي حاتمؒ وغیره د ابن عباس ﷺ نه مرفوعًا روایت کړیدے چه کله سلیمان ﷺ ته خبر ورکړے شو چه اوس د هغۀ د مرګ وخت راغلے دے (لکه انبیاء علیهم السلام ته د مرګ خبر ورکړے کیږي) نو هغۀ د خپل رب نه دعاء وکړه چه اے زما ربه ! زما د مرګ خبر د پیریانو نه پټ کړے، دے دپاره چه خلقو ته پته اولګی چه پیریان د غیبو په هیڅ خبره نۀ پو هیږي، نو هغۀ په یوه همسا باندے تکیه لګولے وه، مونځ ئې شروع کړو، او په همدے حال کښې هغۀ له مرګ راغے، او پیریانو کار کولو او هغوی ته یو مودے پورے ددے خبر ونشو، (بعض وائي چه د بیت المقدس په جوړولو مصروف وو) کله چه الله وغوښتل نو وینو د هغۀ همسا د لاندے نه وخوړله او د سلیمان ﷺ بدن په زمکه را پریوتۀ، بیا ښٍناتو ته د هغۀ د مرګ پته ولګیده او وے وئیل چه که دوئ ته د

غیبو علم وے، نو د یوے مودے نه به په عذاب کښې نهٔ پاتے کیدلے۔

مفسرین لیکی چه سلیمان ﷺ د یو کال پورے په همسا باندے د مرگ نه روستو ولاړ وو۔ کله چه د وینهٔ (ارضه) د امسا د خوراك په وجه راپریوتو نو دوه کارونه وشو، یو دا چه پیریانو ارمان وکړو چه مونږ په غیبو پو هیدے نو ډیر به ښهٔ وه، دومره تکلیف به مو نهٔ تیرولے۔ (ځکه چه دا سرکشان سلیمان ﷺ د ډنډے په زور سره راایسار کړی وو) او دویم دا چه د پیریانو د وینهٔ (چینجی) سره مینه پیدا شوه او ددے شکریه ئے وکړه چه دا خو ډیر ښه حیوان دے چه ددهٔ په وجه مونږ د مصیبت نه خلاص شو، که نهٔ وے نو مونږ به همیشه په مصیبت کښې اخته وے۔ نو ددے وجه نه د پیریانو د وینهٔ سره یاری ده دا چینجے چه کوم ځای ولګی نو پیریان ورله اُوبه او خټه راوړی ددے وجه نه په دیوال یا لرګی باندے ئے اُوږده خټه جوړه کړی وی۔ او دا قول حاکمؒ د ابن عباس ﷺ نه نقل کړے او دے ته ئے صحیح وئیلے دے، او شیخ البانیؒ او حافظ ابن کثیرؒ موقوفاً صحیح کړیدے۔

(سلسلة الاحادیث الضعیفة رقم: ۱۰۳۲) و (۶۵۷۳)

## فوائد او علوم

نو پدے واقعه کښې د توحید خبرے ثابتے شوے ❁ یو دا چه په انبیاء علیهم السلام باندے مرګ راځی ځان د مرګ نه نشی خلاصولے نو دوی عاجز مخلوق دے۔

❁ دویم دا چه د خپل ځان واك نهٔ لری نو ستا به څه ولری۔

❁ دریم دا چه د مرګ نه روستو ئے هیڅ حرکت او قدرت او اختیار نهٔ لرلو، په امسا باندے چه کله د دهٔ بدن دروند شو نو راپریوتو، معلومه شوه چه مړی د هیڅا مدد او حاجت روائی نشی کولے۔

❁ څلورم دا چه انبیاء علیهم السلام باندے مرګ راځی څوك چه د انبیاء علیهم السلام مرګ نهٔ منی نو دا ګمراه دی۔ ❁ پنځم دا چه پیریان په غیبو نهٔ پو هیږی۔

❁ شپږم دا چه کله یو تن یو مشروع (پروګرام) شروع کړی نو هغه په نیمه کښې پریخودل نهٔ دی پکار، لکه سلیمان ﷺ د بیت المقدس د نیمائی آبادئ پاتے کیدو نه پریشانه شو نو الله ورله بندوبست وکړو۔

❁ اُوم دا چه کله مرګ راشی نو هغه نهٔ روستو کیږی اګرکه تهٔ به ډیر غټ کار کښې لګیا ئے۔ ❁ اتم دا چه سلیمان ﷺ د قوم خدمت کولو۔

❁ نهم دا چه د سرکشانو نه د خدمت فائدے اخستل جائز دی.

❁ نهم د سلیمان ﷺ لویه معجزه معلومه شوه چه یو کال پورے په امسا باندے تسنګیدل ګران کار وی مګر الله ته هر څه آسان دی، پدے موده کښ د سلیمان ﷺ خوا ته به څوك نهٔ راتلل ځکه چه هغه به ئے لیدلو چه په مانځه ولاړ دے، او هغه پابندی هم لګولے وه او بل رعب ئے هم ډیر زیات وو، لوی بادشاه وو.

❁ لسم: امسا ساتل د پیغمبرانو سنت دی.

مؤرخینو لیکلی دی چه سلیمان ﷺ د دیارلسو کالو په عمر کښ بادشاه شو او څلویښت کاله بادشاهی ئے وکړه او د بیت المقدس آبادی ئے د بادشاه کیدو نه څلور کاله روستو شروع کړه او د (۵۳) کالو په عمر وفات شو. (فتح البیان)

قَضَيْنَا عَلَيْهِ الْمَوْتَ: یعنی مونږ فیصله د مرګ وکړه په هغهٔ باندے.

مِنسَأَتَهُ: دا په لغت د حبشو کښ امسا ته وئیلے شی. یا دا د نَسَأْتُ الْغَنَمَ نه دے یعنی د ګلو بزو شړل. نو پدے باندے هم شړل کیدے شی.

تَبَيَّنَتِ الْجِنُّ: ددے دوه معانی دی (۱) ابن عباس ﷺ فرمائی: [تَبَيَّنَتِ الْجِنُّ لِلنَّاسِ] خلکوته پیریان ښکاره شو. یعنی خلکو ته ئے حال ښکاره شو چه دوی خو په غیبو نهٔ پوهیږی، هسے دعوے کوی ځکه چه په دغه زمانه کښ د خلقو دا عقیده وه چه جنات د غیبو په خبرو پوهیږی. نو دلته پرے الله رد وکړو.

(۲) تَبَيَّنَتِ الْجِنُّ: ښکاره شو پیریانو ته خپل ځانونه چه دوی په غیبو نهٔ پوهیږی. اول قول غوره دے.

الْعَذَابِ الْمُهِينِ: ددے نه مراد مشقت او په کار کښ سترې والے دے.

| لَقَدْ كَانَ لِسَبَإٍ فِي مَسْكَنِهِمْ آيَةٌ جَنَّتَانِ |
|---|
| یقیناً وو د سبا والو نه په کورونو د دوی کښ نخه (دلیل د توحید)، دوه باغونه وو |
| عَنْ يَمِينٍ وَشِمَالٍ كُلُوا مِنْ رِزْقِ رَبِّكُمْ وَاشْكُرُوا لَهُ |
| د ښی طرف او د ګس طرف نه، خورئ د رزق د رب ستاسو نه او شکر کوئ هغه لره، |
| بَلْدَةٌ طَيِّبَةٌ وَرَبٌّ غَفُورٌ ﴿۱۵﴾ فَأَعْرَضُوا فَأَرْسَلْنَا |
| (تاسو لره) دا ښار دے مزیدار او رب بخونکے دے. نو مخ واړو دوی، پس راولیږلو مونږ |

| عَلَيۡهِمۡ سَيۡلَ ٱلۡعَرِمِ وَبَدَّلۡنَاهُمۡ |
|---|
| په دوی باندے سیلاب د بند ترلے شوی (ډیم) (سیلاب د سختئ) په بدل کښې ورکړو مونږ دوی |
| بِجَنَّتَيۡهِمۡ جَنَّتَيۡنِ ذَوَاتَيۡ أُكُلٍ خَمۡطٍ وَأَثۡلٍ |
| ته په بدل د دوه باغونو د دوی کښې دوه نور باغونه خاوندان د میوو بد خوندو او د غزونه |
| وَشَيۡءٍ مِّن سِدۡرٍ قَلِيلٍ ﴿١٦﴾ ذَٰلِكَ جَزَيۡنَاهُم بِمَا كَفَرُوا |
| او څه شے د بیرونه لږے۔ دا سزا ورکړه مونږ دوی ته په سبب د هغے چه کفر کړے وو دوی |
| وَهَلۡ نُجَازِيٓ إِلَّا ٱلۡكَفُورَ ﴿١٧﴾ |
| او مونږ سزا نهٔ ورکوو مګر ډیر ناشکره ته۔ |

**تفسیر**: اُوس د سبا والو واقعه راوړی۔

ربط :

مخکښې د الله د هغه بندګانو ذکر وشو چه هغوی باندے الله تعالیٰ احسانات کړی وو نو هغوی د الله بنه شکر وکړو نو اُوس یو داسے قوم ذکر کیږی چه په هغوئ باندے الله ډیر احسانات کړی وو، لیکن هغوئ د نعمت د ناشکرئ لاره اختیاره کړه، نو الله تعالیٰ دغه نعمتونه د هغوئ نه واخستل او هغوئ ئے په فقر او فاقه کښې مبتلا کړل۔

ددے واقعے غرضونه (۱) ناشکره انسانانو ته الله تعالیٰ سخته سزا ورکوی، د هغوی نه نعمتونه اخلی۔ ﴿وَهَلۡ نُجَازِيٓ إِلَّا ٱلۡكَفُورَ﴾ ۔ ﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّكُلِّ صَبَّارٍ شَكُورٍ﴾ نو پدے کښې مونږ ته د شکر دعوت راکوی چه د سبا والو په شان ناشکره مهٔ جوړیږئ۔ د هغوی ناشکری دا وه چه د پیغمبرانو د خبرو نه مخ اړول او د الله بندګی نهٔ کول۔ دوی د دیارلسو پیغمبرانو نه انکار وکړو او په خواهشاتو کښې لګیا وو۔ نو کامل حمد د الله تعالیٰ تقاضا کوی د هغه د شکر نو د اول د سورت سره لګیږی۔

(۲) پدے کښې تَزۡهِيد فِي الدُّنۡيَا دے۔ (د دنیا بې رغبتی ده) دنیا ډیر سپک شے دے چه انسان ددے په وجه د آخرت نه غافل شی۔ (۳) د رسول الله ﷺ صدق هم پکښې ذکر دے۔

سبا والا څوک دی؟

په حدیث د فَرۡوَه بن مُسَيۡك الۡمُرَادِی رضی الله عنه کښې دی چه یو سړی تپوس وکړو اے د الله

رسوله! سبا ښځه ده که زمکه؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: نۀ زمکه ده او نۀ ښځه بلکه دا يو سړے وو چه لس عرب ترے پيدا شو، چه شپږ يمن طرفته لاړل او څلور شام طرفته. کوم چه شام طرفته تلي وو هغه لخم، جذام، غسان، عامله وو، او کوم چه يمن طرفته تلي وو نو هغوی اَزد، اشعريون، حِمْيَر، كِنْدَه، مَذْحِجْ او اَنْمَار دي نو سړي وويل اے د الله رسوله! انمار څوك دي؟ وے فرمايل: دا هغه خلك دي چه دوی نه خثعم او بجيله پيدا شويدي. (صحيح الترمذی للالبانی رقم: ٢٥٧٤)

سبا والا: د سبا بن يشجب بن يعرب بن قحطان اولاد وو، چه د هغویٔ علاقه اُوس د (مآرب) په نوم سره پيژندلے کيږي او د صنعاء نه د درے شپو په مسافت باندے پرته ده. د دویٔ کورونه په ميدان کښ وو، چه د هغے ښی او گس طرفته لرے لرے پورے گنړ گور د ميوه دارو وُنو باغونه وو. وئيلے کيږي چه د دے وُنو د مينځ نه به چه يوے ښځے په خپل سر باندے خالي ټوکرئ په سر کړے تيريدله او په غير ددے نه چه يوے وُنے سره لاس ولگوی ټوکرئ به د ميوو نه ډکيدله. په دے ميدان کښ ماشی، مچان، سپږے، مار، لړم او نور خزنده ځان نۀ موندے کيدل. او دا د الله د قدرت نښه وه لکه روستو (آيَةٌ) لفظ کښ دا هم مراد دی.

الله تعالیٰ دویٔ له دا قِسما قِسم نعمتونه ورکړل او وے وئيل چه تاسو د خپل رب درکړے روزی خورئ، او د هغهٔ شکر اداء کوئ، نيك عمل کوئ او د گناه نه بچ اُوسيږئ. دومره ښهٔ، ښکلے او پاك صاف ښار او د گناهونو بخښونکے رب تاسو نه مطالبه کوی چه هر وخت د خپل رب شکر اداء کونکی اُوسئ.

دے خلکو ځان له د دوه غرونو ترمينځ يو غټ ډيم جوړ کړے وو چه هغے ته ئے درے دروازے پريخودے وے، د بارانونو او سيلابونو اُوبه به هغے کښ جمع کيدلے او ددے لاندے ئے يو لوی حوض جوړ کړو چه په هغے کښ ئے دولس لارے جوړے کړے چه د هغے نه به دوی خپلو خپلو زمکو ته اُوبه راړولے او علاقه به په اُوبو باندے ډيره ښه آباده وه، هر طرفته شنيکی او تازگی وه، په لاره به چه څوك روان وو نو ښی او گس دواړو طرفونو ته به ئے باغونه او فصلونه ليدل چه داسے گنړ باغونه وو چه خلك به ئے په خپلو سورو کښ پټول.

او ددے ډيم اُوږدوالے يو سل پنځوس فټ وو او پلنوالے ئے پنځوس فټ وو.

لِسَبَإٍ: د سبا نهٔ مراد دلته هغه قبيله ده چه د سبا اولاد وو.

مَسْكَنِهِمْ: دا د سکون نه دے، اشاره ده چه د دوی په ملك کښې ډیر اسباب د آرام وو- او مسکن اسم مکان دے په معنیٰ د جمعے سره دے- لیکن هرکله چه دوی یو بل سره نزدے نزدے وسیدل نو داسے وو لکه یو کور نو ځکه ئے د مفرد صیغه راوړه- یا مسکن صیغه د مصدر ده چه مفرد او جمعے دواړو ته شاملیږی-

جَنَّتَانِ: د دوه باغونو نه مراد دوه قسمه باغونه دی چه ښی طرفته هم باغونه او کس طرفته هم باغونه وو-

بَلْدَةٌ طَيِّبَةٌ: یعنی دا ښار دے پاك- یا ستاسو دپاره ښار دے پاك- یعنی دا د الله څومره لوی نعمت دے چه نعمتونه فراخه وی او انسان نه گناه کیږی او الله ئے معاف کوی- نو په (وَرَبٌّ غَفُوْرٌ) کښې اشاره ده چه که دوی په دنیا کښې لږ شان غفلت کولے نو الله بخښل لیکن هرکله چه دوی سخت انکار شروع کړو نو الله هلاك کړل-

یا معنیٰ دا ده چه که تاسو ددے نعمتونو شکر کولو نو ستاسو رب بخښنه کونکے دے، نور گناهونه به درته معاف کوی-

فَأَعْرَضُوا: یعنی زما د بندگئ نه ئے مخ واړولو- او د حکم د دیارلسو پیغمبرانو نه- (وهبٌ والسدیٌ)-

فَأَعْرَضُوا: لیکن د الله بے شماره نعمتونو دوئ خراب کړل، د شکر په ځای ئے د الله ناشکری شروع کړه، نو الله تعالیٰ دوی پدے نعمتونو کښې همداسے پرینخودل بلکه دوی ته ئے یو رسول راولیږلو نو دوی د هغه تکذیب وکړو چه موږ ستا خبره نهٔ منو- مفسرین لیکی چه الله ورته دیارلس پیغمبران راولیږل مگر دوی به مسلسل انکار کولو او د نیغے لارے نه واوړیدل، نو الله د دوئ نه په دے طریقه بدله واخسته چه هغه مضبوط بند (ډیم) چه د دوو غرونو ترمینځه جوړ شوے وو، چه دے به د باران اوبهٔ بندے ساتلے، او د ضرورت مطابق به په دے بند کښې د جوړ شوو سورو نه وتلے او باغونو ته به رسیدلے، د الله کړوته گوره چه هغه بند مات شو، د الله په حکم سره، یا څوك وائی چه د وینو او منږکانو په ذریعه الله رامات کړو نو د اوبو په سختو چپو سره د دوئ کورونه غرق شو، او باغونه او فصلونه ئے ټول هلاك کړل او دغه خلقو د دغه ځای نه ځان بچ کولو دپاره بل ځای ته وتښتیدل تس نس شو، قوم ختم شو ځکه چه یو قوم په یو ځای وسیږی نو یو برکت وی او دوی څه یمن کښې پاتے شول او څه شام ته او څه مدینے طیبے ته راغلل، ورك راورك شو- او دغه باغونه د عذابی اوبو په وجه داسے شو چه بیا به پکښې ښے میوے نهٔ

کیدلے بلکه کرکنړے او بد مزے میوے به ئے نیولے، بی برکتی پکښ راغله۔ یا په غیر د میوو نه ځنګلی ونے وے، او څهٔ د بیرے ونے وے چه د هیڅ کار نهٔ وے۔
سَیْلَ الْعَرِمِ: یعنی سخت سیلاب۔ (ابن عباسؓ) او دا اضافت د موصوف دے صفت ته۔ عَرَامَة په اصل کښ شِدَّة، شَرَاسَة او صُعُوبة (سختوالی، کلکوالی) ته وئیلے شی۔
۲- قتادةؒ وائی عَرِم جمع د عَرِمَة ده هغه بند چه اُوبه رابندوی۔ یعنی ډیم۔
۳- زجاجؒ وائی چه عَرِم هغه منږك وو چه په دوی باندے ئے ډیم رامات کړو۔
٤- عطاءؒ وائی چه عرم د هغه وادی (علاقے) نوم وو۔
۵- بعض وائی چه عرم سخت باران ته وائی۔ (القرطبی فتح البیان)
وَبَدَّلْنَاهُم: یعنی دا عذاب الٰهی وو پدے وجه په هغه اُوبو کښ زهریلی ماده پیدا شوه چه د هغے په وجه ئے د دوی باغونه بیکاره کړل او د هغے میوو نه ئے خوړوالے ختم کړو او بے خونده شوے۔
اُكُلٍ خَمْطٍ: ۱- خمط بد مزے ته وئیلے شی۔ مبردؒ وائی چه خمط دا دے چه میوه داسے حالت ته ورسیږی چه د چا اشتها ورته نهٔ کیږی۔ ۲- ابوعبیدةؒ وائی: (كُلُّ شَجَرَةٍ مُرَّةٍ ذَاتِ شَوْكٍ) هر هغه ترخه ونه چه ازغی داره وی او خوړلے کیدے نشی۔
صاحب د فتح البیان وائی غوره تفسیر د خمط هغه دے چه خلیلؒ وئیلے دے: چه دا د (اَرَاك) ممانړے ونے یو قسم دے چه میوه لری۔ (یعنی کرکنړے او ممانړے چه ځنګلی بوټی دی)۔
وَاَثْلٍ: دا د غز ونے ته وئیلے شی۔ چه ددے لرګے او سورے بے فائدے وی او دے کښ بل قسم دے هغے ته طرفاء وئیلے کیږی د هغے د لرګی نه د رسول الله ﷺ منبر جوړ کړے شوے وو۔
وَشَیْءٍ مِّنْ سِدْرٍ قَلِیْلٍ: یعنی معمولی شان بیرے وے۔ ازهریؒ وائی چه بیرے په دوه قسمه دی، یو مشهوره بیره ده چه د هغے میوه د مرخنړو سره مشابه وی چه ددے میوے ته کرکنړے او بیرے وئیلے کیږی، او دویم قسم صحرائی بیره ده چه هغے کښ هیڅ خاص فائده نهٔ وی، نهٔ د کپړو وینځلو دپاره استعمالیږی او د هغے ه شنډئ په شان ترخے دانے وی چه د خوراك نهٔ وی۔ او دے ته په عربئ کښ ضال وائی۔ او دلته دا دویم قسم مراد دے۔
شیء او قلیل دواړه په کموالی باندے دلالت کوی۔ یا قلیل د ټولو سره لګیږی چه دا مخکنی تول څیزونه کم وو۔

**ذٰلِكَ جَزَيْنَاهُم** : پـه (۱۷) آیت کښې الله وفرمایل چه د دوئ د ناشکرئ مونږه دغسې بدلـه ورکـره، دا د الله نـظام دے چـه څـوك د هـغـهٔ د نـعـمتـونـو شکر نهٔ اداء کوی، هغه د هغوئ نه خپل نعمتونه اخلی، او په زحمتونو او مصیبتونو کښې ئے آخته کوی۔

**وَهَلْ نُجَازِيٓ إِلَّا الْكَفُورَ**: دلته مفسرينو ته اشکال راغلے دے چه الله فرمائی : زهٔ جزاء (سزا) نـهٔ ورکـوم مـگـر کـافر ته او حال دا چه ډیرو مؤمنانو ته سزا اګانے ملاویږی، په ګناه باندے خـو سـزا هـر چـا تـه مـلاویـږی، کـلـه ئے په خیټه درد وی او کله په سر او کله بل مـصیبت وی۔ بیا بیـرتـه (۱) جـواب کـوی چه دلته جزاء کامل مراد دے [وَهَـلْ نُـجَازِيٓ الْـجَزَاءَ الْـكَـامِلَ إِلَّا الْكَفُوْرَ) يـعـنـی پـوره سزا کـافـر تـه ورکوم او مؤمن تـه لږه لږه سزا ملاویږی۔ او پوره سزا دا ده چه هیڅ ګناه ورتـه معاف نشی، او مؤمن ته خو ډیر ګناهونه معاف کیږی او په لږو لږو رانیولے کیږی۔

(۲) دویـم جـواب ئے دا کـړے چـه دے کلام کښې تشبیه ده۔ [اَیْ وَهَـلْ نُـجَازِيٓ مِثْلَ ذٰلِكَ الْـجَزَاءِ إِلَّا الْكَفُوْرَ] ـ يـعـنـی دغـه شان سـزا صـرف کافر ته ورکوم۔ او د دغه سزا نه مراد استیصالی سزا ده چه بیخ ګندی ورله وکړی لکه سبا والو باندے چه راغلے وه۔

(۳) حقـه خبـره دا ده چه شکر ګذار ته الله تعالیٰ بالکل سزا نهٔ ورکوی او هر چه ناشکره دے، نـو د هـغـهٔ ناشـکـری دوه قسمه ده، یو غټه ناشکری ده چه هغه کفر او شرك دے، او دویـم جزئـی نـاشـکـری ده۔ مؤمن جزئی ناشکره وی نو سزا هم ورته جزئی ملاویږی او کـافـر غـټ ناشکره دے نو سزا هم ورته غټه ملاویږی۔ نو دا حصر په خپل ځای صحیح دے چه هر ناشکره ته سزا ملاویږی۔

| وَجَعَلْنَا بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ الْقُرَى الَّتِيْ بَارَكْنَا |
|---|
| او ګرځولی وو مونږ په مینځ د دوی کښې او په مینځ د کلو کښې هغه چه برکات اچولی وو |
| فِيْهَا قُرًى ظَاهِرَةً وَقَدَّرْنَا فِيْهَا السَّيْرَ |
| مونږ په هغے کښې کلی یو بل ته ښکاره او اندازه کړے وو مونږ په هغے کښې مزل، |
| سِيْرُوْا فِيْهَا لَيَالِيَ وَأَيَّامًا آمِنِيْنَ ﴿۱۸﴾ فَقَالُوْا رَبَّنَا |
| (وئیلی وو مونږ) ګرځئ په دے کښې د شپے او د ورځے په امن سره۔ نو اُووئیل دوی اے ربه |

| بَاعِدْ بَيْنَ أَسْفَارِنَا وَظَلَمُوا أَنفُسَهُمْ |
| --- |
| زمونږ! لرې والې راوله په مینځ د سفرونو زمونږ کښې او ظلم ئې اوکړو په ځانونو خپلو |
| فَجَعَلْنَاهُمْ أَحَادِيثَ وَمَزَّقْنَاهُمْ كُلَّ مُمَزَّقٍ |
| نو اوګرځول مونږ دوی لره خبرې (قصې) د عبرت او تس نس کړل مونږ دوی په پوره تس |
| إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّكُلِّ صَبَّارٍ شَكُورٍ ﴿۱۹﴾ |
| نس کولو سره یقیناً په دې کښې خامخا نخې دی دپاره د هر ډیر صبرناك ډیر شکر کونکی۔ |

**تفسیر** : الله تعالیٰ مخکښې د سبا قوم ته د خپلو ورکړو نعمتونو ذکر وکړو، بیا د نعمت د ناشکرئ په وجه دوئ ته چه کومې پریشانئ اورسیدلې د هغې بیان وشو۔ اوس هغه نعمتونه ذکر کیږی چه هغوئ ته په دغه زمانه کښې د خپلې علاقې نه بهر حاصل وو، د دوئ د کلو او د شام د ملك ترمینځه د ښارونو او کلو یوه لړئ لګیدلې وه، او د هر دوو کلو ترمینځه مزل د یوې ورځې وو، کله به چه دا خلق تجارت دپاره د مآرب نه مُلكِ شام ته روانیدل نو شپه به ئې په یو کلی کښې تیروله، او غرمه په بل کلی کښې او چرته به چه تلل نو د خوراك څکاك هر څۀ به فراخئ سره ملاویدل۔ دغسې د څلورو میاشتو مزل به ئې په پوره امن او راحت او خوړلو څکلو سره قطع کولو او خپل ځان سره به ئې د لارې توښه نۀ ګرځوله۔ وئیلې کیږی چه په دغه ورځو کښې د یمن او شام ترمینځه د ښارونو شماره څلور زره اووه سوه وه۔ او دا د الله تعالیٰ لوی نعمتونه وو چه هر ځای به ورته خوراك او آرام او راحت ملاویدو۔

**قُرًى ظَاهِرَةً**: یعنی دا کلی به یو بل ته ښکاره کیدل یا مسافروته به ښکاره کیدل چه دیو کلی نه به ووتل هغه به لا غائب شوې نۀ وو چه بل کلې به ښکاره شو۔

**وَقَدَّرْنَا فِيهَا السَّيْرَ**: یعنی مونږ په دې کلو کښې مزل اندازه کړې وو، چه هغه نیمه ورځ وه په تللو راتللو کښې چه مسافر به په هغې کښې نۀ ستړې کیدو او نۀ به ورته لوږه تنده لګیده، بلکه د یو کلی نه تر بل کلی پورې اته میله یا دولس میله مسافت وو۔

**وَأَيَّامًا آمِنِينَ**: دوی به د شپې او د ورځې سفرې کولې شوې څکه چه امن وامان وو او دا ډیر لوی نعمت دې که انسان ورته سوچ وکړی، غلۀ او ډاکوان به نۀ وو، کوم ځای چه به

ئې دمه غوښتله، هلته به ئې دمه کوله۔ مفسرین لیکي : الله تعالیٰ دومره امن ورکړے وو چه که یو تن به د خپل پلار قاتل سره په لاره کښې ملاو شو نو هغه ته به ئې هیڅ نۀ وئیل۔

فَقَالُوا رَبَّنَا بَاعِدْ : لیکن په دوئ باندے دا نعمتونه هم راست رانغلل، او د امن او عافیت قدر ئې هیر کړو، او په کبر او غرور کښې راغلل، او وے وئیل چه دا هم څۀ سفر دے چه د هر لږ مزل نه پس کلے موندلے کیږي، خوند خو به ئې هله کولے چه په شاړ میدانونو، ځنګلونو او پُر خطر میدانونو باندے تیریدل وے۔ په سفر کښې خو ستړی والے او یرے خوند کوی۔ او دا قول د دوی په حال او په لسان (ژبے) دواړو سره دے۔

الله تعالیٰ ته د دوئ تکبر کول خوښ نۀ شو، نو دغه پرله پسے کلي ئې وران ویجاړ کړل، چه د هغې نه ئې اُوبه او ونے او خیرونه ختم کړل او هسے دشتے او بیابانونه ئې پریخودل۔

فَجَعَلْنَاهُمْ اَحَادِيْثَ : یعنی د دوئ تاریخ خلقو دپاره د عبرت قیصے جوړے شوے چه دا دنیا والا واوري نو حیرانتیا کوی چه څنګه الله تعالیٰ د دوئ عیش او آرام په سختئ او تنګئ باندے او د دوئ قوت او وحدت ئې په انتشار او پریشانئ باندے بدل کړو، تردے چه دوئ د عربانو دپاره ضرب المثل جوړ شو چه کله دوئ د یو قوم د انتشار او افتراق حال بیانوی نو وائي : (تَفَرَّقُوْا اَيَادِيْ سَبَاءٍ/ ذَهَبُوْا اَيَادِيْ سَبَا)

ایدی او ایادی نه مراد اولاد دی څکه چه په اولادو سره داسے تقویت راځي لکه د لاسونو په شان) یعنی داسے خوارۀ شول لکه د قوم سبا ډله چه خوره شوے وه۔ د دوئ نه اَوس او خزرج قبیلے یثرب (مدینة الرسول ﷺ) ته راغلل، د دوی نیکه عمرو بن عامر راغلے وو، غسان والا خلق شام ته، اَزْد والا عُمان ته، او د خُزاعه خلق تِهامه ته او آل خزیمه عراق ته ورسیدل، او په دے طریقه پوره د سبا قوم تس نس شو۔

وَظَلَمُوا اَنْفُسَهُمْ : یعنی هر کله چه الله د دوی سوال قبول کړو او کلي ئې ورله په صحراوونو بدل کړل نو بیا ورته د نعمت قدر ورغے او په سخت تکلیف کښې اخته شول او قوم ئې تس نس شو۔ نو الله فرمائي چه دوی په خپلو ځانونو ظلم وکړو په شرك او کفر او ناشکرئ سره۔

وَمَزَّقْنَاهُمْ كُلَّ مُمَزَّقٍ : یعنی تقسیم مے کړل په پوره تقسیمولو او تس نس کولو سره۔ قومیت او وحدت ئې په افتراق بدل شو۔

اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَاتٍ لِّكُلِّ صَبَّارٍ شَكُوْرٍ : دا جمله دریم کرت راغله، پدے کښې اشاره ده

چه د صبر ماده به ځان کښې پیدا کړے او ددے کافرو په شان به نهٔ جوړیږے چه دوی بې صبره وو، د خواهشاتو نه ئے صبر نهٔ وو او شکر به ځان کښې پیدا کړے او د دوی په شان ناشکری به نهٔ کوے نو الله به ډے ددے عذابونو نه بچ کوی او که صبر او شکر درکښې نهٔ وو نو دغه عذابونه ستا دپاره هم مقرر دی، دا ددے جملے فائده ده۔

| |
|---|
| وَلَقَدْ صَدَّقَ عَلَيْهِمْ إِبْلِيسُ ظَنَّهُ فَاتَّبَعُوهُ |
| او یقیناً رشتینی کړے وو په دوی باندے ابلیس گمان خپل نو روان شو دوی د هغه پسے |
| إِلَّا فَرِيقًا مِّنَ الْمُؤْمِنِينَ ﴿٢٠﴾ وَمَا كَانَ لَهُ عَلَيْهِم مِّن سُلْطَانٍ إِلَّا |
| سوئ د یو ډلے د مؤمنانو نه۔ او نهٔ وو دهٔ لره په دوی باندے څه زور مکر (مونږ مقرر |
| لِنَعْلَمَ مَن يُؤْمِنُ بِالْآخِرَةِ مِمَّنْ |
| کړی) دے دپاره چه ښکاره کړو مونږ هغه چا لره چه ایمان لری په آخرت د هغه چا نه |
| هُوَ مِنْهَا فِي شَكٍّ وَرَبُّكَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ حَفِيظٌ ﴿٢١﴾ |
| چه د هغے نه په شك کښې دے او رب ستا په هر شی باندے حفاظت کونکے دے۔ |

**تفسیر :** اُوس الله فرمائی چه دا خلك ابلیس راگیر کړیدی او د هغه تابعداری کوی او عظیم ذات ئے پریخے دے، او دے کښې یو قسم شکایت او زورنه ده دوی ته، او مخکښې د جناتو تذکره وه نو اُوس د ابلیس تذکره څکه راغله۔

مفسرین لیکی : ۱- که ددے آیت تعلق د قوم سبا سره اُومنلے شی نو معنیٰ به دا شی چه ابلیس د دویٔ په باره کښې په خپل زړهٔ کښې دا گمان اوکړو چه که زهٔ دویٔ لره گمراه کړم نو دا خلق به زما پیروی کوی، نو دغسے اُوشوه چه دویٔ د شیطان په خبرو کښې راغلل او د الله او د هغهٔ د رسولانو نه ئے انکار وکړو او د سرکشیٔ لاره ئے اختیار کړه۔

۲- او که چرے ددے تعلق د عامو انسانانو سره ومنلے شی نو معنیٰ به دا وی چه ابلیس د تمامو انسانانو په باره کښې داسے گمان وکړو چه که زهٔ دویٔ لره د الله نافرمانیٔ طرفته را اُوبلم نو دغه خلق به زما خبره اُومنی او ما پسے به راروان شی، او سورة الاعراف (۱۷) آیت کښې ئے په خپل گمان داسے وئیلی وو ﴿ وَلَا تَجِدُ أَكْثَرَهُمْ شَاكِرِينَ ﴾ (تهٔ به د دوی نه اکثر خلك شکر گذار مونده نهٔ کړے)۔ او آدم علیه السلام چه په جنت کښې پروت وو نو ابلیس

پرے وګرزیدو، او دائے وویل چه دا خو داسے مخلوق پیدا شو چه د خپل ځان اختیار به نهٔ لری نو کهٔ زهٔ په دهٔ باندے مقرر شوم نو ښه به ئے ګمراه کړم. نو الله فرمائی چه دغسے اُوشوه د ابلیس ګمان په دوی باندے رشتینی شو، چه زیاتره خلقو ددهٔ پیروی وکړه او د الله احکام ئے شاته ګذار کړل. او همدا قول ظاهر دے.

وَمَا كَانَ لَهُ: سوال پیدا کیږی چه ابلیس الله تعالیٰ ولے پیدا کړو چه خلك ګمراه کوی؟ لکه دا سوال دهریه خلك زیات کوی. نو الله تعالیٰ دلته جواب کوی چه ابلیس څوك په زور سره نهٔ شی ګمراه کولے، او دلیل هم ورسره نشته. نو یوه دا خبره یاده کړه. نو بیا الله ولے مسلط کړے؟ نو الله پدے کښ په خپلو بندګانو ابتلاء او امتحان کوی چه څوك الله او د هغهٔ ملاقات منی او د الله د احکامو تابعداری کوی نو هوښیار به وائی چه الله حق دے او د هغهٔ د ملاقات یوه ورځ حق ده، او هغه به خامخا راځی، ځکه چه آخرت سړے په خپل عقل سره پیژندلے شی.

نو هرکله چه دا حقه ورځ راروانه ده، نو د ابلیس تابعداری ماله نهٔ ده پکار. او کوم انسانان چه د الله او د آخرت او پیغمبرانو په باره کښ شکیان دی نو ابلیس به راولګی هغوی به ګمراه کړی، مطلب دا دے چه الله تعالیٰ بصیرت والا خلك جدا کوی او بے بصیرته خلك په ابلیس باندے ګمراه کوی او الله هغوی له جهنم تیار کړیدے.

مِنْ سُلْطَانٍ: یعنی زور او دلیل. حسن بصریؒ وائی: [مَا ضَرَبَهُمْ بِسَوْطٍ وَلَا بِعَصًا وَ اِنَّمَا ظَنَّ ظَنًّا] ابلیس انسانان په چابك او امسا باندے نهٔ دی وهلی چه په زوره پرے ګناه وکړی بلکه هغه ګمان وکړو نو ګمان ئے رشتینی شو.

إِلَّا: دا متعلق دے د مقدر پورے [اَیْ اِلَّا سَلَّطْنَاهُ عَلَيْهِمْ] مګر ما مسلط کړو په دوی باندے.

صاحب د فتح البیان لیکی چه دا استثناء منقطع ده [لَا سُلْطَانَ لَهُ عَلَيْهِمْ وَلٰكِنِ ابْتَلَيْنَاهُمْ بِوَسْوَسَتِهٖ لِنَعْلَمَ] د ابلیس په دوی باندے هیڅ زور نشته لیکن مونږ دوی د ابلیس په وسوسے سره په امتحان کښ واچول دے دپاره چه ښکاره کړو چه څوك په آخرت ایمان لری او څوك پکښ شك کوی، نو شکیان به د ابلیس تابعدار شی او ایمان والا به ترے خلاص شی. مطلب دا شو چه ابلیس ته څه مادی او معنوی قوت حاصل نهٔ دے، هغهٔ ته صرف دُومره اجازه ملاؤ شوے چه هغه د انسان په زړهٔ کښ قِسم قِسم وسوسے پیدا کړی، ګناه ددهٔ په نظر کښ ښائسته کولو سره پیش کړی، او د الله نافرمانئ طرفته ئے

راوبـلـى او دا اجازت دهٔ لهٔ څکه ملاو شوے چه معلومه شى چه څوك په آخرت باندے ايمـان راوړى او د الله د نازل كړى شريعت مطابق خپل ژوند تيروى، او څوك ددے په باره كښ په شك او شبهه كښ مبتلا كيږى او د معصيت او سركشۍ لاره اختياروى۔
حَفِيْظٌ : د هر چا حال او ايمـان او كـفـر ورتـه مـعـلـوم دے۔ او په قيامت كښ به د هغے حساب وكړى او بدلے به وركړى۔

| |
|---|
| قُلِ ادْعُوا الَّذِيْنَ زَعَمْتُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ |
| اُووايه ! را اُوبلئ هغه كسان چه گمان كولو تاسو په هغوى باندے (معبودان) سوئ د الله |
| لَا يَمْلِكُوْنَ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ فِي السَّمٰوٰتِ وَلَا فِي الْاَرْضِ وَمَا لَهُمْ |
| نه، اختيار نهٔ لرى په اندازه د ذرے په آسمانونو او نهٔ په زمكه كښ او نشته دوى لره |
| فِيْهِمَا مِنْ شِرْكٍ وَّمَا لَهٗ مِنْهُمْ مِّنْ ظَهِيْرٍ ﴿۲۲﴾ وَلَا تَنْفَعُ |
| پدے دواړو كښ هيڅ برخه او نشته الله لره د دوى نه څوك مددگار۔ او فائده نهٔ وركوى |
| الشَّفَاعَةُ عِنْدَهٗ اِلَّا لِمَنْ اَذِنَ لَهٗ |
| سفارش په نيز د الله تعالىٰ مگر هغه چا ته چه اجازت وركړى د هغه دپاره۔ (دوى به په |
| حَتّٰى اِذَا فُزِّعَ عَنْ قُلُوْبِهِمْ قَالُوْا مَاذَا قَالَ |
| يره كښ وى) تردے چه كله يره لرے كړے شى د زړونو د دوى نه وائى به دوى څه اُووئيل |
| رَبُّكُمْ قَالُوا الْحَقَّ وَهُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيْرُ ﴿۲۳﴾ |
| رب ستاسو، وائى به دوى حق ئے اُووئيل او هغه اُوچت دے، ډير لوئى ذات دے۔ |

**تفسير** : ددے ځاى نـه روستـو پـه شرك بـانـدے رد او طرق التبليغ ذكر كيږى، پدے آيتـونـو كښ د شرك ټول طرق قطع كړے شويدى، ځكه چه د الله د حمد تقاضا دا ده چه شرك به نهٔ كوے۔ بله دا چه شيطان چه په انسانانو مقرر شويدے نو د هغهٔ اول كار دا دے چه خلكو ته شرك وښائى او دوى په دے جال كښ راگير كړى، نو الله په شرك رد كوى چه پدے كښ د شيطان خبره ونهٔ منئ۔
الله تعالىٰ د نبى كريم ﷺ په ژبـه تـمامو كافرانو ته په عامه توگه او د مكے كافرانو ته په

خاصه تو که فرمائی چه کوم بتان چه تاسو د الله نه سوئ خپل معبودان گنړئ لږ هغوئ ته خو آواز وکړئ، آیا هغوئ ستاسو د آواز جواب درکوی ؟ جواب به یقیناً په ((نهٔ)) سره وی، ځکه چه دا خو د کاڼړی بے روحه بتان دی، په آسمانونو او زمکه کښ موجود څیزونو نه د یوے ذرے هومره هم مالکان نهٔ دی، نهٔ ددے په پیدائش او ملکیت کښ دوئ د الله سره برخه دار دی، او نهٔ د کائناتو د کارونو په چلولو کښ الله ته د دوئ د مدد ضرورت دے۔

مفسرین لیکی چه هر کله د دوئ عاجزی او بے کسی دے حد ته رسیدلے نو د الله تعالیٰ پشان دوئ رابلل او د دوئ نه اُمید ساتل څرنګ عقلمندی ده ؟۔

زَعَمْتُم مِّن دُونِ اللَّهِ: اَیْ اَنَّهَا آلِهَةٌ) ستاسو گمان دے چه دا آلهه (معبودان) دی۔

یو تن چه یو معبود د الله سره شریك گنړی ددے درے طریقے دی، یو دا چه د الله سره به په ملکیت کښ شریك وی، چه نیم کائنات به د الله وی او نیم به د دوی د معبودانو وی۔

دویم دا چه مالك به ئے الله وی خو الله به دے معبودانو ته وئیلی وو چه راشئ ما تاسو لره ځان سره شریك کړئ، زهٔ دا کائنات یواځے نشم چلولے، نیم یا دریمه حصه مے تاسو ته دروسپارلو۔ دریم دا چه الله کله کائنات پیدا کول نو دوی به ورسره څه مدد کړے وی او لاس به ئے ورسره اړولے وی نو پدے آیت کښ درے واړه طریقے باطلے کړے شویدی۔

وَلَا تَنفَعُ الشَّفَاعَةُ: دا څلورمه طریقه ده چه دوی مالکان او شریکان او مددګاران د الله تعالیٰ خو نهٔ دی لیکن دوی مخوریز خلك دے، الله د دوی خبره منی، نو مونږ د دوی بندګی ځکه کوو چه دوی د الله په دربار کښ زمونږ سفارش کوی نو الله ددے نفی کوی چه دا مخلوق سفارش هم نشی کولے۔ بتان خو ئے نشی کولے، او هرچه ملائك دی نو راشه د هغوی خوف واوره چه هغوی د الله تعالیٰ نه څومره یره کوی نو هغوی د الله د اجازے نه بغیر یوه خبره هم نشی کولے۔ آؤ د الله په اجازه سره دوی سفارش کولے شی، لیکن د الله دا عادتِ کریمه دے چه هغه د مشرکانو دپاره د سفارش کولو اجازه هیچا ته نهٔ ورکوی ځکه چه مشرکان ئے دشمنان دی، نو دوی دے پدے طمع د ملائکو عبادت نهٔ کوی چه گنے دا به زمونږ سفارشیان شی ځکه چه ملائك د الله مقرب بندګان دی، هغه د الله د دشمنانو سفارش هیڅکله نهٔ کوی، او نهٔ ورته الله اجازه ورکوی۔ نو په مشرك باندے تولے لارے بندے شوے۔

وَلَا تَنفَعُ الشَّفَاعَةُ: پدے کښ نفی د نفع د شفاعت ده او مراد ترے نه نفس شفاعت دے

ځکه چه مقصد د شفاعت نه مجرم ته فائده رَسَول دی۔ نو مطلب دا شو چه بیخي به شفاعت نهٔ کیږی په قیامت کښې مگر د هغه چا چه الله ورته اجازه ورکړی، یعنی د ملائکو او د پیغمبرانو سفارش به کیږی خو په اجازه۔ دا استثناء د شفیع ده۔ او دا رنګه سفارش به د هغه چا په حق کښې آوریدلے کیږی، او فائده به ورکوی چه چا لره الله تعالیٰ اجازه کړی وی چه هغه ګناهګار مؤمنان دی نهٔ مشرکان۔ دا استثناء د مشفوع له شوه۔ دا دواړه خبرے دلته صحیح دی۔ الله تعالیٰ همدا خبره په دے آیتِ کریمه او د قرآن کریم په نورو ګڼرو آیتونو کښې بیان کړے ده۔ د سورتِ نجم په (۲۶) آیت کښې دی: ﴿ وَكَمْ مِّنْ مَّلَكٍ فِي السَّمَاوَاتِ لَا تُغْنِي شَفَاعَتُهُمْ شَيْئًا إِلَّا مِنْ بَعْدِ أَنْ يَأْذَنَ اللَّهُ لِمَنْ يَشَاءُ وَيَرْضَىٰ ﴾ (او ډیر ملائک په آسمانونو کښې دی چه د هغوئ شفارس هیڅ نفع نشی ورکولے، مګر دا بیله خبره ده چه الله تعالیٰ په خپله خوښه او خپلے غوښتنے سره چالره اوغواړی اجازت ورکړی)۔ او د سورت انبیاء په (۲۸) آیت کښې دی: ﴿ وَلَا يَشْفَعُونَ إِلَّا لِمَنِ ارْتَضَىٰ وَهُمْ مِّنْ خَشْيَتِهِ مُشْفِقُونَ ﴾ (دوئ به هیڅ سفارش نهٔ کوی سوئ د هغه چا نه چه هغوئ نه الله خوشحاله وی، دوئ خو خپله د الٰهی هیبت نه لرزیدونکی ویریدونکی دی)۔

حَتَّىٰ إِذَا فُزِّعَ : دا د دنیا سره هم لګیږی او په آخرت کښې هم۔ ۱- اُوس د ملائکو هیبت بیانوی په دنیا کښې لکه حدیث کښې دی چه الله په آسمان کښې خبرے وکړی (كَصَلْصَلَةٍ عَلَىٰ صَفْوَانٍ) د خبرو داسے آواز راشی لکه یو زنځیر چه په کاڼړی باندے راخکلے شی، دا آواز چه ملائک واوری نو ټول بیهوشه شی، بیا اول جبریل ﷺ راپاڅیږی نورو ملائکو باندے ورتیر شی، نو هغه هم الله راپاځولی وی نو لاندے ملائک د جبریل نه تپوس وکړی چه (مَاذَا قَالَ رَبُّكُمْ؟) ستاسو رب څه خبره وکړه نو هغه ورته ووائی چه حق ئے وویل۔ یعنی حقه خبره ئے وکړه۔ ددے نه مراد هغه خبره ده چه الله د انسانانو د کارونو په باره کښې کړی وی چه مثلاً صبا به باران کوم، صبا به مصیبت راولم، صبا به زلزله راولم۔ او دا کارونه تاسو وکړئ۔ نو مطلب دا شو چه ملائک د الله تعالیٰ نه هغه مرعوب مخلوق دے چه خپله ویریږی نو هغه به ستاسو څه شفاعت وکړی او په الله به څنګه زوروړ شی۔

(۲) دویم تفسیر دا دے چه دا د قیامت سره لګی یعنی د حشر په میدان کښې به تمام ملائک او انبیاء چه دوئ نه اُمید کیدے شی چه دوئ به د نورو دپاره سفارشی جوړیږی، او هغه تمام خلق چه هغوئ به د سفارش محتاج وی، د انتهائی پریشانئ په عالَم کښې

وي، او د الله د هیبت نه به ډیر زیات ویریدونکي وي، هیڅوك به معلومه نهٔ وي چه الله عز وجل به خپل کوم یو حکم صادروي. تول به په همدے حال کښې وي چه الله تعالیٰ به د شفاعت اجازت ورکړي، او د اهلِ محشر خوف به یو قِسم ختم شي نو ملائك به د خپلو ځانونو نه پورته هغه ملائکو نه تپوس وکړي چه هغویٔ د شفاعت د اجازت خبر ورکړے وو چه مونږ خو په رعب کښې وو مونږ هیڅ وانهٔ وریدل چه ستاسو رب څهٔ حکم صادر وفرمایهٔ؟ نو هغویٔ به وائی چه الله حقه خبره او حق حکم راولیږلو یعنی د شفاعت حقدارو خلقو دپاره د شفاعت اجازت ورکړے شو. او ملائك به ددے نه یریږی چه چرته د دوی نه پدے حکم کښې تقصیر ونشی.

او ملائکو ته به وویل شي چه د دومره دومره کسانو دپاره شفاعت اجازه ورکړے شوه، نو بعض ملائك به د لږو او بعض به د ډیرو کسانو دپاره سفارش کوي. نو معلومه شوه چه ملائك خو په آخرت کښې خپل اختیار نهٔ لري او الله ته عاجز او د هغه نه په یره کښې دي، نو په الله باندے به څنګه په زوره د مشرکانو دپاره سفارش وکړي.

فُزِّعَ: دے فعل کښې معنیٰ د سَلْبُ الْمَاخَذ ده اَیْ اُزِیْلَ الْفَزَعُ. تردے چه کله یره لرے کړے شي.

اَلْحَقَّ: نو پدے تفسیر سره د حق نه مراد [قُبُوْلُ شَفَاعَتِكُمْ لِلْمُسْتَحِقِّیْنَ لَهَا] دے. یعنی د مستحقینو دپاره د دوی شفاعت قبلول مراد دی.

وَهُوَ الْعَلِیُّ الْكَبِیْرُ: او الله تعالیٰ اُوچت او لوی ذات دے نو د هغهٔ اختیار دے چه په بندګانو کښې څنګه فیصله کوي او څه چه غواړي هغه کوي، د هیڅ ملائك او نهٔ د نبي دا اختیار شته چه په دغه ورځ خبرے وکړي مګر په اجازه د الله سره.

| قُلْ مَنْ یَّرْزُقُكُمْ مِّنَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ قُلِ اللّٰهُ وَاِنَّآ |
|---|
| اُووایه! څوك رزق درکوي تاسو ته د آسمانونو او د زمکے نه اُووایه الله، او یقیناً مونږ |
| اَوْ اِیَّاكُمْ لَعَلٰى هُدًى اَوْ فِیْ ضَلٰلٍ مُّبِیْنٍ ﴿۲۴﴾ قُلْ لَّا تُسْئَلُوْنَ |
| او تاسو خامخا په هدایت یو یا په ګمراهئ ښکاره کښې. اُووایه! تپوس به نشي کیدے |
| عَمَّآ اَجْرَمْنَا وَلَا نُسْئَلُ |
| تاسو نه د هغے چه جرم کړیدے مونږ او تپوس نشي کیدے زمونږ نه |

عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ﴿۲۵﴾

د هغه عملونو چه تاسو ئے کوئ۔

**تفسير**: اُوس د تبليغ طريقے او تعليم ورکوی، او ربط ئے د ماقبل سره دا دے چه د غير الله عبادت نهٔ دے جائز ځکه تاسو ته روزی صرف الله درکوی۔ او دا دليل الزامی اعترافی دے په رد د مشرکانو کښې چه د رزق انتظام کونکے صرف الله تعالیٰ دے، نو بيا د هغهٔ نه سوئ د نورو نه ولے حاجتونه غواړئ؟۔

**السَّمٰوٰتِ**: دلته ئے سماوات جمع راوړه او په سورة يونس (۳۱) کښې (السماء) مفرد وو، وجه دا ده چه هلته د مشرکانو جواب ذکر وو چه ﴿فَسَيَقُوْلُوْنَ اللّٰهُ﴾ او مشرکانو ته معلومه وه چه د آسمان نه رزق ځنګه راځی، هغه دا چه الله باران وکړی او په هغے سره زمکه شنه او تازه کړی او رزقونه راوتو کيږی۔ او دلته د اُوه آسمانونو نه رزق راتللو علم مشرکانو ته نهٔ وو نو پدے وجه مشرکانو جواب ونکړو بلکه الله ورته د نبی په ژبه جواب ورکړو۔

**قُلِ اللّٰهُ**: يعنی دوی به ډير کرت د عناد د وجه نه چُپ شی نو تهٔ ورته ووايه چه الله دے۔ صاحب د فتح البيان ليکی چه ډير کرته دوی ددے خبرے جواب نهٔ ورکوی چه رزق د آسمانونو نه الله راليږی بلکه توقف کوی دے دپاره چه په دوی باندے حجت قائم نشی۔ (فتح البيان)

**وَاِنَّآ اَوْ اِيَّاكُمْ**: ددے دا مطلب نهٔ دے رسول الله ﷺ په شك کښې وو چه يا به مونږ په هدايت يو يا تاسو، يا به مونږ په ګمراهئ کښې يو يا تاسو۔ بلکه دے ته مُجَارات الخصم وائی په باب د مناظره کښې۔ يعنی د خپل مقابل سره يو ځای پورے تلل او بيا هغه راغورزول او ملامته کول، ځکه چه که اول نه انکار وکړے چه ستا تولے خبرے غلطے دی، نو بيا هغوی بحث نهٔ کوی، او کله چه يو ځای پورے ورسره لاړ شی چه صحيح ده دا خبره منم دا منم خو که داسے وشی نو بيا به څه وی؟ نو پدے طريقه هغه راګير کړے شی، نو دلته فرمائی: په مونږ او تاسو کښې خو يوه ډله خامخا په ګمراهئ کښې ده او بله ډله په هدايت ده، نو راځئ چه سوچ وکړو چه يا به مونږ ګمراهان يو يا تاسو، نو مونږ چه وکتل مونږ د هغه لوی الله يواځے بندګی کوو کوم چه رازق او خالق دے، د رسول الله ﷺ تابعداری کوو، کوم چه الله راليږلے دے، او تاسو د بتانو، جماداتو عبادت کوئ چه

هیڅ نفع او نقصان نشي ورکولے، او د الله سره شرك کوئ او د الله نبي مو پریخے دے۔ نو دا خو د هر عاقل په نیز ښکاره خبره ده چه یو تن د الله تعالیٰ یواځے عبادت کوي او په هر څه کښې د هغهٔ د رسول تابعداري کوي هغه خامخا په هدایت وي، نو هغوی ته پدے خبره کښې خپلو ځانونو ته متوجه کړل۔ نو پدے کښې په ډیره کامله طریقه سره د هدایت او ګمراهئ والا ډلے جدا جدا ښکاره شوے۔

قُل لَّا تُسْأَلُونَ: دا بله طریقه د تعلیم او تبلیغ ده۔ او ډیر ښائسته انداز دے چه د هر چا خپل عمل دے، مونږ نه به زمونږ د ګناه تپوس کیږي (د هغوی د متوجه کولو دپاره ئے خپل جرم او ګناه ذکر کړه) او ستاسو نه به ستاسو د ګناه تپوس کیږي، نو د خپل عمل غم پکار دے، یو بل باندے اعتراضاتو ته ضرورت نشته، اکثر خلك د بل ګناه ته ګوري چه فلانے داسے کار ولے کوي او هغه ګمراه دے، او هغه کافر دے او هغه په غلطه روان دے، او خپله د ګناهونو په حوض کښې ولاړ وي، نو هر چا له د خپل ځان غم پکار دے۔

ډیر خلك د بل پسے لګیدلي وي چه فلانے پدے عمل کافر شو او پدے کافر شو، تو له ورځ ئے پدے کښې تیره شي، د بل چا غم مهٔ کوه چه څوك ګمراه دے او که نهٔ، هغه به ترے الله تعالیٰ تپوس کوي خو ته خپل دعوت سره کار لره او د خپل ځان غم وکړه، فتوو ته ضرورت نشته۔

صاحب د «فتح البیان» وائي چه ددے مطلب دا دے چه الله تعالیٰ خپل نبي ته فرمائي چه دوی ته ووایه چه زهٔ خو تاسو هغه څه ته رابلم چه ستاسو دپاره په هغے کښې پوره خیر او نفع ده، او که تاسو زما خبره نهٔ منئ او په خپل کفر باندے روان وسیږئ نو ما ته هیڅ ضرر نشته۔

حافظ ابن کثیرؒ لیکي چه په دے آیتِ کریمه کښې د مشرکانو نه د بیزارئ پُر امن اعلان دے چه تر څو پورے تاسو ایمان رانهٔ وړئ، زمونږ او ستاسو هیڅ رشته او تعلق نشي کیدے، مونږ د خپلو اعمالو ذمه دار یو او تاسو د خپلو اعمالو۔ که چرے مونږ نه څهٔ ګناه اُوشي نو تاسو نه به ددے په باره کښې تپوس نهٔ کیږي، اونهٔ به ستاسو د اعمالو په باره کښې مونږ نه تپوس کیږي۔ که چرے ایمان راوړئ نو مونږ تول ورونه ورونه جوړیږو، ورنه مونږ ستاسو نه بیزاره یو او تاسو مونږ نه بیزاره۔ الله تعالیٰ د سورتِ یونس په (٤١) آیت کښې فرمائیلي: ﴿ وَإِن كَذَّبُوكَ فَقُل لِّي عَمَلِي وَلَكُمْ عَمَلُكُمْ أَنتُم بَرِيئُونَ مِمَّا أَعْمَلُ وَأَنَا بَرِيءٌ مِّمَّا تَعْمَلُونَ ﴾ (او که چرے تا ته دروغژن وائي نو ورته اُووایه چه زما دپاره زما

عمل او ستاسو دپاره ستاسو عمل، تاسو زما د عمل نه بیزاره یئ او زهٔ ستاسو د عمل نه بیزاره یم)۔ او په سورة الکافرون کښې دی: ﴿قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ لَا أَعْبُدُ مَا تَعْبُدُونَ وَلَا أَنْتُمْ عَابِدُونَ مَا أَعْبُدُ﴾ (ته اووایه چه اے کافرو! نهٔ زهٔ عبادت کوم د هغه چا چه تاسو د هغهٔ عبادت کوئ، نهٔ تاسو عبادت کونکی یئ د هغه چاچه زهٔ ئے عبادت کوم)۔

| قُلْ يَجْمَعُ بَيْنَنَا رَبُّنَا ثُمَّ يَفْتَحُ بَيْنَنَا |
|---|
| اُووایه! جمع به کړی مونږ لره رب زمونږ بیا به فیصله اُوکړی په مینځ زمونږ کښې |
| بِالْحَقِّ وَهُوَ الْفَتَّاحُ الْعَلِيمُ ﴿٢٦﴾ قُلْ أَرُونِيَ |
| په حق سره او الله تعالیٰ ښه فیصله کونکے پوهه دے۔ اُووایه! اُوښایئ ما ته |
| الَّذِينَ أَلْحَقْتُمْ بِهِ شُرَكَاءَ ۖ كَلَّا |
| هغه کسان چه پوسته کړیدی تاسو د الله سره شریکان، هیچرے نشی کیدے |
| بَلْ هُوَ اللَّهُ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿٢٧﴾ |
| بلکه الله تعالیٰ زورور حکمت والا دے۔ |

**تفسیر**: دا بله طریقه د تعلیم او تبلیغ ده۔ په دے آیتِ کریمه کښې الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ ته حکم کړے چه هغه مشرکانو له ددے خبرے خبر ورکړی چه آخرت به راځی، او د حشر په میدان کښې به مونږ او تاسو ټول د الله په حضور کښې جمع کیږو، او هلته به هغه زمونږ ترمینځه د حق او انصاف مطابق فیصله کوی، او زمونږ نه هر یو ته به د هغهٔ د اعمالو بدله ورکوی، نو د هغه فیصلے دپاره تیارے وکړئ، که تاسو سره صحیح دلیل وی نو هغه پیش کړئ او که مونږ سره صحیح دلیل وی مونږ به ئے پیش کوو۔ مثلاً مشرك او موحد د الله مخے ته پیش شو، الله تپوس کوی موحده تا د الله بندگی یواځے ولے کوله او د بتانو او باباګانو عبادت دِے ولے نهٔ دے کړے؟، موحد به وائی چه اے الله! دا ستا امر وو، مشرك ته به وائی چه تا ولے شرك کړیدے؟ نو هغه به څه وائی؟ لږ سوچ خو وکړئ۔

مفسرین لیکی چه په دے کښې مشرکانو له د آخرت د عذاب دهمکی ورکړے شوے چه که دوئ د خپل کفر او شرك نه توبه نهٔ کړی نو د آخرت د عذاب انتظار دِے کوی۔

قُلْ أَرُونِيَ الَّذِينَ أَلْحَقْتُم : په دے آیتِ کریمه کښې د مشرکینو د معبودانو د دروغژن او باطل کیدو یو دلیل پیش کړے شوے۔ نبی ﷺ ته حکم شوے چه دوئ نه تپوس وکړی چه چالره تاسو د الله شریکان جوړوئ لږ خو وښایئ چه په دوئ کښې کوم یوه خوبی موندلے کیږی، چه د هغې په بنیاد باندے تاسو هغه د الله برخه دار جوړوئ ؟ بیا الله تعالیٰ خپله د شرك د رد په توګه جواب ورکړو چه دوئ په خپلو دروغژنو معبودانو کښې هیڅ یو صفت هم نشی ثابتولے، هیڅ یو داسے معبود نشی ښودلے چه هغه د الله نه سوئ نفع یا نقصان رسولے شی، دا خو صرف د الله تعالیٰ تنها ذات دے چه ډیر لوی عزت والا، په هر یو شئ باندے غالب او په خپلو تمامو کارونو کښې حکیم او پوهه دے۔

لکه سورة رعد (۳۳) آیت کښې تیر شوی وو ﴿قُلْ سَمُّوهُمْ﴾ یعنی د دوی صفتونه راښکاره کړئ چه دوی څه توره کړیده۔ نو پدے تپوس کښې د دوی زیات شرمول او غلے کول غرض دے چه دوی په خطائی روان دی۔

أَرُونِيَ: دا رُؤيتِ قَلْبِي دے په معنیٰ د علم او خبر سره، نو شُرَكَاءَ ئے مفعول ثالث دے۔ یا رُؤيَتِ بَصَرِي دے، یعنی ما ته ئے په سترګو راښکاره کړئ نو پدے وخت کښې به شركاء منصوب وی په حال سره یعنی په داسے حال کښې چه دوی شریکان دی د الله تعالیٰ سره۔ یعنی تاسو شریکان جوړ کړیدی د هغه سره۔

كَلَّا: ددے نه مخکښې عبارت پټ دے۔ أَيَقْضُونَ الْحَاجَةَ ؟ ۔ «آیا دوی څه حاجت پوره کولے شی»، هیڅکله نه۔

وَمَا أَرْسَلْنَاكَ إِلَّا كَافَّةً لِلنَّاسِ بَشِيرًا وَنَذِيرًا وَلَٰكِنَّ

او نهٔ ئے لیږلے مونږ ته مګر د ټولو خلقو دپاره زیرے ورکونکے او یره ورکونکے لیکن

أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿۲۸﴾ وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا الْوَعْدُ إِنْ كُنْتُمْ

ډیر د خلقو نه نهٔ پوهیږی۔ او وائی دوی کله به وی دا وعده (د قیامت) که یئ تاسو

صَادِقِينَ ﴿۲۹﴾ قُلْ لَكُمْ مِيعَادُ يَوْمٍ لَا تَسْتَأْخِرُونَ

رښتینی۔ اُووایه ! تاسو لره وعده د یوے ورځے ده چه نهٔ به روستو کیدلے شئ تاسو

عَنْهُ سَاعَةً وَلَا تَسْتَقْدِمُونَ ﴿۳۰﴾

د هغې نه یو ساعت او نهٔ به مخکښې کیدے شئ۔

**تفسیر** : د توحید د عقیدے بیانولو نه پس اُوس د رسالت عقیده بیانوی۔ الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ لره د تمامو انسانانو دپاره رسول جوړولو سره رالیږلے، دے دپاره چه هغه په هغهٔ باندے ایمان لرونکو او د هغهٔ اطاعت کونکو ته د جنت زیرے ورکړی، او د هغهٔ نافرمانئ کونکی د جهنم د اُور نه اُویروی۔

**كَافَّةً لِّلنَّاسِ** : ۱- کافة په معنیٰ د عَامَّةً او جَمِيْعًا سره حال دے د الناس نه۔او الناس اگرکه مجرور دے لیکن د حال مقدم کیدل پرے ابو علی الفارسیؒ، ابن کیسانؒ، ابن برهانؒ او ابن ملکونؒ جائز گرځولی دی، ابن عطیهؒ او محلیؒ ددے تائید کړیدے۔

او بخاریؒ او مسلمؒ د جابر ؓ نه یو حدیث روایت کړے چه په هغے کښ رسول الله ﷺ فرمایلی : [وَكَانَ النَّبِيُّ يُبْعَثُ إِلَى قَوْمِهِ خَاصَّةً وَبُعِثْتُ إِلَى النَّاسِ عَامَّةً] (هر یو نبی به خپل قوم دپاره رالیږل کیدهٔ، او زهٔ تمامو انسانانو دپاره نبی جوړیدو سره رالیږلے شوے یم)۔

[بخاری فی التیمم باب ۱، والصلاة باب ۵۶، والجهاد باب ۱۲۲) ومسلم فی المساجد حدیث ۳،۵،۷،۸]

او په صحیح مسلم کښ د جابر ؓ نه په یو روایت شوی حدیث کښ دی، رسول الله ﷺ وفرمایل : (زهٔ تور او سپین تولو دپاره رالیږلے شوے یم)۔

۲- یا كَافَّةً په معنیٰ د جَامِعًا سره دے حال د کاف د (أَرْسَلْنَاكَ) نه یعنی جمع کونکے ئے خلقو لره دین توحید ته۔ او تاء پکښ دپاره د مبالغے ده۔

۳- یا کافة په معنیٰ د مانع دے یعنی منع کونکے ئے خلکو لره د شرك او کفر نه۔

**وَلَكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ** : یعنی اکثر خلك نهٔ پو هیږی چه په رسولانو رالیږلو کښ څومره فائدے دی، او د هغوی په خبره منلو کښ د الله په نیز څومره خیر دے۔ د رسول الله ﷺ خبره منل خو جنت حاصلول دی، لیکن دا خلك د خپلے فائدے نه ناخبره دی او ستا خلاف کوی۔

**وَيَقُولُونَ** : د مکے کافرانو چه د قیامت او په دے ورځ د جزاء او سزا نه منکر وو، نبی کریم ﷺ او مسلمانانو نه به ئے د توقو په انداز کښ تپوس کولو چه هغه عذاب به کله راځی چه د هغے دهمکی تاسو ورکوئ؟ نو الله تعالیٰ نبی ﷺ ته وفرمایل : ته اُووایه چه دغه ورځ د الله په علم کښ مقرر ده، کله چه هغه راشی نو ستاسو د غوښتلو باوجود به نهٔ یوه لمحه روستو کیږی دے دپاره چه تاسو د خپل کفر او شرك نه توبه کړئ، او نهٔ به د

چا په وړيلو سره يوه لمحه مخکښې کيږي.

ربط ئې دا دے چه مخکښې د رسول الله ﷺ د رسالت رشتينوالے بيان شو نو اوس د قيامت منکرينو ته رټنه ورکوي. د دوی دا خيال وو که تهٔ د الله رسول ئې نو غيبدان به ئې، نو ددے وجه نه مونږ له د وخت نه د عذاب خبر راکړه.

| وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَنْ نُّؤْمِنَ بِهٰذَا الْقُرْآنِ وَلَا |
|---|
| او وائي هغه کسان چه کفر ئې کړيدے هيچرے ايمان نهٔ راوړو مونږ په دے قرآن او نهٔ |
| بِالَّذِيْ بَيْنَ يَدَيْهِ وَلَوْ تَرٰى اِذِ الظّٰلِمُوْنَ مَوْقُوْفُوْنَ |
| په هغے چه مخکښې ددے نه دے او که چرته تا ليدلے کله چه ظالمان به اودرولے شي |
| عِنْدَ رَبِّهِمْ يَرْجِعُ بَعْضُهُمْ اِلٰى بَعْضِ الْقَوْلَ يَقُوْلُ |
| په نيز د رب د دوی، ورګرځوی به بعض د دوی بعضو ته خبره (جوابونه) وُبه وائي |
| الَّذِيْنَ اسْتُضْعِفُوْا لِلَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْا لَوْلَا |
| هغه کسان چه کمزوری ګڼړلے شويدی هغه کسانو ته چه لوئي ئې کړيده که چرته |
| اَنْتُمْ لَكُنَّا مُؤْمِنِيْنَ ﴿۳۱﴾ قَالَ الَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْا |
| تاسو نهٔ وے (نو) خامخا وے به مونږ مؤمنان. وُبه وائي هغه کسان چه لوئي ئې کړيده |
| لِلَّذِيْنَ اسْتُضْعِفُوْا اَنَحْنُ صَدَدْنٰكُمْ عَنِ الْهُدٰى |
| هغه کسانو ته چه کمزوری ګڼړلے شويدی آيا مونږ منع کړی وئ تاسو د هدايت نه |
| بَعْدَ اِذْ جَآءَكُمْ بَلْ كُنْتُمْ مُّجْرِمِيْنَ ﴿۳۲﴾ وَقَالَ الَّذِيْنَ |
| پس د هغے نه چه راغلے وو تاسو ته بلکه وئ تاسو مجرمان. او وائي به هغه کسان |
| اسْتُضْعِفُوْا لِلَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْا بَلْ |
| چه کمزوری ګڼړلے شويدی هغه کسانو ته چه لوئي ئې کړيده بلکه (منع کړی وو مونږ |
| مَكْرُ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ اِذْ تَاْمُرُوْنَنَآ اَنْ نَّكْفُرَ |
| لره) چلونو ستاسو د شپے او د ورځے کله چه به حکم کولو تاسو مونږ ته چه کفر اوکړو |

| بِاللّٰهِ وَنَجْعَلَ لَهٗۤ اَنْدَادًا ؕ وَاَسَرُّوا النَّدَامَةَ لَمَّا |
|---|
| په الله باندې او اُوګرځوو هغه لره شریکان او پټه به کړي دوي پښیمانتیا هر کله |
| رَاَوُا الْعَذَابَ ؕ وَجَعَلْنَا الْاَغْلٰلَ فِیْۤ اَعْنَاقِ الَّذِیْنَ |
| چه اُووینی عذاب او وُبه ګرځوو مونږ طوقونه په څټو د هغه کسانو کښې |
| كَفَرُوْا ؕ هَلْ یُجْزَوْنَ اِلَّا مَا كَانُوْا یَعْمَلُوْنَ ﴿۳۳﴾ |
| چه کفر ئې کړیدې. سزا نهٔ ورکړے کیږي دوي ته مګر د هغې عملونو چه دوي ئې کوي. |

**تفسیر**: ربط : د الله د حمد تقاضا دا ده چه الله تعالیٰ به انسانانو ته رسولان او کتابونه رالیږي، نو مشرکان د الله تعالیٰ کمال حمد نهٔ مني پدې وجه د الله د تولو کتابونو نه انکار کوي.

نبي کریم ﷺ او صحابه کرامؓ او کله بعض مسلمانانو کتابیانو به د مکې د کافرانو سره د توحید او رسالت او د آخرت خبره کوله او کله به ئې د دوي په خلاف باندې په تورات او انجیل سره دلیل نیولو او دا به ئې ونیل چه د قرآن کریم غونته تورات او انجیل هم په دې عقائدو باندې د ایمان راوړو دعوت ورکړے، نو هغوئ به په کبر او عناد کښې راغلل وئیل به ئې چه مونږ نهٔ قرآن آسماني کتاب ګڼړو او نهٔ هغه کتابونه چه هغه ددې نه مخکښې نازل شوي دي. لکه سورة القصص (۴۸) آیت کښې ذکر شوي وو چه دوي به وئیل ﴿ سِحْرٰنِ تَظٰهَرَا وَاِنَّا بِكُلٍّ كٰفِرُوْنَ ﴾ تورات او قرآن دواړه جادو دي چه د یو بل تائید او مدد ئې کړیدې او دا دواړه مونږ نهٔ منو.

او مخکښې به د مکې مشرکانو په اهل کتابو باندې اعتماد کولو خو کله چه د هغوي نه ئې واوریدل چه زمونږ په کتابونو کښې هم د شرك رد شویدې او د رسول الله ﷺ صفت پکښې شویدې، نو دې مشرکانو د هغه کتابونو نه هم انکار شروع کړو او د خپلو مشرانو تابعداري ئې په دلیل کښې ونیوله.

**وَلَوْ تَرٰۤی اِذِ الظّٰلِمُوْنَ**: نو اُوس دوي ته د آخرت یره بیانوي په براءت د باطلو آلِهو چه د دوي مشران دي.

دلته الله تعالیٰ د کافرانو هغه حال بیان کړیدې چه د دوي به په میدان محشر کښې جوړیږي او دوي ته ئې په دنیا کښې د غور او فکر دعوت ورکړے شاید چه ایمان راوړي.

نبی کریم ﷺ ته خطاب کولو سره وئیلے شوی چه د کافرانو دے وسیٔ به خنگه ننداره کیږی، هر کله چه دویٔ د رب العالمین مخے ته خوار او ذلیل ودریږی، او خپل تیارهٔ انجام په خپلو سترگو ووینی او د خلاصیٔ هیڅ درك ونهٔ مومی نو په خپلو کښ به په جگړه شی، او د دنیوی مقام او مرتبے په لحاظ سره کمزوری کافران چه هغویٔ په دنیا کښ د کفر د مشرانو پیروی کړے وه او ایمان ئے نهٔ وو راوړے، دغه مشرانو ته به وائی چه که تاسو مونږه د ایمان راوړو نه منع کړی نهٔ وے، نو مونږ به اسلام قبول کړے وے، او نن به زمونږ دا حالت نهٔ وے، نو د کفر سرداران به د دویٔ د دعوے نه انکار وکړی او وبه وائی چه مونږ تاسو د حق د تابعداریٔ نه هیڅ کله نهٔ ویٔ منع کړی، تاسو خپله مجرمان او فسادیان ویٔ، دے وجے نه کله چه مونږ تاسو خپلے پیرویٔ ته را اوبللیٔ نو تاسو فوراً زمونږ دعوت قبول کړو، او د خپل خواهش تابعداری مو وکړه او د رسولانو دعوت مو رد کړو۔ نو کشران تابعداری کونکی کفار به وائی چه خبره هغه صحیح ده کومه چه مونږه وئیلے ده، تاسو خو به شپه او ورځ د الله او د هغهٔ د رسول خلاف سازشونه کول، او د خپلے سرداریٔ او مشریٔ رُعب سره به مو مونږ ته حکم کولو چه د هغهٔ دین نه انکار وکړیٔ او دروغژن معبودان د هغهٔ سره برخه دار جوړ کړیٔ۔

اُسْتُضْعِفُوا : دوی په علم او عقل کښ کمزوری وو او د مشرانو تابعداری ئے کوله، او صیغه د مجهول ئے ددے وجه نه راوړه چه دے مشرانو دوی ته علم نهٔ خودلو، جاهل ئے پریخودل دپاره ددے چه هغوی ترے نه خپلے فائدے حاصلے ی۔ لکه اُوس هم دیر باطل پرست ملیان وائی چه دا عوام مهٔ هوښیاروئ بیا به ترے اړے او فائدے نهٔ حاصلیږی۔

صَدَدْنَاكُمْ عَنِ الْهُدَى: د هدایت نه مراد قرآن کریم دے۔ او مطلب دا دے چه مونږ تاسو باندے څه زور نهٔ وو کړے او نهٔ مو څه صحیح دلیل پیش کړے وو بلکه تاسو د جرم کارونه خوښ کړی وو نو پدے وجه مونږ پسے بی دلیله راروان ویٔ۔

بَلْ كُنْتُمْ مُجْرِمِينَ: ددے نه معلومه شوه چه کشران او مقتدیان هم مجرمان وی، که دوی کښ خپل ضد او عناد او کینه د حق سره نهٔ وے نو کوم ملا دا د لاس نه نیولے وو چه حق له مهٔ ورځه، نو دوی کښ هم فساد دے نو دا خبره کول چه «الا بلا بگردن مولا» صحیح نهٔ ده بلکه «نیکی بدی بگردن مقتدی» صحیح ده۔

بَلْ مَكْرُ اللَّيْلِ: اَیْ بَلِ الصَّادُّ لَنَا مَكْرُكُمْ بِاللَّيْلِ وَالنَّهَارِ۔ بلکه خبره همداسے ده چه مونږ لره منع کونکے شے ستاسو مکرونه او چلونه وو د شپے او د ورځے، مونږ پسے به مو

کښتونه کول، او تقريرونه او جلسے او جلوسونه به مو کول د حق په خلاف، او دا به مو وئيل چه دا نوے خلك دے او نوے مسئلے ئے راوړيدی، او مذهب نهٔ منی او د پلار نيکه لاره راتښنگه کړیٔ. ډير خلك د قرآن د درسونو د بندولو دپاره د شپے کښتونه کوی چه دے مسجد کښ دا قرآن بيانيږی چه دا به څنگه بنديږی، والله المستعان ولا حول ولا قوة الا بالله.

إِذْ تَأْمُرُونَنَا : دا د مکر تشريح ده يعنی ستاسو مکرونه دا وو چه مونږ ته به مو حکم کولو او بيانونه به مو کول چه مونږ په الله کفر وکړو او د هغهٔ د حق نه انکار وکړو.

وَنَجْعَلَ لَهُ أَندَادًا : دا د کفر تشريح ده. يعنی د الله سره شريکان جوړول په الله باندے کفر دے.

وَأَسَرُّوا النَّدَامَةَ: د ورو او غټو کافرانو ددے پورتنی تکرار نه پس چه کله دوئ دپاره د جهنم تيار کړے عذاب د دوئ مخے ته پيش کړے شی نو د غم او آفسوس نه به د دوارو ډلو زړونه ډك شی، ليکن د دشمنانو د خندا د ويرے نه به يو بل ته خپل دننه حال نهٔ بيانوی.

أَسَرُّوا: دا د اضدادو نه دے، کله ئے معنیٰ د پټولو او کله د ښکاره کولو ده. او دا د أَسِرَّةُ الْوَجْهِ او أَسَارِيرُ الْوَجْهِ نه دے، د تندی کرخو ته وئيلے شی.

[اَیْ تَبَيَّنَتِ النَّدَامَةُ فِیْ أَسِرَّةِ وُجُوْهِهِمْ] ـ يعنی ښکاره به شی آثار د خپيمانتيا د دوی په تندو او مخونو کښ. کشران به د مشرانو په ړوند تقليد باندے خپيمانه شی او مشران به د گمراهئ په دعوت کولو باندے.

وَجَعَلْنَا الْأَغْلَالَ : او د کافرانو په څټونو کښ به زنځيرونه واچولے شی او د هغوئ لاسونه به وتړلے شی، او دا هر څهٔ به د دوئ د خپلو کړو انجام وی.

د کفر سرداران او د هغوئ پيروی کونکو کښ به هر يو د خپلو جرمونو مطابق په عذاب کښ واچولے شی.

[لِاَنَّهُمْ طَوَّقُوْا أَعْنَاقَهُمْ أَغْلَالَ الشِّرْكِ وَالضَّلَالِ] ځکه چه دوی په دنيا کښ خپلو څټونو ته د شرك او گمراهئ طوق اچولے وو، او تقليد ئے کړے وو، نو د هغے مطابق سزا ورکړے شوه.

الْأَغْلَالَ : قرطبیؒ ليکی : اغلال په اصل کښ هغه پټئ ته وئيلے شی چه د څرمنے نه وی او په هغے باندے ويخته وی، او بيا پکښ سپږے پيدا شی نو دا د ذليلانو خلکو ښه

ده او سپو تـه اچولے کیږی، او هغـه طوق تـه وئیلے کیږی چه لاس د ښټ سره راجمع کوی۔ او چونکه دوی هم د حق او د مؤمنانو پسے غپلی وو نو ځکه ورته د سپو په شان پټئ وراچوی۔

| وَمَا أَرْسَلْنَا فِي قَرْيَةٍ مِّن نَّذِيرٍ إِلَّا قَالَ مُتْرَفُوهَا |
|---|
| او نهٔ دے رالیږلے مونږ په یو کلی کښ یره ورکونکے مګر وئیلی دی مستانو (مالدارو |
| إِنَّا بِمَا أُرْسِلْتُم بِهِ كَافِرُونَ ﴿۳۴﴾ |
| خلقو) د هغے یقیناً مونږ په هغه څه چه تاسو پرے رالیږلے شوی یئ کفر نکی یو۔ |
| وَقَالُوا نَحْنُ أَكْثَرُ أَمْوَالًا وَأَوْلَادًا وَمَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِينَ ﴿۳۵﴾ قُلْ |
| او واٸی دوی مونږ ډیرو مالونو او اولاد والا یو او نهٔ یو مونږ عذاب راکړے شوی۔ اُووایه |
| إِنَّ رَبِّي يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَن يَشَاءُ وَيَقْدِرُ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿۳۶﴾ |
| یقیناً رب زما فراخوی رزق چا له چه اُوغواړی او کموی ئے لیکن ډیر د خلقو نه نهٔ پو هیږی۔ |

**تفسیر**: راتلونکو آیتونو کښ د مخکنو قومونو د عیش پرستانو او د انبیاء کرامو سره د دوئ د خراب سلوک او په کفر او شرک باندے د دوئ د ټینګ پاتے کیدو حال بیانیږی او نبی کریم ﷺ له تسلی ورکړے شوے چه د قریشو د مشرکانو په کفر او شرک سره دِ ے ستا زړهٔ مات نشی، ځکه چه د هر دور د کفر سردارانو د خپلو انبیاؤ سره دغسے سلوک کړے۔

الله تعالیٰ فرمائی چه مونږ کله هم د یو کلی والو دپاره کوم نبی لیږلے نو د هغوئ سردارانو، عیش پرستانو او فاسق او فاجرو لیډرانو هغهٔ ته وئیلی چه تهٔ د کوم ایمان بالله او د الله تعالیٰ د وحدانیت خبره کوے، مونږ ددے خبرو نه سراسر انکار کوو، او که لږ وخت دپاره مونږ ومنو هم چه قیامت به راځی، او څهٔ خلقو له به عذاب ورکړے کیږی، نو مونږ به د دغه خلقو نه نهٔ یو، ځکه چه کله الله تعالیٰ مونږ له دلته مال او اولاد راکړے، نو په آخرت کښ هغه مونږ له عذاب نهٔ راکوی۔ که چرے مونږ د الله په نظر کښ ښهٔ نهٔ

وے نو مونږ له به ئے دلته خپل نعمتونه نۀ راکولے، او د ایمان دعویٰ کونکی که د هغۀ په نظر کښې بد نۀ وے، نو هغوئ له به ئے دلته د خپلو نعمتونو نه محروم نۀ ساتلے۔

نَحْنُ أَكْثَرُ أَمْوَالًا : دا د دوی د باطل مذهب او شرك او د نبی په خلاف باندے د حقانیت دلیل نیول وو، چه که مونږ د الله دوستان نۀ وے نو مال او اولاد به ئے نۀ راکولے، نو د دنیا او اولاد ډیریدل او کمیدل ئے د حق پرستئ او باطل پرستئ نښه جوړه کړے وه۔

قُلْ إِنَّ رَبِّي يَبْسُطُ الرِّزْقَ : اُوس جواب ورکوی چه د مال او اولاد ډیر والی د حق پرستئ نښه نۀ ده بلکه د رزق فراخي او کمي د الله د مشیت او حکمت سره تعلق لری هغه چه چا له غواړی رزق زیاتوی، او چا له چه غواړی رزق کموی، او پدے کښې مقصد امتحان دے په بندګانو باندے، په دنیا کښې ښۀ او بد تول د رزق په فراخئ او تنګئ کښې برابر دی۔ د چا په روزئ کښې فراخي هیڅ کله ددے خبرے دلیل نۀ دے چه دا د الله تعالیٰ محبوب بنده دے، او نۀ د چا په روزئ کښې تنګی د الله په نیز ددۀ د مبغوض کیدو دلیل دے، لیکن زیاتره خلق دا خبره نۀ پیژنی، او د همدوئ نه دا خلق دی چه د دنیا په کامیابئ باندے د آخرت کامیابی قیاس کوی۔ بلکه د حق پرستئ او باطل نښه دا ده چه که تۀ الله تعالیٰ په خپل دین کښې استعمالولے نو تۀ د الله دوست ئے، او که دین ته ئے نۀ راوستے نو د الله دشمن ئے، لیکن اکثر خلك نۀ پوهیږی په امتحان۔

وَمَا أَمْوَالُكُمْ وَلَا أَوْلَادُكُمْ بِالَّتِي تُقَرِّبُكُمْ عِنْدَنَا

او نۀ دی مالونه ستاسو او نه اولاد ستاسو په هغه طریقه چه رانزدے کړی تاسو مونږ ته

زُلْفَىٰ إِلَّا مَنْ آمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا فَأُولَٰئِكَ

په نزدیکت سره مګر هغه څوك چه ایمان ئے راوړیدے او عمل ئے کړے نیك نو دغه کسان

لَهُمْ جَزَاءُ الضِّعْفِ بِمَا عَمِلُوا وَهُمْ فِي الْغُرُفَاتِ آمِنُونَ ﴿۳۷﴾

دوی لره بدله دوچنده ده په وجه د عملونو د دوی او دوی به په بنګلو کښې امن والا وی۔

**تفسیر** : دا دویم جواب دے یعنی د کفر او د شرك په موجودګئ کښې د چا مال او اولاد سبب د نزدیکت الله تعالیٰ ته نشی کیدے، یعنی که مالونه ئے ډیر وی یا مالونه خرچ کوی، او دارنګه که اولاد ئے ډیر وی یا اولاد ورته دعاګانے کوی خو د کافرانو دپاره پدے سره قربت او ثواب نۀ حاصلیږی۔

بِالَّتِيْ : دا خبر د (مَا) دے او په خبر کښې کله کله باء د تاکيد دپاره داخليږي.
زُلْفىٰ دا په معنىٰ د قربت (نزديکت) او مرتبے سره دے، او دا مفعول مطلق من غير لَفْظِهٖ دے. معنى داده چه ستاسو مالونه او اولاد په هغه درجه کښې نهٔ دي چه تاسو مونږ ته ډير رانژدے کړي په مرتبه کښې ځکه چه مال او اولاد خو د الله په اختيار کښې دي چه هغه چاته څومره ورکوي، د هغهٔ خوښه ده، بلکه الله تعالىٰ ته د نزديکت او د قدرت او قيمت والا شے ايمان او عمل صالح دے چه انسان ئے په خپل اختيار سره وکړي.
د ايمان راوړو نه پس چه کوم شخص د څومره فرائضو او واجباتو پابندي کوي، او د نوافلو او د خير د نورو کارونو اهتمام کوي، هغومره به هغه خپل رب ته نژدے کيږي، او دوئ له به د دوئ د نيکو عملونو دوچنده، لس چنده او ددے نه زيات اجر ملاويږي، او دوئ به د قيامت په ورځ د مرگ او د هر شر نه په امن باندے د جنت په اوچتو او دنگو بالا خانو کښې وسيږي.
اِلَّا مَنْ آمَنَ وَعَمِلَ صَالِحاً: دا استثناء منقطع ده او خبر ئے (فَاُولٰٓئِكَ لَهُمْ) دے. او جواب د سوال دے چه مال او اولاد الله تعالىٰ ته د نزديکت سبب نشي کيدے، نو بيا په څه سره الله ته نزديکت حاصليږي؟ نو جواب وشو ليکن چا چه ايمان او عمل صالح اختيار کړو نو دا کسان دوي دپاره دوچنده جزاء ده. الخ.
يا استثناء متصل ده اَيِ الْاَمْوَالَ وَاَوْلَادَ مَنْ آمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا] مگر مالونه او اولاد د مؤمن هغه له الله تعالىٰ ته نژدے کولے شي چه مالونه د الله تعالىٰ په لاره کښې خرچ کړي او اولاد ئے صالح وي، نو دا د هغه د پاره سبب د قربت او ثواب دے.
جَزَاءُ الضِّعْفِ : ضِعْف نه مراد زيادت دے، صرف دوچنده نهٔ دے مراد ځکه چه د نيکئ بدله د لسو نه شروع کيږي. او ضِعف په معنىٰ د جمع سره دے. يعنى بدله د ډيرو چندونو ده.
فِيْ الْغُرُفَاتِ آمِنُوْنَ: اشاره ده چه مال او اولاد معمولي شے دے او زر ختميدو والا دي، او امن پکښې نشته، او په نيك عمل او ايمان کښې امن، جنت او په ډيرو چندونو اجرونه دي.
الْغُرُفَاتِ: ئے جمع راوړه دلالت کوئ په کثرت (ډيروالى) باندے.

| وَالَّذِيْنَ يَسْعَوْنَ فِيْ آيَاتِنَا مُعَاجِزِيْنَ اُولٰٓئِكَ فِيْ |
| --- |
| او هغه کسان چه کوشش کوي په آيتونو زمونږ کښې مقابله کونکي، دغه کسان به په |

| الْعَذَابِ مُحْضَرُوْنَ ﴿۳۸﴾ قُلْ إِنَّ رَبِّيْ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَاءُ مِنْ |
|---|
| عذاب کښې حاضر کړے شي. اُووايه ! يقيناً رب زما فراخوي رزق چا له چه اُوغواړي د |
| عِبَادِهٖ وَيَقْدِرُ لَهٗ وَمَا اَنْفَقْتُمْ مِّنْ شَيْءٍ |
| بندګانو خپلو نه او کموي ئے هغه له او هغه چه خرچ کوئ تاسو څه شے |
| فَهُوَ يُخْلِفُهٗ وَهُوَ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ ﴿۳۹﴾ |
| نو هغه (الله) ئے بدله ورکوي د هغے او هغه غوره د رزق ورکونکو نه دے. |

**تفسیر**: په آخرت کښې د مومنانو حال بيانولو نه پس اُوس د کافرانو حال بيانيږي.
ربط دا دے چه دوی له مال او اولاد څکه فائده نۀ ورکوي چه دوی د الله د آيتونو نه انکار کړے د هغه دشمنان دي نو په مال او اولاد سره دوی د الله د عذاب نه نشي خلاصيدے.
يعني مال او اولاد مکذبينو ته فائده نۀ ورکوي.
الله فرمائي : چه کوم خلق زمونږ د آيتونو نه انکار کوي، او ددے په باره کښې د خلقو په زړونو کښې شبهات پيدا کوي، او دا ګمان کوي چه دوئ به زمونږ نه بچ شي، يا دا اراده لري چه د الله تعالیٰ آيتونه مغلوبه کړي نو دوئ لپاره د جهنم عذاب تيار شوے چه ددے نه به دوئ خلاصے ونۀ مومي.
قُلْ إِنَّ رَبِّيْ : دا دريم جواب دے يعني مالداري غريبي د الله تعالیٰ د طرف نه په ايمان والو کښې هم شته نو ستاسو دپاره دليل د فضيلت نشي کيدے. او د تکرار وجه هم دا ده چه مخکښې آيت د کافرانو په باره کښې وو، او دا آيت د مؤمنانو په باره کښې دے څکه ئے دلته (مِنْ عِبَادِهٖ) لفظ زيات راوړے دے. او دا ئے دلته ددے دپاره هم راواپس کړو چه مخکښې د مال او اولاد بدي بيان شوه چه دا الله ته څوك نشي نزدے کولے نو مال به هيڅ شے نۀ وي، خير خيرات او زکاة ورکول به هيڅ شے نۀ وي، نو الله تعالیٰ پدے آيت کښې دفع ددے وَهم کوي چه مال لګول ډير د نيکئ کار دے، د هغے عوض هم شته، الله ئے فراخه کول او تنګول هم کوي مال لګولو کښې مؤمن له ډيره فائده شته ليکن د کافر دپاره فائده مند نۀ دے. او دا ډير ښکلے بيان او ذهن سازي ده.
وَمَا اَنْفَقْتُمْ: دا بيان د مؤمن په باره کښې وو پدے وجه مؤمنانو ته خطاب هم کوي پس د غائب ذکر کولو نه.

یعنی تاسو چه په نیکو کارونو کښې چه هر څومره خرچ وکړئ الله تعالیٰ په دنیا او آخرت کښې تاسو له هغومره درکوي، او په آخرت کښې ددې بنۀ اجر ورکوي۔

بخاريؒ او مسلمؒ د ابو هريره ﷺ نه حديثِ قدسي روايت کړې، الله تعالیٰ وائي :

[ يَا ابْنَ آدَمَ ! أَنْفِقْ أُنْفِقْ عَلَيْكَ] (اے د آدم ځويه ! خرچ کوه، زۀ به په تا باندې خرچ کوم)۔

(بخاري : ٥٣٥٢) مسلم (٢٣٥٥)

او دوئ د ابو هريره ﷺ دا حديث هم روايت کړے چه (هر سهار دوه ملائک راکوزيږي، يو وائي : [اَللّٰهُمَّ اَعْطِ مُنْفِقًا خَلَفًا] اے الله ! خرچ کونکي (مؤمن) ته ددې عوض ورکړه۔ او بل وائي : اے الله ! د بخيل مال ضائع کړه]۔ (بخاري : ١٤٤٢) مسلم (٢٣٨٣)

فَهُوَ يُخْلِفُهُ : الله تعالیٰ عوض ورکوي هغۀ ته په دنيا او آخرت کښې۔

وَهُوَ خَيْرُ الرَّازِقِيْنَ: هرکله چه انسانانو کښې هم دا صفت استعماليږي چه پلار اولاد له رزق ورکوي او بادشاه لښکر ته نو ددې وجه نه ئې رازقين د جمع صيغه راوړه۔

او الله (خَيْرُ الرَّازِقِيْنَ) ددې وجه نه دې چه هغه اسباب د رزق پيدا کوي، هميشه رزق ورکوي، هر چا ته ئې ورکوي، هغه رزق پيدا کونکے دے، هغه پرې عوض نۀ غواړي۔

| وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ جَمِيْعًا ثُمَّ يَقُوْلُ لِلْمَلٰٓئِكَةِ أَهٰٓؤُلَاۤءِ |
|---|
| او په کومه ورځ چه راجمع به کړي دوی لره ټول بيا به اُووائي ملائکو ته آيا دا کسان |
| إِيَّاكُمْ كَانُوْا يَعْبُدُوْنَ ﴿٤٠﴾ قَالُوْا سُبْحٰنَكَ أَنْتَ وَلِيُّنَا |
| خاص تاسو له ئې عبادت کولو۔ وبه وائي دوی پاکي ده تا لره ته زمونږ واکدار ئې |
| مِنْ دُوْنِهِمْ بَلْ كَانُوْا يَعْبُدُوْنَ الْجِنَّ أَكْثَرُهُمْ بِهِمْ |
| غير د دوی نه بلکه دوی به عبادت کولو د پيريانو، ډير د دوی نه په هغوی باندې |
| مُّؤْمِنُوْنَ ﴿٤١﴾ فَالْيَوْمَ لَا يَمْلِكُ بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ نَّفْعًا وَّلَا ضَرًّا |
| يقين کونکي وو۔ نو نن ورځ اختيار نۀ لري بعض ستاسو بعضو لره د نفع او نۀ د نقصان |
| وَنَقُوْلُ لِلَّذِيْنَ ظَلَمُوْا ذُوْقُوْا عَذَابَ النَّارِ الَّتِيْ |
| او وبه وايو مونږ هغه کسانو ته چه ظلم ئې کړيدے اُوڅکئ عذاب د اُور هغه |

كُنْتُمْ بِهَا تُكَذِّبُوْنَ ﴿٤٢﴾

چه وئ تاسو چه هغه به مو دروغژن گنړلو۔

**تفسیر**: دا تخویف اُخروی دے، رد دے په مشرکین بالملائکه باندے۔ او دا متعلق دے د ﴿وَالَّذِيْنَ يَسْعَوْنَ فِيْٓ اٰيٰتِنَا﴾ سره، یعنی د قرآن خلاف چه څوك كوي اُورته به څې نو سوال پیدا شو چه د مشرکانو خو باباگان شته او بیا خاصکر د ملائکو عبادت کوی، هغه بنات الله گنړی، او ملائك خو د الله په دربار كښې مُقرب مخلوق دے هغه به ئے خلاص کړی؟ نو الله جواب کوی چه دوی نۀ مشران خلاصولے شی او نۀ ئے معبودان خلاصولے شی۔

دارنگه ددے آیت تعلق په (۳۱) آیت کښې د﴿ وَلَوْ تَرٰٓى اِذِ الظّٰلِمُوْنَ مَوْقُوْفُوْنَ ﴾ سره دے، او خطاب نبی کریم ﷺ ته دے، او معنیٰ دا ده چه ته هغه ورځ رایاده کړه کله چه به الله تعالیٰ تمام انسانان او پیریان د حشر په میدان کښې یو ځای کړی، بیا به د کافرو د رټنے اوملامتــه کـولو دپاره ملائكو ته خطاب وکړی (چه دوئ لره مشرکانو د الله لونړه گنړلے وے او د دوئ عبادت بــه ئے کـولـو) او وبــه وائی چه اے ملائکو ! آیا تاسو زما پشان معبودان یئ، او آیا دے خلقو به ستاسو عبادت کولو؟ نو ملائك به فوراً د الله نه سوئ د معبود کیدو نه د خپلے بیزارئ اظهار وکړی او د الله پاکی بیانولو سره به ووائی چه ته زمونږ مولیٰ ئے، مونږ ستا بندگان یو او صرف ستا عبادت کوو۔ مونږ دوئ ته هیڅ کله نۀ دی وئیلی چه دوئ دے زمونږ عبادت وکړی، دے خلقو په حقیقت کښې د ابلیس او د نورو شیطانانو عبادت کولو، او په دوئ کښې زیاتره خلقو به د دوئ خبره منله۔

اَهٰٓؤُلَآءِ اِيَّاكُمْ كَانُوْا يَعْبُدُوْنَ : ددے تپوس مقصد به دا وی چه (دوی ستاسو عبادت کولو ستاسو په امر او تاسو پدے رضا وئ؟)

قَالُوْا سُبْحٰنَكَ : یعنی ددے جواب حاصل دا دے چه مونږ خو تا د شریکانو نه پاك گنړو۔ او تا ته محتاج یو په مدد کښې نو مونږ به بل چا ته څنګه د شرك امر وكړو چه راشئ زمونږ عبادت وکړئ او مونږ به د بل سره څه مدد وکړو۔ اَىْ كُنَّا نَعْتَقِدُ اَنَّهٗ لَا نَاصِرَ لَنَا وَلَا مَعْبُوْدَ لَنَا سِوَاكَ فَكَيْفَ نَأْمُرُ غَيْرَنَا بِالشِّرْكِ] یعنی زمونږ خو دا عقیده وه چه زمونږ دپاره هیڅ مددگار او زمونږ بل هیڅ معبود ستا نه سوئ نشته نو مونږ به بل چا ته د شرك څنګه حکم وکړو۔

بَلْ كَانُوا: سوال پیدا شو چه دوی بیا د چا عبادت کولو؟ نو ملائك به ووائی چه دے خلکو د پیریانو عبادت کولو، او هغوی ورته شیطانی کړے وه چه د ملائکو عبادت وکړئ ملائك د الله لونړه دی۔ دا خبره ورته هغوی خودلے ده، کله به ئے ورته آواز وکړو چه مونږ ملائك یو او مونږ د الله لونړه یو، او کله به د دوی په بتانو کښې ننوتل او د هغے نه به ئے خلکو ته آوازونه کول۔

دا صریح دلیل دے چه ملائك جدا دی د جناتو نه نو څوك چه وائی چه ابلیس د جناتو نه وو او جن نوع د ملائکو ده نو دا قول غلط دے۔

أَكْثَرُهُم بِهِم مُّؤْمِنُونَ: دا صحیح خبره ده چه اکثر انسانان د پیریانو پسے روان دی، څوك ئے قدرتونه منی، څوك ورله علم غیب ثابتوی، څوك د هغوی نه مددونه غواړی او تعویذونه او ګنډے او جادو پرے راوباسی، او څوك ئے خلکو پسے لیږی، ځان دپاره ئے تابع کړی وی، د هغوی عبادتونه او بندګیانے کوی۔ اکثر انسانان د پیریانو په وجه کافر شویدی۔

فَالْيَوْمَ لَا يَمْلِكُ بَعْضُكُمْ: مفسر ابو السعودؒ لیکی چه کله ملائك د محشر په میدان کښې د معبود کیدو نه د خپلے بیزاریٔ اعلان وکړی، نو الله تعالیٰ به د مشرکانو د افسوس او نا امیدیٔ زیاتولو دپاره او ددے خبرے ښکاره کولو دپاره چه دا ملائك د هغهٔ عاجز بندګان دی، دویٔ ته مخاطب شی او به وائی چه نن ورځ په تاسو کښې هیڅوك د هیچا دپاره د نفع یا نقصان اختیار نهٔ لری، او بیا به مشرکانو ته ووائی چه اُوس اُوڅکئ د جهنم هغه عذاب چه هغه به تاسو په دنیا کښې دروغژن ګنړلو۔

نو دوی یو په شرك سره راګیر شو، او بل د انکار د آخرت په وجه او مخکښې تیر شو چه د مخالفت د رسول په وجه هم۔

النَّارِ الَّتِي كُنتُم بِهَا تُكَذِّبُونَ: **فائده**: په سورة السجده (۲۰) آیت کښې ﴿الَّذِیْ كُنْتُمْ بِهٖ تُكَذِّبُوْنَ﴾ ذکر شویدے او دلته (بِهَا تُكَذِّبُوْنَ) دے، ددے وجه دا ده چه هلته ضمیر راجع دے عذاب ته او هغه مذکر دے، او دلته ضمیر (نار) ته راجع دے او هغه مؤنث دے، او بیا وجه د فرق دا ده چه سورتِ سجده کښې ذکر د داسے حالت دے چه دوی اُور ته داخل شویدی نو عذاب ئے ولیدو نو د هغے انکار ختم شو او دلته د حشر حالت دے اُور ته نهٔ دی داخل شوی نو اول به دوی اُور وینی ځکه چه هغه محسوس دے، ښکاره کیږی نو انکار د اُور نه به ختم شی۔ (احسن الکلام)

| وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا بَيِّنَاتٍ قَالُوا مَا هَٰذَا إِلَّا |
|---|
| او کله چه لوستلے کیږی په دوی باندے آیتونه زمونږ واضحه وائی دوی نه دے دا مګر |
| رَجُلٌ يُرِيدُ أَنْ يَصُدَّكُمْ عَمَّا كَانَ يَعْبُدُ آبَاؤُكُمْ |
| سړے دے غواړی چه منع کړی تاسو د هغے نه چه عبادت ئے کولو پلارانو ستاسو |
| وَقَالُوا مَا هَٰذَا إِلَّا إِفْكٌ مُفْتَرًى وَقَالَ الَّذِينَ |
| او وائی دوی نه دے دا مګر دروغ دی جوړ کړے شوی او وائی هغه کسان |
| كَفَرُوا لِلْحَقِّ لَمَّا جَاءَهُمْ إِنْ هَٰذَا إِلَّا سِحْرٌ |
| چه کفر ئے کړیدے په باره د حق کښ هرکله چه ورته راغلو نه دے دا مګر جادو دے |
| مُبِينٌ ﴿٤٣﴾ وَمَا آتَيْنَاهُمْ مِنْ كُتُبٍ يَدْرُسُونَهَا |
| ښکاره۔ او نه دی ورکړی مونږ دوی ته کتابونه چه دوی لوستلی هغے لره (چه په هغے کښ |
| وَمَا أَرْسَلْنَا إِلَيْهِمْ قَبْلَكَ مِنْ نَذِيرٍ ﴿٤٤﴾ |
| دلیل د شرك وی) او نه دے رالیږلے مونږ دوی ته مخکښ ستا نه څوك یره ورکونکے۔ |
| وَكَذَّبَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ |
| (چه هغه ورته شرك مباح کړے وی) او تکذیب کړیدے هغه کسانو چه مخکښ د دوی نه دی |
| وَمَا بَلَغُوا مِعْشَارَ مَا آتَيْنَاهُمْ |
| او نه دی رسیدلی دوی لسمے حصے د هغے ته چه ورکړی وو مونږ هغوی ته |
| فَكَذَّبُوا رُسُلِي فَكَيْفَ كَانَ نَكِيرِ ﴿٤٥﴾ |
| نو دروغژن اوګڼړل هغوی رسولان زما نو څنګه شو عذاب زما (هغوی لره)۔ |

**تفسیر:** اُوس بیا زجر ورکوی په انکار د قرآن او د رسول باندے۔

د اسلامی دعوت په لاره کښ د رکاوټونو اچولو دپاره د مکے مشرکانو به مختلفے حربے استعمالولے، نبی کریم ﷺ باندے به چه کله قرآن کریم نازلیدۀ، او هغۀ به تازه په تازه د قریشو مخے ته د هغے تلاوت کولو دے دپاره چه دا ښکاره آیتونه واوری او په الله

باندے ایمان راوړي، نو په هغوئ باندے به ددے الله اثر پریوتهٔ او په خپلو کښې به ئے یو بل ته وئیل چه دا سړے تاسو ستاسو د پلرونو او نیکونو د دین نه اړول غواړي، یعنی تاسو د خپل پلار نیکهٔ په دین باندے مضبوط پاتے شئ، ځکه چه دا دین صحیح دے او محمد چه کوم دین طرفته تاسو رابلي، هغه باطل دے۔ دوی ته پلاران نیکونه بزرگان ښکاره کیدل حال دا چه هغه د جهنم خشاك وو۔ او د قرآن کریم په باره کښې به ئے وئیل چه دا یو دروغژن کلام دے چه دا الله طرفته منسوب کولے شي، او کله به ئے چه د نبی کریم ﷺ هغه مؤثره خبره آوریدله کومه به چه د توحید د دعوت سره متعلق وه، او ویه ئے لیدل چه خلق اثر قبلوی او ډلے ډلے په اسلام کښې داخلیږي، نو وئیل به ئے چه اے خلقو! ددے خبرے نه اثر مهٔ اخلئ، دا خو ښکاره جادو دے او محمد ډیر لوی جادوگر دے۔

إِلَّا إِفْكٌ مُّفْتَرًى: دوی د قرآن معنیٰ ته دروغ وویل او د قرآن الفاظو ته ئے جادو وویل نو ځکه ئے دوه اقوال وکړل۔ یا دا چه یو ډلے قرآن ته دروغ وویل او بلے ډلے ورته جادو وویل، یا تولو مشرکانو به کله ورته د دروغو نسبت کولو او کله د جادو۔

وَمَا آتَيْنَاهُم مِّن كُتُبٍ: پدے کښې په دوی باندے رد ذکر کیږي چه اے مشرکانو! تاسو چه قرآن نهٔ منئ او دا وایئ چه دا د الله د طرف نه نهٔ دے راغلے نو ځئ تاسو خو هم په خپل شرك باندے یو مُنَزَّل دلیل پیش کړئ، آیا ما تاسو ته کوم کتاب درکړیدے چه په هغے کښې اجازه د شرك راغلې وي، آیا ما چرته پیغمبر رالیږلے دے چه هغهٔ ته مے وئیلي وي چه ورشه او خلکو ته ووایه چه د فلاني بابا عبادت وکړئ، د فلاني قبر کاڼي په ځان راکاږئ، دا هیڅ نشته، نهٔ الله د شرك په جائز والي کوم کتاب رالیږلے او نهٔ ئے کوم رسول رالیږلے، او بل طرفته الله تعالیٰ دا کتاب او دا رسول راولیږلو په رد د شرك باندے نو دا نهٔ منئ او بل کتاب پیش کولے نشئ نو لنډه دا ده چه دا خلك د حق دشمنان دي، حق دروغژن گڼړي نو الله به ئے داسے هلاك کړي لکه څنګه چه پخواني مکذبین ئے هلاك کړي وو، که څوك ووائي چه هغوی به کمزوري وو او مونږ خو قوي يو او ډله مو غټه ده نو الله فرمائي چه تاسو د هغوی لسمے حصے ته هم نشئ رسیدلے، هغوی الله تباه کړل نو دغسے به تاسو هم تباه کړي۔ نو پدے آیتونو کښې ډیرے خبرے راجمع دي۔

يَدْرُسُونَهَا: أَيْ فِيْهَا بُرْهَانٌ عَلٰى صِحَّةِ الشِّرْكِ۔ چه په هغه کتابونو کښې دلیل وي په صحیح والي د شرك باندے۔

مِن نَّذِيرٍ: حَتّٰى اَبَاحَ لَهُمُ الشِّرْكَ۔ نهٔ مے یو پیغمبر رالیږلے چه دوی ته ئے شرك مباح

کړے وی۔ او هرچه قرآن او دا رسول دے نو دا خو د شرك رد کوی۔ نو خپل کتاب ورسره نشته، پکار ده چه دا کتاب او دا رسول خو ومنی او ددے په وجه د شرك نه منع شی۔

دا دلیل دے چه د یو شی اباحت او صحت به په قرآن او په حدیث سره ثابتیږی، که قرآن او حدیث اجازه ورکړی، هله به جائز وی، علماء او مجتهدین د ځان نه د یو شی اباحت او صحت نشی جوړولے۔

وَكَذَّبَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ : ددے سره دا مراد دے (فَهَلَكُوْا) پخوانو تکذیب وکړو نو هلاك شول۔ نو دا موجوده ډیر لائق دی چه خامخا په تکذیب سره هلاك شی۔

وَمَا بَلَغُوْا: (۱) یعنی دا وسنی مشرکان لسمے حصے د هغه مالونو او بدنونو او زمکو او چالاکئ ته نهٔ دی رسیدلی۔ پخوانو سره قوة المال، قوة الاولاد، قوة الابدان، قوة الاراضی (د زمکو قوت) او قوة الجدل (د چالاکی، بحثونو قوت) دوی په بحثونو کښ هم ډیر تکړه وو، نعمتونه ئے هم ډیر او عمرونه ئے هم اُوږده وو۔

د (وَمَا بَلَغُوْا) نور تفسیرونه په فتح البیان کښ وګوره۔ مختصر دا چه (۲) پخوانی نهٔ دی رسیدلی لسمے حصے د شکر د هغه نعمتونو ته چه ما ورته ورکړی وو۔

(۳) پخوانی نهٔ دی رسیدلی لسمے حصے د هغه بینات او هدایتونو ته چه ما موجوده و ته ورکړی دی۔ اول قول غوره دے۔

مِعْشَارَ: دا یو لغت دے په عشر کښ او معنیٰ ئے لسمه حصه ده۔ (جو هریؒ) یا معشار عشر د عشیر ته وائی او عشیر عُشر د عُشر ته وائی او عشر لسمے حصے ته وائی (یعنی د لسمے حصے د لسمے حصه) نو ددے نه مراد زرمه حصه شوه۔ ماوردیؒ وائی چه دا ډیر ظاهر قول دے ځکه چه پدے کښ زیاته مبالغه ده په کموالی کښ۔ یعنی ددے موجوده کافرانو سره د مخکنو په نسبت زرمه حصه د قوت د بدن او مال او هنر او اُوږدوالے د عمر نشته۔ لیکن اول قول غوره دے۔ ځکه مشهور لغتِ عربی دا دے چه دا لسمے حصے ته وئیلے شی۔ (فتح البیان)

**فائده:** پدے آیت کښ دوه ځل تکذیب ذکر شو نو د اول دپاره ئے متعلق د تکذیب نهٔ دے ذکر کړے، نو دا عطف د خاص دے په عام باندے یعنی دوی د کتابونو، د رسولانو، او د هغوی د معجزاتو تکذیب وکړو، او دویم تکذیب د رسولانو دے۔ (فتح البیان)

یا اول تکذیب د توحید دے او دویم تکذیب د رسولانو دے۔ (احسن الکلام)

فَكَيْفَ كَانَ نَكِيْرِ: نو زما عذاب د دوی دپاره څنګه شو، آیا په صحیح ځای واقع نشو

څه؟- د خپلو رسولانو بدله مو ترې واخستله۔ نو مکې والا ډې هم په هوش کښې راشي او خپل حالت دې بدل کړي، ايمان دې راوړي او زمونږ د قرآن او رسول د تکذيب نه ډې منع شي، ګنې مونږ به د دوئ نه هم ډيره سخته بدله واخلو۔

| قُلْ إِنَّمَا أَعِظُكُمْ بِوَاحِدَةٍ أَنْ تَقُومُوا لِلَّهِ مَثْنَى |
|---|
| اُووايه ! يقيناً نصيحت کوم زهٔ تاسو ته په يوه خبره چه اُودرېږئ الله دپاره دوه دوه |
| وَفُرَادَى ثُمَّ تَتَفَكَّرُوا مَا بِصَاحِبِكُمْ مِنْ جِنَّةٍ إِنْ هُوَ |
| او يواځې يواځې بيا فکر اُوکړئ، نشته په ملګري ستاسو څه ليونتوب، نهٔ دې دا |
| إِلَّا نَذِيرٌ لَكُمْ بَيْنَ يَدَيْ عَذَابٍ شَدِيدٍ ﴿٤٦﴾ |
| مګر يره درکونکے دے تاسو ته مخکښې د عذاب سخت نه۔ |

**تفسير**: پدے رکوع کښې هم طريقے د تبليغ او تعليم دي۔

د مکے د مشرکانو د تمامے سرکشئ او د الله او د هغهٔ د رسول د ښکاره دروغژن ګنړلو باجود، الله دوئ د مخکنو قومونو غونته هلاك نهٔ کړل، بلکه دوئ له ئے بار بار د ايمان او عمل صالح دعوت ورکړو، او د رسول اکرم ﷺ په ژبه ئے دوئ ته نصيحت وکړو چه تاسو چه دا وايئ چه محمد ليونے دے ځکه چه مونږ په خپلو ډيرو بيانونو سره تنګوی، نو اے زما نبي ! تهٔ دوی ته ووايه چه زهٔ تاسو ته په يوه خبره نصيحت کوم هغه دا ده چه تاسو کله په شريکه سوچ وکړئ اوکله يواځې يواځې، د هر قِسم تعصب او د نفس د خواهش نه جدا شئ او په انتهائي اخلاص سره په دے موضوع باندے غور اُوکړئ۔

د ودريدو نه مراد دا دے چه يو ځاې کښې دوه کسان جدا شئ، يا يواځې ځاې کښې سوچ وکړئ او حق ته متوجه شئ، او بيا زما په باره کښې سوال او جواب وکړئ، يو تن ډې ووائي چه دا به رسول وي او که نهٔ ؟ مثلاً يو به ووائي چه دا خو د ښځے د طلب دپاره راغلے دے، نو بل به جواب وکړي چه ښځه خو نهٔ غواړي، بيا ډې ووائي چه دا به مال او دولت جمع کول غواړي، نو بل به ووائي چه دا هم نهٔ غواړي، بيا ډې ووائي چه ددهٔ به بل کوم دنياوي غرض وي، بل به ووائي چه هغه ئے هم نهٔ دے ځکه چه مونږ ته ئے اُوسه پورے هغه هم نهٔ دے ښکاره کړے، دا به مشري غواړي، مشري ئے هم نهٔ ده غوښتے، بلکه دا سړے خو زمونږ د فائدے دپاره راغلے دے نو بيا ددهٔ خبره ولے نهٔ منو۔ نو پدے

سوچ سره به دوی ته د ایمان توفیق ورکړے شي۔ او که شریك سوچ نۀ وي نو یواځے په بستره کښ سوچ وکړه چه دا رسول راغلے دے، راشه چه دۀ په حال سوچ وکړم چه دا څه مقصد لـه راغلے دے او څه غواړي؟ نو دا خو دنیا نۀ غواړي بلکه مونږ نه د الله توحید غواړي او دے کښ خو زمونږه فائده ده، د الله بندګي راته ښائي، نیك عمل ته او جنت ته مو راکاړي نـو بیا مونږ دۀ خبره ولے نۀ منو؟ او ولے دۀ سره ضد کوو؟، نو پدے سره به د انسان نه ضد ختم شي او ایمان به راوړي، اکثر خلك چه ضد کوي ددے وجه دا وي چه سوچ نکوي، که سوچ ئے وکړو ضد ئے ختمیږي۔

دارنګه د غور نه روستو وګورئ چه آیا محمد (ﷺ) تاسو ته لیونے ښکاري؟! هغه خو ستاسو ترمینځه په لویه عقلمندئ او بے مثاله هوښیارتیا سره مشهور دے، د هغۀ د رشتینے کیدو دپاره دا کافي دي۔ آیا داسے کیدے شي چه داسے عقل والا انسان به په غیر د سوچ او فکر نه داسے دعویٰ وکړي چه هغه د هغۀ د ذلت او رسوائي سبب جوړ شي، او هغۀ لره د هغۀ د هلاکت اوبربادئ د کندے غاړے ته اُورسوي۔ علاوه لا دا چه ددۀ نه ډیرے داسے معجزے هم راښکاره شوي چه ددے خبرے قطعي دلیل دے چه هغه د خپل نبوت په دعویٰ کښ رشتینے دے، او خلقو لره د یو سخت عذاب نه وړولو دپاره رالیږلے شوے۔ دے وجے نه اے د مکے مشرکانو! ستاسو ښیګړه په دے کښ ده چه تاسو د داسے جاهلانه خبرو نه منع شئ او په محمد ﷺ باندے ایمان راوړئ۔

بِوَاحِدَةٍ: ددے نه مراد یوه کلمه (یوه خبره) ده وَهِيَ الْقِيَامُ مُتَجَرِّدًا عَنِ التَّعَصُّبِ۔ چه هغه سوچ کول دي بغیر د تعصب کولو نه۔ او ددے نه چه چا کلمه د توحید اخستے ده نو هغه بعیده ده۔ دلته د واحده نه مراد یوه کلمه (یوه خبره) ده۔ یعني داسے خبره ده چه ستاسو د هدایت دپاره کافي ده۔

أَنْ تَقُومُوا لِلَّهِ: (یعني الله دپاره سوچ وکړئ په اخلاص سره) دا پکښ څکه وائي چه کله انسان په یو خبره ودریږي او سوچ کوي خو غلط سوچ کوي، د نفس د خواهش او د ضد د وجـه نـه سوچ کـوي۔ او دا دعوت بعینه مونږ هم ورکوو او هر مؤمن به ئے ورکوي چه اے خلکو! تاسو چه د محمد ﷺ تابعداري نکوئ او تقلید کښ ننوتي يئ او مونږ ته ګمراهان وایئ؛ نو تاسو د الله دپاره لږ سوچ وکړئ چه زمونږ کومه خبره غلطه ده، آیا دا خبره غلطه ده چه د الله یواځے بندګي وکړئ او د محمد رسول الله ﷺ پوره تابعداري وکړئ او د هغه تول سنت طریقے ومنئ او د امامانو عزت وکړئ او د اهل سنتو تول

امامان خپل مشران وګنړئ، ضد مهٔ کوئ چه يو امام پکښې راواخلے او نور پريدے، او صرف خپل مذهب ته حق وائے او نور په باطله ګنړے۔ نو کله چه انسان سوچ وکړی، ضرور ورته هدايت کيږی، او چه ضد کښې راشی نو محروم شی۔ والله المستعان۔

| قُلْ مَا سَأَلْتُكُم مِّنْ أَجْرٍ فَهُوَ لَكُمْ إِنْ |
|---|
| اُووايه! هغه چه ما غوختلے دے ستاسو نه څه مزدوری نو هغه دِے ستاسو شی، نهٔ ده |
| أَجْرِيَ إِلَّا عَلَى اللَّهِ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ ﴿٤٧﴾ |
| مزدوری زما مګر په الله تعالیٰ ده او هغه په هر شی باندے حاضر ناظر دے۔ (ګواه دے) |
| قُلْ إِنَّ رَبِّي يَقْذِفُ بِالْحَقِّ عَلَّامُ الْغُيُوبِ ﴿٤٨﴾ |
| اُووايه! يقيناً رب زما ورغورزوی حق لره (په باطل باندے) عالم دے په ټولو غيبو باندے۔ |
| قُلْ جَاءَ الْحَقُّ وَمَا يُبْدِئُ الْبَاطِلُ وَمَا يُعِيدُ ﴿٤٩﴾ |
| اُووايه راغے حق او ابتدائی پيدائش نشی کولے باطل او دوباره ئے هم نشی کولے۔ (او ابتداءً نشی ښکاره کيدے حق او نهٔ دوباره راواپس کيدے شی)۔ |

**تفسير** کله چه د داعی په باره کښې د خلقو شك پيدا شی چه ددهٔ مقصد به دنيا ګټل وی نو د هغهٔ خبره په خلکو اثر نهٔ کوی، پدے وجه ددے شك زائله کول ضروری دی، نو ځکه الله تعالیٰ خپل نبی ﷺ ته ووئيل چه تهٔ د مکے د مشرکانو په مخ کښې په ډاګه دا خبره وکړه چه زما تاسو نه د دنيوی فائدو لالچ نشته، زهٔ په خپل دعوت کښې انتهائی مخلص يم او د خپل اجر اوثواب اميد د الله نه لرم، چه هغه زما د رشتينولئ او اخلاص نه ښهٔ خبر دے۔

**مَا سَأَلْتُكُم**: يعنی پدے شرط چه زهٔ تاسو نه کوم عوض او مزدوری په دين بيانولو باندے غواړم نو هغه دِے ستاسو مبارك شی۔ زهٔ خو صرف د الله نه د اجر اميد لرم۔ نو زما په اخلاص کښې هيڅ نقصان نشته او د مخلص خبره منل ضروری وی نو تاسو له پکار دی چه زما خبره ومنئ، د انکار هيڅ وجه نشته۔ يعنی که تاسو د تابعداریٔ نهٔ کولو دا بهانه کوئ چه رسول الله ﷺ تاسو نه مزدوری غواړی او مونږ خو دا نشو ورکولے نو دا دِے ستاسو شی، مزدوری او اجرت مهٔ ورکوئ خو د هغهٔ خبره ومنئ۔

قُلْ اِنَّ رَبِّیْ یَقْذِفُ بِالْحَقِّ: دا بله طریقه د دعوت او د تعلیم ده۔ سوال پیدا شو چه که ته د الله رسول ئے نو څه لاړ شه د الله عبادت کوه او په کوټ کښې کینه، مونږ ته څه له مسئلے کوے؟ یا سوال پدے طریقه دے چه منکرین وائی چه هرکله ستا دنیوی غرض نشته نو بیا د څه وجے نه زمونږ د مشرانو د دین خلاف کوے؟

حاصل د جواب دا دے چه زما د رب کار دا دے چه هغه په حق سره باطل باندے گوزارونه کوی او پدے سره باطل ختموی لکه دا خبره په سورة الانبیاء (۱۸) آیت کښې تیر شویده ﴿بَلْ نَقْذِفُ بِالْحَقِّ عَلَى الْبَاطِلِ فَيَدْمَغُهُ فَإِذَا هُوَ زَاهِقٌ﴾ نو زهٔ غلے نشم کیناستلے بلکه ستاسو د باطل ختمولو دپاره الله رالیږلے یم۔

۲- دویمه معنیٰ د یقذف دا ده: اَیْ یُبَیِّنُ الْحُجَّةَ وَیُظْهِرُهَا لِلنَّاسِ عَلٰى اَلْسُنِ رُسُلِهٖ۔ (قتادة) (یعنی زما رب بیانوی دلیل (یعنی وحیٔ) او خلکو ته ئے د رسولانو په ژبه راښکاره کوی)

۳- مقاتلؒ وائی: د حق نه مراد قرآن او وحی ده او یقذف په معنیٰ د یَتَكَلَّمُ وَیُلْقِیْهِ سره دے یعنی زما رب خبرے کوی په حق یعنی په وحی او قرآن سره یعنی دا خپلو انبیاؤ ته راګوزاروی۔ مطلب دا شو چه زهٔ به حق خامخا بیانوم ځکه چه دا د الله کار دے او د هغه ذمه واری ده په ما باندے۔

قُلْ جَآءَ الْحَقُّ : دا بله طریقه د دعوت ده۔ چه ما حق بیانول شروع کړل نو ستاسو باطل په ختمیدو دے او ختم دے، نو راشئ د باطل نه لاس واخلئ او دا همیشه پاتے کیدونکے دین قبول کړئ لکه یو تن چا ته ووائی چه حق راغے باطل دے اُوس تښتیدے نشی نو څه له په باطل باندے کلك ئے، دا پریده۔ یا دا هم جواب د سوال دے چه منکرین وائی چه ته چه زمونږ په طریقه او دین باندے رد کوے چه زمونږ دین باطل او خپل حق ګنړے نو ددے رد کولو څه فائده وشوه؟ جواب وشو چه پدے سره حق ښکاره شو او باطل ختم شو (یعنی نزدے ده چه دین توحید به په شرك باندے غالب شی) لکه په روایت د ابن مسعود ﷜ کښې راغلی دی چه نبی کریم ﷺ د مکے د فتح په وخت د کعبے نه ګیر چاپیره تاؤ درے سوه شپیته بتان هریو په چوکه باندے نیغ وهلو او خکته به ئے رارتولو او دا به ئے وئیل چه (جَآءَ الْحَقُّ وَزَهَقَ الْبَاطِلُ) او (جَآءَ الْحَقُّ وَمَا یُبْدِئُ الْبَاطِلُ وَمَا یُعِیْدُ) (السراج المنیر)

د الحق نه مراد (۱) اسلام او توحید دے۔ (۲) یا ترے قرآن مراد دے (قتادة)

وَمَا يُبۡدِئُ الۡبَاطِلُ وَمَا يُعِيۡدُ : يعني نهٔ دا هم اووايه چه اسلام راغے، د توحيد او د قرآن دعوت ظاهر شو، او باطل نه ساه اووتله او هميشه دپاره رخصت شو.

(۱) ظاهر تفسير دا دے چه د باطل نه مراد باطل دين دے، او معنىٰ دا ده چه ابتداء نشي كولے باطل دين او دوباره هم نشي واپس كيدلے. قانون دا دے چه كله حق بيان شي نو د حق په مقابله كښ باطل نوے نهٔ راپيدا كيږي.

(وَمَا يُعِيۡدُ) او كوم چه ختم شو نو هغه بيرته راواپس كيدے هم نشي لكه قرآن چه راغے نو زوړ شرك ئے ختم كړو نو څوك د قرآن د بيان په مقابله كښ نوے شرك نشي پيدا كولے. او څوك چه قرآن نهٔ بيانوي نو بيا خو وخت په وخت شرك پيدا كيږي خو چه كله حق بيانيږي نو بيا باطل ابتداء نشي كولے (ماحول برابريږي) او ختم شوے شرك او كفر او باطل دين هم په قرآن والو كښ نهٔ راواپس كيږي. نو دا كنايه ده د هلاكت نه او د بالكليه ختميدو نه. يعني باطل د حق په مقابله كښ داسے هلاك شو چه نهٔ اُوس سر ښكاره كولے شي او نهٔ به بيا سر ښكاره كړي.

[اَیْ لَمْ يَبْقَ لَهٗ اِقْبَالٌ وَّلَا اِدْبَارٌ وَّلَا اِبْدَاءٌ وَّلَا اِعَادَةٌ] (فتح البيان)

يعني مخ او شا او ابتداء او اعاده ئے ختمه شوه. هيڅ اثر ئے پاتے نشو بالكليه هلاك شو. او پدے معنىٰ سره (يُبۡدِئُ وَيُعِيۡدُ) په معنىٰ د فعل لازم سره شو.

(۲) يا د باطل نه مراد معبود باطل دے. يعني باطل معبود نهٔ ابتدائي پيدائش كولے شي او نهٔ دوباره. نو داسے كمزورے معبود پريدئ او حق معبود واخلئ.

(۳) حسن بصرى وائي : چه باطل معبود خپلو عابدانو ته نه په اول (يعني دنيا) كښ نفع وركولے شي، او نهٔ په آخرت كښ. اول قول غوره دے.

| قُلۡ اِنۡ ضَلَلۡتُ فَاِنَّمَاۤ اَضِلُّ عَلٰى نَفۡسِىۡ |
| --- |
| اُووايه كه چرته گمراه يم زهٔ نو يقيناً گمراه كيږم چه وبال به ئے زما په ځان باندے وي |
| وَاِنِ اهۡتَدَيۡتُ فَبِمَا يُوۡحِىۡۤ اِلَىَّ رَبِّىۡ |
| او كه چرے زهٔ هدايت والا يم نو پدے وجه چه وحي كړيده ما ته رب زما |
| اِنَّهٗ سَمِيۡعٌ قَرِيۡبٌ ﴿۵۰﴾ |
| يقيناً هغه آوريدونكے دے نژدے دے. |

**تفسیر :** دا بله طریقه د دعوت او تعلیم ده۔ مشرکانو به د رسول الله ﷺ په باره کښې وئیل چه محمد (ﷺ) د خپل پلار نیکهٔ دین پریښودهٔ او گمراه شو، نو الله فرمائی چه تهٔ دوئ ته ووایه چه که زهٔ د خپل نفس غلام کیدو سره گمراه شوے یم، نو ددے گمراهئ وبال به په ما باندے پریوزی او په تاسو هیڅ وبال نشته، او که چرے ما د الله رالیږلے هدایت قبول کړے وی او په نیغه لاره روان یم، نو ما سره حجت او دلیل شته چه هغه وحی ده او تاسو د هغے نه منکریئ؛ نو بیا خو به په تاسو باندے وبال او عذاب راځی۔

یا ددے وضاحت پدے طریقه دے چه که زهٔ د الله پیغمبر نهٔ یم او دا خبرے مے د ځان نه جوړے کړی وی نو د الله طریقه دا ده چه الله گمراه له سزا ورکوی نو ما خو به ځان گمراه کړے وی او د هلاکت کندے ته به پریوتے یم، تاسو زما د هلاکت نه خلاص یئ؛ ما به الله تعالیٰ هلاکوی، خو بل طرفته پدے هم سوچ وکړئ که زهٔ په هدایت یم او صحیح خبرے بیانوم نو بیا دا صحیح خبرے ما د کوم ځای نه زده کړے خامخا به جواب دا وی چه دا وحی ده چه الله ما ته کړیده، نو کله چه انسان سوچ وکړی چه رسول الله ﷺ خو گمراه نهٔ دے ځکه چه ټولے خبرے ئے صحیح دی، ولے که دا گمراه وے نو دے به هلاک شوے وے بلکه ټولے خبرے ئے د هدایت دی نو دا هدایت دهٔ ته د کوم ځای نه وشو؟، معلومه شوه چه دا دهٔ ته الله وحی وکړه نو راځئ؛ چه مونږ هم د الله دا کتاب ومنو چه په هدایت شو۔

| وَلَوْ تَرٰى إِذْ فَزِعُوا فَلَا فَوْتَ وَأُخِذُوا |
|---|
| او که چرته اُووینے ته کله چه دوی به اُویرولے شی نو نهٔ به وی بچ کیدل او وُبه نیولے شی |
| مِنْ مَّكَانٍ قَرِيبٍ ﴿٥١﴾ وَقَالُوا آمَنَّا بِهِ وَأَنّٰى |
| دوی د ځائے نژدے نه۔ او وائی به دوی ایمان راوړیدے مونږ پدے سره او د کوم ځائے نه به |
| لَهُمُ التَّنَاوُشُ مِنْ مَّكَانٍ بَعِيدٍ ﴿٥٢﴾ وَقَدْ كَفَرُوا بِهِ مِنْ قَبْلُ |
| وی دوی لره رانیول د ځائے وراندے نه۔ او یقیناً کفر کولو دوی پدے (حق) باندے مخکښې |
| وَيَقْذِفُونَ بِالْغَيْبِ مِنْ مَّكَانٍ بَعِيدٍ ﴿٥٣﴾ وَحِيلَ بَيْنَهُمْ |
| ددے نه او ولی دوی غیب خبرے (بے دلیله) د ځائے لرے نه۔ او پرده به راشی په مینځ د دوی |

وَبَيْنَ مَا يَشْتَهُوْنَ كَمَا فُعِلَ

او په مینځ د هغه څه کښې چه دوی ئې غواړی لکه چه کار کړے شوے وو

بِأَشْيَاعِهِمْ مِّنْ قَبْلُ إِنَّهُمْ كَانُوْا فِي شَكٍّ مُّرِيْبٍ ﴿٥٤﴾

د دوی په شان خلقو سره مخکښې ددے نه، یقیناً دوی وو په شك کښې سخت شك کښې۔

**تفسیر:** دا تخویف اُخروی دے، او ربط ئې دا دے چه دوی خو دا قرآن نۀ منی لیکن یو وخت کښې به ئې ومنی چه کله دوی لره عذاب راګیر کړی۔

(۱) بیا دا د قیامت د عذاب سره هم لګی یعنی د قیامت په ورځ د حساب او کتاب او جزاء او سزا د فیصلے په وخت به د مشرکانو زړونه او دماغ د ویرے نه ډك وی، دوئ به چرته نشی تښتیدلے، او د اُور د عذاب نه به د بچ کیدو هیڅ صورت به نۀ وی، دوئ به د ډیر نزدے نه اُونیولے شی او جهنم ته به ګذار کړے شی۔

**وَقَالُوْا آمَنَّا بِهِ:** دغه وخت به دوئ ووائی چه مونږ په محمد ﷺ (یا قرآن) باندے ایمان راوړو، لیکن اُوس به دوئ ایمان چرته بیا مومی، دوئ خو ددے نه ډیر زیات لرے تلی دی، دوئ خو به د محشر په میدان کښې وی، او د ایمان راوړو ځای دنیا وه۔ هر کله چه ایمان راوړل مفید وو، او دا نعمت دوئ ته ډیر زیات نزدے وو، نو ددے نه غافل وو، او اُوس چه کله نعمت د دوئ نه ډیر زیات لرے شوے نو دوئ هغے طرفته لاسونه اُوږدوی، اُوس به دوئ دا هیڅ کله بیانۀ موندے شی۔

(۲) یا د (فَزِعُوْا) نه مراد د دنیا عذاب دے، یعنی کله چه دوی ویرږی چه دغه دے ملك الموت راغے نو بیا به د دوی تښتیدل نۀ وی د هغه نه، او دوی به د نزدے ځای نه راونیولے شی یعنی ملك الموت به ورله خوا له راشی او په مرئ به ورله لاس کیږدی او روح به ترے واخلی۔ یا ددے نه د الله عذابونه هم مراد کیدے شی چه هغه به پرے د نزدے ځای نه راشی۔ ځکه چه فزع (ګبراهټ) په انسان باندے یو د ملك الموت د راتګ په وخت او بل د عذاب په وخت راځی۔

**فَلَا فَوْتَ:** فوت نه مراد تښتیدل او بچ کیدل دی۔

**مَّكَانٍ قَرِيْبٍ:** یعنی عذاب به د وراندے نه نۀ راځی چه په آرام آرام سره راروان وی او دے ترے وتښتی بلکه نزدے سمدست به پرے عذاب راشی۔

التَّنَاوُشُ: اَیِ التَّنَاوُلُ۔ یعنی رانیول او راخستل د ایمان۔
مَّکَانٍ بَعِیۡدٍ: یعنی کافر سړے چه مړ شی نو ایمان ترنے په دنیا کښې پاتې شی او د دنیا او د آخرت په مابین کښې خو انتهائی وړاندے والے دے، نو د آخرت نه لاس را اُوږدول او د دنیا نه ایمان رانښکل او قبر ته ننویستل او بیا آخرت ته راویستل انتهائي لرې او ناممکن دی۔ لکه سورة المؤمنون (۱۰۰) آیت کښې الله فرمائیلی وو: ﴿کَلَّا اِنَّهَا کَلِمَةٌ هُوَ قَآئِلُهَا وَمِنۡ وَّرَآئِهِمۡ بَرۡزَخٌ اِلٰی یَوۡمِ یُبۡعَثُوۡنَ﴾ اُوس خو ایمان ته ډیره لویه پرده ووهلے شوه۔
وَقَدۡ کَفَرُوۡا بِهٖ: دا د مخکنی مضمون تاکید او مضبوطیا ده چه په دنیا کښې دے مشرکانو د نبی کریم ﷺ د نبوت نه انکار کړے وو، او په الله باندے ئے کفر کړے وو، او صرف د وهم او گمان په بنیاد ئے هغهٔ ته جادوگر، شاعر او لیونے وئیلو، دارنګه د مرګ نه پس د دوباره ژوندی کیدو نه ئے انکار کړے وو۔
وَیَقۡذِفُوۡنَ بِالۡغَیۡبِ مِنۡ مَّکَانٍ بَعِیۡدٍ: یعنی قرآن ته نژدے نهٔ راتلل او د وړاندے به ئے د ړاندهٔ غونداری ویشتل (یعنی بی دلیله او گمانی خبرے به ئے کولے) چه دا قرآن جادو دے، دروغ دی، د ځان نه ئے جوړ کړیدے، هسے د بهر نه به ئے د خلکو نه آوریدل چه قرآن جادو دے او دروغ دی نو بس دهٔ به هم وئیل چه دا دروغ دی او جادو دے او قرآن ئے نهٔ وو کتلے او نهٔ ئے آوریدلے وو لکه دا د ټولو باطل پرستو طریقه ده چه د حق او حقیقت نه ځان نهٔ خبروی او ردونه پرے کوی، د یو بل نه آوریدلے شوو خبرو باندے ګمراه شی۔ وائی چه دا خلك وهابیان دی، مونږ وریسے نهٔ کیږو او دے هم وائی چه همداسے به وی او نژدے نهٔ راځی چه وهابی څه ته وائی او دا څوك دے او څه خبره کوی؟۔
وَحِیۡلَ بَیۡنَهُمۡ : مطلب دا دے چه د محشر په میدان کښې به د مشرکانو او د هغوی د خواهشاتو ترمینځ پرده واقع شی او خواهش به ئے پوره نشی۔
وَحِیۡلَ: دا د هغه فعلونو نه دے چه فاعل ئے ماده د فعل وی، اَیۡ وَقَعَتِ الۡحَیۡلُوۡلَةُ۔ یعنی واقع به شی پرده۔
مَا یَشۡتَهُوۡنَ ۱- د دوی خواهش یو شفاعت د معبودانو وو۔ نو دوی له به خپل بتان او باطل معبودان سفارش هم نشی کولے، هغه به هم ترے ختم شی۔
۲- دویم خواهش د دوی ایمان راوړل وو ۔ نو د ایمان او د دوی ترمینځ پرده راغله، ایمان ته ئے خو شوق وشو لیکن نهٔ ئے شی حاصلولے۔
۳- اَلنِّعَمُ الدُّنۡیَوِیَّةُ وَالشَّهَوَاتُ ۔ یعنی کافر انسان چه مړ شی نو د دنیا ټول نعمتونه او

شهوات ئے ختم شو، راحت ئے ختم شو، عزت ئے ختم شو، امن ئے ختم شو، اُوس په دهٔ باندے دیرو او غمونو او دردونو بارانونه شروع شو، عذابونه پرے راغلل، هیڅوك ئے مددګار نشته، او په ابدی ابدی عذاب ګرفتار شو۔ اُوسه پورے ئے خوراك، څكاك، جامے، د آرام ځایونه، چکرے، چمنونه، دوستان وو، اُوس ئے دا ټول ختم شو۔ نو کافر چه څنګه مړ شی یا په ډېر باندے ولګی نو سمدست سیده جهنم ته ورسیږی، دغه مزے د دنیا ورله څه پکار راغلے، په خلاف د مؤمن چه دنیا کښې لږه سخته او بیا د همیشه نعمتونو او خوشحالو سره ملاویږی۔ ډیر د سوچ آیت دے۔

كَمَا فُعِلَ بِأَشْيَاعِهِم : اشیاع امثال او نُظَراؤ ته وئیلے شی۔ یعنی د دوی په شان خلك۔ یعنی پخوانو کافرانو سره هم داسے کار شوے وو چه په هغوی باندے کله مرګ او عذاب راغلو نو ټول خواهشات ئے ختم شو، د عذاب نه نجات او دنیا ته واپس کیدل او ایمان راوړل او د دنیا اهل او مال ته واپس کیدل ددوی خواهش وو لیکن د عذاب په وخت ددے ټولو نه محروم شو، ټول خوندونه ئے ختم۔

مُرِيبٍ : یعنی داسے شك چه انسان لره انکار ته ورسوی او پریشانه ئے کړی۔ اِرَابَةٌ معنیٰ د پریشانئ هم دهٔ۔ ځکه چه یقین کښې سکون او آرام وی۔ یا د ریب نه دے او په ریب کښې معنیٰ د تهمت ده یعنی دوی داسے شك کولو چه په الله او نورو ایمانیاتو باندے ئے تهمت لګولو چه الله به قیامت او عذابونه نهٔ راولی۔ او د رسولانو او کتابونو نه ئے انکار کولو۔ وبالله التوفیق۔

## امتیازات د سورة سبا

۱- ناشنا واقعه د داود او د سلیمان علیهما السلام پکښې بیان شوه۔

۲- واقعه د سبا والا په کښې ناشنا ده۔

۳- د ابلیس د مسلط کیدو بیان پدے سورت کښې وو۔

٤- رد د طرق الشرك او طریق التبلیغ والتعلیم والدعوة پکښې ناشنا انداز سره بیان شو۔

ختم شو تفسیر د سورة سبا په مدد د حمید مجید ذات په تاریخ ۱۷ رمضان ۱٤۳۵ هجری، موافق : جولائی ٤ـ (٤/٧/٢٠١٥)

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ ○

| آیاتها (٤٥) | (٣٥) سورت فاطر (٤٣) | رکوعاتها (٥) |
|---|---|---|

سورۂ فاطر مکی دے، په دے کښې پنځه څلوېښت آیتونه او پنځه رکوع دي

## تفسیر سورت فاطر

**نوم :** د سورت نوم الفاطر دے او فاطر د الله نوم او صفت دے، معلومیږي چه پدے سورت کښې به هم د الله متعلق خبرے وي. ددے دویم نوم (سُوۡرَةُ الۡمَلَائِكَة) هم دے، ځکه چه په اولنی آیت کښې د ملائکو ځینے صفتونه او د الله د طرفه په دوئ باندے د لازم کړے شوو ذمه داریانو ذکر راغلے.

**د نازلیدو زمانه :** قرطبیؒ لیکی چه دا سورت د ټولو په نیز مکی دے. امام بخاریؒ وغیره د ابن عباس ﷺ نه نقل کړی چه سورتِ فاطر په مکه کښې نازل شوے.

### مناسبت

۱- مخکښې صدق د رسول الله ﷺ او د هغهٔ شان وو نو دلته د الله تعالیٰ تعارف بیانیږی او دا د قرآن مقصد دے چه الله تعالیٰ او رسول خلکو ته وروپیژنی.

۲- مخکښې د شرك او د هغوی د باطلو معبودانو رد وشو نو دلته وائی چه دوی ددے لائق نهٔ دی چه تاسو ورته آواز وکړئ او رامدد شه ورته ووایئ. ﴿إِنۡ تَدۡعُوۡهُمۡ لَا يَسۡمَعُوۡا دُعَاءَكُمۡ﴾

### مقصد او موضوع د سورت

۱- زمونږ مشائخ وائی چه مقصد د سورت رد د شرك فی الدعاء دے په عقلی دلیلونو او په مثالونو سره چه په (١٤) آیت کښې راغلے دے. دا موضوع هم شته لیکن جانبی او جزوی طریقے سره ده.

۲- اصل موضوع بَيَانُ مَعۡرِفَةِ اللّٰهِ سُبۡحَانَهٗ وَتَعَالٰى دے. لکه دا موضوع په ((فی ظلال

القرآن)) کښې هم ذکر شويده. بيا صرف دا يو لفظ مقصد نهٔ وي بلکه د الله معرفت (پيژندنه) وسيله ده د ډيرو مهمو خبرو دپاره چه هغه دا دي :

١- دا وسيله ده د الله د شکر.

٢- اِلَى الْكَلِمَاتِ الطَّيِّبَاتِ وَالْعَمَلِ الصَّالِحِ. د ايمان او عمل صالح دپاره وسيله ده.

٣- دا وسيله ده د تزکية النفس او د مانځه او د سابقيت بالخيرات او د انفاق دپاره. نو پدے وجه کفار چه کله الله تعالىٰ لره وپيژنې نو بيا به د ايمان او عمل صالح ارمان کوی ﴿نَعْمَلْ صَالِحًا غَيْرَ الَّذِىْ كُنَّا نَعْمَلُ﴾ پدے وجه ئے پدے سورت کښې ډير اعمال ذکر کړيدي. اول نه ئے شکر ذکر کړيدے ﴿اُذْكُرُوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ﴾. بيا نزدے وائی ﴿وَالَّذِيْنَ آمَنُوْا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ﴾ بيا وائی ﴿اِلَيْهِ يَصْعَدُ الْكَلِمُ الطَّيِّبُ وَالْعَمَلُ الصَّالِحُ يَرْفَعُهٗ﴾

بيا د الله معرفت چه وشی نو رد د شرك به ورسره خامخا ملگرے کوی. چه شرك مهٔ کوئ، د الله سره برخه داران مهٔ جوړوئ. او چه الله ډيے وپيژندلو نو تا ته به د خپل فقر احساس وشی. ﴿يَا اَيُّهَا النَّاسُ اَنْتُمُ الْفُقَرَاءُ اِلَى اللّٰهِ﴾ دارنگه الله چه ډيے وپيژندو نو اُوس به ترے يريږے هم. نو پدے کښې به بَيَانُ خَشْيَةِ الرَّبِّ هم وی. او اقامة الصلاة او تزکية النفس به کولے شی. ﴿اِنَّمَا يَخْشَى اللّٰهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ﴾ علماؤ الله پيژندلے وو پدے وجه ترے يريږی. نو د الله تعالىٰ معرفت متضمن دے تلاوت د کتاب الله لره. ﴿اِنَّ الَّذِيْنَ يَتْلُوْنَ كِتَابَ اللّٰهِ﴾

او مال به د هغه دپاره لگوے، سابقيت بالخيرات به کوے. او د الله په باره کښې به غمژن ئے. ﴿اَذْهَبَ عَنَّا الْحَزَنَ﴾ دا سورت تر آخره پورے د الله په معرفت او په اعمالو روان دے.

بيا د الله تعالىٰ معرفت په درے ځيزونو کيږی، يو د الله په اسماء او صفاتو سره، چه پدے کښې سوچ وکړه نو الله به وپيژنے. دويم الله تعالىٰ په کائناتو او د هغهٔ په افعالو پيژندلے کيږی چه څومره عجيب کارونه ئے کړيدی. دريم : د الله په کتاب باندے چه قرآن دے. نو قرآن انسان ته الله تعالىٰ وربنائی. او دا د ټولو علمونو نه بهتر او ضروری علم دے.

| اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ فَاطِرِ السَّمَاوَاتِ وَالْاَرْضِ |
| --- |
| ټول صفتونه د کمال خاص الله لره دی، نوے پيدا کونکے د آسمانونو او د زمکے دے، |
| جَاعِلِ الْمَلَائِكَةِ رُسُلًا اُولِىْٓ اَجْنِحَةٍ مَّثْنٰى وَثُلَاثَ وَرُبَاعَ |
| گرځونکے د ملائکو دے استازی، خاوندان د وزرو دوه دوه او درے درے او څلور څلور |

| يَزِيدُ فِي الْخَلْقِ مَا يَشَاءُ إِنَّ اللَّهَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿۱﴾ |
|---|
| زیاتوی په پیدائش کښې څه چه اُوغواړي یقیناً الله په هر شی باندے قدرت لرونکے دے۔ |

**تفسیر:** [اَلْحَمْدُ] نه مراد هغه تمام تعریفونه دی چه د آسمانونو او زمکے ترمینځه کیدے شی، ددے تولو حقدار هغه الله دے چه هغهٔ آسمانونه او زمکے په غیر د مخکنی مثال او مادے نه پیدا کړی، او چا چه ملائك انبیاؤ خواته د وحی ورکولو لپاره استازی ولیږل، او د خپل ځینو نورو بندګانو خواته ئے هغوئ ته د اِلهام او نیکو خوبونو په ذریعه خپل پیغام رسونکی جوړ کړل او ورته ئے ولیږل، او د نورو بے شماره کارونو ذمه داریانے ئے ورته سپارلی۔ او په دے ملائکو کښې د چا دوه، د چا درے او د چا څلور وزرے دی، او د چا ددے نه هم زیاتے دی، لکه د صحیح بخاری په روایت کښې دی چه د معراج په شپه چه کله رسول الله ﷺ جبرئیل ته وکتل نو د هغهٔ شپږ سوه وزرے وے،

(بخاری: ۳۲۳۲) (مسلم ۴۵۰)

دے وجے نه الله تعالیٰ وفرمایل چه هغه د خپل حکمت مطابق کوم شے چه په څومره تعداد کښې غواړی پیدا کوی ئے، ځکه چه هغه په هر شیٔ قادر دے۔

فَاطِرِ: عبد الله بن عباس ﷛ فرمائی : ما ته د فاطر معنیٰ نهٔ وه یاده نو ما ته دوه اعرابیان راغلل چه په کوهی باندے ئے جګړه وه، یو وویل : أَنَا فَطَرْتُهَا ۔ یعنی ما دا اول جوړ کریدے۔ نو ما وپیژندل چه د فاطر معنیٰ د بدیع (نوے پیدا کونکی) ده۔

او پدے کښې مقصد دا دے چه هرکله الله تعالیٰ دا ابتداءً پیدا کړیدی نو هغه د قیامت په ورځ ددے په دوباره پیدا کولو هم قادر دے۔

دلته الله تعالیٰ د خپل ځان حمد ووئیلو دپاره د تعظیم خپل او دپاره د تعلیم د خپلو بندګانو چه هغوی دے د الله تعالیٰ داسے حمدونه ووائی۔

نو پدے آیت کښې د الله تعالیٰ تعارف دے چه الله تعالیٰ د آسمانونو او د زمکے او د ملائکو خالق هم دے او بیا دا د الله تعالیٰ د اَمر تابع هم دی۔

| مَا يَفْتَحِ اللَّهُ لِلنَّاسِ مِنْ رَّحْمَةٍ فَلَا مُمْسِكَ |
|---|
| هغه څه چه راکولاؤ کړی الله تعالیٰ خلقو لره څه رحمت نو نشته هیڅوك بندونکے |

| لَهَا وَمَا يُمْسِكْ فَلَا مُرْسِلَ لَهُ |
|---|
| هغې لره او هغه چه الله ئې بند کړي نو نشته راکولاوونکې هغې لره |
| مِنْ بَعْدِهِ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿٢﴾ |
| روستو د بندولو د هغه نه او هغه زورور حکمتونو والا دے. |

**تفسیر**: اهل علم فرمائی که څوك ددے آیت په معنیٰ باندے صحیح یقین وکړی نو د ټولو غمونو پریشانیو او ټینشنونو او فکرونو نه به خلاص شی او سینے ته به ئې یخوالے ورسیږی.

یعنی الله د ټـولـو رحمتونو، برکتونو، ښیګړو او رزقونو د خزانو یواځینے مالك دے، نو که الله په چا بانـدے یو رحمت راکولاؤ کړو لکه مثلاً الله غواړی چه یو تن ته عزت ورکړی، مال ورکړی، صحت ورکړی، علم ورکړی، ښځه او اولاد ورکړی یا د آخرت رحمتونه ورکوی نو ددے بندونکے هیڅوك نشته. نو د هیچا نه مهٔ یریږه، بادشاه، حسدګر او انسانان ئې په تا باندے نشی بندولے، لهذا د خلکو نه خطرے مهٔ کوه. هرکله چه ټول عزت او ذلت د الله په لاس کښې دے، د بل چا په لاس کښې نشته، نو بیا بنده ولے د مخلوق چاپلوسی وکړی، د لومة لائم (د چا د ملامتیا) نه ویریږی، همیشه دپاره د الله حکمونه چه ماتیږی ددے وجه دا وی چه خلك د ملامتیا او یرے او د ذلت او د مخلوق د تنخواه بندولو نه یریږی.

وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ: هغه د عزت خاوند او په هر یو شیٔ غالب دے او په ټولو کارونو کښې د حکمت او مصلحت مطابق تصرف کوی.

| يَا أَيُّهَا النَّاسُ اذْكُرُوا نِعْمَتَ اللهِ عَلَيْكُمْ هَلْ مِنْ خَالِقٍ غَيْرُ |
|---|
| اے خلقو! یاد کړئ نعمتونه د الله تعالیٰ په تاسو باندے آیا شته څوك خالق سوئ |
| اللهِ يَرْزُقُكُمْ مِنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ لَا إِلَهَ |
| د الله تعالیٰ نه، چه رزق درکړی تاسو ته د آسمان او د زمکے نه نشته حقدار د بندګیٔ |
| إِلَّا هُوَ فَأَنَّى تُؤْفَكُونَ ﴿٣﴾ وَإِنْ يُكَذِّبُوكَ فَقَدْ |
| سوئ د هغه نه نو څنګه کرځولے شئ (د حق نه). او که دروغژن اُوګنړی دوی تا نو یقیناً |

كُذِّبَتْ رُسُلٌ مِنْ قَبْلِكَ وَإِلَى اللهِ تُرْجَعُ الأُمُوْرُ ﴿٤﴾

دروغژن گڼړلے شویدی رسولان مخکښې ستا نه او خاص الله ته ورګرځولے شي کارونه۔

**تفسیر**: اُوس د الله تعارف ذکر کیږی چه دا وسیله د شکر ده۔ یعنی الله تاسو سره ښو مره لوی محسن (احسان کونکے) دے چه تاسو لره د آسمان او د زمکے نه رزق درکوی نو دا رایاد کړئ او ددے نعمتونو شکر وکړئ او د هغهٔ توحید قبلول ضروری دی۔ دے دپاره چه دغه نعمتونه باقی پاتے شي او د نورو نعمتونو سلسله باقی روانه وی۔

**لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ**: یعنی لکه چه بل رازق د الله نه سوئ نشته نو دغه شان بل معبود هم د هغهٔ نه سوی نشته۔ نو د روغ فطرت والا انسان په ذهن کښې به دا خبره راځی چه د عبادت هم هغهٔ یواځے مستحق دے۔

**فَأَنَّى تُؤْفَكُونَ**: یعنی ددے نه بله لویه ناشکری کومه کیدے شي چه خوراك د دغه مالك کُل کوی او صفتونه د بل چا کوی۔ نو دا مشرکانو ته زورنه ده چه دوی په کوم دلیل د توحید نه شرك ته اړولے شي۔

**وَإِن يُكَذِّبُوكَ**: ددے حق بیانونکے نبی کریم ﷺ دے پدے وجه هغه له تسلی ورکړے شوے چه د حق واضح کیدو باوجود هم که د مکے مشرکان تا دروغژن ګڼړی، نو ستا زړهٔ دے مات نشی ځکه چه د کفر او شرك والو په هر دور کښې همدا طریقه را روانه ده چه کله هم د الله کوم رسول راغلے، هغوئ هغه دروغژن ګڼړلے نو هلاك شویدی نو دوی به هم هلاك شی۔ ځکه چه ټول کارونه الله ته واپس کیږی نو په آخرت کښې به پرے حساب کوی۔

يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّ وَعْدَ اللهِ حَقٌّ فَلَا تَغُرَّنَّكُمُ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا

اے خلقو! یقیناً وعده د الله تعالیٰ حقه ده نو دهوکه دے نکړی تاسو ژوند دنیوی

وَلَا يَغُرَّنَّكُم بِاللهِ الْغَرُورُ ﴿٥﴾ إِنَّ الشَّيْطَانَ لَكُمْ عَدُوٌّ

او دهوکه دِرنکړی تاسو لره په الله باندے دهوکه درکونکے۔ یقیناً شیطان ستاسو دشمن

| فَاتَّخِذُوْهُ عَدُوًّا إِنَّمَا يَدْعُوْ حِزْبَهٗ لِيَكُوْنُوْا مِنْ أَصْحَابِ السَّعِيْرِ ﴿۶﴾ |
|---|
| دے نو اُونیسئ هغه لره دشمن يقيناً هغه رابلی دله خپله چه شی دوی د اُور والو نه۔ |
| اَلَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيْدٌ وَالَّذِيْنَ |
| هغه كسان چه كفرئے كړيدے دوی لره عذاب سخت دے او هغه كسان چه |
| آمَنُوْا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّأَجْرٌ كَبِيْرٌ ﴿۷﴾ |
| ايمان ئے راوړيدے او عملونه ئے كړيدی نيك دوی لره بخنه ده او اجر دے لوئی۔ |

**تفسير** : الله تعالىٰ خلقو ته خبر وركړيدے چه د انسانانو دوباره ژوندی كيدل، د حساب كتاب، د جزا او سزا او د جنت او جهنم خبرے بيخی صحيح او حقے دی، ما ددے وعده كړے چه دا به خامخا راځی۔ دے وجے نه دوئ دِے د دنيا په ژوند او ددے په عيش او آرام كښ پريوتلو سره د آخرت د كاميابئ لپاره عملِ صالح نهٔ هيروی، تردے چه مرگ راشی او د الله په حضور كښ خالی لاس ولاړ وی، او هغه وخت به د افسوس ورغوی مروړی او وائی به ابے كاش! ما ددے ژوند د كاميابئ لپاره نيك عمل كړے وے۔ او هسے نهٔ چه شيطان دوئ په دے وينا سره وغولوی چه د الله رحمت ډير زيات فراخه دے، او هغهٔ فضل او كرم ډير عام دے، دے وجے نه دلته بنهٔ عيش اوعشرت كوه، كله چه توبه وباسے نو هغه غفور رحيم به تا ضرور معاف كوی۔
نو ددے آيت نه معلومه شوه چه د قيامت نه اُوړونكے شے دنيا ده او د الله نه اړونكے شے شيطان دے۔ لكه دا خبره سورة لقمان كښ هم تيره شوه۔
الغرور نه مراد جنی او انسی شيطان دے۔
إِنَّ الشَّيْطَانَ لَكُمْ عَدُوٌّ : دا د غرور بيان دے او د مخكښ دپاره علت دے۔ او پدے كښ د الله بل رحم ذكر دے چه بندگانو ته ئے د هغوی دشمن په گوته كړيدے او د هغے نه ئے بيدار كړيدی چه گورئ شيطان ستاسو ډير لوی دشمن دے، تاسو دا خبره هميشه ياده ساتئ، دے دپاره چه ددهٔ په دهوكه كښ پريے نهٔ وځئ، ځكه چه هغه خپلو تابعدارو ته د داسے اعمالو دعوت وركوی چه د هغے لازمی نتيجه د اُور عذاب دے۔
فَاتَّخِذُوْهُ عَدُوًّا: يعنی په عقائدو او اعمالو كښ د هغه داسے مخالفت وكړئ لكه چه د دشمن مخالفت كيدے شی۔ يا د هغه سره دشمنی وكړئ د الله په طاعت سره او د هغه

خبره مه منئ؛ په نافرمانئ د الله کښې او د هغه نه همیشه په خطره کښې وسیږئ په ټولو حالاتو، کارونو او عقائدو کښې د زړه په اخلاص سره، او کله چه تاسو یو کار کوئ نو هغه ته بیدار وسیږئ ځکه چه هغه ډیر کرته ستاسو نه په عمل کښې ریاء راننباسی او تاسو ته بدی ښائسته ښکاره کوی۔ او علامه قشیریؒ وئیلی دی چه د دغه دشمن نه د الله تعالیٰ نه په مدد غوښتو سره ځان بچ کوئ لکه چه هغه ستاسو د دشمنئ نه غفلت نهٔ کوی نو تاسو هم د خپل رب او مولیٰ نه په مدد غوښتلو کښې هیڅ یوه لحظه غفلت مهٔ کوئ۔ (فتح البیان والخطیب)

علامه قرطبیؒ د ابن سماکؒ نه نقل کړی چه ((هائے تعجب دے په هغه چا چه نافرمانی د خپل مُحسن کوی پس د پیژندلو د احسان د هغهٔ نه او اطاعت کوی د لعین پس د پیژندلو د دشمنئ د هغهٔ نه))۔

إِنَّمَا يَدْعُو حِزْبَهُ: دا الله تعالیٰ خپلو بندګانو ته د شیطان د دشمنئ طریقه بیان کړه او هغوی ئے د هغهٔ د طاعت او خبرے منلو نه ویرول۔ او يَدْعُوْ حِزْبَهٗ متعلق پټ دے [أَيْ إِلَى الضَّلَالِ وَالْكُفْرِ وَالشِّرْكِ وَالْمَعَاصِيْ] رابلی خپله ډله ګمراهئ، کفر او شرك او ګناهونو ته دے دپاره چه د دوی انجام اُور جوړ شی۔

اَلَّذِيْنَ كَفَرُوْا: نو اُوس دواړه قسمه ډلے بیانوی کوم چه د شیطان تابعدار دی او کوم چه د هغهٔ مخالفین دی، اولنو له سزا او دویمے ډلے له زیرے۔ او دا نتیجه ده د معرفت د الله تعالیٰ۔ د چا چه تعارف د الله تعالیٰ وی هغوی له مغفرت او د چا چه تعارف نهٔ وی نو هغوی له عذاب ذکر کوی۔

لَهُم مَّغْفِرَةٌ: ابن جُریجؒ فرمائی: په قرآن کښې چه (لَهُمْ مَغْفِرَةٌ وَّاَجْرٌ كَبِيْرٌ) یا (رِزْقٌ كَرِيْمٌ) راشی نو د هغے نه مراد جنت وی۔

| اَفَمَنْ زُيِّنَ لَهٗ سُوْٓءُ عَمَلِهٖ فَرَاٰهُ |
| --- |
| آیا پس هغه څوك چه ښائسته کړے شویدے هغه ته بد عمل د هغه نو وینی هغے لره |
| حَسَنًا ۭ فَاِنَّ اللّٰهَ يُضِلُّ مَنْ يَّشَاۗءُ وَيَهْدِيْ مَنْ يَّشَاۗءُ |
| ښائسته نو یقیناً الله ګمراه کوی چا له چه اُوغواړی او هدایت کوی چا له چه اُوغواړی |

| فَلَا تَذْهَبْ نَفْسُكَ عَلَيْهِمْ حَسَرَاتٍ إِنَّ اللَّهَ |
| --- |
| نو لاړه دې نشي ساه ستا په دوی پسې د وجې د افسونو نه، يقيناً الله تعالیٰ |
| عَلِيمٌ بِمَا يَصْنَعُونَ ﴿٨﴾ |
| پوهه دے په هغې کارونو چه دوی ئې کوی۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کښې الله تعالیٰ د نیك عمله او بد عمله انسان د عاقبت او انجام ترمینځ فرق بیانوی، اول د بد عمله انسان تشریح کوی بیا روستو ﴿مَنْ كَانَ يُرِيْدُ الْعِزَّةَ﴾ سره د نیك عمله بیان کوی۔ ددے مناسبت د (اَلَّذِيْنَ كَفَرُوْا) سره دے۔ یعنی کافران ولے کفر او بد بد عملونه کوی؟ نو ددے وجه دا ده چه دوی ته شیطان په خپله وسوسه سره خپل بد عمل ښائسته کړیدے۔

نو دویم پدے آیت کښې نبی کریم ﷺ له یو قِسم تسلیٰ ورکړے شویده چه که د کافرانو او فاجرانو بد اعمال شیطان او خپله د دوئ نفسِ اماره د دوئ په نظرونو کښې ښائسته ښکاره کړی، او دوئ دا گمان کوی چه د دوئ ټول اعمال دُرست دی، نو گویا که الله دوئ لره گمراه کول غواړی، ځکه الله چه چاله غواړی گمراه کوی ئې، او چاله چه غواړی هدایت ورکوی، دے وجے نه ته د کافرانو په گمراهئ او د ایمان په نهٔ راوړو باندے د غمژن کیدو په وجه خپل ځان مهٔ هلاك کوه، الله تعالیٰ د دوئ د کړو نه ښهٔ خبر دے، او هم هغه به دوئ له ددے عملونو بدله ورکوی۔

خطیب شربینیؒ د سعید بن جبیرؒ نه نقل کړی : نَزَلَتْ فِيْ اَهْلِ الْاَهْوَاءِ۔

دا آیت د خواهش پرستو او بدعتیانو په باره کښې نازل شویدے۔ ځکه چه هغوی بد عمل کوی او شیطان ئې ورته ښائسته ښکاره کوی، بدعتی د کافر ورور دے پدے وجه هغوی هم پکښې داخلیږی۔

د ﴿اَفَمَنْ زُيِّنَ﴾ دپاره جزاء پټه ده، کسائیؒ وائی تقدیر داسے دے [ذَهَبَتْ نَفْسُكَ عَلَيْهِمْ حَسَرَاتٍ] ستا نفس به د دوی پسے د افسوسونو د وجه نه هلاکیږی۔ یعنی پرواه ئې مهٔ کوه۔

زجاج وئیلی دی : [ كَمَنْ هَدَاهُ اللّٰهُ] دا په شان د هغه چا کیدے شی چه الله ورته هدایت کړے وی۔ یا [ كَمَنْ هُوَ لَيْسَ كَذٰلِكَ] دا په شان د هغه چا کیدے شی چه د هغه حال داسے

نهٔ وي)۔ یا جزاء [فَقَدْ اَضَلَّهُ اللّٰهُ] ده یعنی یقیناً دے کس لره الله گمراه کړیدے۔
**حَسَرٰتٍ:** دا مفعول لهٔ دے یعنی د وجه د افسوسونو نه۔
**بِمَا يَصْنَعُوْنَ :** صنع او صناعت هغه عمل ته وئیلے کیږي چه همیشه ئے کوي د دے وجه نه چه هنر ئے جوړ کړے وي یا دین ئے گنړلے وي۔

| وَاللّٰهُ الَّذِيْٓ اَرْسَلَ الرِّيٰحَ فَتُثِيْرُ سَحَابًا |
| --- |
| او خاص الله هغه ذات دے چه رالیږي هواگانے نو پورته کوي وریځے |
| فَسُقْنٰهُ اِلٰى بَلَدٍ مَّيِّتٍ فَاَحْيَيْنَا بِهِ الْاَرْضَ |
| نو اُوچلوو مونږ هغه یو ښار اُوچ ته نو راژوندئ کړو په هغے سره زمکه |
| بَعْدَ مَوْتِهَا كَذٰلِكَ النُّشُوْرُ ﴿۹﴾ |
| روستو د اُوچوالي نه، دغسے به دوباره پیدائش وي (ستاسو)۔ |

**تفسیر:** پدے آیت کښې د الله تعالىٰ د تعارف دلیل ذکر کیږي چه بیا پدے سره اثبات د آخرت هم کیږي۔
**اَرْسَلَ الرِّيٰحَ :** الله تعالىٰ د قرآن کریم په کنړو آیتونو کښې د زمکے د مرگ او بیا د باران نه پس ددے د ژوندي کیدو مثال ورکولو سره د انسانانو په دوباره ژوندي کیدو باندے استدلال کړے۔ یعنی زمکه بیخي اُوچه وي، په دے کښې یو بوټے هم شین نهٔ وي، بیا الله تعالىٰ باران اُووروي نو په همدے زمکه کښې حرکت پیدا کیږي او کله چه زمیندار په دے کښې تُخم اُوکري نو یو څو ورځے پس په دے کښې شین فصل را اُوتو کیږي۔
دغسے چه د انسان دنیوي ژوند پوره شي نو هغه مړ کیږي، او د قیامت نه مخکښې چه کوم خلق موجود وي هغه ټول به مړهٔ کیږي، بیا به الله تعالىٰ تمام انسانان دوباره دغسے راژوندي کوي څنگه چه هغه د باران په ذریعه زمکه ژوندئ کوي، نو پدے کښې اشاره ده چه اے انسانه ! د الله تعارف وکړه هغه ته به په قیامت کښې پیش کیږے۔
او دا تشبیه په درے طریقو سره ده، اول دا چه اُوچے زمکے تازگي قبوله کړه نو دغسے به بدن د انسان ژوند قبلوي، دویم لکه چه هواگانے وریځے متفرقے راجمع کړي، دغسے به متفرق اندامونه هم راجمع کړے شي، دریم لکه چه الله تعالىٰ هوا او وریځ اُوچے زمکے ته

راليږی نو دغسې به ارواحو لره بدنونو ته راوليږی او ژوند به ورله ورکړی.

| مَنْ كَانَ يُرِيْدُ الْعِزَّةَ فَلِلّٰهِ الْعِزَّةُ جَمِيْعاً |
|---|
| څوك چه غواړی عزت نو خاص د الله په اختيار كښې دے عزت ټول. (نو هغه نه ئے غواړی) |
| اِلَيْهِ يَصْعَدُ الْكَلِمُ الطَّيِّبُ وَالْعَمَلُ الصَّالِحُ |
| خاص هغه ته ورخيژی كلمې پاكې (د اخلاص) او عمل د سنت موافق |
| يَرْفَعُهٗ وَالَّذِيْنَ يَمْكُرُوْنَ السَّيِّاٰتِ |
| پورته كوی الله تعالىٰ هغې لره (ځان ته) او هغه كسان چه چلونه جوړوی د بدو كارونو |
| لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيْدٌ وَمَكْرُ اُولٰئِكَ هُوَ يَبُوْرُ ﴿۱۰﴾ |
| هغوی لره عذاب سخت دے او چلونه ددے كسانو به هلاكيږی. |

**تفسير** : پدے آيت كښې د هغه چا حال بيانوی چه مؤمن دے، نيك عمل كوی الله ورله پدے باندے عزت وركړيدے. او ددے تعلق د ﴿ اَفَمَنْ زُيِّنَ لَهٗ ﴾ سره هم دے او د ﴿ اَلَّذِيْنَ كَفَرُوْا﴾ سره هم. يعنی كافران بد عمل ولے كوی، د شيطان تابعداری ولے كوی؟ نو دا د دنيا د عزت حاصلولو دپاره، نو پدے آيت كښې الله تعالىٰ ترغيب وركوی چه كه عزت غواړئ نو راشئ زۀ به درته د عزت شے وښايم، په كفر او د الله په بغاوت كښې او په تكذيب د حق كښې عزت نشته بلكه عزت د الله په طاعت كښې دے.

پدے آيت كښې درے تفسيره دی (۱) مشهور تفسير دا دے او دا د قتادة تفسير دے : څوك چه د عزت اراده لری نو ددے جواب پټ دے [فَلْيَتَعَزَّزْ بِطَاعَةِ اللّٰهِ] هغه دے د الله په طاعت سره عزت حاصل كړی. څكه چه عزت خو د الله په اختيار كښې دے. او دا معلوميږی د روستو ﴿ اِلَيْهِ يَصْعَدُ الْكَلِمُ الطَّيِّبُ﴾ نه. يعنی عزت په توحيد او عمل صالح سره حاصليږی، او ﴿وَالَّذِيْنَ يَمْكُرُوْنَ﴾ نه هم، يعنی باطل پرست وائی چه مونږ به د حق په مقابله كښې مكرونه وكړو نو پدے به عزتمند شو، نۀ، بلكه الله به دوی په خپلو چلونو او مكرونو كښې بيعزته او ذليله كړی او د عذاب سره به مخامخ شی. دا د دوی دپاره عزت نشی كيدے.

(۲) بعيد تفسير دا هم دے [مَنْ كَانَ يُرِيْدُ الْعِزَّةَ بِعِبَادَةِ غَيْرِ اللّٰهِ فَلِلّٰهِ الْعِزَّةُ جَمِيْعًا فَلْيَعْبُدِ اللّٰهَ]

ځوك چه د غیر الله په عبادت سره عزت حاصلول غواړی نو عزت خو د الله په اختیار کښې دے نو د الله بندګی دے وکړی چه الله ورته عزت ورکړی۔
نو پدے کښې رد دے په هغه مشرکانو چه د خپلو باطلو معبودانو د طرفنه عزت ګنړی۔ لکه سورة مریم (۸۱) آیت کښې دی : ۔
﴿ وَاتَّخَذُوا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ آلِهَةً لِيَكُوْنُوْا لَهُمْ عِزًّا ﴾ ۔
(۳) [مَنْ كَانَ يُرِيْدُ الْعِزَّةَ بِمُوَالَاةِ الْكُفَّارِ فَلْيَطْلُبْهَا مِنَ اللّٰهِ] ځوك چه د کافرانو په دوستئ کښې عزت ګوری نو عزت خو ټول د الله سره دے د هغهٔ نه دے ئے وغواړی۔ لکه د سورتِ نساء په (۱۳۹) آیت کښې دی : ﴿ أَيَبْتَغُوْنَ عِنْدَهُمُ الْعِزَّةَ فَإِنَّ الْعِزَّةَ لِلّٰهِ جَمِيْعًا ﴾ لیکن دا د سیاق نه لرې بعید تفسیر دے۔ اګرکه په آیت کښې داخل دے۔
(٤) [مَنْ كَانَ يُرِيْدُ عِلْمَ الْعِزَّةِ فَلْيَعْلَمْ اَنَّ الْعِزَّةَ لِلّٰهِ]۔ ځوك چه دا غواړی چه عزت به چا سره وی، نو دے دے پدے خبره پوهه شی چه عزت ټول د الله سره دے۔ دا ډیر بعید تفسیر دے۔ ځکه چه کافران هم پوهیږی چه د الله سره عزت دے۔
نو آیت کښې رد دے په مشرکانو چه د بتانو او باطلو معبودانو سره عزت ګوری او په منافقانو رد دے چه د کافرانو سره عزت ګوری۔ او په مبتدعینو رد دے چه د حق په خلاف کښې عزت ګوری۔
**إِلَيْهِ يَصْعَدُ الْكَلِمُ الطَّيِّبُ** : پدے کښې د عزت سبب بیانوی چه هغه نیك عمل او نیك اقوال دی، صرف په همدے سره عزت او آبرو حاصلیدے شی۔
﴿ الْكَلِمُ الطَّيِّبُ ﴾ نه مراد هر هغه قول او عمل دے چه د ذکرِ الٰهی په ضمن کښې راځی۔ د قرآن تلاوت، ټول اذکار شرعیه پکښې داخلیږی، لا اله الا الله د ټولو کلماتِ طیبه ؤ سر دے۔
**يَرْفَعُهُ** : ۱- دے کښې ضمیر الله ته راجع دے یعنی بنده چه کله خپل رب یادوی نو الله تعالیٰ د ملائکو په ذریعه د ذکر دغه کلمات الله تعالیٰ ته رسوی۔
۲- یا یرفع ضمیر کلم طیب ته او (هٔ) ضمیر عمل صالح ته راجع دے یعنی پاك کلمات چه اذکار شرعیه او دعاګانے دی دا عمل صالح لره الله تعالیٰ ته پورته کوی او د قبولیت مقام ته ئے رسوی۔ په نیك عمل کښې په ذکر او په دعاء سره طاقت پیدا کیږی۔
❁ یا کلم طیب په معنیٰ د توحید سره دے یعنی عقیده د توحید عمل صالح لره پورته کوی مقام د قبولیت ته ځکه چه بناء د اعمالو په عقیده ده) دا معنیٰ صحیح ده او خارج

کښې همداسې ده لیکن چه ضمیر الله ته راجع شي نو دے کښې زیات تاکید راځي. یعنې د الله تعالیٰ ته نیك عمل داسې خوښ دے چه خان ته ئې خپله اُوچتوي.
یَرْفَعُهٗ نـه مـعلومیږي چه الله پورته دے ځنګه چه د هغهٔ د شان مناسب وي، دا عملونه د هغهٔ عرش ته پورته کیږي.
۳- یا د یَرْفَعُ ضمیر عمل صالح ته او د (ه) ضمیر کلم طیب ته راجع دے (حسنؒ، شهر بن حوشبؒ، سعید بن جبیرؒ، قتادةؒ او مجاهدؒ وغیره دا احتمال ذکر کړیدے) او معنیٰ دا ده چه عـمـل صالح پورته کوي پاکو کلمو لره مقام د قبولیت ته. یعنې ذکرِ الٰهي صرف د عـمـل صالح په ذریعه الله ته رسیږي، که بنده د فرائضو پابندي کوي او نور نیك عملونه کوي نـو د هـغـهٔ اذکار او اَوراد وزرے کوي او هـغـه الله تـه رسیږي، او کوم شخص چه د فرائضو پابندي نهٔ کوي، نو د هغهٔ اذکار د هغهٔ په مخ باندے ویشتلے کیږي.
٤- یا یَرْفَعُ کښې ضمیر الله ته راجع دے او (ه) عمل صالح ته. او د پورتـه کولو نه مراد قبلول دي. مـعـنیٰ دا ده چه الله پورته کوي عمل صالح لره یعنې هغه ئې قبلوي د خپل کونکي دپاره. (قتادةؒ) (فتح البیان)
د ﴿يَمْكُرُوْنَ السَّيِّئَاتِ﴾ نـه مراد هغه خلق دي چه شرك او نور ګناهونه کوي او د حق په خلاف سازشونه کوي. مجاهدؒ او قتادةؒ وائي چه دلته ریاکار خلق مراد دي.
ابو العالیةؒ وائي چه دے نه مراد د مکے کافران دي چه هغوئ دار الندوه کښې د رسول الله ﷺ خلاف سازش کولو. الله تعالیٰ داسې خلقو له سخته دهمکي ورکړے او وئیلي ئې دي چه د دوئ سازشونه به ناکام پاتے کیږي، او د ریا کار ریاء کاري به د خلقو مخے ته راښکاره شي. (فتح البیان)
او ددے ربط د مـاقبـل سره یو دا دے چه عزت په ګناهونو او د حق په خلاف کښې نشته بـلکـه هـغـه سراسر بې عـزتـي او ذلت دے، او د عذابونو سره مخامخ کیدل دي. نو د سیـئـات نـه مراد به شرك او کفر او نور بد اعمال وي چه مخالف وي د کلم طیب او عمل صالح نـه چـه دا د بې عـزتـئ اسباب دي. حسن بصريؒ نه نقل دي: [وَاِنْ طَقْطَقَتْ بِهِمُ الْبِغَالُ اَوْ هَمْلَجَتْ بِهِمُ الْبَرَاذِيْنُ اِنَّ ذُلَّ الْمَعْصِيَةِ فِيْ رِقَابِهِمْ، اَبَى اللّٰهُ اِلَّا اَنْ يُّذِلَّ مَنْ عَصَاهُ]
که دوئ په قچرو سوارهٔ شي او هغه پرے آوازونه کوي یا په قیمتي اسونو باندے سواره شي او هغه پرے وهنریږي خو د ګناهونو ذلت به د دوئ په څټو کښې وي. الله تعالیٰ هر څه پریدي خو دا خبره نهٔ پریدي چه څوك د هغه نافرماني کوي هغه به ذلیله کوي.

(ابن کثیر والمنار فی سورة الاعراف آیة (۱۵۲)

دویم دا چه الله تعالیٰ چه موحدینو ته عزت ورکړی نو مشرکان او حاسدان د هغوی د بی عزته کولو کوشش کوی نو الله دلته هغوی ته زور نه ورکړیده۔

| وَاللّٰهُ خَلَقَكُمْ مِّنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُّطْفَةٍ ثُمَّ جَعَلَكُمْ اَزْوَاجًا |
|---|
| او الله پیدا کړی یئ تاسو د خاورے نه بیا د نطفے نه بیا ئے اُوګرځوئ تاسو جوړی |
| وَمَا تَحْمِلُ مِنْ اُنْثٰى وَلَا تَضَعُ اِلَّا بِعِلْمِهٖ |
| او نهٔ پورته کوی یوه زنانه (په خیټه کښ) او نهٔ زیږوی (هغه) مګر په علم د الله سره |
| وَمَا يُعَمَّرُ مِنْ مُّعَمَّرٍ وَّلَا يُنْقَصُ مِنْ عُمُرِهٖٓ |
| او عمر نهٔ ورکړے کیږی یو عمر ورکړے شوی ته او نهٔ کمیږی د عمر د هغه نه |
| اِلَّا فِيْ كِتٰبٍ اِنَّ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرٌ ﴿۱۱﴾ |
| مګر (دا) په کتاب کښ دی یقیناً دا کار په الله باندے آسان دے۔ |

**تفسیر** : دا شپږم عقلی دلیل انفسی دے، او په دے کښ نور انسانی احوال ذکر کیږی او د بعث بعد الموت د اثبات بل دلیل دے۔

او مناسبت ئے دا دے چه د عزت اختیار د الله تعالیٰ سره دے ځکه چه الله تعالیٰ خالق د دے انسان دے، او هغه پرے عالِم دے او هغه ئے تقدیر کونکے دے۔

فرمائی چه هغهٔ تاسو اول ځل ستاسو د پلار آدم په صورت کښ د خاورے نه پیدا کړیٔ، بیا ئے تاسو اوستاسو نسلونه ستاسو د پلار نیکهٔ د نطفو نه پیدا کړیٔ، بیا هغهٔ په خپلے مهربانیٔ او کرم سره په تاسو کښ ځینے نارینه او ځینے زنانه جوړ کړیٔ۔ او د هرے ښځے امیدواره کیدل او بچے زیګیدل، هر څهٔ د هغهٔ په علم کښ وی، د کوم انسان عمر اُوږد وی، او د چا لنډ دا ټولے خبرے ئے په لوحِ محفوظ کښ د ازل نه لیکلی دی۔ او دا ټول کارونه الله د پاره ډیر آسان دی، د هغهٔ علم هر یو شیٔ ته فراخه دے، او د هغهٔ د قدرت نه هیڅ یو شے بهر نهٔ دے۔

جَعَلَكُمْ اَزْوَاجًا: یعنی تاسو ئے د نسل د زیاتیدو د پاره جوړیٔ کړیٔ ښځه او خاوند۔ دا د الله تعالیٰ لوی نعمت دے۔

وَمَا تَحۡمِلُ: مخکښې د الله تعالیٰ د قدرت بیان وو نو اُوس د الله تعالیٰ علم بیانوي۔
وَلَا يُنقَصُ مِنۡ عُمُرِهِۦٓ: ۱- (ه) ضمیر مخکښې مُعَمَّر ته راجع دے نو د یو سړي عمر ډیر هم دے او کم هم دے، او دا تقدیر معلق دے یعني الله لیکلي وي که دے سړي دا فلانے نیك عمل وکړو نو عمر ئے شپیته کاله دے، او که مثلًا صله رحمي ئے نهٔ قائموله نو عمر ئے څلویښت کاله دے۔ او دا دواړه خبرے الله په کتاب کښې لیکلي دي، بیا الله ته معلومه ده چه دے به کوم کار کوي، او انسان په خپله خوښه یو کار کوي۔ الله پرے زور نکوي۔ او دا قول د ظاهري الفاظو سره ډیر برابر دے، او صاحب د فتح البیان ورته اولیٰ وئیلے دے۔ او ددے تائید د سورة رعد په آیت (۳۹) کښې دے ﴿يَمۡحُوا اللَّهُ مَا يَشَآءُ وَيُثۡبِتُ وَعِندَهُۥٓ أُمُّ الۡكِتَابِ﴾

۲- یا ددے نه مراد دا دے چه د یو تن عمر په تقدیر کښې لیکلے شویدے مثلًا شپیته کاله بیا یوه یوه ورځ کمیږي نو په بل کتاب کښې هغه نقصان لیکلے کیږي تر اختتام د عمر پورے۔ (قاله سعید بن جبیرؒ- فتح البیان)

۳- یا (مِنۡ عُمُرِهِ) ضمیر مطلق انسان ته راجع دے۔ ددے نه جدا جدا سړي مراد دي یعني د یو کس عمر زیات دے او د بل کس عمر کم دے، دا دواړه په تقدیر کښې لیکلے شویدي او هرکله چه دا زیاتے او کمے بندګانو ته په مستقبل کښې معلومیږي نو ددے وجه نه ئے صیغه د مضارع ذکر کړه۔

٤- یا ډیروالے او کم والے د عُمر په اعتبار د برکت او بې برکتۍ سره دے په سبب د نیك عملونو او بدو عملونو سره۔ یعني الله چا له په عمر کښې برکت واچوي نو ډیر کار پکښې وکړي او چا له پکښې د هغه د بد عمل د وجه نه بې برکتي پیدا کړي، نو کم شي، هیڅ کار پکښې ونکړي۔ او چا له به پکښې برکت اچوي او چا له نهٔ؟، دا په تقدیر کښې لیکلے شویدي۔ دا ټول مطلبونه صحیح دي او پدے آیت کښې مراد کیدے شي۔

| وَمَا يَسۡتَوِي الۡبَحۡرَانِ هَٰذَا عَذۡبٌ فُرَاتٌ سَآئِغٌ شَرَابُهُۥ وَهَٰذَا |
| --- |
| او نهٔ دي برابر دوه دریابونه دا یو خوږ دے ډیر خوږ، بنه تیریدونکے دے څکل ددے او دا بل |
| مِلۡحٌ أُجَاجٌ وَمِن كُلٍّ تَأۡكُلُونَ لَحۡمًا طَرِيًّا وَتَسۡتَخۡرِجُونَ حِلۡيَةً |
| مالګین دے تریو دے او د هر یو نه خورئ تاسو غوښه تازه او را اُوباسئ ګاڼړه |

| تَلْبَسُوْنَهَا وَتَرَى الْفُلْكَ فِيْهِ مَوَاخِرَ |
|---|
| چه اغوندئ تاسو هغه او وینې به ته کشتئ په هغې کښې شلونکی د اُوبو |
| لِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿١٢﴾ |
| دے دپاره چه اُولټوئ تاسو دفضل د الله نه او دے دپاره چه شکر اُوکړئ۔ |

**تفسیر**: دا اُوم عقلی دلیل دے او دا د عالَم سفلی (ښکته عالَم) دلیل دے۔

نو په دے آیتِ کریمه کښې الله تعالیٰ د خپل لوی قدرت او کاریگرئ یو مثال پیش کړے، چه هغهٔ دوه قِسمه سمندرونه پیدا کړی، په لیدو کښې د دارو اوبهٔ یو شان دی، لیکن د یو اوبهٔ خوږے او مزیدارے دی، د حلق نه په آسانئ سره تیریږی، او د بل اُوبهٔ مالګینے او ترخے دی، څوك دا د حلق نه لاندے نشی ښکته کولے۔

او په دواړه قِسمه سمندرونو کښې الله داسے ماهیان پیدا کړی چه په خوړلو کښې ډیر خوندور وی، او د ترخو اُوبو په سمندر کښې ئے ملغلرے او مرجان پیدا کړی چه ښځے هغه د ښائست لپاره د زیور او کالی په توګه استعمالوی۔ او الله تعالیٰ ددے سمندرونو اوبهٔ داسے پیدا کړی چه په دے کښې کشتئ نهٔ ډوبیږی، او په آسانئ سره تولے لامبو وهی او د یو ښار نه بل ښاره پورے روانے وی، او هغه د انسانانو دپاره د رزق د تالاش کولو سبب او ذریعه جوړیږی۔ دا نعمتونه الله دے دپاره پیدا کړی چه د هغهٔ بندګان د هغے نه فائده پورته کړی، او د هغهٔ شکر اداء کړی۔

د اکثرو مفسرینو رائے داده چه ددے مثال نه مقصد د مومن او کافر او ایمان او کفر ترمینځه فرق ښودل دی چه لکه څنګه چه دواړه سمندرونه په لیدلو کښې یوشان دی، لیکن په خوند کښې د یو اوبهٔ د بل نه مختلفے دی۔

دغه شان مومن او کافر په لیدلو کښې یو شان انسانان دی، لیکن د ایمان او کفر په وجه سره د دواړو ترمینځه د مشرق او مغرب فرق دے۔

اَلْبَحْرَانِ : ١- یعنی بَحْرُ السَّمَاءِ او بَحْرُ الْاَرْضِ۔ یو بحر سمندر دے چه د هغے اُوبه مالګینی دی او دا د زمکے اُوبهٔ دی، دویم د آسمان اُوبهٔ دی چه د بارانونو په ذریعه زمکے ته راځی او د هغے نه خوږونه سیندونه جوړ شویدی، او بیا سمندر ته رسیږی لیکن دغه اُوبهٔ د سمندر د اُوبو سره نهٔ خلط کیږی، او دا خوږے اُوبه وی نو دا دواړه دریابونه پډے

وصف کښې برابر نهٔ دي۔
۲- لیکن راجح دا ده چه دا په یو دریاب کښې دوه قسمه دریابونه بهیږي، چه د یو بل سره نهٔ ملاویږي، په یو دریاب کښې کله خوږې اوبه راشي او کله ترخې لکه دا خبره د سائنس نه هم معلومه ده۔ او دغه مخکښې دوه دریابونه هم مراد کیدے شي۔
فُرَاتٌ: یعنی تنده ماتونکی، ډیرے خوږے مزیدارے۔
اُجَاجٌ: مرېٔ بندونکے۔
وَمِنْ كُلٍّ: پدے کښې اشاره ده چه پدے دوه فائدو کښې دوی برابر دي، لیکن اصلي فائده چه څکل د اوبو دي په هغې کښې دوی برابر نهٔ دي، اشاره ده که موحد او مشرك په صفت د شجاعت او سخاوت وغیره کښې چرته برابر شي لیکن د دوی په اصل عقیده کښې برابري نشته۔ (فتح البیان)
**فائده**: دلته ئې وویل چه ﴿وَمِنْ كُلٍّ﴾ او په سورت رحمن (۲۲) آیت کښې ئې وفرمایل: ﴿يَخْرُجُ مِنْهُمَا اللُّؤْلُؤُ﴾ ددے نه معلومیږي چه جواهرات، لؤلؤ او مرجان وغیره د دواړو د اختلاط نه حاصلیږي پدے طریقه چه د سمندر په سطحه باندے صدف (سیپئ) کولاوه پرته وي، نو په هغې کښې د باران څاڅکے پریوزي نو صدف بند شي او خکته لاړ شي نو څه وخت روستو د هغې نه لؤلؤ او مرجان جوړ شي۔ (احسن الکلام)
او مبرد وائي چه دا صرف د مالګین نه حاصلیږي۔ او دا قول نحاس غوره کړیدے۔
تَلْبَسُونَهَا: یعني د هغې نه هر شے د خپل شان مطابق اغوستلے شي، ګوتمه په ګوته کښې او بنګړے په لیچه کښې او امیل په غټ کښې او پانزیب په خپه کښې او بعض وسلے ته اغوستلے شي لکه توره او زغره وغیره کښې یا ئې په جامه او بستره کښې لګوي۔
وَتَرَى الْفُلْكَ: دا فائده د سمندر پورے خاص ده پدے وجه ئې (فِيهِ) مفرد ذکر کړو، او د فلك نه مراد غټ جهازونه دي لکه (مَوَاخِرَ) لفظ پرے دلیل دے، او هر کله چه مخکښې دوه فائدے عامو خلکو ته رسیږي اګر که د سمندر نه لرے دي، او روستنئ فائده خاص ده په هغه چا پورے چه په سمندر کښې سورلي کوي ددے وجه نه ئې اول دواړه صیغے جمع ذکر کړے او روستنئ صیغه ئې مفرد ذکر کړه۔ (احسن الکلام)
مَوَاخِرَ: یعني شرونکی، څیرونکی اوبو لره چه بعض کشتئ د هغه طرف نه او بعض ددے طرف نه روانے وي او هواء یوه وي۔
وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ: مقصد د نعمتونو نه د هغې شکر ادا کول دي نو څکه ئې په آخر

کښې شکر ته ترغیب ورکړو۔ او دلته خارجي شکر هم مراد دے او په کشتئ کښې دننه به هم شکر وکړئ۔

| |
|---|
| يُوْلِجُ الَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَيُوْلِجُ النَّهَارَ فِي الَّيْلِ وَسَخَّرَ الشَّمْسَ |
| داخلوي شپه په ورځ کښې او داخلوي ورځ په شپه کښې او تابع کړي ئے دي نمر |
| وَالْقَمَرَ كُلٌّ يَّجْرِيْ لِأَجَلٍ مُّسَمًّى ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ |
| او سپوږمۍ: ټول روان دي تر نيټے مقررے پورے دغه صفتونو والا الله دے رب دے ستاسو |
| لَهُ الْمُلْكُ وَالَّذِيْنَ تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖ مَا يَمْلِكُوْنَ |
| هغه لره بادشاهي ده او هغه کسان چه تاسو ئے رابلئ سوئ د هغه نه اختیار نهٔ لري |
| مِنْ قِطْمِيْرٍ ﴿۱۳﴾ إِنْ تَدْعُوْهُمْ لَا يَسْمَعُوْا دُعَاءَكُمْ |
| د پوستکي د هډوکي د کجورے۔ که تاسو آواز اُوکړئ دوی ته (نو) نهٔ آوري آواز ستاسو |
| وَلَوْ سَمِعُوْا مَا اسْتَجَابُوْا لَكُمْ وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ |
| او که (بالفرض) واوري دوی نو قبول والے نشي کولے تاسو لره او په ورځ د قیامت به |
| يَكْفُرُوْنَ بِشِرْكِكُمْ وَلَا يُنَبِّئُكَ مِثْلُ خَبِيْرٍ ﴿۱۴﴾ |
| انکار کوی د شرك ستاسو نه او خبر نشي درکولے تا ته په مثل د خبردار ذات۔ |

**تفسیر**: يُوْلِجُ: دا بل نعمت او اتم دلیل د قدرت د الله تعالیٰ دے۔

لِأَجَلٍ مُّسَمًّى: ددے نه مراد د هر یو د غروب وخت دے یا د قیامت ورځ مراد ده۔

ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ: دا نتیجه ده د مخکنو ټولو دلیلونو او نعمتونو۔

رَبُّكُمْ: یعني ستاسو معبود او حاجت روا دے۔ او ددے نه تصرف معلوم شو او په (لَهُ الْمُلْكُ) کښې د الله تدبیر ذکر کېږي۔

وَالَّذِيْنَ: د قرآن دا طریقه ده چه کله الله او د هغه صفات او افعال ذکر کړي نو ورپسے د باطلو معبودانو کمزورتیا ذکر کوي، پدے کښې زجر او دعوت وي چه داسے عظیم رب پریدئ او یو کمزوري مخلوق او مړي پسے روانیږئ۔

وَالَّذِيْنَ: دا لفظ حقیقت دے په ذوي الروح او ذوي العقولو کښې او بتانو ته په دویمه

درجه کښې شامل دے نو پدے کښې تمام معبودان من دون الله داخل دي۔ (روح المعاني)
قِطۡمِيرٍ : د کجورے د هډوکي نرے پوستکے دے چه د هډوکي نه تاو وي، د عربو په محاوره کښې دا د کموالي دپاره ذکر کیږي۔ نو مړے د کفن او د خپل ځان هم مالك نهٔ دے۔
نو هرکله چه ستاسو معبودان بې واکه دي او هیڅ ورسره په لاس کښې نشته نو بیا تاسو ولے د هغه نه حاجتونه غواړئ؟۔
إِن تَدۡعُوهُمۡ : یعنی ستاسو معبودان خو دومره عاجز دي چه ستاسو آوازونه نهٔ آوري۔
مفسر آلوسیؒ لیکي چه بتان خو ځکه نهٔ آوري چه جمادات دي، او ملائك او انبیاء علیهم السلام او اولیاء (ژوندي) ددے وجه نه نهٔ آوري چه لرے وي ددے مشرکانو نه او اسباب هم مینځ کښې نشته، یا ددے وجه نه چه الله تعالیٰ د هغوی غوږونه بچ ساتي د داسے شرکي او قبیح آوازونو نه دپاره ددے چه خفه نشي او چه کوم معبودان مړهٔ دي هغوی نهٔ آوري ځکه چه مړي آوریدل نشي کولے۔
دا آیت قطعي دلیل دے چه مړي د مشرکانو شرکي آوازونه نهٔ آوري که نزدے وي او که لرے وي، لفظ د دُعَآءَكُمۡ پدے باندے دلیل دے چه مراد ددے نه حاجت غوښتل دي۔
وَلَوۡ سَمِعُواْ : یعنی بالفرض والتقدیر که دوی آوریدل وکړي، د بتانو دپاره غوږ او سترګے نشته او که هغه موجود هم شي او حرکت هم وکړي، یا نبي او ولي بالفرض ستاسو آواز هم واوري نو بیا ستاسو حاجتونه نشي پوره کولے ځکه چه هغوی په دنیا کښې د چا حاجتونه نشو پوره کولے نو پس د مرګ نه به څه حاجت پوره کړي۔
بلـه دا چه شرك داسے لوی عیب دے چه حاجت پوره کیدل خو په ځای پریده بلکه دا ستاسو په سر باندے وبال دے۔ ځکه چه د قیامت په ورځ به دغه ستاسو معبودان ستاسو د شرك نه انکار کوي لکه سورة یونس (۲۹) آیت کښې راغلي وو چه ﴿ فَكَفَىٰ بِاللَّهِ شَهِيدًا بَيۡنَنَا وَبَيۡنَكُمۡ إِن كُنَّا عَنۡ عِبَادَتِكُمۡ لَغَافِلِينَ ﴾۔ مونږ ستاسو د عبادتونو نه ناخبره وو۔ او دغه شان سورة احقاف (٦) آیت کښې راغلي دي۔
مَا ٱسۡتَجَابُواْ لَكُمۡ : ستاسو قبول والے نشي کولے ځکه چه عاجز دي۔
قتادةؒ وائي : که بالفرض هغوی آوریدل وکړي نو تاسو ته فائده نشي درکولے۔
بعض وائي: که بالفرض مونږ هغوی لره آوریدل او ژوند هم ثابت کړو او هغوئ ستاسو

دعاء واورې نو هغوی به ستاسو نه د الله تعالیٰ ډیر تابعدار وي، تاسو چه کوم شرك او کفر ته رابللي وي نو هغه به نهٔ قبلوی ځکه چه هغوی پو هیږی چه د غیر الله نه مدد غوښتل په غیر د ظاهری اسبابو نه کفر او شرك دے۔
وَلَا يُنَبِّئُكَ مِثْلُ خَبِيرٍ : الله ددے خپلے خبرے صفت او رشتینوالے بیانوی چه ما درته کوم خبر درکړو او حقیقت مے درته بیان کړو نو ددے په شان خبر به تا ته هیڅوك درنکړی ځکه چه الله د هر حقیقت نه خبر دے، او مخلوق ته د هر حقیقت علم نشته۔ نو لنډ مطلب دا شو چه شرك کښې فائده نشته او سراسر ضرر پکښې شته نو بیا ولے انسان ضرر غوره کوی؟!۔

| يَا أَيُّهَا النَّاسُ أَنتُمُ الْفُقَرَاءُ إِلَى اللَّهِ وَاللَّهُ هُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيدُ ﴿١٥﴾ إِن يَشَأْ |
|---|
| اے خلقو ! تاسو محتاج يئ الله تعالیٰ ته او الله بے حاجته ستائیلے شویدے۔ که اُوغواړی |
| يُذْهِبْكُمْ وَيَأْتِ بِخَلْقٍ جَدِيدٍ ﴿١٦﴾ وَمَا ذَٰلِكَ عَلَى اللَّهِ بِعَزِيزٍ ﴿١٧﴾ |
| بو به ځي تاسو او رابه ولي مخلوق نوے۔ او نهٔ دے دا کار په الله باندے هیڅ ګران۔ |

**تفسیر :** مناسبت

١- تول خلك فقراء او محتاج دی او د فقراؤ نه غوښتل جائز نهٔ وی، ستاسو معبود خو مخلوق دے او مخلوق الله ته محتاج دی، نو بیا د محتاج نه څنګه غوښتل وکړے شی۔
٢- د مضمون سره مناسبت دا دے چه پدے آیتونو کښې د الله تعالیٰ تعارف دے، الله به څنګه پیژنې، د هغه د تعارف دوه طریقے دی، یوه دا ده چه الله به د خپل نفس په ضد باندے پیژنې چه مثلاً الله غنی دے او تهٔ فقیر ئے، الله باقی دے او تهٔ فانی، الله علیم دے او تهٔ جاهل، الله قادر دے تهٔ عاجز ئے، الله عزتمند دے، تهٔ ذلیله ئے۔
بیا پدے آیتونو کښې دوه خبرے دی یو بَيَانُ إِحْسَاسِ الْفَقْرِ لِلطَّاعَةِ ۔ یعنی دا خبره بیانوی چه تاسو د خپلے محتاجۍ احساس وکړئ او چا چه د خپلے محتاجۍ احساس وکړو نو دے سره د الله تعالیٰ ډیر ناشنا تعارف کیږی، ځان خپل الله ته په رشتیا سره محتاج وګنړه چه مونږ الله ته څومره محتاج یو، بنده چه کله الله ته خپل ځان پوره محتاج وګنړی نو ډیره عاجزی پکښې پیدا کیږی او د هغه فرمانبردار جوړیږی۔ ځکه چه څوك چا ته

محتاج وی نو د هغهٔ ډیر تابعدار وی. یوه خبره ئے هم زمکے ته نهٔ غورزوی.
دویمه خبره پکښې دا ده چه احتیاج د انسان الله تعالیٰ ته په دوه ځایونو کښې دے، یو په دنیا کښې هم او بل په آخرت کښې هم. لکه روستو وائی، بیا تقسیم د انسانانو کوی یو مؤمن دے چه خپل الله ئے پیژندلے نو ځو مره فائدے ئے وکړے او بل کافر انسان دے چه الله ئے ونهٔ پیژندلو نو ځو مره نقصان ئے وکړو. تر رکوع پورے به دا خبره بیانوی.
الْفُقَرَاء إِلَى اللهِ: الله تعالیٰ ته زمونږ دوه قسمه فقر دے (۱) فَقْرُ الْاَبْدَانِ . زمونږ د بدن هره حصه او هر جزء الله ته محتاج دے
(۲) فَقْرُ الْاَرْوَاحِ. زمونږ روحونه هم الله ته محتاج دی.
الفقراء لفظ ذکر کولو کښې تعریض دے چه د الله تعالیٰ ستاسو عبادتونو او اعمالو ته هیڅ ضرورت نشته، هغه غنی (بی حاجته) دے، خو ستاسو په عبادت راضی کیږی، نو دا ستاسو خپله فائده ده.
الْفُقَرَاء: معرفه دلالت کوی په کامل فقر باندے په هر څه کښې او په هر حالت کښې، نبی وی که ولی، مالدار وی که غریب.
الغنی ئے معرفه راوړه څکه چه مراد ترینه کامله غنا ده او انسان که ډیر مالدار وی هم محتاج وی.
الْحَمِيدُ: دا صفت ئے څکه راوړو چه یو انسان د خلکو نه ځان بے پرواه کړی نو د هغه بدی وئیلے کیږی او د الله تعالیٰ سرهٔ د کاملے غنا نه حمد وئیلے کیږی څکه چه مخلوق لره نعمتونه او فائدے ورکوی.
اهل منطق وائی چه د الله او د مخلوق ترمینځ څه نسبت دے؟ نو بعضو وئیلی دی چه د حادث او د قدیم مناسبت دے، الله قدیم دے او مخلوق حادث دے، او حادث محتاج وی قدیم ته. او دویمه اصطلاح دا ده چه مخلوق ممکن دے او الله واجب الوجود دے. مگر د قرآن اصطلاح دا ده چه الله غنی او مخلوق فقیر (محتاج) دے.
إِنْ يَشَأْ يُذْهِبْكُمْ : د الله د بے نیازئ او قادر مطلق کیدو او د مخلوق د محتاجئ دلیل دادے چه که هغه وغواړی نو تاسو به ددے دنیا نه فنا کړی او ستاسو په ځای به بل مخلوق راولی، او دا کار هغهٔ دپاره انتهائی آسان دے.
يَشَأْ: کښې اشاره ده چه الله تعالیٰ ستاسو په فناء کولو کښې د بل چا مشیت او خوښے ته محتاج نهٔ دے.

بِخَلْقٍ جَدِيْدٍ : یعنی نور مخلوق به راولي چه هغه به د الله ډېر تابعدار وي، او د هغهٔ نافرماني به نهٔ کوي. ۲- یا دا چه بل قسم مخلوق به راولي.۳- یا به بل عالَم راولي سوئ د هغې نه چاتاسو ئې پیژنئ.

| وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرٰى وَإِنْ تَدْعُ مُثْقَلَةٌ |
| --- |
| او نهٔ پورته کوي یو پورته کونکے بوج د بل چا او که آواز اُوکړي درونده بوج والا |
| إِلٰى حِمْلِهَا لَا يُحْمَلْ مِنْهُ شَيْءٌ وَلَوْ كَانَ ذَا قُرْبٰى |
| خپل بوج ته نو نشي پورته کیدے د هغه نه هیڅ شے اګرکه خاوند د خپلولئ وي |
| إِنَّمَا تُنْذِرُ الَّذِيْنَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَيْبِ وَأَقَامُوا |
| یقیناً ته یره ورکوے هغه کسانو ته چه یریږي د رب خپل نه په غیبو او پابندي کوي |
| الصَّلٰوةَ وَمَنْ تَزَكّٰى فَإِنَّمَا يَتَزَكّٰى لِنَفْسِهٖ |
| د مانځه او چا چه ځان پاك کړو نو یقیناً پاکول کوي دپاره د فائدے د خپل ځان. |
| وَإِلَى اللّٰهِ الْمَصِيْرُ ﴿۱۸﴾ |
| او خاص الله ته ورګرځیدل دي. |

**تفسیر:** ۱- ددے آیت مناسبت بعض مفسرین د ﴿ وَلَا يَغُرَّنَّكُمْ بِاللّٰهِ الْغَرُوْرُ﴾ سره وائي چه شیطان راځي او انسان ته وائي چه ته شرك وکړه ستا ګناه دے زما په غاړه وي. نو الله فرمائي چه یو تن د بل چا بوج نشي پورته کولے، دا هسے د شیطان وسوسه ده چه تا ته خوك وائي چه آزار او ګناه دے زما په ذمه وي.

وَإِنْ تَدْعُ مُثْقَلَةٌ : دا به هم د شرك سره متعلق وي یعني که ستا معبود ستا نیك هم وي او په تا مصیبت راغلو او تا ورته آواز وکړو نو هم ستا حاجت به پوره نکړي.

۲- ظاهر دا ده چه دا د (الْفُقَرَاءُ) سره متعلق دے. او د آیت مطلب دادے چه د بندګانو فقر او حاجت یو په دنیا کښ دے، او بل په آخرت کښ دے. نو دلته احتیاج د بندګانو په آخرت کښ بیانیږي. بیا په دنیا کښ فقر ګوزارے والا دے ځکه چه دنیا کښ اسباب شته او په آخرت کښ فقر حقیقي دے ځکه چه هلته به هیڅ اسباب هم نهٔ وي.

۳- بعض وائي دا د ﴿ وَلَوْ سَمِعُوْا مَا اسْتَجَابُوْا لَكُمْ ﴾ سره متعلق دے نو مخکښ رد د

شرك وشو نو اُوس تخویف اُخروی بیانوی یعنی لکه باطل معبودان په دنیا کښې د مشرك حاجت نشي پوره کولے نو دغه شان به په آخرت کښې هم ددۀ د گناه پیټے هغه مشرکان پیران وغیره نشي پورته کولے کومو چه دۀ ته د شرك دعوت ورکړیدے اګرکه ډیر قریبي رشته دار ئے ولے نۀ وی۔ (احسن الکلام بتصرف)

نو معنیٰ دا ده چه په آخرت کښې یو تن د بل چا بوج نشي پورته کولے۔

وَإِن تَدْعُ مُثْقَلَةٌ: مُثقله درون بار او بوج والا ته وئیلے شي۔ یا [نَفْسٌ مُثْقَلَةٌ مِنَ الذُّنُوبِ] هغه نفس چه د گناهونو نه درون شوے وی۔ یعنی که یو گناهګار او د گناهونو بوج والا انسان چا ته آواز کوی چه راشه ما سره دا بوج لږ پورته کړه نو ددۀ نه به ئے هیڅوك پورته نکړی اګرکه دغه رابللے شوے شخص ددۀ د خپلوانو نه وی، پلار، څوی، ښځه او خاوند وغیره به د یو بل په کار نۀ راځي۔ لکه سورة لقمان (۳۳) آیت کښې ذکر شو ﴿لَا يَجْزِئ وَالِدٌ عَنْ وَلَدِهِ﴾۔

إِلَىٰ حِمْلِهَا : د بوج نه مراد د گناهونو پیټے دے۔ حِمل په کسره د حاء سره هغه پیټے چه په شا یا په سر باندے وی۔ او حَمل په زور د حاء سره هغه دے چه په خیټه کښې وی یا د ونے په سر باندے وی۔ (ابن السکیت)

لَا يُحْمَلْ مِنْهُ شَيْءٌ : ابن عباس رضی الله عنه فرمائی څکه چه دۀ باندے به خپل بوج وی چه څوك به نۀ مونده کوی چه ددۀ نه بوج پورته کړی۔

بیا په وَلَا تَزِرُ او تَدْعُ مُثْقَلَةٌ کښې څو تکرار معلومیږی لیکن په واقع کښې تکرار نشته څکه چه په اوله جمله کښې مطلب دا دے چه په غیر د طلب نه په خپله خوښه هیڅوك د چا پیټے نشي پورته کولے، او د دویمے جملے مطلب دادے چه د چا په راغوښتو او طلب او منت زاریٔ سره هم د مشرك پیټے بل څوك نشي پورته کولے۔

إِنَّمَا تُنذِرُ الَّذِينَ: اُوس دا خبره بیانوی چه ددے خبرے فائده چا ته ملاویږی؟ نو دوه ډلے جوړوی، یو هغه دی چه اثر قبلوی او بل نافرمان چه د الله نه نۀ یریږی۔

(تُنْذِرُ) هم د یرے معنیٰ ده او (یَخْشَوْنَ) هم د یرے معنیٰ لری، نو د اول انذار نه مراد فائده مند انذار دے اَیْ اِنَّمَا یَنْفَعُ اِنْذَارُكَ الَّذِیْنَ یَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ ۔ یعنی ستا یره ول هغه کسانو ته فائده ورکوی چه هغوی د خپل رب نه یره کوی نو هغوی ستا د بیان نه اثر او فائده اخلي۔ گویا که یره تۀ هم دوی خلکو ته ورکوے نۀ نورو خلکو ته۔ (زجاج)

او ددے انذار نه روستو بیا د الله په عبادتونو کښې لګیا کیږی۔

دویم دا چه انذار په معنیٰ د اعلام (خبر ورکول) دی، او همدا ظاهر معنیٰ ده. یعنی ته خبر ورکوې پدې مسئلو سره هغه چا ته چه د خپل رب نه یریږی. او باطل پرست د خپل رب نه نهٔ یریږی، هغوی سره دا احساس نشته چه مونږ الله ته محتاج یو او که هغه مونږ ختموی نو ختمولے مو شی.

د انسان په نفس کښې چه تزکیه او پاکی پیدا کیږی نو یو د الله نه په خشیت (یرے) سره او بل په بندګئ د رب سره. او ګنده کیږی په دوه څیزونو، د الله نه په نهٔ یریدو او د هغه په بندګئ نهٔ کولو.

**يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ** : خشیت لفظ ئے ځکه راوړو چه دے خلکو د خپل رب تعارف کړیدے نو ځکه د هغهٔ نه یره هم کوی.

**وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ**: د خشیت نخه دا ده چه مونځ به قائموی کوم چه د الله تعالیٰ د تعلق ذریعه ده.

**وَمَن تَزَكَّىٰ**: یعنی څوك چه د الله نه یریږی او د مانځه پابند دے [فَقَدْ زَكَّى نَفْسَهُ] نو دهٔ د خپل ځان تزکیه وکړه، ځکه چه څوك د الله نه ویریږی، تول حرام شهوات ئے ختم شی، [مَا فَارَقَ الْخَوْفُ قَلْبًا إِلَّا خَرِبَ] هر زړه کښې چه د الله خوف ختم شی نو خراب شی. [مَا سَكَنَ الْخَوْفُ قَلْبًا إِلَّا أَحْرَقَ مَوَاضِعَ الشَّهَوَاتِ مِنْهُ] کله چه زړه کښې د الله خوف راشی نو شهوات وسیزی. او شهوات چه کله وسوزی نو تزکیه پیدا شی.

دویم په مانځه سره تزکیه پدے طریقه راځی چه مونځ دپاره اودس کیږی په هغے سره ګناه ورژیږی، ظاهر او باطن پاك شی، بیا په مانځه سره ګناه معاف شی نو پاك صفا شی. نو د الله په خشیت او د هغه په بندګئ سره انسان کښې پاکی راځی. او چا کښې چه دا دوه صفتونه راشی نو د رسول الله ﷺ بیان هغه دپاره فائده ورکوی.

**فَإِنَّمَا يَتَزَكَّىٰ لِنَفْسِهِ** : یعنی الله ستا تزکیه ته محتاج نهٔ دے بلکه خپله فائده به وکړے.

او ددے په مقابله کښې بله ډله خپله معلومه شوه چه څه کسان داسے شته چه هغوی د الله نه نهٔ یریږی، مونځ او عبادتونه نهٔ کوی نو نفس ئے ګنده دے، نو روستو به د هغے دواړو ډلو مثالونه راوړی.

**فائده** : امام شوکانیؒ لیکی چه په دے آیتِ کریمه کښې د قیامت په ورځ درے اهم ترینے خبرے بیان شوی: په دے ورځ به هیڅوك د هیچا د ګناه بوج نهٔ پورته کوی، د

انسان ډیره نږدې رشته هم دده پکار نه راځي، او کوم شخص چه په دې دنیا کښې نیک عمل کوي د قیامت په ورځ به دده بنه بدله صرف ده ته ملاویږي۔

| |
|---|
| وَمَا يَسْتَوِي الْأَعْمٰى وَالْبَصِيرُ ﴿١٩﴾ وَلَا الظُّلُمَاتُ وَلَا النُّورُ ﴿٢٠﴾ وَلَا الظِّلُّ |
| او نه دي برابر ړوند او لیدونکے۔ او نه تیارې او نه رڼرا۔ او نه سورے |
| وَلَا الْحَرُورُ ﴿٢١﴾ وَمَا يَسْتَوِي الْأَحْيَاءُ وَلَا الْأَمْوَاتُ إِنَّ اللّٰهَ يُسْمِعُ مَنْ يَشَاءُ |
| او نه ګرمي۔ او نه دي برابر ژوندي او نه مړي یقیناً الله اوروي چا ته چه اُوغواړي |
| وَمَا أَنْتَ بِمُسْمِعٍ مَّنْ فِي الْقُبُورِ ﴿٢٢﴾ إِنْ أَنْتَ إِلَّا نَذِيرٌ ﴿٢٣﴾ |
| او نه یې ته آورونکے هغه چا ته چه په قبرونو کښې دي۔ نه یې ته مګر یره ورکونکے یې۔ |

**تفسیر**: په ذکر شوو څلور واړو آیتونو کښې الله تعالیٰ د مومن او کافر ترمینځه فرق بیان کړے چه لکه څنګه چه ړوند او بینا برابریدے نشي، دغه شان کافر او مومن برابریدے نشي، د کافر زړه ړوند دے، او د مؤمن زړه په ایمان باندے روښانه دے۔ دا فرق په ذواتو کښې شو۔

**وَلَا الظُّلُمَاتُ**: دا فرق په اعمالو کښې دے۔ یعني لکه څنګه چه تیاره او رڼرا برابر نه دي، دغسې حق او باطل او نیک عمل او بد عمل برابریدے نشي، د مشرکانو او باطل پرستو عمل تیاره وي ځکه چه الله نه پیژني او د دین خلاف عمل کوي، او د مؤمن تول اعمال د الله په معرفت او د هغه د نبي د سنت مطابق وي نو رڼرا پکښې وي۔

**وَلَا الظِّلُّ وَلَا الْحَرُورُ**: دا فرق په آثارو کښې دے، یعني لکه څنګه چه سورے او ګرمي برابر نه دي، دغسې جنت او د هغې نعمتونه، د جهنم او د هغې د عذابونو پشان نه دي، د نیک عمل اثر دا دے چه انسان ته به ظل (سورے) یعني جنت او د هغې د آرام او راحت والا نعمتونه ملاویږي (لکه سوري کښې آرام او راحت وي) او د کافر انسان چه زړه یې ړوند دے د هغه ځاي به حَرور (ګرمي) یعني جهنم وي۔

**وَمَا يَسْتَوِي الْأَحْيَاءُ وَلَا الْأَمْوَاتُ**: یعني لکه څنګه چه ژوندي خلق د مړو سره برابر نه دي، دغسې حق او باطل برابریدے نشي۔ یا مؤمن او کافر برابریدے نشي۔ ابن قتیبهٔ وائي چه د ((ژوندو)) نه مراد پوهه خلق (یعني چه الله پیژني) او د مړو نه مراد ناپوهه او کم عقل خلق دي۔ او قتادهٔ وائي چه لکه څنګه چه پورتني څیزونه خپلو کښې

برابریدے نشی، دغسے مومن او کافر برابریدے نشی۔ آه۔

ذاکرین او غیر ذاکرین برابر نهٔ دی لکه حدیث کښې دی: [مَثَلُ الَّذِیْ یَذْکُرُ رَبَّهٗ وَالَّذِیْ لَایَذْکُرُ مَثَلُ الْحَیِّ وَالْمَیِّتِ] مثال د هغه شخص چه خپل رب یادوی او د هغه شخص چه رب نهٔ یادوی په شان د ژوندی او د مړی دے۔ (بخاری: ٦٤٠٧)

اِنَّ اللّٰهَ یُسْمِعُ مَنْ یَّشَآءُ: دے نه روستو دا خبره بیانوی چه کوم کسان چه ژوندی شو نو دا د الله په فضل سره وشو او کوم کسان چه مړهٔ شول نو دا د الله په عدل سره۔

او دا پنځم مثال دے او ددے نه روستو تر ﴿فَکَیْفَ کَانَ نَکِیْرِ﴾ پورے تسلی ده رسول الله ﷺ ته۔

یُسْمِعُ مَنْ یَّشَآءُ: اَیْ بِفَضْلِهٖ۔ یعنی الله خبره آوروی او توفیق د طاعت ورکوی په خپلے مهربانئ سره چا ته وغواړی نو بس د هغه نه ئے غوښتل پکاردی۔

وَمَآ اَنْتَ بِمُسْمِعٍ مَّنْ فِی الْقُبُوْرِ: دلته تشبیه ده اَیْ کَذٰلِكَ الْکُفَّارُ لَا تُسْمِعُهُمْ لِاَنَّهُمْ مَوْتَی الْقُلُوْبِ۔ یعنی تهٔ قبرونو والو ته خبره نشے آورولے او نهٔ ترے هغوی فائده اخستے شی، نو دغه شان کافرانو ته هم تهٔ خبره نشے آورولے او توفیق د ایمان نشے ورکولے ځکه چه د دوی زړونه مړهٔ دی۔ په ظاهره کښې خو کافران خبره آوری لیکن قبلوی ئے نهٔ، نو دا نهٔ قبلول داسے دی لکه نهٔ آوریدل۔ لکه په محاوره کښې خلك وائی فلانے بچے زما خبره نهٔ آوری یعنی زما نهٔ منی۔

نو لکه څنګه چه هغه مړی چه په قبرونو کښې پراتهٔ دی هغوی کښې روح نشته، او څه نهٔ آوری، او نهٔ د دنیا په حال پو هیږی، نو دغه شان دا ضدیان کافران هم نهٔ خبره آوری او نهٔ پرے پو هیږی (د الله تعالیٰ د معرفت او د قرآن د پوهے د نعمت نه محروم دی، د هیڅ دلیل او حجت او د هیڅ نصیحت نه فائده نشی پورته کولے) نو تهٔ دوی ته آورول نشے کولے بلکه آورول د الله تعالیٰ په قدرت کښې دی۔ تهٔ صرف دوی ته دعوت جاری ساته او هدایت د الله تعالیٰ په لاس کښې دے۔

او هر کله ئے چه ددے کافرانو تشبیه د مړو سره ورکړه نو پدے کښې د دوی د ایمان نه په پوره توګه د نا امیدئ اظهار دے۔

اِنْ اَنْتَ اِلَّا نَذِیْرٌ: دا هم تسلی ده چه ستا ذمه واری خو د پیغام رسول دی، آورول او د دوی قبلول ستا ذمه واری نهٔ ده۔

| إِنَّا أَرْسَلْنَاكَ بِالْحَقِّ بَشِيرًا وَنَذِيرًا وَإِن مِّنْ أُمَّةٍ |
| --- |
| یقیناً رالیږلے ئے مونږ ته په حق سره زیرے ورکوونکے او یره ورکوونکے او نشته یو امت |
| إِلَّا خَلَا فِيهَا نَذِيرٌ ﴿٢٤﴾ وَإِن يُكَذِّبُوكَ فَقَدْ |
| مګر تیر شویدے په هغے کښې یره ورکوونکے۔ او که دوی تا ته دروغژن وائی نو یقیناً |
| كَذَّبَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ جَاءَتْهُمْ |
| دروغژن ونیلی دی (پیغمبرانو ته) هغه کسانو چه مخکښې وو د دوی نه راغلی وو هغوی |
| رُسُلُهُم بِالْبَيِّنَاتِ وَبِالزُّبُرِ وَبِالْكِتَابِ الْمُنِيرِ ﴿٢٥﴾ |
| ته رسولان د هغوی په ښکاره معجزاتو او په وعظ خبرو او په کتاب رڼا والا سره۔ |
| ثُمَّ أَخَذْتُ الَّذِينَ كَفَرُوا فَكَيْفَ كَانَ نَكِيرِ ﴿٢٦﴾ |
| بیا راونیول ما هغه کسان چه کفر ئے کړے وو نو څنګه شو عذاب زما (هغوی لره)۔ |

**تفسیر**: د نبی کریم ﷺ د رسالت اعلان دے۔ او دا هم تسلی ده او د انذار تفصیل دے۔
یعنی الله تعالیٰ تهٔ د هدایت چینه جوړه کړے او حق دین ئے درکړو او را وے لیږلے، دے دپاره چه تهٔ مومنانو له د جنت زیرے ورکړے او کافرانو او نافرمانو له د جهنم نه ویروے۔
وَإِن مِّنْ أُمَّةٍ إِلَّا خَلَا فِيهَا نَذِيرٌ: پدے کښې رد دے په مشرکانو د قریشو چه په هر امت کښې یو یره ورکوونکے پیغمبر راغلے دے نو بیا دوی ستا په نبی کیدو باندے ولے حیرانتیا او تعجب ښکاره کوی۔
سوال: د عیسیٰ ﷺ او د رسول الله ﷺ ترمینځ خو ډیره موده د فَتْرَةُ (اِنْقِطَاعُ الرُّسُلِ) راغلے ده، او په هغے کښې نبی نهٔ دے راغلے؟ جواب: اهل فترت مکلف وو په دین د عیسیٰ ﷺ باندے ځکه چه د هغه د نَذَارَةُ (نبوت) آثار باقی وو۔ او کله چه د هغهٔ د نبوت او انذار آثار ختم شو نو بیا الله تعالیٰ محمد ﷺ راولیږلو او دهٔ د انذار آثار به تر قیامته پورے باقی پاتے وی ځکه چه دهٔ نه روستو بل نبی نشته۔
وَإِن يُكَذِّبُوكَ: نبی کریم ﷺ له تسلی ورکوی چه که د قریشو کافران تا ته د دروغو نسبت کوی، او ستا دعوت نهٔ قبلوی، نو تهٔ فکرمند کیږه مهٔ، او مهٔ همت بایله، دا خو د مخکښې نه را روانه ده چه کله هم یو نبی یو قوم ته معجزات او حق بیانوونکے کتاب

راوړے نو دغه قوم هغه دروغژن گنړلے، او په نتيجه کښ الله تعالیٰ هغوی په خپل گرفت کښ واخستل، او د هغهٔ نيو که ډيره زياته سخته وی۔

بِالْبَيِّنَاتِ : ١- معجزات/يا ښکاره احکام چه صرف په عقل سره معلوميږی چه دا صحيح دی يعنی عقلی دليلونه۔ وَالزُّبُرِ : واړه کتابونه يعنی صحيفے / يا د وعظ او نصيحت خبرے۔ وَالْكِتَابِ الْمُنِيرِ : ددے نه مراد غټ کتابونه دی لکه تورات، انجيل۔ چه په هغے کښ شرائع او احکام وی۔ او ددے درے واړو څيزونو تولو انبياء عليهم السلام ته نسبت په مجموعی طور سره دے يعنی بعضو پکښ يو او بعضو دوه او بعضو درے واړه پيش کړی وو لکه موسیٰ عليه السلام شو۔

| أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ أَنْزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَخْرَجْنَا بِهِ |
|---|
| آيا نهٔ گورے ته چه يقيناً الله تعالیٰ رالیږی د برے نه اُوبه نو را اُوباسو مونږ په هغے سره |
| ثَمَرَاتٍ مُخْتَلِفًا أَلْوَانُهَا وَمِنَ الْجِبَالِ جُدَدٌ بِيضٌ وَحُمْرٌ مُخْتَلِفٌ |
| ميوے چه مختلف وی رنگونه د هغے او د غرونو نه توټے دی سپينے او سرے، مختلف دی |
| أَلْوَانُهَا وَغَرَابِيبُ سُودٌ ﴿٢٧﴾ وَمِنَ النَّاسِ |
| رنگونه د هغے او د کارغانو په شان تور دی تلک تور۔ او د انسانانو او د ژوندو سرو |
| وَالدَّوَابِّ وَالْأَنْعَامِ مُخْتَلِفٌ أَلْوَانُهُ كَذَٰلِكَ إِنَّمَا يَخْشَى اللَّهَ |
| او د چارپيانو نه مختلف دی رنگونه د دوی دغه شان۔ يقيناً يريږی د الله تعالیٰ نه |
| مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ إِنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ غَفُورٌ ﴿٢٨﴾ |
| د بندگانو د هغه نه علماء۔ يقيناً الله تعالیٰ زورور دے بخنه کونکے دے۔ |

**تفسير** : پدے آيتونو کښ بيا د الله تعالیٰ د تعارف دليل بيانيږی، او دا لسم عقلی دليل دے، او پدے کښ مقصد دا دے چه د الله تعالیٰ تمام مخلوقات يو شان نهٔ دی، د دوئ ترمينځه اختلافات او فرق موندے کيږی، څوک مومن وی نو څوک کافر، څوک نيک وی نو څوک بد۔ د دوئ رنگونه هم جدا جدا وی۔ نو د تولو څيزونو خالق د يوے اُوبو نه مختلف قِسم ميوے پيدا کوی چه هغه په خوند او رنگ کښ د يو بل نه مختلف وی، بلکه يو قِسم ميوه په مختلفو رنگونو کښ وی لکه کهجوره، انگور، سبزيانے او نورے

گنړے میوے۔ په غرونو کښې رنګ په رنګ کانړی موندلے کیږی، د انسانانو، چارپایانو او څناورو هم مختلف رنګونه وی۔

د ایمان او کفر، د نیکئ او بدئ او د رنګونو دا اختلاف د الله تعالیٰ د قدرت نخے دی، چه په دے کښې غور او فکر هغه خلق کوی چه هغوئ له الله تعالیٰ د علم غونته دولت ورکړے وی۔ دا ټول مونږ ته دعوت راکوی چه په یو عظیم ذات ایمان راوړو او د هغه په بندګئ کښې مصروف شو۔

**جُدَدٌ**: جمع د جُدَّةٌ ده، ټکړے / او لارے ته وئیلے شی۔ ۲- خُطُوطٌ تَكُوْنُ فِي الْجِبَالِ كَالْعُرُوْقِ ۔ دا هغه کرخے دی چه په غرونو کښې وی د رګونو په شان چه څه سرے، څه تورے، څه سپینے پټے او کرخے وی۔

**وَغَرَابِيْبُ سُوْدٌ**: غرابیب جمع د غِرْبِيْبٌ ده د غراب نه اخستے شوے یعنی د کارغه په شان تور یعنی تک تور۔ نو غِرْبِيْبٌ د اَسْوَد د تاکید دپاره استعمالیږی، یعنی تور تک تور۔

نو سود بدل دے د غرابیب نه، یا تاکید دے او تاکید خو د مؤکد نه روستو وی لیکن دلته مقدم شوے د زیاتے مبالغے دپاره۔

**كَذٰلِكَ**: یعنی د دغه مذکور اختلاف په شان۔

**إِنَّمَا يَخْشَى اللّٰهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمٰٓؤُا** : دلته د علماء نه مراد هغه خلق دی چه علم د کائناتو لری چه دے خلکو د باران، د بوټو، د حیواناتو او د نورو مختلفو څیزونو رنګونه او خواص او صفات پیژندلی نو ددے وجه نه ئے الله تعالیٰ پیژندلے دے۔ ځکه چه د مخلوقاتو جمال او کمال د خالق په جمال او کمال باندے دلالت کوی۔ نو دا یو علم شو او دویم روستو ﴿إِنَّ الَّذِيْنَ يَتْلُوْنَ كِتٰبَ اللّٰهِ﴾ کښې راځی چه د قرآن علم دے۔ او پدے دواړو علمونو سره په انسان کښې د الله تعالیٰ یره پیدا کیږی۔

**يَخْشَى**: دلته ئے خشیت راوړو ځکه چه د خشیت معنیٰ بار بار تیره شوه چه خَوْفٌ مَعَ تَعْظِيْمٍ وَمَعْرِفَةٍ ته وئیلے شی۔ دا هغه یره ده چه د رب تعظیم او د پیژندلو سره وی۔ نو علماء هغه خلق دی چه الله ئے پیژندلے دے نو ځکه ترے یریږی۔ او جاهلان هغه خلق دی چه الله ئے نۀ دے پیژندلے نو ځکه ئے هیڅ تعظیم هم نۀ کوی او نۀ ترے یره کوی۔

دا آیت صریح دلیل دے په فضیلت د علم او د علماؤ۔ علم انسان د الله تعالیٰ خشیت ته راکاږی۔

## سوال وجواب

ډیر علماء شته چه د الله نه نهٔ یریږی او ډیر عوام شته چه د الله نه یریږی، د حرامو او حلالو تمیز کوی او د الله دپاره تهجد کوی او هغه ته ژړاګانې کوی؟۔

۱-جواب: عبد الله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی: [كُلُّ مَنْ خَشِيَ اللّٰهَ فَهُوَ عَالِمٌ] څوك چه د الله نه ویریدو نو هغه عالِم دے۔ او كَفٰى بِخَشْيَةِ اللّٰهِ عِلْمًا (بیهقی فی الشعب وابن ابی شیبة ۷/۴۰۱ رقم ۳۴۵۳۲ والطبرانی (۷۹۲۷) د الله نه یره پوره علم دے۔ نو که یو امی سړے د الله نه ویریدو نو دا هم په الله باندے عالِم دے ځکه ترے یره کوی۔ او که یو مولا د الله نه ونهٔ ویریدو او د هغه د حکمونو پابندی نهٔ کوی نو دا هسے معلوماتو والا دے لیکن حقیقی عالِم نهٔ دے۔ د شریعت په اصطلاح کښې عالِم هسے معلوماتو والا ته نهٔ وائی بلکه چه الله پیژنی او د هغهٔ نه یره کوی هغه عالِم دے لکه امام مالكؒ فرمائی:

[لَيْسَ الْعِلْمُ بِكَثْرَةِ الرِّوَايَةِ وَلَا بِكَثْرَةِ الْمَسَائِلِ وَلٰكِنَّهُ نُوْرٌ يَقْذِفُهُ اللّٰهُ فِيْ قَلْبِ عَبْدٍ مُؤْمِنٍ]

علم ډیرو روایتونو او ډیرو مسائلو نقل کولو ته نهٔ ونیلے کیږی بلکه دا یوه رڼرا ده چه الله تعالیٰ ئے د مؤمن بنده په زړه کښې اچوی چه په هغے سره حق او باطل او ښه او بد پیژنی۔

۲- جواب: سفیان ثوریؒ فرمائی: علماء په درے قسمه دی (۱) یو هغه دے چه عالم بالله وَبِاَمْرِ الله وی۔ یعنی الله هم پیژنی او د هغه حکمونه هم پیژنی۔ (۲) عَالِمٌ بِاللهِ لَا بِاَمْرِ اللهِ. یعنی الله پیژنی لیکن د هغهٔ پوره حکمونه ورته نهٔ وی معلوم۔ (۳) عَالِمٌ بِاَمْرِ اللهِ لَا بِاللهِ. د الله شریعت او حکمونه ورته ښهٔ معلوم وی لیکن الله نهٔ پیژنی، د الله قدر ئے زړه ته نهٔ دے پریوتے۔ نو دلته مخکښې دوه علماء مراد دی۔ (ابن کثیرؒ)

## د الله تعالیٰ نه د یرے صورتونه او کیفیتونه

**فائده:** د الله یره په قرآن کریم کښې ډیره ذکر کیږی نو د الله د یرے ډیر کیفیتونه دی، او ددے پیژندل پکار دی چه آیا دا په مونږ کښې شته او که نهٔ؟ (۱) څوك چه په دین عمل کوی نو دا د الله تعالیٰ نه یریدونکے دے۔ دا یره په هر مؤمن باندے لازم ده۔

(۲) خَشْيَةٌ مِنْ عَذَابِ اللّٰهِ ۔ (د الله د عذابونو نه یریدل) چه قبر، قیامت، د حشر زندګی راروانه ده، په دنیا او په آخرت کښې مصیبتونه دی چه دا راباندے نازل نشی۔ دا هم د الله تعالیٰ نه یره ده۔

(۳) د خواصو یره دا ده چه د الله د هیبت نه یریږی، ددے مثال داسے دے لکه یو با وقاره پلار خواته بچے ډیر په آرام او غلے ناست وی، نو اگرکه دا پلار ډیر شفقت والا او نیك وی، بچی ته هیڅ غصه نکوی او وهل ورله نهٔ ورکوی لیکن د پلار یو هیبت وی په بچی باندے۔ او دا د هوښیار بچی طریقه وی۔ نو دغه شان د مؤمن بنده په زړه کښې هم د الله هیبت وی اگرکه الله به ورله عذاب نهٔ ورکوی او دے به نیك عمله وی۔ یا د یو بادشاه خوا له انسان ورشی لکه د رسول الله ﷺ خواته به چه څوك راغلو نو خلکو باندے به هیبت راتللو اگرکه هغه به ورته غصه نهٔ کوله۔ دا یره هله پیدا کیږی چه انسان د الله تعالیٰ د قدرتونو او عظمت تصور وکړی۔ په بی فکرئ سره نهٔ حاصلیږی۔

عَزِيزٌ: پدے کښې اشاره ده عزت ته چه داسے خلکو ته الله تعالیٰ عزت ورکوی۔

غَفُورٌ: اشاره ده چه په خشیت کښې دا لازمه نهٔ ده چه بنده به هیڅ گناه نهٔ کوی بلکه د الله نه یرے والا نه هم گناهونه کیږی ځکه چه غفلت پرے راځی نو داسے خلکو ته به بخښنه کوی۔

| إِنَّ الَّذِينَ يَتْلُونَ كِتَابَ اللَّهِ وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ وَأَنفَقُوا |
|---|
| یقیناً هغه کسان چه لولی کتاب د الله تعالیٰ او پابندی کوی د مانځه او خرچ کوی |
| مِمَّا رَزَقْنَاهُمْ سِرًّا وَعَلَانِيَةً يَرْجُونَ تِجَارَةً |
| د هغے مالونو نه چه ورکړی مونږ دوی ته په پټه او په ښکاره، امید لری د داسے تجارت |
| لَّن تَبُورَ ﴿۲۹﴾ لِيُوَفِّيَهُمْ أُجُورَهُمْ |
| چه هیچرے به هلاك نشی۔ دے دپاره چه پوره ورکړی دوی ته اجرونه د دوی |
| وَيَزِيدَهُم مِّن فَضْلِهِ إِنَّهُ غَفُورٌ شَكُورٌ ﴿۳۰﴾ وَالَّذِي |
| او زیات ورکړی دوی ته د فضل خپل نه یقیناً هغه بخونکے قبلونکے دے۔ او هغه چه |
| أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ مِنَ الْكِتَابِ هُوَ الْحَقُّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ |
| وحی کړیده مونږ تا ته د کتاب نه هغه حق دے تصدیق کونکے دے د هغے چه مخکښې ددے |
| إِنَّ اللَّهَ بِعِبَادِهِ لَخَبِيرٌ بَصِيرٌ ﴿۳۱﴾ |
| نه دی یقیناً الله تعالیٰ په خپلو بندگانو باندے خامخا خبردار دے لیدونکے دے۔ |

**تفسیر** : پدے کښې د علم د پیدا کیدو او د الله تعالیٰ د تعلق دویم سبب بیانوی چه هغه د قرآن کریم سره تعلق قائمول دی۔ او دا د خشیت دپاره مثال هم دے۔ او دا د الله د تعارف بله لاره هم ده۔

ربط

مخکښې ئې خشیت والا ذکر کړل چه دوی علماء دی نو پدے آیت کښې د هغوی کردار او بشارت ذکر کوی۔

يَتْلُونَ كِتَابَ اللَّهِ: فَبِذٰلِكَ صَارُوْا عُلَمَاءَ : یعنی کوم خلك چه د الله کتاب ولولی نو ددے په وجه دوی علماء وګرځیدل۔

يَتْلُونَ: نه مراد همیشه تلاوت، د قرآن درس او تدریس دے سره د علم او عمل نه۔

**فائده** : مخکښې خشیت ذکر شو هغه عبادت قلبی دے، او تلاوت عبادت لسانی دے او اقامة الصلاة عبادتِ بدنی دے او انفاق عبادتِ مالی دے۔

تِجَارَةً: یعنی دوی الله لپاره تجارت وکړو نو د هغے د ګټے امید دے ولری۔ او ددے عمل نه ئې په تجارت سره تعبیر وکړو اشاره ده چه دا عمل به نهٔ ضائع کیږی او ضرور به ددے ثمره دوی ته ملاویږی۔

لِيُوَفِّيَهُمْ : دا لام متعلق دے د (لَنْ تَبُوْرَ) یعنی د دوی عملونه به څکه نهٔ ضائع کیږی چه الله تعالیٰ دوی ته پوره اجرونه ورکوی۔ یا لام د عاقبت دے متعلق دے د (يَرْجُوْنَ) پورے۔ یعنی د دوی د امیدونو عاقبت دا دے چه دوی ته به الله پوره اجرونه ورکړی۔ یا لام صله ده د پټ فعل [فَعَلُوْا ذٰلِكَ لِيُوَفِّيَهُمْ] دوی دا عملونه دے دپاره کړیدی چه پوره ورکړی دوی ته اجرونه د دوی۔

شَكُوْرٌ: یعنی الله تعالیٰ د دوی د عمل قدر کوی، دا به نهٔ ضائع کوی۔

او پدے آیت کښې ددے امت مؤمنان مراد دی، او اهل کتاب هم پکښې داخلیږی، او یواځې د یهودو پورے خاص نهٔ دے۔

وَالَّذِيْ اَوْحَيْنَا : دا بیان دے د مخکښې يَتْلُوْنَ۔ سوال پیدا شو چه کوم کتاب ولولو؟۔ نو الله فرمائی چه ما درته کوم کتاب درلیږلے دے هغه حق دے نو بس همغه لولئ۔

نو په دے آیتِ کریمه کښې د قرآن کریم عظمت او حقانیت بیان شویے، چه دا الله تعالیٰ د وحی په ذریعه په خپل رسول ﷺ باندے نازل کړیے، دا د کوم انسان جوړ کړے کتاب نهٔ

دے، او دا هغه حق کتاب دے چه د مخکنو آسمانی کتابونو تصدیق کوی، یعنی د دے پیغام هم هغه دے کوم چه د تورات او د انجیل وغیره وو، چه صرف د یو الله عبادت دِے وکړے شی۔ او چونکه الله تعالیٰ د خپلو بندګانو د حالاتو نه ښهٔ واقف دے، د دے وجے نه د هغهٔ په علم کښ دا خبره وه چه د انسانانو د هدایت او لار ښوونے دپاره یو داسے کتاب ضروری دے چه د قیامته پورے راتلونکی خلکو دپاره د هدایت شمع جوړه شی نو پدے وجه هغهٔ په خپل آخری رسول باندے قرآن کریم نازل کړے۔

مِنَ الْكِتٰبِ: مِنْ تبعیضیه دے یا بیانیه دے او په لفظ د (مِنْ) کښ اشاره ده چه د قرآن هر جزء حق دے۔

| ثُمَّ أَوْرَثْنَا الْكِتٰبَ الَّذِيْنَ اصْطَفَيْنَا مِنْ |
|---|
| بیا په میراث کښ ورکړو مونږ کتاب هغه کسانو ته چه غوره کړیدی مونږ د |
| عِبَادِنَا فَمِنْهُمْ ظَالِمٌ لِّنَفْسِهٖ وَمِنْهُمْ |
| بندګانو خپلو نه، نو بعض د دوی نه ظلم کونکی دی په ځان خپل او بعض د دوی نه |
| مُّقْتَصِدٌ وَمِنْهُمْ سَابِقٌ بِالْخَيْرٰتِ بِإِذْنِ اللّٰهِ |
| درمیانه رو دی او بعض د دوی نه مخکښ کیدونکی دی نیکیانو ته په توفیق د الله |
| ذٰلِكَ هُوَ الْفَضْلُ الْكَبِيْرُ ﴿٣٢﴾ جَنّٰتُ عَدْنٍ يَّدْخُلُوْنَهَا يُحَلَّوْنَ |
| دا مهربانی لویه ده۔ جنتونه د همیشوالی دی چه داخلیږی به دوی هغے ته اچولے به شی |
| فِيْهَا مِنْ أَسَاوِرَ مِنْ ذَهَبٍ وَّلُؤْلُؤًا وَلِبَاسُهُمْ فِيْهَا حَرِيْرٌ ﴿٣٣﴾ |
| دوی ته په هغے کښ بنګړی د سرو زرو او ملغلرے، او جامے د دوی به په هغے کښ وریښم |
| وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ أَذْهَبَ عَنَّا |
| وی۔او وائی به دوی ټول صفتونه د کمال خاص الله لره دی هغه چه بوئے تلو زمونږ نه |
| الْحَزَنَ إِنَّ رَبَّنَا لَغَفُوْرٌ شَكُوْرٌ ﴿٣٤﴾ الَّذِيْ |
| ټول غمونه یقیناً رب زمونږ خامخا بخونکے قبلونکے د عمل دے۔ هغه ذات دے |

| أَحَلَّنَا دَارَ الْمُقَامَةِ مِنْ فَضْلِهِ لَا يَمَسُّنَا |
|---|
| چه راکوزنے کړو مونږ کور د اوسیدو ته د مهربانئ خپلے نه، نهٔ به رسیږی مونږ ته |
| فِيهَا نَصَبٌ وَّلَا يَمَسُّنَا فِيهَا لُغُوبٌ ﴿۳۵﴾ |
| پدے کښی هیڅ تکلیف او نهٔ به رسیږی مونږ ته پدے کښی ستړے والے۔ |

**تفسیر:** پدے کښی د اهل قرآن درے درجے ذکر کیږی، او هغوی ته زیرے ورکوی۔

الله تعالیٰ وفرمایل چه هغهٔ د کتاب وارثان امتِ محمدیه جوړ کړل، چه دوئ د صحابه کرامو د زمانے نه په هر دور کښی دا اُولوستلو، زده ئے کړو او دنیا والو ته ئے د ورښودلو کوشش اُوکړو۔

**ثُمَّ:** دا د تعقیب ذکری دپاره دے، نهٔ د تراخی دپاره۔ یعنی بیا دا خبره هم واوره۔ څکه چه مخکښی ئے د قرآن کریم نزول ذکر کړو نو اُوس د هغے اهل ذکر کوی۔

**اُوْرَثْنَا:** په میراث کښی ورکړو مونږ دا کتاب۔ دے ته ئے میراث څکه ووئیلو چه بغیر د مشقت او تکلیف او خوارئ نه دوی ته مفتو کښی ملاؤ شویدے لکه میراث چه دغسے حاصلیږی۔

**مِنْ عِبَادِنَا:** دے نه مراد امتِ اجابت دے یعنی کومو خلکو چه ایمان راوړے نو دوی ته الله تعالیٰ دا کتاب په میراث کښی ورکړو، برابره ده چه دوی یاد کړے وی یا نهٔ، که چا نهٔ وی یاد کړے د هغه دپاره هم دا کتاب میراث دے څکه چه هغه ترے هدایت اخلی او ددے په احکامو عمل کوی، دا کتاب ئے مُقتدیٰ (پیشوا) دے، نو ددے برکات ورته حاصلیږی۔

**اصْطَفَيْنَا:** کښی اشاره ده چه کومو خلکو ته الله تعالیٰ کتاب ورکړو او هغوی قبول کړو ایمان ئے پرے راوړو نو دا هغه خلک دی چه الله غوره کړیدی د خپل احسان او ددے لوی نعمت دپاره۔ نو پکار ده چه دوی دا کتاب په صحیح شان قبول کړی، دا یاد کړی، ددے درس او تدریس وکړی، او پدے باندے عمل وکړی او بیا ددے نظام قائم کړی۔

او دا اُمت ددے قرآن په وجه په تولو امتونو باندے غوره امت وګرځیدو، د قیامت په ورځ به دوی په خلکو باندے ګواهی کوی۔ لیکن افسوس چه د کوم کتاب په وجه دے اُمت ته فضیلت حاصل شوے ددغه امت ګمراهان او شیطانان دا په ډزو ولی او دا سوزه

وی او دے ته د ظلم او دهشتگردئ کتاب وائی۔ او برائے نام مسلمان ددے په تعلیماتو کښې هدایت نهٔ گنړی۔ والله المستعان۔

**فَمِنْهُمْ ظَالِمٌ لِّنَفْسِهِ** : د عمل په اعتبار سره د قرآن کریم دا وارثان په دریے طبقو کښې تقسیم شوی دی، یوے طبقے په دے باندے په عمل کولو کښې کوتاهی وکړه، او د بعض کبیره گناهونو ارتکاب ئے وکړو، دویمے طبقے واجبات اداء کړل، د حرامو څیزونو نه ئے ډډه وکړه، لیکن د بعضِ مکروهاتو ارتکاب ئے وکړو او د بعضِ مستحباتو په ادائیگئ کښې ئے سستی وکړه، او دریمے طبقے د الله په توفیق سره فرائض او نوافل اداء کړل او د کبیره او صغیره گناهونو نه ئے پرهیز وکړو۔

**فَمِنْهُمْ ظَالِمٌ**: کښې دوه تفسیره دی (۱) دا آیت د سورة الواقعه د آیتونو په شان دے چه په هغے کښې اصحاب المشئمة، اصحاب المیمنة او السابقون دریے ډلے راغلی دی۔

او مِنْهُمْ ضمیر عِبَاد (یعنی مطلق بندگانو) ته راجع دے۔ نو د ظالم نه مراد کافر دے، او د مقتصد نه مراد اصحاب المیمنه دی، او سابق نه مراد السابقون دی۔ او د قرآن کریم یو آیت د بل تفسیر کوی۔

مگر دا تفسیر دلته د ډیرو وجو نه مرجوح دے۔

(۲) راجح تفسیر دا دے چه (مِنْهُمْ) نه مراد دغه غوره کړے شوی بندگان دی چه دغه اُمتِ اجابة دے یعنی مسلمانان۔ نو په دوی کښې دریے ډلے دی۔ او هر چه کافران دی نو د هغوی حال روستو ﴿وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا﴾ سره ذکر کیږی۔ او امام قرطبیؒ د شپږو صحابه کرامو نه نقل کړیدی چه هغوی وئیلی دی چه دا ټولے ډلے په مسلمانانو کښې دی۔

دلیل د غوره والی دا دے چه په روایت د بیهقیؒ وغیره کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی: [ظَالِمُنَا مَغْفُوْرٌ لَهٗ وَمُقْتَصِدُنَا نَاجٍ وَسَابِقُنَا سَابِقٌ بِالْخَيْرَاتِ] زمونږ ظالم ته به بخنه کیږی او مقتصد ته به نجات ملاویږی او زمونږ سابق به جنت ته مخکښې روان وی)۔

(واسناده ضعیف، قال العقیلی فی الضعفاء الکبیر (۳/٤٤٤) : فیه الفضل بن عمیرة لا یتابع علیه یروی من غیر هذا الوجه بنحو هذا اللفظ باسناد اصلح من هذا)

او داسے نور ډیر روایات صاحب د فتح البیان ذکر کړیدی۔ او ددے دا مطلب نهٔ دے چه دا دریے واړه یو شان دی، بلکه مقصد دا دے چه ظالم به جنت ته ځی خو پس د هغے نه چه بنهٔ مصیبتونه به پرے تیر شی، د مرگ، د قبر، د حشر د پنځوس زره کاله ورځے مصیبتونه۔ څوک به پکښې جهنم ته هم لاړ شی خو آخری ټکانه ئے جنت دے۔

**حکمة**: ظالم ئے مقدم کړو ځکه چه دا ډیر دی۔ دویم پدے کښې بشارت ته اشاره ده چه اے شخصه! که ته ظالم هم ئے (یعنی گناهونه هم درنه کیږی) بیا هم الله پدے خپل کتاب تا له غوره والے درکړیدے (وَلِلّٰهِ الْحَمْدُ عَلٰى ذٰلِكَ)۔ یا ظالم ئے مقدم کړو دے دپاره چه د الله د فضل نه نا امیده نشی۔

## د ظالم او مقتصد او سابق بالخیرات ښکلے تفسیرونه او فرقونه

حافظ ابن القیمؒ په «طریق الهجرتین» کښې پدے باندے یوه ښائسته مقاله لیکلے ده او ددے خلکو بیلا بیل صفات ئے بیان کړیدی۔ او څه صاحب د «فتح البیان» ذکر کړیدی۔

(۱) ظالم صَاحِبُ الْكَبَائِرِ دے۔ یعنی ایمان او توحید او د فرض مانځه د پابندئ سره لوی گناهونه کوی، بیا په دوی کښې هم خپل مینځ کښې ډیرے درجے دی۔

او مقتصد هغه دے چه د هغه طاعتونه هم شته او د کبیره گناهونو نه ځان ساتی خو بعض صغائر او مکروهات ترے کیږی۔ او سابق هغه دے چه هرے نیکئ ته مخکښې والے کوی، د حقوق الله او حقوق العباد تولو پابند دے، او د دوی صفات دومره ډیر دی چه انسان په تعجب کښې اچوی۔

(۲) ظالم صاحب الکبائر دے، او مقتصد صاحب الصغائر دے او سابق المجتنب لهما۔ (یعنی چه د دواړو نه ځان ساتی)۔ (قاله الربیع بن انسؒ)

(۳) ظالم: مَنْ كَانَ ظَاهِرُهٗ خَيْرًا مِنْ بَاطِنِهٖ ۔ چه د هغهٔ ظاهر د هغه د باطن نه غوره وی۔ (پټ گناهونه کوی)۔

مقتصد: اَلَّذِىْ اسْتَوٰى ظَاهِرُهٗ وَبَاطِنُهٗ ۔ چه ظاهر او باطن ئے یو شان وی۔ او سابق: اَلَّذِىْ بَاطِنُهٗ خَيْرٌ مِنْ ظَاهِرِهٖ۔ چه د هغه باطن د هغه د ظاهر نه ډیر غوره وی۔

(٤) ظالم هغه دے چه گناهونه ئے د نیکو نه زیات وی، مقتصد هغه دے چه گناهونه او نیکیانے ئے برابرے وی، او سابق هغه دے چه نیکیانے ئے ډیرے وی د گناهونو نه۔ (قاله الحسنؒ)۔

(٥) مقاتلؒ وائی: ظالم هغه موحد دے چه کبیره گناهونه کوی۔ مقتصد هغه دے چه کبیره گناهونه نهٔ کوی (لیکن طاعاتو کښې هم ډیر تیز نهٔ وی) او سابق هغه دے چه نیک اعمالو ته مخکښوالے کوی۔

(٦) سهل بن عبد اللهؒ وائی: ظالم جاهل دے او مقتصد متعلم (دین زده کونکے) دے،

او سابق عالِم دے۔

(۷) ذوالنون المصريؒ وائي : ظالم هغه دے چه الله صرف په ژبه يادوي، مقتصد هغه دے چه الله په زړه سره يادوي، او سابق هغه دے چه الله نهٔ هيروي۔

(۸) ظالم : اَلَّذِيْ يَنْتَصِفُ وَلَا يُنْصِفُ۔ چه د بل نه انصاف غواړي او خپله انصاف نکوي۔ مقتصد هغه دے چه خپله انصاف کوي او د بل نه هم انصاف غواړي۔ او سابق هغه دے چه خپله انصاف کوي او د بل نه انصاف نهٔ غواړي۔

(۹) بعض وائي : ظالم [اَلتَّالِيْ لِلْقُرْآنِ وَلَمْ يَعْمَلْ بِهٖ] چه قرآن لولي ليکن پوره عمل ئے پرے نهٔ وي۔او مقتصد هغه دے چه قرآن لولي او عمل هم پرے کوي۔ او سابق هغه دے چه قرآن لولي، او ددے علم هم زده کوي، او بيا پرے عمل هم کوي۔

امام ثعلبيؒ او قرطبيؒ پدے کښې شپاړس اقوال ذکر کړيدي خو په مذکوره اقوالو کښې د هغې نه اکتفاء ده۔

لِنَفْسِهٖ: کښې اشاره ده چه دے شخص ځان سره ظلم کړيدے او ظلم ئے بل چا ته متعدي نهٔ دے يعني بل څوك گمراهئ ته نهٔ رابلي۔

بِاِذْنِ اللّٰهِ: ۱- دا متعلق دے د (سابق) پورے يعني ددے شخص نيکو ته مخکښې کيدل د الله په توفيق سره دي، سابق دے دا گمان نهٔ کوي چه زهٔ دومره کمال والا يم۔

۲- بعض وائي چه دا د ټول تقسيم سره تعلق لري يعني دا تقسيم د الله په حکم او د هغهٔ په تقدير سره شويدے۔ اول ظاهر دے۔

ذٰلِكَ: ۱- اشاره ده اِصطفاء ته يعني دا غوره کول ددے خلکو د خپل کتاب دپاره دا لويه کاميابي ده چه ټول به يکے بعد ديگرے (يو بل نه پس) جنت ته داخليږي۔

۲- يا اشاره ده اِيْرَاثُ الْكِتَاب (يعنى د کتاب په ميراث کښې ورکولو) ته۔

۳-بعض ئے اشاره گرځوي سابقيت بالخيرات ته۔ يعني څوك چه نيکو ته مخکښې کيږي نو دا د الله لويه مهرباني ده۔ اول تفسير ظاهر دے۔

جَنّٰتُ عَدْنٍ: دا بدل دے د (اَلْفَضْلُ الْكَبِيْرُ) نه يا مبتداء ده چه خبر ئے پټ دے [لَهُمْ جَنّٰتُ] يعني دوي دپاره جنتونه دي۔ او پدے آيتونو کښې درے واړه قسمونو ته زيرے دے په بيان د لسو حالاتو د خوشحالئ سره۔

يُحَلَّوْنَ: يعني دوي به بنائسته کولے شي۔ / دوي ته به کالي اغوستولے شي۔

اَذْهَبَ عَنَّا الْحَزَنَ: ددے نه مراد ټول غمونه ددنيا او د آخرت دي، غم د اُور د جهنم،

غم د مرګ، غم د ګناهونو، غم د حساب، غم د میزان، غم د زوال د نعمتونو، غم د روزئ، غم د عاقبت او د خاتمې. ځکه چه مؤمن سره ددې تولو خبرو غمونه وي، نو الحزن کښې الف لام استغراقي دی. او په یو روایت کښې دي چه کله جنتیان د پل صراط نه واوړي نو بیرته به جهنم ته وګوري او دا به ووائي چه الله لره شکر دې چه زۀ ئې ستا نه خلاص کړم.

دَارَ الْمُقَامَةِ : پدې کښې اشاره ده چه د جنت نه وړاندې دنیا او قبر او میدان حشر تول د انتقال ځایونه دي.

## د نصب او لغوب فرقونه

۱- نَصَبٌ : ددې نه مراد تکلیف او پریشاني او مشقت دې، او لغوب ستوماني او ستړي والے دې. نو لغوب نتیجه ده د نصب، ځکه چه کله انسان په تکلیف شي او مشقت وکړي نو بدن کښې ستوالے او ستوماني پیدا شي. دواړه ئې جمع کړل د تاکید دپاره چه نۀ مشقت شته او نۀ ستړي والے.

۲- نصب د کار په وجه ستړي والے دې، او لغوب چه بدن هسې ستومانه او ستړے وي.

۳- قتادة وائي : نصب د بدن ستړے کیدل په محنت یا په مرض وغیره سره، او لغوب ستړے کیدل د نفس دي په غمونو او تکلیفونو سره نو ګویا که اول غم د بدن دې، او دویم غم ذهن او نفس دې یعني بدني زحمت هم نشته او ذهني تینشن هم نشته.

ابراهیم التیمیّ وائي : پدې کښې اشاره ده چه په دنیا کښې مؤمنان د عبادتونو په وجه دیر ستړي شوي وي او د آخرت د فکر د وجه نه په تینشن او ستوماني کښې وي.

وَالَّذِينَ كَفَرُوا لَهُمْ نَارُ جَهَنَّمَ لَا يُقْضَىٰ عَلَيْهِمْ

او هغه کسان چه کفر ئې کړیدې دوي لره اُور د جهنم دې فیصله به نۀ شي کیدې په دوي

فَيَمُوتُوا وَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُم مِّنْ عَذَابِهَا كَذَٰلِكَ

باندې پس چه مړۀ شي او نۀ به شي سپک کیدې د دوي نه د عذاب د هغې، دغه شان

نَجْزِي كُلَّ كَفُورٍ ﴿٣٦﴾ وَهُمْ يَصْطَرِخُونَ فِيهَا رَبَّنَا

بدله ورکوو مونږ هر کافر (ناشکره) ته. او دوي به فریادونه کوي پدې کښې اے ربه زمونږ!

| أَخْرِجْنَا نَعْمَلْ صَالِحاً غَيْرَ الَّذِي كُنَّا نَعْمَلُ أَوَلَمْ نُعَمِّرْكُمْ |
| --- |
| اُوباسه مونږ چه عمل اُوکړو نیك غیر د هغې نه چه مونږ به کول، آیا عمر نهٔ وو درکړے |
| مَا يَتَذَكَّرُ فِيهِ مَنْ تَذَكَّرَ |
| مونږ تاسو ته دومره چه نصیحت اخستو پدے کښې هغه چا چه نصیحت ئے اخستے دے |
| وَجَاءَكُمُ النَّذِيرُ فَذُوقُوا فَمَا لِلظَّالِمِينَ مِنْ نَصِيرٍ ﴿۳۷﴾ |
| او راغلے وو تاسو ته یره درکونکے پس اُوڅکئ نو نشته ظالمانو لره هیڅ مددګار۔ |

**تفسیر** : پدے کښې هغه خلکو له تخویف ورکوی چه هغوی الله نهٔ وو پیژندلے، او د آخرت نه منکرین وو۔ دوی بد انجام بیانوی۔ فرمائی : کوم خلق چه د الله، د هغهٔ د آیتونو او د آخرت د ورځے نه انکار کوی، هغویٰ به د جهنم اُور ته ګذارلے شی، چه هلته به نهٔ هغویٰ له مرګ راځی چه د غم او درد نه خلاص شی، او نهٔ به د یوے لمحے دپاره د هغویٰ نه عذاب سپکولے شی۔ الله تعالیٰ وفرمایل چه مونږ نافرمانو له دغسے عذاب ورکوو۔

**لَا يُقْضَى عَلَيْهِمْ**: اَىْ بِالْمَوْتِ فَيَمُوتُوا ۔ یعنی په دوی باندے به فیصله د مرګ نهٔ کیږی څکه چه په مرګ سره په دوی باندے آسانی راځی۔ اګرکه دوی به د مالك (یعنی د جهنم د خزانچی) نه مطالبه د مرګ کوی چه الله دے په مونږ مرګ راولی لکه سورة زخرف (۷۷) آیت کښې راغلی دی، او پدے کښې اشاره ده چه مرګ د الله د حکم نه بغیر نشی راتللے۔

**يَصْطَرِخُونَ**: اَىْ يَسْتَغِيثُونَ وَيَصِيحُونَ ۔ یعنی فریاد به کوی او چغے به وهی۔

**غَيْرَ الَّذِي كُنَّا نَعْمَلُ** : یعنی مونږ خو دنیا کښې خپل عملونو ته صالح (نیك) وئیل لیکن اُوس راته معلومه شوه چه هغه خو بد عملونه وو۔

**أَوَلَمْ نُعَمِّرْكُمْ** : دلته [يُقَالُ لَهُمْ] پټ دے، یعنی دوی ته به د زورنے په طور ووئیل شی۔ یعنی آیا مونږ تاسو له دومره اُوږد عمر نهٔ وو درکړے چه په تاسو کښې چه چا عبرت اخستو نو اخستے ئے دے نو تاسو ولے هغه شان نصیحت او عبرت نهٔ اخستو۔ لکه یو روایت کښې دی چه کله یو تن عذر کوی چه اے الله ! زهٔ د ظالم د لاس د لاندے وم نو آسیه به ورته پیش کړے شی، چه د فرعون په لاس کښې وه خو الله تعالیٰ ئے راضی کړیدے۔

بیمار ته به ایوب علیه السلام او جیل والا ته به یوسف علیه السلام او غریب ته به عیسیٰ علیه السلام پیش کړے شی چه دا څومره غریب وو۔

یو تن به ووائی چه زهٔ کشر وم نو الله به ورته دیر کشران پیش کړی چه فلانی فلانی متقیانو ته وګوره چه په کم عمریٔ کښې ئے الله راضی کړے وو۔

مفسرین لیکی چه په دنیا کښې که یو انسان د ایمان او عملِ صالح زندګی نهٔ تیروی، نو د قیامت په ورځ به اُوږد عمر ددهٔ خلاف حجت جوړ شی، لکه چه په دے آیت کښې په داګه ددے بیان شوے۔

**نُعَمِّرْكُمْ:** ددے عُمر نه څومره عمر مراد دے؟ درے اقوال دی او درے واړه مراد دی۔

(۱) شپیته کاله۔ (ابن عباسؓ وغیره)۔

(۲) اَرْبَعِيْنَ سَنَةً۔ (څلویښت کاله) (الحسنؒ ومسروقؒ) او دا یو قول د ابن عباسؓ دے هغه فرمائی: هغه عمر چه الله تعالیٰ پکښې د بنیادم عذر زائل کړیدے هغه څلویښت کاله دی۔

(۳) اَلْبُلُوْغ۔ بلوغ ته رسیدل۔ یعنی اتلسو کالو ته۔ (عطاءؒ وقتادهؒ)

**النَّذِيْرُ:** ۱- ددے نه مراد رسول او مُبلغ دے۔ ۲- یا ددے نه مراد شیب (سپین ګیرتوب) دے چه ستا ویښته سپین شی، دا تا ته تلیٔ ووهل شوه چه مرګ دربانددے نزدے راروان دے۔ والله المستعان۔ ۳- څینی وائی: مَوْتُ الْاَهْلِ وَالْاَقَارِبِ۔ خپل خپلوان مړ کیدل۔

۴- یا تبه مراد ده ځکه چه تبه د مرګ استازے دے، انسان ته مرګ رایادوی۔

| |
|---|
| إِنَّ اللّٰهَ عَالِمُ غَيْبِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ إِنَّهُ عَلِيْمٌ |
| یقیناً الله تعالیٰ پو هه دے په پټو خبرو د آسمانونو او د زمکے یقیناً هغه پو هه دے |
| بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ﴿۳۸﴾ هُوَ الَّذِيْ جَعَلَكُمْ |
| په هغه خبرو چه په سینو کښې دی۔ خاص الله هغه ذات دے چه وے ګرځولیٔ تاسو |
| خَلَائِفَ فِي الْأَرْضِ فَمَنْ كَفَرَ فَعَلَيْهِ |
| یو بل پسے اُوسیدونکی په زمکه کښې نو چا چه کفر اُوکړو نو په هغه باندے به وی |
| كُفْرُهُ وَلَا يَزِيْدُ الْكَافِرِيْنَ كُفْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ إِلَّا مَقْتًا |
| کفر د هغه، او نهٔ زیاتوی کافرانو لره کفر د دوی په نیز د رب د دوی مګر غصه |

| وَلَا يَزِيدُ الْكَافِرِينَ كُفْرُهُمْ إِلَّا خَسَاراً ﴿۳۹﴾ |
| --- |
| او نهٔ زیاتوی کافرانو لره کفر د دوی مگر تاوان۔ |

**تفسیر**: دا یولسم عقلي دلیل دے چه پدے کښې رد د شرك هم دے، او د الله تعارف هم۔ او دا جواب د مشرکانو هم دے چه هغوی به قیامت کښې وائي چه مونږ دنیا ته واپس کړئ چه نیك عمل وکړو نو الله فرمائي چه په آسمانونو او زمکه کښې چه څهٔ پټ دي، الله ته دا هر څهٔ معلوم دي، هغه د خلقو رازونه پیژني، نو هغه دا هم پیژني چه که کافران او مشرکان دوباره دنیا ته هم اُولیږلے شي نو د اول ځل پشان کفر او شرك کوي، او د نیك عمل نه به لرے پاتے کیږي، لکه څنګه چه الله تعالیٰ د سورتِ انعام په (۲۸) آیت کښې فرمائیلي : ﴿ وَلَوْ رُدُّوْا لَعَادُوْا لِمَا نُهُوْا عَنْهُ ﴾ (که چرے دا خلق دوباره دنیا ته واپس لاړ شي، نو دوباره به دوئ هغه څهٔ اُوکړي چه د هغے نه دوئ منع شوی وو)۔

هُوَ الَّذِيْ جَعَلَكُمْ خَلَائِفَ: د الله تعالیٰ د تعارف بل دلیل دے، او ربط ئے د مخکښې سره دا دے چه هرکله الله تعالیٰ په هر څه عالِم دے، نو ددے وجه نه ئے تاسو له د استعداد موافق خلافت درکړو۔ او پدے کښې د بندګانو متوجه کول مقصد دے چه دنیا کښې تاسو د یو بل پسے ځئ راځئ، پدے سره الله تعالیٰ په دنیا کښې د بنیادمانو وجود قائم ساتلے ځکه چه د پلار نه پس ځوی او د ځوی نه پس نمسے پیدا کیږي، او د هغه د پیدا کړو نعمتونو یو بل پسے پرله پسے وارثان جوړیږي، دا خبرے بنیادم له موقعه ورکوی چه دا غور او فکر او سوچ وکړي چه په دے زمکه باندے هیڅا ته همیش والے حاصل نهٔ دے، او کامیاب به هغه خلق وي چه هغوئ د الله تعالیٰ په توحید باندے ایمان راوړي، او د طاعت او بندګئ لاره اختیار کړي، او څوك چه کفر کوي، هغهٔ ته به ددے بدله ملاویږي، کفر داسے بده بلا ده چه انسان همیشه دپاره د الله تعالیٰ د رحمت نه لرے کوي، په دنیا کښې د هغهٔ د سختے ناراضګئ او په آخرت کښې د هلاکت او بربادئ سبب جوړیږي۔

خَلَائِفَ: یو بل پسے راتلونکي۔ یعنی روستني امتیان د تیرشوو اُمتونو خلیفه ګان دي۔ خلیفه، نائب او جانشین او د بل په ځای کار چلونکي ته وئیلے شي۔

فَمَنْ كَفَرَ: کافر هغه شخص دے چه الله تعالیٰ ئے ونهٔ پیژندلو، او دنیا ته د راتللو مقصد نه غافل ژوند ئے تیر کړو۔

إِلَّا خَسَارًا: یعنی څومره چه په کفر او شرك کښې ترقي کوي، نو دومره د الله تعالیٰ غضب په هغهٔ باندې زیاتیږي. او کله چه پرې د الله غضب زیاتیږي نو د دوی تاوان زیاتیږي. ځکه چه سرمایه د عمرئې بې ځایه خرچ کیږي.

| قُلْ أَرَأَيْتُمْ شُرَكَاءَ كُمُ الَّذِينَ تَدْعُونَ مِنْ دُونِ اللهِ |
|---|
| اُووایه! خبر راکړئ په باره د معبودانو ستاسو هغه کښې چه تاسو ئې رابلئ سوئ د الله نه، |
| أَرُونِي مَاذَا خَلَقُوا مِنَ الْأَرْضِ أَمْ لَهُمْ شِرْكٌ فِي السَّمَاوَاتِ |
| راوښایئ ما ته څه پیدا کړیدي دوی د زمکې نه آیا شته دوی لره برخه په آسمانونو کښې |
| أَمْ آتَيْنَاهُمْ كِتَاباً فَهُمْ عَلَى بَيِّنَةٍ مِنْهُ |
| آیا ورکړیدې مونږ دوی ته کتاب نو دوی په ښکاره دلیل دي د دغه کتاب نه |
| بَلْ إِنْ يَعِدُ الظَّالِمُونَ بَعْضُهُمْ بَعْضاً إِلَّا غُرُوراً ﴿۴۰﴾ |
| بلکه وعده نهٔ کوي ظالمان بعض د بعضو سره مگر دهوکه. |

**تفسیر**: پدې آیت کښې رد کوي په شرك باندې او د مشرکانو نه په شرك باندې دلیل غواړي چه تاسو خپل رب نهٔ پیژنئ نو د خپلو باطلو معبودانو په باره کښې هم لږ سوچ وکړئ چه د دوی څه حیثیت دې او د دوی دپاره څه کمال دې او دوی څومره کمزوري دي؟.

نو پدې آیت کښې د مشرکانو نه په شرك باندې درې قسمه دلیلونو طلب شویدې یو دلیل عقلي سفلي، دویم دلیل عقلي علوي، او دریم دلیل نقلي او وحي د نازل کړې شوي کتاب نه.

مطلب دادې: تهٔ ددې مشرکانو نه تپوس وکړه چه تاسو چه د الله نه سوئ بل څوك رابلئ، آیا هغوئ د زمکې په پیدا کولو کښې د الله تعالیٰ برخه داران پاتې شوي دي، یا په آسمان کښې د دوی د الله تعالیٰ سره څه برخه شته چه الله ورله ورځ ورکړې وي، او څه کارونه ئې ورته سپارلي وي چه د هغې په وجه دوی ستاسو په نظرونو کښې د عبادت مستحق گرځیدلي وي؟ یا د الله د طرفنه څه لیکل تاسو سره شته چه الله لیکلي وي چه د الله سره بل څوك شریك جوړول جائز دي؟ الله تعالیٰ وفرمایل: حقیقت دا دې چه داسې

هيڅ خبره نشته، بلکه دا ظالمان خلق خپلو ځانونو له يو بل ته ددے خبرے په وئيلو سره دهوکه ورکوی چه زمونږ دا معبودان به د الله تعالىٰ په نيز سفارشيان جوړيږی او مونږ به هغهٔ ته نزدے کوی، دے وجے نه په غير د دليل او برهان نه د دوئ عبادت کوی۔

د سَمٰوٰت سره ئے شِرك (برخه) ذکر کړو، نهٔ خلق، ځکه چه مشرکانو ته هم دا معلومه وه چه زمونږ شُرکَاءَ (معبودان) بره نشی ختلے چه په آسمان کښ څه شے پيدا کړی البته د برخے د تصرف دعوے ئے نيے کلکے کولے۔

كِتَاباً: دا دليل دے چه د الله كتاب دليل جوړيدے شی بل د مخلوق کوم کتاب دليل نهٔ دے۔ او دا دليل په سورة سبا آيت (٤٤) ﴿وَمَا آتَيْنٰهُمْ مِنْ كُتُبٍ يَدْرُسُوْنَهَا﴾ کښ ذکر شو۔ دا د هغے په شان دے۔

بَلْ إِنْ يَعِدُ الظّٰلِمُوْنَ : د (بَلْ) معنىٰ دا ده چه دليل نشته خو د دوی خالص تقليد دے چه کشران په مشرانو گمراهانو پسے بے دليله روان دی، او دغه مشران گمراهان ورله دهوکه ورکوی، باطله خبره ورته حقه ښکاره کوی، شرك ورته توحيد او بدعت ورته سنت ښکاره کوی، او دا دعوے کوی چه دا معبودان به مونږ الله ته نزدے کوی، او د هغه په دربار کښ به زمونږ سفارش کوی۔ دارنګه ظالمان يو بل ته دا دهوکه ورکوی چه د دوی معبودان به د دوی سره د مسلمانانو په خلاف مدد کوی، او دوی به په هغوی باندے غالبه کوی۔ لکه ابوسفيان وئيلی وو [اُعْلُ هُبَلُ اُعْلُ هُبَلُ]۔ هُبَل بابا زنده باد۔ د هغه په وجه مونږ سره مدد وشو۔

| |
|---|
| إِنَّ اللّٰهَ يُمْسِكُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ أَنْ تَزُوْلَا |
| يقيناً الله تعالىٰ بند ساتی آسمانونه او زمکه ددينه چه زائله شی دواړه او که چرته زائله |
| وَلَئِنْ زَالَتَا إِنْ أَمْسَكَهُمَا مِنْ أَحَدٍ مِّنْ بَعْدِهٖ إِنَّهٗ كَانَ حَلِيْماً |
| شی دواړه نشی رابندولے دے لره هيڅوك روستو د الله نه يقيناً الله تعالىٰ دے صبرناك |
| غَفُوْراً ﴿٤١﴾ وَأَقْسَمُوْا بِاللّٰهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ لَئِنْ جَاءَهُمْ |
| بخونکے۔ او دوی قسمونه کړی وو په الله باندے مضبوط قسمونه خپل کچرته راغلے دوی ته |
| نَذِيْرٌ لَّيَكُوْنُنَّ أَهْدٰى مِنْ إِحْدَى الْأُمَمِ فَلَمَّا |
| يره ورکونکے خامخا کيږی به دوی ډير هدايت والا د هريو د امتونو نه، نو هرکله |

| جَاءَهُمْ نَذِيرٌ مَّا زَادَهُمْ إِلَّا نُفُورًا ﴿٤٢﴾ اسْتِكْبَارًا |
|---|
| چه راغې دوی ته يره وركونكے، (نو) زيات نهٔ كړو هغه دوی لره مګر نفرت. د وجے د لوئی |
| فِي الْأَرْضِ وَمَكْرَ السَّيِّئِ وَلَا يَحِيقُ الْمَكْرُ السَّيِّئُ إِلَّا بِأَهْلِهِ |
| كولو نه په زمكه كښې او د مكر بد نه او نهٔ راګيروی مكر بد مګر لائق خپل |
| فَهَلْ يَنظُرُونَ إِلَّا سُنَّتَ الْأَوَّلِينَ فَلَن تَجِدَ لِسُنَّتِ |
| نو انتظار نهٔ كوی دوی مګر د طريقے د پخوانو نو هيچرے مونده به نكړے دپاره د طريقے |
| اللَّهِ تَبْدِيلًا وَلَن تَجِدَ لِسُنَّتِ اللَّهِ تَحْوِيلًا ﴿٤٣﴾ |
| د الله تعالىٰ بدليدل او هيچرے مونده به نكړے ته دپاره د طريقے د الله تعالىٰ أوړيدل. |

**تفسير** : دا ديارلسم عقلي دليل دے. مخكښې د باطلو معبودانو كمزوری بيان شوه نو اوس الله تعالىٰ خپل عظمتِ شان بيانوی چه آسمانونه او زمكه په خپلو خپلو ځايونو كښې صرف هغه راټينګ كړيدی، پدے كښې د هغهٔ نه سوئ د هيچا واك نهٔ چليږی. په دوئ كښې ئے داسے قوت پيدا كړے چه ټول آسمانونه په خپلو ځيونو باندے بغير د څهٔ ليدلو ستنو نه ولاړ دی، او زمكه هم په خپل ځائے ټينګه ده، په دے كښې حركت نهٔ پيدا كيږی، ګنے آسمانونه به د انسانانو په سرونو را پريوتی وے او دوئ به ئے هلاك كړی وے، او زمكے خوزيدو سره به تمام مخلوقات لاندے باندے شوی وے، او د دوئ ژوند به ئے تباه كړے وے. دا هر څهٔ ددغه لوی قادر مطلق او مالك د طاقت او قدرت په ذريعه ولاړ دی چه هغه نهايت بُرد بار او ګناهونه بخښونكے دے.

أَن تَزُولَا : دا مفعول لهٔ دے او لِئَلَّا يا كَرَاهِيَةَ پكښې پټ دے. يعنى الله آسمانونه او زمكه راټينګ كړيدی ددے دپاره چه دا زائل او راپرے نهٔ وځی. يا مفعول ثانی دے. (مِنْ أَن تَزُولَا) يعنى الله آسمانونه د زائله كيدو نه راټينګ كړيدی.

مِنۢ بَعْدِهِ : ١- يعنى روستو د خوزيدلو او زائله كيدو نه.

٢- يا روستو د راټينګولو د الله تعالىٰ نه.

بعض وائی دا زائله كيدل په قيامت كښې مراد دی، يعنى قيامت به خامخا راځی، كه الله آسمانونه او زمكه ګوزار كړی، نو بيا كوم معبود مِنْ دُونِ الله دے چه هغه دا په خپل ځای راټينګ كړی او قيامت راننشی. اول ظاهر دے.

حَلِيمًا غَفُورًا : يعنى ددے مشركانو د شرك د وجه نه خو آسمانونه راپريوتل پكار وو ليكن الله صبرناك ذات دے، دوى ته ئے صبر كريدے، او قيامت كښې به ورسره حساب كوي او غَفُورًا : دوستانو لره بخونكے دے۔
وَأَقْسَمُوا بِاللَّهِ : پدے آيت كښې زجر دے هغه معرضينو د قرآن ته چه اول كښې ئے غوښتو خو چه كله راغلو بيا ئے ترے انكار وكړو۔ او د قرآن مقابلے ئے شروع كړے۔
د نبى كريم ﷺ د بعثت نه مخكښې چه كله د قريشو كافرانو ته معلومه شوه چه يهودو او نصاراؤ موسىٰ عليه السلام او عيسىٰ عليه السلام دروغژن ګڼړلى وو، نو دوئ په هغوئ باندے لعنت اُوليږلو (او دا ئے وويل چه دا يهود او نصارىٰ ډير كم عقل خلك وو، الله ورته رسولان راليږلى وو او دوى ترے انكار كولو) او قسم ئے وخوړلو چه كه الله تعالىٰ دوئ ته خپل كوم نبى يا كتاب را وليږى نو دوئ به د اهلِ كتابونه ښهٔ ثابت شى، په هغهٔ به ايمان راوړى او د هغهٔ عزت به كوى، لكه دا خبره الله تعالىٰ د دوى نه په سورة الصافات آيت (١٦٧) كښې نقل كريده ﴿ وَإِنْ كَانُوا لَيَقُولُونَ ○ لَوْ أَنَّ عِنْدَنَا ذِكْرًا مِنَ الْأَوَّلِينَ ○ لَكُنَّا عِبَادَ اللَّهِ الْمُخْلَصِينَ○ ﴾۔
ليكن كله چه نبى كريم ﷺ را اُوليږلے شو نو دوئ هغهٔ سره سخت نفرت او دشمنى وكړه، د كبر او غرور د وجے نه ئے په هغهٔ باندے ايمان رانهٔ وړو، او خلقو لره د الله د دين نه آرولو دپاره ئے قسما قِسم سازشونه وكړل۔ دا ناپوهه ددے حقيقت نه ناخبره وو چه هر بد سازش آخر د سازش كونكى د غاړے پرے جوړيږى۔
الله تعالىٰ وفرمايل : د دوئ د كردار نه خو داسے معلوميږى چه لكه په دے انتظار كښې وى چه الله دوئ هم د مخكښو ظالمانو خلقو غونته هلاك كړى۔ كه چرے دوئ خپل حالت بدل نهٔ كړو نو دا هم يو حقيقت دے چه د الله قانون هيڅ كله نهٔ بدليږى، اونهٔ داسے كيږى چه د عذاب مستحق يو وى، او نازل په بل چا كړے شى۔ دے وجے نه مكے والو دپاره په همدے كښې خير دے چه د عذاب د وخت راتللو نه مخكښې توبه كړى او په الله او د هغهٔ په رسول (ﷺ) باندے ايمان راوړى۔ دا دوى ته ډير ښائسته نصيحت دے۔
مِنْ إِحْدَى الْأُمَمِ : د يو د ټولو اُمتونو نه۔ يعنى د هر يو اُمت نه۔
مَا زَادَهُمْ : فاعل ئے مَجِيءُ النَّذِيرِ دے۔ يعنى زيات نكړو راتګ د نذير دوى لره مگر نفرت۔ يعنى د هغهٔ د خبرے منلو نه ئے وړاندے والا اختيار كړو۔
اسْتِكْبَارًا فِي الْأَرْضِ : دا بدل دے د نُفُورًا نه۔ يعنى دغه نفرت د دوى څه وو، هغه ځان

لوی ګڼرل وو په زمکه کښې او حق ته نهٔ تسلیمیدل وو۔ یا دا مفعول لهٔ دے۔ یعنی نفرت ئے د وجه د تکبر نه وکړو۔ او همدا ظاهر احتمال دے۔
او فِي الْأَرْضِ کښې اشاره ده چه خکته مکان کښې (چه زمکه ده) تکبر کول ضدین جمع کول دي۔ (احسن الکلام)
وَمَكْرَ السَّيِّءِ: دا عطف دے په اِسْتِكْبَارًا دا هم مفعول لهٔ دے۔ اَیْ لِاَجْلِ الْمَكْرِ السَّيِّءِ۔ یعنی د وجه د ناکاره چلونو او دهوکو او حیلونه۔ او دا اِضافت د موصوف دے صفت ته۔
یا فعل ئے پټ دے۔ [وَمَكَرُوْا مَكْرَ السَّيِّءِ] (دوی تدبیرونه جوړ کړل تدبیرونه ناکاره)۔
او ددے نه مراد مؤمنانو او نبی کریم ﷺ ته دهوکے ورکول او هغوی ته د تکلیف ورکولو یا د قتل کولو دپاره چلونه جوړول دي، یا هغوی ته خیرے کول دي۔
وَلَا يَحِيْقُ الْمَكْرُ السَّيِّءُ: یعنی څوك چه بل ته په غلطه چل جوړوی، نو هغه به پکښې خپله راګیرېږی، دے کښې دا هم داخل ده چه څوك چا ته بنیرے کوی او هغه ئے اهل نهٔ وی، نو دا به ورته بیرته راواپس کیږی، لکه ډیر باطل پرست چه خان ته بزرګان وائي اهل حقو ته بنیرے کوی۔
**فائده**: یو ځل کعب الاحبار ابن عباس رضی الله عنه ته ووئیل: په تورات کښې ئے لیکلی دي چه [مَنْ حَفَرَ لِاَخِيْهِ حُفْرَةً فَقَدْ وَقَعَ فِيْهَا] څوك چه ورور ته کنده وکنی نو دے به پکښې پریوزی نو ابن عباس رضی الله عنه ورته وفرمایل چه دا په قرآن کښې هم شته او دا آیت ئے ورته ولوستلو۔

## د تبدیل او تحویل فرق

تبدیل په صفت کښې وی چه د مخکنو کافرانو سزا زیاته وی او د اُوسنو کمه شی۔ او تحویل دا چه کفر یو چا کړے وی او هلاك بل څوك کړے شی۔ د مُکَذِّب نه غیر مُکَذِّب ته عذاب واوړی۔

| اَوَلَمْ يَسِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَيَنْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِيْنَ |
|---|
| آیا نهٔ ګرځی دوی په زمکه کښې پس چه اُوګوری چه څنګه شو انجام د هغه کسانو |

| مِنْ قَبْلِهِمْ وَكَانُوا أَشَدَّ مِنْهُمْ قُوَّةً وَمَا كَانَ |
|---|
| چه مخکښ وو د دوی نه او وو هغوی ډیر سخت د دوی نه په طاقت کښې او نهٔ دے |
| اللّٰهُ لِيُعْجِزَهُ مِنْ شَيْءٍ فِي السَّمَاوَاتِ وَلَا فِي الْأَرْضِ إِنَّهُ كَانَ |
| الله تعالیٰ چه عاجز کړی هغه لره څه شے په آسمانونو او نهٔ په زمکه کښې یقیناً هغه دے |
| عَلِيماً قَدِيراً ﴿٤٤﴾ وَلَوْ يُؤَاخِذُ اللّٰهُ النَّاسَ بِمَا كَسَبُوا |
| پوهه قدرت لرونکے۔ او کچرته رانیولے الله تعالیٰ خلقو لره په سبب د عملونو د دوی |
| مَا تَرَكَ عَلَىٰ ظَهْرِهَا مِنْ دَابَّةٍ وَلَـٰكِنْ يُؤَخِّرُهُمْ |
| (نو) نهٔ به ئے وے پریخے په شا د زمکه باندے هیڅ زنده سر لیکن روستو کوی دوی لره |
| إِلَىٰ أَجَلٍ مُسَمًّى فَإِذَا جَاءَ أَجَلُهُمْ فَإِنَّ اللّٰهَ كَانَ |
| یو نیټے مقررے ته نو کله چه راشی نیټه د دوی نو یقیناً الله تعالیٰ دے |
| بِعِبَادِهِ بَصِيراً ﴿٤٥﴾ |
| په بندګانو خپلو باندے لیدونکے۔ |

**تفسیر** : دا هم تخویف دنیوی دے، او توبیخ او رټنه ده مشرکانو ته، او تعارف د الله تعالیٰ دے۔ ربط ئے دا دے چه دا د (سُنَّتُ الْأَوَّلِيْنَ) تشریح ده۔ یعنی پخوانو ته الله تعالیٰ د تکذیب په وجه عذاب ورکړو نو دوی هم ترے نشی خلاصیدے، که دوی ووائی چه چا ته ئے عذاب ورکړے دے؟ نو الله فرمائی: آیا دوئ په زمکه کښې نهٔ ګرځی چه د هغه قومونو انجام ووینی چه د دوئ نه مخکښې تیر شوی، د دوئ خواږ شاته وسیدل، او د دوئ نه زیات د قوت خاوندان وو، لیکن کله چه هغوئ د الله تعالیٰ نه سرکشی وکړه نو هغوی ئے هلاك کړل، او هغوئ هیڅ خلاص نهٔ کړل، څکه چه په آسمانونو او زمکه کښې هیڅ شے داسے نشته چه الله لره عاجزه جوړ کړی او د هغهٔ نه وتښتی۔ د نبی کریم ﷺ په یو مسنونه دعاء کښې راغلی دی: [لَا مَلْجَأَ وَلَا مَنْجَا مِنْكَ إِلَّا إِلَيْكَ] (زما ربه! نشته ځای د پناه‌ی او ځای د خلاصئ مګر صرف تا ته دے)۔ (بخاری: ۲۲۷، مسلم: ۷۰۵۷)

وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُعْجِزَهُ: یعنی که دوی ووائی چه مونږ د دوی نه په طاقت کښې زیات یو، نو الله فرمائی چه الله تعالیٰ نه هیڅوك په هیڅ ځای کښې نشی خلاصیدے، د هر چا

حالت ورته معلوم دے، او په هر چا باندے قادر دے۔

مِن شَيْءٍ: (مِنْ) د استغراق او تاکید د نفی دپاره دے۔

وَلَوْ يُؤَاخِذُ اللهُ: سوال پیدا شو چه دا عذاب ډیر اُوس سمدست راشی؟ نو الله فرمائی چه هر شی دپاره الله تعالیٰ نیټه مقرر کړیده خامخا به راځی په جلتئ سره ئے مهٔ غواړئ۔

الله تعالیٰ فرمائی: چه که الله انسان د هغهٔ په هره ګناه باندے په دنیا کښې رانیولے، او عذاب ئے پرے نازلولے، نو د زمکے په مخ به ساه والا باقی نهٔ وے پاتے شوے، هغهٔ د انسانانو د حساب کتاب دپاره د قیامت ورځ مقرر کړے، کله چه هغه وخت راشی نو هغه به تول راجمع کوی او هر یو ته به د هغهٔ د عمل مطابق جزا اوسزا ورکوی، او هغه بنهٔ پوهیږی چه څوك په دغه ورځ د عذاب مستحق دے او څوك د اِعزاز او اکرام حقدار۔

النَّاسَ: ددے نه مراد ګناهګار انسانان دی، برابره ده چه مشرکان وی او که مؤمنان۔

بِمَا كَسَبُوا: یعنی په تولو ګناهونو باندے څکه چه کله نا کله په بعضو ګناهونو ورته په دنیا کښې هم سزا ورکوی۔ لکه په سورة روم (41) آیت کښې راغلی دی۔

مِنْ دَآبَّةٍ: سوال وجواب

سوال: ګناهونه خو انسانانو کړیدی نو د هغے اثر په زنده سرو باندے ولے پریوزی؟

1- جواب: مخکښې ذکر شویدی چه د ګناهونو په وجه الله تعالیٰ بارانونه کم کړی، یا ئے بند کړی نو بوټی کم شی او وچ شی نو دغه زنده سر د لوږے اوتندے د وجه نه مړه شی، او پدے باندے دلیل دا دے چه یو تن وویل چه ظالم په خپل ظلم سره ځان ته نقصان ورکوی نو هر سړے دے د خپل ځان غم کوی (یعنی دعوت او تبلیغ ته ضرورت نشته) نو ابو هریره ﷺ ورته وفرمایل: [وَالَّذِىْ نَفْسِىْ بِيَدِهٖ اِنَّ الْحُبَارٰى لَتَمُوْتُ هَزْلًا فِىْ وَكْرِهَا بِظُلْمِ الظَّالِمِ] قسم په الله زانړے (مرغئ) په خپلو جالو کښې د ظالمانو د ظلم په وجه خواریدو سره مړ شی)۔

2- جواب: لِاَنَّهَا خُلِقَتْ لِلْاِنْسَانِ فَاِذَا عُدِمَ عُدِمَتْ۔ حیوانات د انسانانو دپاره پیدا دی نو کله چه انسانان هلاك شی، حیوانات به هم هلاکیږی۔ ددے نه داسے تعبیر هم کولے شی: دواب د انسانانو دپاره لوی نعمت دے نو د انسانانو په ظلم سره به د دوی نه دا نعمت واخستے شی۔ (احسن الکلام)

۳- جواب : دا کنایه ده د قیامت نه. یعنی هیڅ حیوان به ئې په زمکه نۀ وې پریخې یعنی قیامت به راغلې وې.
٤- جواب : دابه کنایه ده د همدغه ظالم نه. یعنی د دوی د گناهونو په وجه به هم دوی هلاك شوی وې. (کلبیؒ، حسین بن الفضلؒ والاخفشؒ، وابن جریرؒ) (القرطبی ١٤/ ٣٦١)
اول او دویم جواب غوره دی.
فَإِذَا جَاءَ أَجَلُهُمْ: ددې جزاء پټه ده (يُعَذَّبُوْنَ) یعنی کله ئې چه نیټه راشي نو دوی ته به عذاب ورکولې شي ځکه چه الله پرې لیدونکې دې.
مګر که [فَإِنَّ اللَّهَ كَانَ بِعِبَادِهِ بَصِيرًا] ئې جزاء شي، هم صحیح ده. کله چه نیټه راشي نو الله په خپلو بندګانو لیدونکې دې، د خپلو لیدلو مطابق سزا به بندګانو ته ورکوي. او الله لیدونکې دې چه څوك مستحق د عذاب دې او څوك نۀ دې.

## امتیازات د سورة فاطر

۱- پدې سورت کښې د الله تعارف او د الله په معرفت باندې ډیر عقلي دلیلونه ذکر شو.
۲- د عزت مسئله ذکر شوه چه عزت صرف د الله په طاعت سره حاصلیږي.
۳- او د فقر مسئله پکښې ذکر شوه چه مخلوق الله تعالیٰ ته محتاج دې.
٤- د تزکیة النفس اسباب پکښې ذکر دي.
٥- ډیر فرقونه د مؤمن او کافر ذکر شو.
٦- او د قرآن اهل او په امة الاجابة کښې درې ډلې جوړیدل. دا صرف ددې سورت خصوصیت دې. (ظالم، مقتصد او سابق).
ختم شو تفسیر د سورتِ فاطر په مدد د مالك الملك. په تاریخ ۱۸ رمضان المبارك ١٤٣٦ هـ. الموافق : ٥/٧/٢٠١٥ . قُبَيْل افطار الصوم. فی اسریت کالام.

❀❀❀❀❀❀

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ○

| آیاتها (۸۳) | (۳٦) سورت یٰسٓ مکیة (٤١) | رکوعاتها (٥) |
| --- | --- | --- |

سورتِ یٰس مکی دے، په دے کښې درے آتیا آیتونه، او پنځه رکوع دي

## تفسیر سورت یٰسٓ

**نوم :** ددے سورت ډیر نومونه دي (۱) یس. (۲) قَلْبُ الْقُرْآن. (د قرآن زړه).
(۳) اَلسُّوْرَةُ الْعَظِيْمَة. (لوی سورت په اعتبار د معنیٰ)
(٤) سُوْرَةُ الْمُعِمَّة. (یعنی تازه سورت- معمه تروتازه باغ ته وئیلے شی، (لسان العرب)).
(٥) اَلْمُدَافِعَة. (دفع کوی د انسان نه آفاتو لره).
(٦) اَلْقَاضِيَة. (د حاجتونو د پوره کیدو سورت).
(۷) اَلْعَزِيْزَه (غالب او زورور سورت) دا څه نومونه روایاتو کښې ذکر دي او څه د سلفو نه نقل دي.

**د نازلیدو زمانه :** قرطبیؒ لیکلی دي چه دا سورت د ټولو په نیز مکی دے. صرف د یو آیت ﴿وَنَكْتُبُ مَا قَدَّمُوْا وَآثَارَهُمْ﴾ په باره کښې د بعضو وینا ده چه دا په مدینه کښې نازل شوے. ابن عباس او عائشے ؓ نه روایت دے چه دا سورت مکی دے. (فتح البیان)

## فضیلت

صاحب د ((محاسن التنزیل)) لیکلی چه ددے سورت د فضیلت په حقله چه کوم حدیثونه راغلی، ټول موضوع، باطل یا ضعیف دي. انتهیٰ. بعض نور علماء وائی چه د مجموعه روایاتو د راجمع کولو په وجه دا روایت حسن درجے ته رسیږی چه دا سورت د حاجتونو د پوره کیدو سورت دے. پدے وجه څوك چه مړ کیږی نو هغه ته د سورتِ یس وئیل په بعض روایاتو کښې راغلی دی چه حسن درجے ته رسیږی. حافظ ابن کثیرؒ د بعض علماؤ قول نقل کړیدے چه د کوم کار په وخت سورتِ یس ولوستلے

شی الله هغه کار آسانوی، د مړ کیدونکی شخص مخامخ کله چه ددے تلاوت کیږی نو رحمت او برکت نازلیږی او روح په آسانئ سره وځی۔ والله اعلم۔ مګر صحیح خبره هغه ده کومه چه صاحب د محاسن التنزیل لیکلے ده۔ او همدا رائے د شیخ البانیؒ هم ده۔

بعض خلك دا هر سهار لولی دے دپاره چه حاجتونه ئے پوره شی، نو ددے التزام کول صحیح نهٔ دی، صحیح روایت پکښ نشته۔ او څلویښت کرته ئے خلك ختم کوی دا په بدعاتو کښ دی۔ دارنګه څوك ددے په هر (مُبِیْن) لفظ کښ اذان کوی۔ دا هم بدعت دے۔

د نورو سورتونو غونتے په دے کښ هم د قریشو د کافرانو د کفر او شرك، د رسالت نه انکار او د آخرت نه د انکار د انجام نه په کښ ویرول شوی دی۔

مناسبت

۱- مخکښ د الله تعالیٰ د معرفت بیان وو نو دلته بیان د صدق د رسول الله ﷺ او د هغهٔ عظمتِ شان دے۔ لکه اول کښ فرمائی : ﴿ اِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسَلِیْنَ ﴾ ﴿ اِنَّمَا تُنْذِرُ مَنِ اتَّبَعَ الذِّكْرَ ﴾۔

۲- مخکښ رد د شرك فی الدعاء وو ﴿اِنْ تَدْعُوْهُمْ لَا یَسْمَعُوْا دُعَآءَ كُمْ﴾ نو دلته د هغوی د شفاعت نفی کوی ﴿ لَا تُغْنِ عَنِّیْ شَفَاعَتُهُمْ شَیْئًا ﴾۔

۳- مخکښ ﴿ وَلَوْ یُؤَاخِذُ اللهُ النَّاسَ﴾ سره تخویف ورکړو، نو دے سورت کښ تخویف دپاره مثال راوړی په واقعه د صاحب یس سره چه په ګناهونو الله تعالیٰ داسے رانیول کوی لکه چه دا قوم ئے راونیولو۔

مقصد د سورت

۱- زمونږ شیخ محترم عبد السلام الرستمی رحمه الباری فرمائی چه ددے سورت دوه مقصده دی یو نفی د شفاعتِ قهری ده۔ ﴿ لَا تُغْنِ عَنِّیْ شَفَاعَتُهُمْ شَیْئًا﴾ (۲۳ آیت) او آخر کښ دی ﴿ وَاتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللهِ آلِهَةً لَّعَلَّهُمْ یُنْصَرُوْنَ ﴾ (۷۴ آیت) یعنی ستاسو معبودان ستاسو مدد نشی کولے، نو شفاعت به درله څه وکړی۔ لیکن دا موضوع جانبی او جزئی ده۔

۲- دویم ددے سورت موضوع اثبات د صدق د رسول الله ﷺ دے۔

۳-راجح دا ده چه دے سورت کښ موضوع ده اِنْذَارُ الْغَافِلِیْنَ۔ غافلو خلکو ته یره

ورکول. غافلان چا ته وائي نو دے سورت ئے تعیین کړیدے چه خلك د دریے څیزونو نه غفلت کوی (۱) یو غفلت د الله تعالیٰ نه، هغه نهٔ پیژندل او د هغه سره شریکان جوړول. شفاعتونو والا الله نهٔ پیژنی، د هغه نه غافل وی نو ځکه د نورو معبودانو په باره کښې خیال کوی چه دوی به زمونږ سفارش کوی.

(۲) دویم غفلت عَنْ لِقَاءِ الله ـ د الله د ملاقات او آخرت نه غفلت کول لکه پدیے سورت کښې به دا خبره هم ډیره وی. دے خلکو ته به انذار ورکوی.

(۳) دریم غفلت عَنْ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ. یعنی د رسول الله ﷺ او د هغهٔ د معجزاتو نه غفلت کوونکو ته به انذار او یره ورکړے کیږی. اوله خبره کمه او دویمه او دریمه خبره ډیره بیان شویده. نو پدے کښې به ضمناً څلورم غفلت هم بیانوی او د هغے رد به کوی چه هغه غفلت دے د دلائلو د الله تعالیٰ نه. یعنی کائنات. چه وګوره د الله د معرفت دومره ډیر دلائل موجود دی او خلك تریے بیا هم مخ اړوی.

دا ټول موضوعات به د اِنْذَار لِلْغَافِلِیْن د لاندے بیانیږی خو د قرآن د بیان یوه خاصه طریقه وی چه په هغے باندے خلکو ته هدایت کیږی ځکه چه الله تعالیٰ د بندګانو په زړونو عالِم دے. د زړهٔ د اصلاح طریقه ورته ښه معلومه ده.

## خلاصه:

اول کښې الله تعالیٰ په قرآن قَسم کړیدے د نبی ﷺ په رسالت او د هغه په نیغه لاره د روانیدو. بیا ئے د قرآن شرافت او کمال بیان کړے چه دا عزیز او رحیم ذات رالیږلے دے، بیا په (٦) آیت کښې حکمة د انزال د قرآن دے چه هغه انذار الغافلین دے چه ستاسو مخے ته څه خبرے رارواني دی ددے نه مهٔ غافله کیږئ. بیا په (٧) آیت کښې د الله د تقدیر بیان دے یعنی تهٔ خو به قرآن بیان کړے لیکن اکثر خلك ئے نهٔ منی، وجه دا ده چه دے خلکو باندے الله مهر وهلے دے، بیا مهر ئے ولے وهلے دے؟ نو د هغے وجه دا ده چه دوی د الله د دلائلو نه ځان په زوره غافل کړیدے لکه (اَلْغَافِلِیْنَ) لفظ کښې ورته اشاره ده. نو قرآن د غفلت د زائله کولو کتاب دے لیکن بد بخته خلك به پریے غفلت نهٔ زائل کوی بلکه ددے نه به انکار کوی دا الله ګمراه کړیدی. په (۱۱) آیت کښې به ددے دلائل راوړی چه هغه بشارت دے ایمان والو ته چه ستا د بیان نه هغه څوك فائده اخلی چه هغوی کښې دوه مادے وی، نو دوی به د قرآن نه فائده اخلی او غفلت به ئے زائله کیږی.

بیا پدے باندے تفریع د آخرت کوی چه د قیامت ورځ به یقیناً راځی، وجه دا ده چه په

دنیا کښې دوه ډلې دي، یو غافلان او بل ذاکرین. نو د دوی د سزا او جزاء دپاره یوه ورځ پکار ده. ﴿إِنَّا نَحْنُ نُحْيِ الْمَوْتٰى وَنَكْتُبُ مَا قَدَّمُوْا وَآثَارَهُمْ﴾ د دوی عملونه الله په کتاب کښې لیکلي دي، نو داسې ورځ به راشي چه الله به مړي راژوندي کړي نو دې خلکو سره به حساب وشي.

بیا واقعه د پیغمبرانو راوړي چه یو کلي ته الله رالیږلي دي، دا په یوه رکوع کښې بیانیږي ددې واقعې مختلفې فائدې دي چه هلته به راشي، په آخر د قصه کښې ئې وعید او دهمکي ورکړیده چه څوك د انبیاؤ خلاف کوي نو دغسې معامله به ورسره کیږي. دا عذاب ئې په دنیا کښې وو او په آخرت کښې هم شته نو هرکله چه دا خبره وشوه چه آخرت کښې هم عذاب شته نو وَهم پیدا شو چه آخرت به کله راځي؟ نو الله د هغې د استحضار او اثبات دپاره دلائل راوړي په یو رکوع کښې ﴿وَآيَةٌ لَّهُمُ الْأَرْضُ﴾ سره. او دې دلیلونو کښې به نور مقاصد هم وي. بیا د مشرکانو د زړه سختوالې بیان کړیدې چه نهٔ د الله نه یریږي او نهٔ په مخلوق شفقت لري، دوه مرضه چه چا کښې راشي هغه د هلاکت لائق وي، یو عدم تعظیم د امر الله او دویم عَدَمُ الشَّفَقَةِ عَلٰى عِبَادِ اللّٰه - نو د هلاکت تفصیل. بیا په یو رکوع کښې د آخرت تفصیلي احوال ذکر دي. او هلته به دوه ډلې جوړیږي او ددې استحضار ئې ذکر کړیدې، بیا د دنیا درې سزاګانې چه الله دا خلك ړنده ولې شي، په ځای باندې ئې مسخه کولې شي او کمزوري کولې ئې شي.

بیا بیرته د قرآن صدق بیانوي، بیا به دلائل بیان شي او په هغې به تفریع د رد الشرك کوي. چه الله څومره احسانات وکړل چه ظاهري او باطني دي، باطني نعمتونه ئې رسول او کتاب دي او ظاهري نعمتونه ئې چارپیان دي. نو بیا هم مشرکان ددې عظیم ذات سره شریکان جوړوي. بیا زجر انسان ته په انکار د آخرت. او دا ډیر عجیب دعوت دې ﴿أَوَلَمْ يَرَ الْإِنْسَانُ﴾ د هغې نه روستو به پنځه طریقو سره دلائل بیان کړي په اثبات د آخرت. قیامت حق دې ځکه چه تهٔ نطفه وې دې ته وګوره، د شنې ونې نه الله اُور راویاسي، قیامت حق دې انسان مخکښې نهٔ وو الله وجود ته راوستو، قیامت حق دې ځکه چه الله آسمان او زمکه پیدا کړیدي، آخرت حق دې ځکه چه د الله امر كُنْ فَيَكُوْنُ دې، او په آخره کښې تفریع د توحید ده، او الله ته ورتلل حق دي. نو هغه به درنه د خپل رسول او د خپلې بندګۍ په باره تپوس کوي.

| یٰسٓ ﴿۱﴾ وَالْقُرْآنِ الْحَكِيمِ ﴿۲﴾ إِنَّكَ |
| --- |
| ددے په مطلب الله پوهه دے۔ قسم دے په قرآن باندے چه حکمتونو نه ډك دے۔ یقیناً ته |
| لَمِنَ الْمُرْسَلِينَ ﴿۳﴾ عَلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿۴﴾ تَنزِيلَ الْعَزِيزِ الرَّحِيمِ ﴿۵﴾ |
| ئے خامخا د رالیږلے شوو رسولانو نه۔ په نیغه لاره ئے۔ نازلول د زورور ذات رحم کونکی دی |
| لِتُنذِرَ قَوْماً مَّا أُنذِرَ آبَاؤُهُمْ فَهُمْ غَافِلُونَ ﴿۶﴾ |
| دے دپاره چه اُوویروے ته هغه قوم چه نۀ دی یرولے شوی پلاران د دوی نو دوی ناخبره دی۔ |

**تفسیر** : د یٰسٓ کلمے په باره کښې د مفسرینو علماؤ ګڼر اقوال دی۔

❁ یو قول دادے چه دا د (اے انسان) په معنیٰ سره دے۔

❁ سعید بن جبیرؒ او نور وائی چه دا کلمه د نبی کریم ﷺ نوم دے، او ددے دلیل ددے نه پس د الله قول دے : ﴿ إِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسَلِينَ ﴾ یعنی اے یٰسٓ! ته یقیناً د الله رسول ئے۔

❁ ابوبکر وراقؒ وائی چه ددے معنیٰ (یَا سَیِّدَ الْبَشَرِ) دے۔ (اے سردار د انسانانو)

❁ یا کښې یَدُ الله او سین کښې سَنَاءُ الله ته اشاره ده او د ید نه مراد مدد دے او سَنَاء نه مراد ښائست او رڼرا ده۔ یعنی تا سره به د الله مدد او د هغهٔ رڼرا حاصلیږی،

لیکن ددے تولو خبرو نقل د رسول الله ﷺ نه نشته، دا صرف تخمینی انداز کښې وئیلے کیږی چه کیدے شی دے خبرو ته به اشاره وی، نو ښه دا ده چه حروف مقطعات د عربو عادت وو چه دا به ئے په ابتداء د کلام کښې د خپلے خبرے د اهتمام دپاره استعمالول نو قرآن هم د هغے مطابق دا کار کړیدے،

او پدے کښې اشاره ده اعجاز او عظمت د قرآن ته۔ عربو پدے وجه اعتراض هم نۀ دے کړے چه دا څنګه الفاظ دی چه مونږه ئے په معنیٰ نۀ پو هیږو۔

وَالْقُرْآنِ : دے کښې واو قسمیه دے، او بعض اهل علم وائی چه دا قسم په غیر الله شویدے لیکن صحیح دا ده چه په غیر الله باندے قسم د سورة الصافات د ابتداء نه شروع کیږی، او دلته قرآن کریم د الله تعالیٰ د صفاتو نه یو صفت دے، مخلوق نۀ دے، او پدے باندے قسم جائز دے، او دا قسم په دے ګټه او لیکائی باندے نۀ کیږی بلکه د الله په کلام باندے کیږی۔

نو آینده کښې چه کومه خبره کیدونکے ده، ددے د تاکید او مضبوطولو دپاره الله تعالیٰ

په قرآن قسَم کړے دے چه د حکمتونو خزانه ده. او د عربو عادت دا وو چه په قسَم سره به ئے خبره منله، او دا د عقلاؤ طریقه هم ده چه د قسَم والا خبره منه مني.

**فائده :** د نقاش" وینا ده چه الله تعالیٰ د نبی کریم ﷺ نه سوئ د بل نبی د نبوت د تاکید دپاره په خپل معزز کتاب باندے قسَم نۀ دے خوړلے، او دا کار د نبی ﷺ د تعظیم او عزت دپاره شوے.

**الْحَكِيمِ :** ١- اَلْمُحْكَمُ الَّذِیْ لَا یَتَنَاقَضُ وَلَا یَتَخَالَفُ]، هغه مضبوط کتاب دے چه تناقض او اختلاف پکښې نشته. ٢- حکمتونو والا دے. ٣- حکمتونه بیانونکے دے.

**إِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسَلِينَ :** دا جواب د قسم دے. د قریشو کافرانو به نبی ﷺ ته وئیلے چه تۀ د الله پیغمبر نۀ ئے، لکه څنګه چه په سورتِ رعد (٤٣) آیت کښې د هغوئ وینا نقل شوے: ﴿ لَسْتَ مُرْسَلًا ﴾ ددے رد کولو دپاره الله تعالیٰ دلته فرمائیلی چه تۀ بیشکه زما رالیږلے رسول ئے، او تۀ زما په نیغه لاره (اسلامی دین) روان ئے.

د قسم او د جواب قسم مناسبت دا دے چه دا قرآن گواه دے ستا په رسالت باندے (او په قسم کښې معنیٰ د گواهئ او تاکید پرته وی)، وجه دا ده چه پدے کتاب کښې علمونه ډیر دی، فصاحت او بلاغت او اعجاز پکښې دے، نو اعجاز د قرآن دلیل دے چه تۀ الله رالیږلے ئے، که تۀ الله نۀ وے رالیږلے نو داسے کتاب به تا سره نۀ وے، بلکه هر چا به جوړولے شوے. نو دا خالص قسم نۀ دے بلکه دلیل دے په شکل د قسم کښې سره د تاکید نه، نو که یواځے دلیل ئے راوړے وے بغیر د صورت د قسم نه نو دومره تاکید به پکښې نۀ وے.

دارنګه د عربو عقیده وه چه په دروغه باندے قسم کول سبب د تباهئ دے، او دے نبی کریم ﷺ په ډیرو حالاتو کښې قسمونه کړیدی او هیڅ مصیبت ورته نۀ دے رسیدلے معلومه شوه چه دے صادق دے. نو د قسم په صورت کښې دلیل راوړلو کښې ډیر حکمتونه دی. (تفسیر السراج المنیر للخطیب)

**الْمُرْسَلِينَ :** لفظ کښې اشاره ده چه الله ډیر پیغمبران رالیږلی دی څکه چه الله بندګان مُهمل نۀ پریدی نو تۀ هم په هغوی کښې یو رسول ئے، نو بیا دا خلك ولے ستا د رسالت نه تعجب کوی.

**عَلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ :** پدے کښې مقصد د رسالت بیانوی چه دا نبی د یو لوی مقصد دپاره راغلے دے، هغه دا چه انسانان په نیغه لاره روان کړی څکه چه هغه رالیږلے شوے په نیغه لاره دے، او د نیغے لارے د بیان دپاره. او دا دلیل دے چه طریقه او سنت د نبی ﷺ

صراط مستقیم دے۔ او دا نیغه لاره ده چه رسیدلے ده الله ته او نجات ته۔ نو د نبی په تابعدارئ کښې الله ته رسیدل کیږی ﴿ قُلْ اِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّوْنَ اللّٰهَ فَاتَّبِعُوْنِیْ ﴾
او دارنګه نجات ته۔ د بل چا تابعداری د خطرو سره مخامخ کونکے ده۔ نو ددے نبی لاره پریخودل هلاکت دے۔
تَنْزِیْلَ الْعَزِیْزِ : بیا د قرآن عظمت بیانوی۔ ددے فعل پټ دے۔ [اَیْ نُزِّلَ تَنْزِیْلَ] نازل کړے شویدے په نازلولو د عزیز رحیم سره۔ او اُوږد عبارت داسے دے [نَزَّلَ اللّٰهُ ذٰلِكَ تَنْزِیْلَ الْعَزِیْزِ] الله دا رالیږلے دے په نازلولو د عزیز رحیم سره۔ او په مصدر راوړو کښې تاکید او تحقق او تیقن ته اشاره وی۔ نو اسناد مجازی نهٔ دے بلکه واقعی هغه رالیږلے دے۔
تنزیل په عربی ژبه کښې میلمه ته وئیلے شی نو پدے تنزیل لفظ کښې اشاره ده چه دا قرآن تاسو سره د میلمه په شان دے، ددے عزت به کوئ۔
الْعَزِیْزِ: زورور ذات/ عزتمند۔ اشاره ده چه د الله په کتاب کښې هم زور دے ﴿ وَاِنَّهٗ لَكِتٰبٌ عَزِیْزٌ ﴾ (حم السجده: ۴۱) خبره په جلال او مضبو طوالی سره کوی۔ په هر کتاب باندے دپاسه زُور لری۔ او دارنګه ددے کتاب په وینا سره انسان عزتمند کیږی، د عزت مقام ته انسان رسوی۔
الرَّحِیْمِ: اشاره ده چه ددے کتاب په رالیږلو سره بندګانو ته عذاب او مشقت ورکول نهٔ دی بلکه رحم ئے پرے مقصد دے۔
لِتُنْذِرَ: دا د قرآن د رالیږلو حکمة او مقصد بیانوی چه دا په رسول الله ﷺ څکه نازل شوے چه ددے په لوستلو سره مشرکان د الله د عذاب نه ویروی چه دوئ ته د یوے اُوږدے مودے راسے یعنی د اسماعیل علیه السلام نه پس هیڅ یو نبی نهٔ دے راغلے۔ دے وجے نه دے خلقو د خالق او مخلوق حقونه هیر کړی دی، او په کفر او فساد او د آخرت نه د انکار غوښته بدیو کښې مبتلا دی۔
په بنی اسرائیلو کښې به پیغمبران راتلل لیکن په عربو کښې نهٔ وو راغلی، او دوی مکلف وو په اتباع د دین د اسماعیل او ابراهیم علیهما السلام لیکن دوی د هغوی دین خراب کړے وو، نو پدے کښې اشاره ده چه دا خلك ددے نبی راتللو ته ډیر سخت محتاج وو نو دوی له خو ددهٔ منل پکار دی چه د غفلت نه رابیدار شی۔
مَا اُنْذِرَ کښې (مَا) نافیه ده۔ او موصوله ګرځول یا په معنیٰ د مثل سره ګرځول ئے صحیح نهٔ بنکاره کیږی څکه چه د قرآن د نورو آیتونو خلاف دے، چه هغه صاحب د

((اضواء البيان)) ذكر كړيدى. لكه ﴿ وَمَا آتَيْنَاهُمْ مِنْ كُتُبٍ يَدْرُسُوْنَهَا وَمَا اَرْسَلْنَا اِلَيْهِمْ قَبْلَكَ مِنْ نَذِيْرٍ﴾ (سباء٤٤) او دارنګه د واقع خلاف دے چه عربو ته د اسماعيل عليه السلام نه روستو بل رسول تر محمد ﷺ پورے نهٔ وو راغلے.

فَهُمْ غَافِلُوْنَ : عرب غافلان وو، د توحيد نه خبر نهٔ وو، د آخرت نه منكر شوى وو، د رسالت سره بلد نهٔ وو. بنى اسرائيل د رسالت په مزاج پوهه وو ځكه چه رسولان پكښې زيات راتلل او عرب ددے نه غافل وو.

غافل په دوه قسمه دے، يو هغه دے چه چا ورته بيان نهٔ وى كړے نو ناپوهه پاتے شوے وى. دا انسان معذور دے، او دويم غفلت دے پس د بيان نه. چه دے ته متغافل انسان وائى. او ددهٔ بدى وئيلے كيږى او دلته هم دا كسان مراد دى. او ابن عاشورؒ وائى : چه دلته غفلت كنايه ده د اهمال (پريخودو) او اعراض كولو د هغه څه نه چه هغے ته متوجه كيدل پكار وو. آه. نو معنىٰ به دا وى چه دوى ته اُوس حق بيان شو او دوى غفلت كوى نو دوى د سزا مستحق دى.

## د اصحاب الفترة په باره كښې وضاحت

بيا سوال دا دے چه هركله چه د دوى مشرانو ته يره وركونكے نبى نهٔ دے راغلے نو بيا دوى جهنم ته ولے داخلولے شى؟ جواب دا دے چه دا معركة الآراء مسئله ده چه د فترت زمانے والا به جهنم ته ځى او كه نهٔ ؟ نو پدے كښې جانبينو ته قولونه شويدى، چا وئيلى دى چه اهل فترت والا معذور دى ځكه چه دوى ته نذير (يره وركونكے) نهٔ دے راغلے اګركه په كفر باندے مړهٔ وى، خو دوى معذور دى، او الله فرمائى: ﴿ وَمَا كُنَّا مُعَذِّبِيْنَ حَتّٰى نَبْعَثَ رَسُوْلًا﴾ (مونږ چه تر څو رسول نهٔ وى ليږلے تر هغه وخته پورے هيچا ته عذاب نهٔ وركوو) او يو جماعت د اهل علمو وائى چه هر هغه څوك چه په كفر باندے مړ شى نو هغه به اُور ته ځى اګركه هغهٔ ته نذير نهٔ وى راغلے.

دوى هم په ډيرو آيتونو او حديثونو دليلونه نيولى دى لكه ﴿ وَلَا الَّذِيْنَ يَمُوْتُوْنَ وَهُمْ كُفَّارٌ، اُولٰئِكَ اَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا﴾ (النساء : ١٨) ﴿ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَمَاتُوْا وَهُمْ كُفَّارٌ، اُولٰئِكَ عَلَيْهِمْ لَعْنَةُ اللهِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالنَّاسِ اَجْمَعِيْنَ ﴾ (البقره: ١٦١) ﴿ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَمَاتُوْا وَهُمْ كُفَّارٌ فَلَنْ يُّقْبَلَ مِنْ اَحَدِهِمْ مِلْءُ الْاَرْضِ ذَهَبًا وَلَوِ افْتَدٰى بِهٖ اُولٰئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ وَمَا لَهُمْ مِنْ نَاصِرِيْنَ﴾ (آلعمران: ٩١) ﴿ اِنَّهٗ مَنْ يُّشْرِكْ بِاللهِ فَقَدْ حَرَّمَ اللهُ عَلَيْهِ الْجَنَّةَ وَمَاْوٰهُ النَّارُ﴾ (المائده: ٧٢) ﴿ اِنَّ اللهَ

حَرَّمَهُمَا عَلَى الْكَافِرِينَ﴾ (الاعراف: ۵۰)۔
او په صحیح مسلم کښې دي: انس ﷛ فرمائي: یو سړي تپوس وکړو: یا رسول الله ﷺ ابن ابی؟) ایے د الله رسوله! زما پلار کوم ځای دے؟ وے فرمایل: [فِي النَّارِ] په اُور کښې دے۔ کله چه هغه روان شو نو راوے غوښتو او ورته ئے وویل: [إِنَّ أَبِي وَأَبَاكَ فِي النَّارِ]۔ (زما او ستا پلار په اُور کښې دي)۔ (مسلم: ۵۲۱) او رسول الله ﷺ فرمائي: ما د خپل رب نه اجازه وغوښته چه زهٔ د مور دپاره بخنه وغواړم نو ما ته ئے اجازه رانکړه۔ ما ترے اجازه وغوښته چه د هغې د قبر زیارت وکړم، نو ما ته ئے اجازت راکړو۔ (مسلم:۲۳۰۳)
او دے قول والا د آیت ﴿وَمَا كُنَّا مُعَذِّبِينَ﴾ نه دا جواب ورکوي چه دا عذاب په هغه څیزونو کښې نشته چه د هغې معلومول خفي او پټ وي نو د رسول د لیږلو نه مخکښې په هغې عذاب نشته او کوم چه واضح وي لکه د بتانو عبادت کول نو پدے کښې دوی معذور نهٔ دي ځکه چه کافران هم دا اقرار کوي چه الله د دوی رب دے، خالق دے، رازق دے، نفع او ضرر ورکوي۔ او دوی به په سخت وخت کښې صرف الله ته آواز کولو۔
لیکن کفارو د تعصب او د بتانو د محبت په وجه ځانونه په دے مغالطه کښې اچولي وو چه د دوی بتان او باباګان به دوی لره الله ته نژدے کوي، او هغوی به د الله په دربار کښې د دوی لپاره سفارش کوي۔
دویم جواب دا کوي چه د فترت زمانے والو ته د پخوانو پیغمبرانو څه نا څه انذار رارسیدلے وو لکه ابراهیم او اسماعیل علیهما السلام په دوی کښې مشهور وو۔
اول قول والا د اول جواب نه دا جواب کوي چه آیت ﴿وَمَا كُنَّا مُعَذِّبِينَ﴾ عام دے، پدے کښې د پټ مسائلو او ښکاره مسائلو فرق کول د ظاهر د آیت خلاف دي، او ددے فرق دپاره دلیل پکار دے او هغه نشته۔ او بل طرفته الله تعالیٰ دا ښکاره وینا کړیده چه اُور والو ته چه سزا ورکولے شي نو دا پدے وجه چه دوی په دنیا کښې د رسولانو تکذیب کړے وو پس د هغې نه چه رسولانو دوی لره د دغه ښکاره کفر نه یرولي وو۔
او په دویم جواب باندے داسے رد کوي چه دا خبره کول چه دوی ته د ابراهیم او اسماعیل علیهما السلام انذار رسیدلے وو۔ نو دا خبره د ډیرو آیتونو د ظاهر خلاف ده۔ چه یو د هغې نه دا آیت دے ﴿مَا أُنْذِرَ آبَاؤُهُمْ﴾ (چه د دوی مشران یره ولے شوي نهٔ وو)۔ انذار ورته نهٔ وو شوے۔ او دوی د دغه دوه حدیثونو د مسلم نه دا جواب ورکړیدے چه دا اخبار آحاد دي چه پدے باندے به دا قطعي آیت ﴿وَمَا كُنَّا مُعَذِّبِينَ﴾ مقدم کولے شي۔

او د دغه آیتونو نه ئے جواب داسے ورکړیدے چه دا په باره د هغه چا کښې دی چه هغوی ته د رسولانو دعوت رسیدلے وی او هغوی تکذیب کړے وی۔
بیا صاحب د «اضواء البیان» علامه شنقیطیؒ وائی چه تحقیق دا دے چه اصحاب الفترة په دنیا کښې معذوره دی خو الله تعالیٰ به په قیامت کښې په دوی باندے امتحان وکړی په اُور باندے چه دوی ته به حکم وکړی چه اُور ته داخل شئ نو څوک چه خبره ومنی اُور ته داخل شی نو جنت ته به داخل شی ځکه چه دا به هغه شخص وی چه دهٔ به د رسولانو تصدیق کولو که چرته دهٔ ته په دنیا کښې راغلی وے او څوک چه د اُور د داخلیدو نه منع شی نو دا به جهنمی وی ځکه چه دا هغه شخص دے چه که دهٔ ته په دنیا کښې رسولان راغلی وے نو دهٔ به ئے تکذیب کولے ځکه چه الله تعالیٰ ته د دوی عملونه معلوم دی۔ لکه دا خبره د رسول الله ﷺ نه په صحیح حدیث کښې ثابته ده چه هغے ته حافظ ابن کثیرؒ هم صحیح وئیلے دے۔
(صحیح ابن حبان :۷۳۵۷ والطبرانی فی الکبیر (۸٤۱) وصحیح الجامع (۸۸۱)۔
مګر پدے باره کښې واضحه خبره دا ده چه د کومو خلکو ایمان چه په نص د رسول الله ﷺ سره ثابت وی نو هغوی به مسلمانان حسابیږی او د کومو خلکو کفر چه په نص د رسول الله ﷺ سره ثابت وی نو هغوی به کفار حسابیږی لکه مخکښې دوه حدیثونه د صحیح مسلم او دغه شان نور حدیثونه شو، او د کومو په باره کښې چه سکوت شوے وی نو هغوی باندے به په قیامت کښې امتحان کولے شی۔ هذا ما لدی وبالله التوفیق ابوزهیر)

| لَقَدْ حَقَّ الْقَوْلُ عَلٰٓى اَكْثَرِهِمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿٧﴾ |
|---|
| یقیناً ثابت شویدے حجت په ډیرو د دوی باندے نو دوی ایمان نهٔ راوړی۔ |

**تفسیر** : دے آیت کښې دوه تفسیره دی (۱) ظاهر تفسیر دا دے چه دا په تقدیر باندے محمول دے، یعنی په تقدیر کښې الله تعالیٰ فیصله لیکلے ده چه اکثر به ایمان نهٔ راوړی۔
معنیٰ دا ده : یقیناً ثابته شویده وینا د الله تعالیٰ، هغه وینا دا ده چه دوی ته به د ایمان توفیق نهٔ ورکوم۔ اَیْ ثَبَتَ الْقَوْلُ عَلٰٓى اَكْثَرِهِمْ بِعَدَمِ الْاِيْمَانِ ۔ ثابته شویده وینا په اکثرو د دوی چه دوی به ایمان نهٔ راوړی۔ نو سوال پیدا شو چه داسے فیصله الله تعالیٰ ولے کوله چه دوی ئے ګمراه کړل؟ ددے جواب د قرآن د نورو ځایونو نه معلومیږی، دلته هم اشارةً

شته، هغه دا چه الله ته پته ده چه دا خلك ضدیان دی، نو د دوی د ضد نه دوی ایمان نهٔ راوړی نو الله سزا ورکړه چه اُوس به توفیق نهٔ ورکوی۔

او دا جواب د سوال هم دے چه هرکله مقصد د رسالت انذار دے نو بیا دا تول خلك ایمان ولے نهٔ راوړی او د الله د عذابونو نه ولے نهٔ یریږی؟ نو جواب وشو په ذکر د مانع سره۔

(۲) دویم : د قول نه مراد حجت پوره کیدل دی یعنی دوی باندے حجت ثابت شویدے چه د دوی سوالات او شبهات دفع شویدی او حق ورته ښکاره بیان شویدے، د هغې دلیلونه ورته ښکاره شویدی اُوس چه دوی ایمان نهٔ راوړی نو دا د دوی ضد او عناد دے۔ دا تفسیر بعید دے۔ اوله معنیٰ ظاهره ده۔

او پدے کښې د رسول الله ﷺ تسلی ته هم اشاره ده چه دا خلك ازلی گمراهان دی، نو د دوی په ایمان پسے به ځان ډیر نهٔ تکلیف کښې کوے۔

(۳) بعض علماؤ د (قول) نه مراد فیصله د عذاب اخستے ده کومه چه د سورتِ ص (۸۵) آیت: ﴿ لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ مِنكَ وَمِمَّنْ تَبِعَكَ ﴾ کښې ذکر شویده. چه په دے کښې الله تعالیٰ ابلیس ته وئیلی وو چه زهٔ به یقیناً جهنم ستا نه او ستا د تابعدارو نه ډك کرم، نو گویا که الله تعالیٰ دلته دا وفرمایل چه کومه خبره ما ابلیس ته د هغهٔ د تابعدارو په باره کښې کړے وه هغه خبره ددے کافرانو په باره کښې ثابته شوے ده چه دا خلق به د جهنم خشاك جوړیږی۔ ددے تفسیر رجوع هم اول تفسیر ته کیږی۔

| إِنَّا جَعَلْنَا فِي أَعْنَاقِهِمْ أَغْلَالًا فَهِيَ إِلَى الْأَذْقَانِ فَهُمْ |
| --- |
| یقیناً مونږ گرځولی دی په څټو د دوی کښې طوقونه نو دا زنے پورے دی نو سرونه د دوی |
| مُّقْمَحُونَ ﴿۸﴾ وَجَعَلْنَا مِنْ بَيْنِ أَيْدِيهِمْ سَدًّا وَمِنْ خَلْفِهِمْ |
| به پورته کړے شویوی۔ او گرځولے دے مونږ مخکښې د دوی نه دیوال او روستو د دوی نه |
| سَدًّا فَأَغْشَيْنَاهُمْ فَهُمْ لَا يُبْصِرُونَ ﴿۹﴾ وَسَوَاءٌ عَلَيْهِمْ |
| دیوال نو پټ کړیدی مونږ دوی (رانده کړیدی مونږ) نو دوی نهٔ وینی۔ او برابره ده په دوی |
| أَأَنذَرْتَهُمْ أَمْ لَمْ تُنذِرْهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿۱۰﴾ |
| باندے که تهٔ ویروے دوی لره یائے اُونهٔ ویروے ایمان نه راوړی۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کښې ډیر تفسیرونه دی (۱) یو دا چه دا په جهنم کښې مراد دی او ماضی (په اِنَّا جَعَلْنَا کښې) په معنیٰ د مضارع ده۔ یعنی دوی به په اُور کښې پراته وی او د دوی نه به ګیر چاپیره دیوالونه راتاو وی لکه د (اَحَاطَ بِهِمْ سُرَادِقُهَا) په شان دے۔

دا تفسیر دلته ظاهر نهٔ دے اګرکه دوی دپاره دا عذاب په جهنم کښې شته۔

(۲) بعض وائی : دا مجموعه کنایه ده د جهالت نه۔ څکه چه د چا په څټ کښې طوق اچولے شوے وی او مخے او روستو ترے دیوالونه وی نو هغه هیڅ نهٔ وینی نو دا جاهل وی د نظر کولو نه په معجزاتو او دلائلو کښې۔ (بیضاویؒ)

(۳) نزدے او ظاهر تفسیر دا دے چه دا د خَتَمَ اللّٰهُ عَلٰی قُلُوْبِهِمْ په شان دے، پدے کښې د قریشو مشرکانو کوم حال چه پورته بیان شو چه دوئ ایمان نهٔ راوړی او د کفر په حالت به مری، ددے خبرے زیات تاکید کوی چه د حق نه په انکار کښې د دوئ حال د هغه خلقو پشان دے چه د هغوئ په لاسونو کښې بیړئ اچولے شوی وی او د څټونو پورے داسے تړلے شوی وی چه لاسونه ئے د زنو لاندے زوړند شوی وی چه د هغے په وجه ئے سرونه پورته شوی وی، نهٔ لاندے کتلے شی او نهٔ اخوا دیخوا کتلے شی۔ نو لکه څنګه چه داسے خلق هیڅ کله هم لاندے طرفته کتلو سره په نیغه لاره نشی تللے، دغه شان د قریشو مشرکان هم د الله د هدایت نه ډیر زیات لرے دی، او هیڅ کله هم حق طرفته مائله کیدے نشی۔ حاصل ئے دا دے : اَیْ اِنَّ اللّٰهَ حَبَسَ عَنْهُمُ الْاِیْمَانَ عُقُوْبَةً لَّهُمْ کَالرَّجُلِ الْمَغْلُوْلِ الَّذِیْ لَایَتَصَرَّفُ فَکَذٰلِكَ قُلُوْبُهُمْ مُنِعَتْ عَنِ الْهُدٰی] الله د دوی نه ایمان بند کړیدے دوی ته سزا ورکوی لکه یو سړے چه لاسونه ئے څټ ته تړلے شوی وی، نو هغه هیڅ تصرف نشی کولے نو دغه شان د دوی زړونه الله تعالیٰ د هدایت نه منع کړل او سترګے ئے ورله د حق نه ړندے کړے۔ نو نهٔ ئے زړه کار کوی او نهٔ ئے سترګے۔

په بل تعبیر سره دا کنایه ده د تقلید د مشرانو ګمراهانو نه بغیر د دلیل نه، یعنی لکه چه پلن طوق د یو انسان څټ ته پروت وی نو سر ئے اُوچت وی او لارے ته کتلے نشی نو ټکرے وهی او کله په کنده کښې غورزیږی نو دغه شان دوی د مشرانو د شرکی تقلید په وجه سره د هدایت نه محروم دی۔ (احسن الکلام)

(٤) فراءؒ او ضحاکؒ وائی چه دا یو مثال دے چه ددے په ذریعه الله تعالیٰ دا بیانول غواړی چه مونږ کافران د الله په لاره کښې د خرچ کولو نه بند کړی دی، لکه څنګه چه د سورتِ اسراء په (۲۹) آیت کښې راغلی دی : ﴿ وَلَا تَجْعَلْ یَدَكَ مَغْلُوْلَةً اِلٰی عُنُقِكَ ﴾

(اوخپل لاس د خپل څټ سره تړلے مۀ ساته)۔ یعنی د الله په لاره کښې د خرچ کولو نه مۀ منع کیږه۔ (فتح البیان)

فَهِيَ إِلَى الْأَذْقَانِ: ۱- اَیْ فَهِیَ بَالِغَةٌ/ ۲- وَاصِلَةٌ اِلَی الْاَذْقَانِ : نو هغه رسیدونکی وی زنو ته۔ یعنی اغلال دومره پلن دی چه د زنو پورے تول څټ ئے بند کړے دے۔

یا هِیَ ضمیر لاسونو ته راجع دے یعنی دا لاسونه ئے د څټونو سره په طوقونو کښې بند کړے شویدی۔

مُقْمَحُونَ : اَیْ رَافِعُوْنَ رُؤُوْسَهُمْ غَاضُّوْنَ اَبْصَارَهُمْ۔ ددوی سرونه پورته کړے شوی او سترگے ئے بندے دی۔ اقماح دیته وائی چه سر پورته کړی او سترگے پټے کړی۔

په سیرت کښې راځی رسول الله ﷺ چه کله د مکے نه هجرت کولو او د کور نه راووتو نو دا آیتونه ئے لوستل او په مشرکانو راتیر شو او د مشرکانو د سترگو نه الله تعالیٰ محفوظ وساتلو، هیچا ونۀ لیدلو او سیده د ابوبکر صدیق ؓ کور ته لاړو او بیا غارثور ته۔ نو رسول الله ﷺ ددے آیتونو نه فائده اخستے وه۔

وَجَعَلْنَا مِن بَيْنِ أَيْدِيهِمْ سَدًّا: د کافرانو دویم مثال د هغه خلقو دے چه د هغوئ مخے او روستو ته رکاوټونه اودرولے شوی وی، او هغوئ هیڅ هم نۀ وینی۔ الله تعالیٰ فرمائی چه مونږ د دوئ د ایمان په لاره کښې خنډونه ودرولی دی، دے وجے نه دوئ د کفر د ختے نه هیڅ کله نۀ اوځی چه د ایمان په دائره کښې داخل شی۔

ضحاکؒ وائی چه د دوئ مخے ته دنیا خنډ جوړه شوے ده، یعنی د دنیا شهوات، چه دوئ ددے نه سوئ بل هیڅ شے هم نۀ وینی، او د دوئ شاته د آخرت د انکار خنډ دے (یعنی د شبهاتو دیوال دے) دوئ دا گمان کوی چه قیامت نۀ راځی، دے وجے نه دوئ ته د توبے توفیق نۀ ملاویږی، د هدایت نه محروم دی او د حق نه رانده دی۔

او په دے باندے زیاتی لا دا چه الله تعالیٰ د دوئ په سترگو باندے د رسول کریم ﷺ او د دین اسلام نه د نفرت او بُغض پټئ تړلے ده، دے وجے نه دوئ د بینا زړۀ نه محروم شوی دی، دوئ حق بیخی نۀ وینی۔

وَسَوَاءٌ عَلَيْهِمْ: دا بل مانع د ایمان دے یعنی دوی ته د عناد او د ضد د وجه نه انذار او عدم انذار برابر دی۔ ددے مطلب دا نۀ دے چه تۀ به بیان نکوے بلکه تۀ به خپله ذمه واری ادا کوے۔

| إِنَّمَا تُنذِرُ مَنِ اتَّبَعَ الذِّكْرَ |
|---|
| یقیناً یره ورکوے ته (فائده ناکه) هغه چا ته چه روانیږی د نصیحت (یاداشت) پسے |
| وَخَشِيَ الرَّحْمَٰنَ بِالْغَيْبِ فَبَشِّرْهُ بِمَغْفِرَةٍ وَأَجْرٍ كَرِيمٍ ﴿۱۱﴾ |
| او یریږی د رحمن ذات نه په غیبو سره نو زیرے ورکړه دهٔ لره په بخننه او اجر لوئی سره۔ |

**تفسیر**: سوال پیدا شو چه هرکله انذار فائده نهٔ ورکوی او خلق ایمان نهٔ راوړی نو بیا پیغمبر بیان ولے کوی؟ نو جواب کوی چه نور خلق شته چه هغوی به ستا د حق دعوت قبول کړی او هغوی ته به فائده ملاؤ شی۔

إِنَّمَا تُنذِرُ : اَیْ اِنَّمَا یَنْفَعُ اِنْذَارُكَ : یعنی ستا انذار فائده ورکوی هغه چا ته دهغویٔ په باره کښ امید وی چه هغویٔ به د حق دعوت قبول کړی، او دا هغه خلق دی چه په قرآن کریم باندے ایمان لری، ددے په آیتونو کښ غور او فکر کوی او په دے عمل کوی، او د دنیا په ژوند کښ د الله د لیدلو نه بغیر د هغهٔ نه یریږی، او کله چه یواځے وی، څوك ئے نهٔ وینی بیا هم د هغهٔ نه یریدلو په وجه گناه نهٔ کوی۔ نو داسے خلقو له د مغفرت او د عزتمند اجر یعنی جنت زیرے ورکړه، لکه څنگه چه الله تعالیٰ د سورتِ ملك په (۱۲) آیت کښ فرمائیلی : ﴿ إِنَّ الَّذِينَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُم بِالْغَيْبِ لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَأَجْرٌ كَبِيرٌ ﴾ (بیشکه کوم خلق چه د خپل رب نه غائبانه طور سره یریږی، دویٔ له د گناهونو مغفرت او لوی اجر دے)۔

الذِّكْرَ : د ذکر دوه مطلبونه دی (۱) یو ذکر قرآن کریم ته وائی۔

سوال دا دے چه د رسول الله ﷺ بیان هغه چا له فائده ورکوی چه هغه روان شویدے د قرآن پسے او د رحمن نه یریدلے نو د رسول الله ﷺ د بیان نه مخکښ دوی څنگه د قرآن پسے روان شویدی او څنگه د الله نه یریدلی دی؟ حال دا چه په صحابه کرامؓ کښ چه کمال راغلے نو دا ددے قرآن د کمال د وجه نه؟۔ نو ددے دوه جوابونه کړے شویدی (۱) یو دا چه د اتباع الذکر نه مراد اجمالاً د قرآن پسے روانیدل دی، هغه دا چه کومو کافرو قرآن واوریدو او دے ته ئے غور کیخودو او دے پسے روان شو چه دا خو ډیر مزیدار کتاب دے او بل طرفته د الله نه یریدو چه د الله عذابونه هم شته څکه چه کافران هم الله منی او عذابونه ئے منی نو کله چه رسول الله ﷺ ورته بیان وکړو او د قرآن شرح ئے ورته وکړه نو

هغوی له ئې فائده ورکړه او د هغوی ایمانونه پرېے مضبوط شو ځکه چه د دوی قرآن ته میلان پیدا شویدے او د الله تعالیٰ یره ئې په زړه کښې شته نو بیان د رسول الله ﷺ ورله فائده ورکوی، برابره ده که دغه بیان د قرآن نه وی یا د سنت نه.

او غافلان خلك د قرآن نه فائده نهٔ اخلی ځکه چه دے ته غوږ نهٔ اړدی، اول نه ترے نفرت کوی او د الله د عذاب پرواه ورسره نشته. مطلب دا چه د رسول الله ﷺ د بیان نه د فائدے اخستو دپاره مخکښې نه یوه ماده ضروری ده.

(۲) دویم دا چه اَلذِّکْرَ نه مراد د الله یادول دی یعنی چه رب ورته یادوی. حاصل ئې دا دے چه انسانان په دوه قسمه دی د قرآن د راتګ نه مخکښې یو هغه خلك دی چه سخت غافلان دی، د سره الله ورته یاد نهٔ دے او د هغه نه بی پرواه دی او کائناتو کښې سوچ او فکر نهٔ کوی، نو داسے انسانانو باندے به که قرآن راشی نو اثر به نهٔ کوی.

دویم هغه خلك دی چه په هغوی کښې فطرةً دوه کماله موجود دی، یو دا چه الله یادوی چه زمونږ لوی الله شته لکه مشرکانو هم الله منلو نو کله چه رسول الله ﷺ راغلو او قرآن ئې بیان کړو نو دوی ته سمدست فائده ملاؤ شوه او ایمان ئې راوړو لکه ابوبکر او عمر او عثمان او علی (رضی الله عنهم) چه مسلمانان شویدی نو دوی کښې مخکښې نه خیر موجود وو او ابوجهل او ابولهب او عتبه او شیبه او ولید کښې د مخکښې خیر نهٔ وو نو ځکه د هدایت نه محروم شو.او دویمه ماده د الله نه یره ده.

| |
|---|
| إِنَّا نَحْنُ نُحْيِ الْمَوْتَىٰ وَنَكْتُبُ مَا قَدَّمُوا |
| یقیناً مونږ ژوندی کوو مړی او لیکو هغه عملونه چه مخکښې لیږلی دی دوی |
| وَآثَارَهُمْ وَكُلَّ شَيْءٍ أَحْصَيْنَاهُ فِي إِمَامٍ مُبِينٍ ﴿۱۲﴾ |
| او روستو عملونه د دوی او هر شے راګیر کړیدے مونږ هغه په کتاب ښکاره کښې. |

**تفسیر** : د خبرے نه خبره پیدا کیږی نو مخکښې ئې وویل چه دوی ته به اجر کریم ملاویږی نو اُوس ددے وخت بیانوی چه هغه حیاة بعد الموت دے او دا د توحید دپاره عقلی دلیل دے.

إِنَّا نَحْنُ نُحْيِ الْمَوْتَىٰ: یعنی مونږ به مړی راژوندی کوو نو هلته به ایمان والو ته اجر کریم ورکوو ځکه چه ﴿ وَنَكْتُبُ مَا قَدَّمُوا﴾ مونږ د دوی مخکښې لیږلی ټول عملونه

لیکو۔
نُحْيِ الْمَوْتَى : ضحاكؒ او حسنؒ وئیلی دي چه ددې نه ایمان بعد الکفر مراد دے۔ حافظ ابن کثیرؒ لیکی چه په دے کښې دے ته اشاره ده چه الله تعالیٰ د کافرانو نه د چا زړونو له چه غواړي د ایمان په ذریعه ژوندي کوي ئے، کوم باندے چه د ګمراهئ په وجه مرګ راغلے وو، نو بیا هغه حق قبلوی۔ لیکن اول قول غوره دے۔

قَدَّمُوْا و آثَارَهُمْ فرقونه

۱- مَا قَدَّمُوْا هغه نیك یا بد اعمال چه دوی مخکښې کړیدی او (آثَارَهُمْ) هغه دي چه دوی د مرګ نه روستو پریخی وی لکه صدقه جاریه شوه علم ئے چا ته خودلے وی، یا کتاب ئے لیکلے وی، یا ئے وقف کړے وی، یا ئے مسجد او رباط او پل وغیره جوړ کړے وی، یا بد اعمال ئے پریخی وی لکه بعض ظالمانو په عوامو تیکس ایخے وی، یا ئے سکه ورله کمه کړی وی چه د خلکو پکښې تاوان وی، یا ئے داسے څه راپیدا کړی وی چه په هغے کښې د الله د ذکر نه خلك منع کیږی لکه باجے او د تماشے او د ګانو بجانو سامانونه۔ مجاهدؒ وائی ددے مثال دا قول د الله تعالیٰ دے ﴿عَلِمَتْ نَفْسٌ مَا قَدَّمَتْ وَأَخَّرَتْ﴾ (الانفطار:۵) (پوهه به شی هر نفس په هغه عمل چه کوم ئے مخکښې لیږلے او کوم ئے چه روستو پریخے دے)

۲- آثار نه مراد هغه قدمونه دی چه نیك یا بد عمل پسے ئے اخستی وی۔ نو دے کښې ډیره مبالغه ده۔ چه عمل هم لیکی او د عمل دپاره چه کوم قدمونه اخستے شوی وی هغه هم لیکی۔ لکه دا خبره روایت د صحیحینو کښې د بنی سَلِمَه په واقعه کښې راغلے ده چه هغوی مسجد نبوی ته نزدے کورونه رانقل کول نو رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: [يَا بَنِيْ سَلِمَةَ ! دِيَارَكُمْ تُكْتَبُ آثَارُكُمْ] اے بنو سلمه ؤ ! په خپلو ځایونو کښې وسیږئ او هغه ځایونو نه مسجد ته راځئ نو ستاسو قدمونه به لیکلے کیږی۔ (ددے اجر به درته ملاویږی) نو دواړه خبرے صحیح دی۔

وَكُلَّ شَيْءٍ أَحْصَيْنَاهُ: سوال پیدا شو چه دا ټول څیزونه به څنګه انسان ته پیش کړے شی نو الله فرمائی چه دا هر څه مونږ په لوی کتاب چه لوح محفوظ دے- راګیر کړیدی یعنی دا ټول عملونه په تقدیر کښې د مخکښې نه لیکلے شویدی او بیا د ملائکو په صحیفو کښې لیکلے شویدی۔

إِمَامٍ مُبِينٍ: امام هر هغه شے دے چه په هغے پسے اقتداء کیږی ددے وجه نه په سورة هود (۱۷) آیت کښں ئے تورات ته هم امام وئیلے دے، او دلته ترے مراد لوح محفوظ دے ځکه چه ټول څیزونه د تقدیر (د لوح محفوظ) تابع دی، نو هغه د ټولو کتابونو او کارونو امام شو۔

بعضو د (إِمَامٍ مُبِينٍ) نه مراد د انسانانو عملنامے اخستی دی، یعنی د انسان هر عمل د هغۀ په عملنامه کښں درج کیږی۔

د شیعه ګانو ګمراهانو تفسیر دا دے چه هغوی وائی امام نه مراد علی رضی الله عنه دے یعنی هر شے مونږ په علی کښں راګیر کړیدے۔دا د الله د کتاب تحریف دے۔

| وَاضْرِبْ لَهُمْ مَثَلًا أَصْحَابَ الْقَرْيَةِ إِذْ جَاءَهَا الْمُرْسَلُونَ ﴿۱۳﴾ إِذْ |
|---|
| او بیان کړه دوی ته مثال د کلی والو کله چه راغلل هغے ته رسولان۔ کله چه |
| أَرْسَلْنَا إِلَيْهِمُ اثْنَيْنِ فَكَذَّبُوهُمَا فَعَزَّزْنَا |
| راولیږل مونږ هغوی ته دوه نو هغوی دروغژن اوګڼل دواړه نو مضبوط کړل مونږ په |
| بِثَالِثٍ فَقَالُوا إِنَّا إِلَيْكُمْ مُرْسَلُونَ ﴿۱۴﴾ قَالُوا مَا أَنْتُمْ |
| دریم سره نو اُووئیل دوی یقیناً مونږ تاسو ته رالیږلے شوی یو۔ اُووئیل هغوی نۀ ئے تاسو |
| إِلَّا بَشَرٌ مِثْلُنَا وَمَا أَنْزَلَ الرَّحْمَٰنُ مِنْ شَيْءٍ إِنْ أَنْتُمْ إِلَّا |
| مګر بندګان ئے زمونږ پشان او نۀ دے نازل کړے رحمٰن هیڅ شے، نۀ ئے تاسو مګر |
| تَكْذِبُونَ ﴿۱۵﴾ قَالُوا رَبُّنَا يَعْلَمُ إِنَّا إِلَيْكُمْ |
| دروغ وایئ۔ووئیل دوی رب زمونږ پو هیږی چه یقیناً مونږ تاسو ته |
| لَمُرْسَلُونَ ﴿۱۶﴾ وَمَا عَلَيْنَا إِلَّا الْبَلَاغُ الْمُبِينُ ﴿۱۷﴾ |
| خامخا رالیږلے شوی یو۔ او نشته په مونږ باندے مګر رسول ښکاره دی۔ |

**تفسیر**: پدے یوه رکوع کښں واقعه راوړی چه پدے کښں فوائد دی (۱) اوله فائده د رسول الله ﷺ د رشتینوالی بیان دے چه دغسے نور پیغمبران هم الله رالیږلی دی۔ دا د ﴿إِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسَلِينَ﴾ تشریح شوه۔ (۲) مِثَالٌ لِلتَّخْوِيفِ الدُّنْيَوِيِّ۔ دا د تخویف دنیوی

مثال دے۔ مخکښې ئے وویل چه دوی به په آخرت کښې الله راګیر کړی نو دلته وائی چه دنیا کښې به راګیر شی۔ یعنی ددے پیغمبر تکذیب مهٔ کوئ داسے به هلاك شئ لکه چه مخکنی خلك په تکذیب د پیغمبرانو سره هلاك شو۔ نو دا د (لِتُنذِرَ) پورے متعلق دے، او مثال د انذار (تخویف دنیوی) دے۔ (۳) دارنګه غفلت سبب د هلاکت دے چه دے قوم ته درے پیغمبرانو انذار ورکړو لیکن دوی د غفلت نه کار واخستو نو الله هلاك کړل۔ او څه کسان مُتَذَکِّرِیْن وو (الله ورته یاد وو) نو هغوی خبره ومنله الله ورله نجات ورکړو۔

(٤) پدے کښې رد د شرك کښې هم مطلوب دے۔ ﴿ ءَ اَتَّخِذُ مِنْ دُوْنِهٖ آلِهَةً ﴾.

(٥) طریقه د دعوت الی الله او د انذار پکښې ذکر ده۔

(٦) تشجیع (بهادری) ورکول دی په انذار او دعوت الی الله باندے۔

مَّثَلًا: ۱- مثل کله مطلق عجیبه قصے ته وئیلے شی اګرکه تشبیه پکښې نهٔ وی یعنی یوه ناشنا واقعه او حالت بیان کړه۔

۲- مثل کښې کله معنیٰ د تشبیه وی، یعنی بیان کړه دوی ته مشابهت د کلی والو۔ یعنی د دوی مشابهت دے د یو کلی والو سره هغه ورته بیان کړه چه د هغوی په شان به هلاك شئ ځکه چه د هغوی بد صفات په دوی کښې راغلی دی۔

قرطبیؒ لیکلی چه د تمامو مفسرینو په نیز دا کلے (انطاکیه) وو۔ او دا وینا د ابن عباس او بریده رضی الله عنهما هم ده، او دا کلے ډیر چینو والا دے، او ددے نه ګیر چاپیره د ګټو لوی دیوال تاو شویدے، او دننه پکښې پنځه غرونه دی، کورونه ئے دولسو میلو پورے وراندے پراتهٔ دی، او د عواصم ښارونو یوه قصبه انطاکیه ده، او دا په روم علاقه کښې ده۔

(ابن عاشورؒ وائی: دا د شام د علاقونه ده چه د یونان (روم) والو په قبضه کښې ده)۔

اَصْحَابَ الْقَرْيَةِ: دا منصوب دے بدل دے د مثلًا نه۔ یا دا مفعول دے، او تقدیر داسے دے [اِجْعَلْ اَصْحَابَ الْقَرْيَةِ مَثَلًا لَهُمْ] یعنی «وګرځوه کلی والا د دوی دپاره مثال»۔

یا معنیٰ دا ده: [وَاضْرِبْ مَثَلَ اَصْحَابِ الْقَرْيَةِ مَثَلًا لَهُمْ] «بیان کړه حالت د کلی والو مثال د دوی دپاره»۔ نو اصحاب نه مخکښې به (مثل) لفظ پټ وی۔

الْمُرْسَلُوْنَ: دا رسولان څوك وو؟

پدے کښې د مفسرینو دوه قوله دی (۱) یو قول دا دے چه ددے رسولانو نه مراد د عیسیٰ ؑ حواریین (خالص مخلص دوستان) وو، چه هغویٔ انطاکیه والو ته د توحید دعوت

ورکولو لپاره لیږلے شوی وو۔ ابن عباسؓ، قتادة، عکرمة، کعب الاحبارؒ او وهب بن منبةؒ او داسے نورو نه هم دا نقل شوی۔ او دوی چونکه د الله په امر باندے عیسیٰ علیه السلام لیږلی وو نو ځکه الله تعالیٰ خپل ځان ته نسبت وکړو۔

لیکن د ډیرو قدیم او جدید مفسرینو په نیز دا رائے صحیح نهٔ ده۔ بلکه د عیسایانو د غیر مستندو روایتونو نه اخستے شوے ده۔ لکه دا خبره حافظ ابن کثیرؒ او جمال الدین القاسمیؒ کړیده چه دا کلے انطاکیه نهٔ دے، (۲) بلکه بل یو کلے وو چه د هغے نوم او زمانه د صحیح روایاتو نه معلوم نهٔ ده۔ او دا رسولان د الله تعالیٰ وو نهٔ د عیسیٰ علیه السلام۔

(۱) ځکه چه انطاکیه هغه اولنے ښار دے چه د هغے اُوسیدونکو د تولو نه مخکښ په عیسیٰ علیه السلام باندے ایمان راوړے وو۔ (۲) دغه شان د قرآن کریم ظاهری الفاظ ښائی چه کوم خلق دغه کلی والو ته د توحید د دعوت ورکولو دپاره تلی وو هغه د الله رسولان وو، الله تعالیٰ دویٔ د دغه خلقو د هدایت او لار ښودنے لپاره رالیږلی وو۔

که چرے دا د عیسیٰ علیه السلام ملګری وے نو د قرآن کریم عبارت به ددے مطابق وے، او د دویٔ د خبرے رد کولو سره به کلی والو دا نهٔ وئیلے چه تاسو خو زمونږ غونتے انسانان یئ۔ دے رسولانو به کلی والو ته وئیلی وی چه مونږ د الله رسولان یو، نو کافرانو د دویٔ د خبرے د رد کولو دپاره ووئیل چه تاسو خو زمونږ غونتے انسانان یئ، یعنی تاسو نبیان نهٔ یئ۔ ځکه چه د بشریت اعتراض په حقیقی رسولانو باندے کیږی نهٔ په استازی د رسول۔

(۳) دارنګه که دا انطاکیه واخستے شی نو انطاکیه والو واقعه د عیسیٰ علیه السلام د زمانے ده او د ابوسعید خدری رضی الله عنه او نورو سلفو نه نقل دی چه الله تعالیٰ د تورات د نازلیدو نه روستو هیڅ یو اُمت تول په توله نهٔ دے هلاک کړے چه په هغوی باندے عذاب راولیږی بلکه مؤمنانو ته ئے په قتال باندے حکم کړیدے۔ نو کیدے شی چه دا بله انطاکیه وی، او مشهوره علاقه نهٔ وی۔ انتهیٰ قول الحافظ ابن کثیرؒ۔

هٰذا قول ظاهر دے ځکه چه د عیسیٰ علیه السلام نه روستو په صحیح روایت سره نهٔ دی ثابت چه پیغمبران راغلی وی تر محمد صلی الله علیه وسلم پورے۔

ددے کلی اُوسیدونکی په کفر او شرك کښې مبتلا وو، دوی به د غوا عبادت کولو، او نور ګناهونه ئے هم کول، دا خلك په اصل کښې یهودیان وو، او دارنګه خواږ شا علاقے د یونانیانو بت پرستانو هم وے۔ ځکه ئے د بشریت او د رسالت ترمینځ منافات ګڼړلے دے۔

الله تعالیٰ د دوی د هدایت لپاره اول دوه نبیان را اولیږل، چه دوی هغه دواړه اُووهل او جیل ته ئے واچول، نو د دوی د تائید دپاره ئے دریم نبی را اولیږه، وئیلے کیږی چه د دوی نومونه صادق، مصدوق او شلوم وو۔ یو بل قول دادے چه د دوی نومونه سمعان، یحییٰ او بولس وو، بهر حال د دوی نومونه چه هر څۀ وی، دے درے واړو کلی والو له دا یقین ورکړو چه مونږ واقعی د الله رسولان یو، نو خلقو دا دروغژن وګڼړل او وے وئیل چه تاسو نبیان څنګه کیدے شئ، تاسو خو زمونږ غوندے انسانان یئ، او الله هیڅوك نبی نۀ دے جوړ کړے چه په هغۀ باندے ئے د آسمان نه څۀ رالیږلی وی، دا ستاسو دروغ تړل دی۔

کله چه د دوی انکار زیات شو نو رسولانو په خپل کلام کښ د زیات زور پیدا کولو دپاره ووئیل چه زمونږ رب ښۀ پیژنی چه مونږ بیشکه ستاسو دپاره خامخا رسولان رالیږلے شوی یو، او زمونږ ذمه داری ددے نه هیڅ زیاته نۀ ده چه مونږ د الله پیغام په پوره وضاحت او صفایئ سره خلقو ته اُورسوو۔

قَالُوا: دا تفصیل د تکذیب دے په درے طریقو سره، ددے نه معلومه شوه چه د رسول د بشریت نه انکار کول د مشرکانو زړه جاهلانه عقیده ده۔

وَمَا أَنزَلَ الرَّحْمَٰنُ : دے خلکو الله منلو لیکن دا ئے نۀ منله چه په یو بشر باندے دے وحی نازله شی۔

تَكْذِبُونَ: یعنی په دعوه د رسالت کښ تاسو دروغجن یئ۔

رَبُّنَا يَعْلَمُ : دا جمله د قسم په ځای قائم ده، ددے وجه نه ئے د يَعْلَمُ مفعول نۀ دے ذکر کړے او جواب ئے په لام سره مؤکد ذکر کړیدے، او ددے لام د وجه نه د يَعْلَمُ نه روستو (إِنَّ) په زیر سره راوړے دے۔

وَمَا عَلَيْنَا: یعنی مونږ خو د الله رسولان یو او د رسولانو ذمه واری خلکو ته پیغام رسول وی، منل او نۀ منل د قوم کار وی۔

| قَالُوا إِنَّا تَطَيَّرْنَا بِكُمْ لَئِن لَّمْ تَنتَهُوا |
| --- |
| اُووئیل هغوی یقیناً مونږ سپیره شو ستاسو په وجه که چرته منع نۀ شوئ تاسو |
| لَنَرْجُمَنَّكُمْ وَلَيَمَسَّنَّكُم مِّنَّا عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿١٨﴾ |
| خامخا په کانړو به مو اُوولو او خامخا وُبه رسیږی تاسو ته زمونږ نه عذاب دردناك۔ |

قَالُوۡا طَآئِرُكُمۡ مَعَكُمۡ اَئِنۡ ذُكِّرۡتُمۡ

ووئیل دوی سپیره والے ستاسو تاسو سره دے آیا که چرته نصیحت کیږی تاسو ته (نو

بَلۡ اَنۡتُمۡ قَوۡمٌ مُّسۡرِفُوۡنَ ﴿۱۹﴾

انکار به کوئ) بلکه تاسو قوم ئے د حد نه تیریدونکی۔

**تفسیر**: کافرانو د رسولانو دے خبرے آوریدو سره ووئیل چه مونږ خو ستاسو راتګ د خپل ځان دپاره بدفاله (سپیرهٔ) ګنړو، کله نه چه تاسو په دے ښار کښں قدم ایښے، باران بند شوے دے۔ مقاتلؒ وائی : د دوی نه درے کاله باران بند شوے وو، نو دوی ورته ووئیل چه دا ستاسو په سپیرهٔ والی سره بند دے۔ مفسرین لیکی چه دغه درے وارو رسولانو دوئ لسو کالو پورے د الله دین طرفته رابلل، لیکن حق طرفته د مائل کیدو په ځای، د دوئ کبر اوغرور زیات شو، او یوه ورځ کلی والو رسولانو ته ووئیل چه که تاسو د خپل دعوت نه منع نشوئ او خپل تحریك مو بند نهٔ کړو، نو مونږ به تاسو سنګسار کړو، او تاسو له به سخته سزا درکړو۔

اِنَّا تَطَيَّرۡنَا : دا د دوی د تکذیب بله طریقه ده، دوی سره بل هیڅ جواب پاتے نشو نو جاهلانه خبرے ئے شروع کړے چه د دوی په لویه بیوقوفتیا او غباوت باندے دلالت کوی۔ یعنی دوی ووئیل چه ستاسو نبوت او رسالت څکه غلط دے چه ددے په وجه په مونږ باندے بدحالی راغلله، بیماری، قحطونه، د نرخونو ګرانی وغیره۔ او د جاهلانو خلکو دا عادت دے چه کوم شے دوی خوښوی او د دوی مزاج ئے منی نو هغه برکت والا ګنړی او چه کوم شے ئے د طبیعت نه خلاف وی نو هغے ته د سپیرهٔ والی نسبت کوی۔ که یو مصیبت پرے راشی نو وائی چه دا د فلانی په سپیرهٔ والی او نحوست سره راغے او که یو نعمت ورسیږی نو وائی چه د فلانی په برکت سره حاصل شو۔ (فتح البیان)

لَئِنۡ لَّمۡ تَنۡتَهُوۡا : دا د بل باطل پرست نښه ده چه دلیل ورسره نهٔ وی نو بیا جنګ جوړوی، او دهمکیانے ورکوی۔ (تنګ آمد بجنګ آمد)۔

لَنَرۡجُمَنَّكُمۡ: دے نه مراد په کاڼړو باندے ویشتل دی، یا کنځل وغیره مراد دی۔

عَذَابٌ اَلِيۡمٌ: یعنی دردناك عذاب به درورسیږی په صورت د قتل، یا په اُور سیزل یا کنځل او ردو بدو یا بل قسم عذاب سره۔

طَائِرُكُمْ مَعَكُمْ : یعنی ستاسو سپیرهٔ والے ستاسو د عمل د وجه نه دے۔ تاسو ایمان راوړئ الله تعالیٰ به ستاسو سپیرهٔ والے ختم کړی او بارانونه به دریاندے راولیږی۔
دا خو په تاسو د الله عذاب دے چه کله دریاندے قحطونه او کله زلزلے او کله نور مصیبتونه راولی۔
أَئِن ذُكِّرْتُم: ددے جزاء پټه ده۔ (فَتَطَيَّرْتُم) یعنی چه که چرے تاسو ته نصیحت درکړے کیږی نو تاسو به بد فالی نیسئ۔ داسے نهٔ ده بلکه د تذکیر په مقابله کښ عمل جوړول پکار دی، نهٔ بد فالی نیول۔
یعنی آیا تاسو صرف په دے وجه په مونږ بدفالی نیسئ چه مونږ تاسو الله طرفته رابللی یئ او د هغهٔ د یو والی دعوت مو درکړے۔
بَلْ أَنتُمْ قَوْمٌ مُّسْرِفُونَ: بلکه تاسو داسے خلك یئ چه ستاسو عادت زیاتے کول دی په گناه کښ، نو پدے وجه په تاسو سپیرهٔ والے راغلو نهٔ د رسولانو د وجه او د هغوی د تذکیر په وجه۔ یا تاسو اسراف کوئ په کفر کښ، او فساد کونکی یئ۔ (یحیی بن سلامؒ)
او ابن بحرؒ وائی : اسراف دلته فساد ته وئیلے شی۔ او اسراف په اصل کښ په مخالفت د حق کښ د حدودو نه تیروتلو ته وئیلے شی۔ یعنی د شرك په وجه د حد نه واوړیدئ۔
**فائده** : ددے آیت نه معلومه شوه چه تطیّر یعنی بد حالی وغیره په هر انسان باندے د هغه د عمل د وجه نه راځی، د هغے نسبت مکان یا زمانے ته، یا یو سړی یا ښځے ته کول جائز نهٔ دی ددے وجه نه رسول الله ﷺ منع فرمائیلے ده [لَا طِيَرَةَ ] (بخاری : ٥٧٥٤) (مسلم : ٥٩٣١) په اسلام کښ بد فالی نیول نشته، یعنی د خپلے بد حالیٔ سبب به د بل چا عمل یا صفت نهٔ گرځوے بلکه خپل عمل به د هغے سبب گڼړے۔

| وَجَاءَ مِنْ أَقْصَى الْمَدِينَةِ رَجُلٌ يَسْعَىٰ قَالَ يَا قَوْمِ |
| --- |
| او راغے د آخر سر د ښار نه یو سړے چه منډے ئے وهلے، وے وئیل اے قومه زما |
| اتَّبِعُوا الْمُرْسَلِينَ ﴿٢٠﴾ اتَّبِعُوا مَن لَّا يَسْأَلُكُمْ |
| تابعداری اُوکړئ د رسولانو۔ تابعداری اُوکړئ د هغه چا چه نهٔ غواړی تاسو نه |
| أَجْرًا وَهُم مُّهْتَدُونَ ﴿٢١﴾ |
| عوض او دوی په هدایت دی۔ |

**تفسیر**: د دغه کلی په یوه غاړه کښې یو نیك سړے اُوسیدهٔ چه د هغهٔ نوم حبیب بن موسیٰ نجار وو کله چه هغهٔ واوریدل چه کلی والا د الله د رسولانو خلاف د قتل سازش کوی، نو هغهٔ د رسولانو او د کلی والو دپاره د خیر خواهئ لپاره کلی ته راغے، او وے وئیل چه تاسو د الله د رالیږلو رسولانو تابعدار جوړ شئ چه هغوئ په خپل دعوتِ توحید باندے تاسو نه هیڅ عوض نهٔ غواړی، او هغوئ ډیر زیات هدایت موندونکی، با اخلاقه او با کماله خلق دی.

رَجُلٌ: د انبیاؤ مدد کول حَیًّا او مَیِّتًا (یعنی هغوی ژوندی وی او که مړهٔ) د سړو (سړیتوب) کار دے. یعنی هغه انسان نر دے چه د انبیاؤ حفاظت او ملګرتیا کوی.

قتادة وائی: دهٔ په یو غار کښې د الله بندګی کوله کله چه د رسولانو د قصے نه خبر شو نو په منډه راغے.

**فائده**: په سورتِ قصص (۲۰) آیت کښې ﴿ رَجُلٌ مِنۡ اَقۡصَى الۡمَدِیۡنَةِ ﴾ وو او دلته ﴿ مِنۡ اَقۡصَى الۡمَدِیۡنَةِ رَجُلٌ ﴾ وویل شو، دلته ئے رجل روستو ذکر کړو او هلته مخکښې. وجه دا معلومیږی چه په هغه سورت کښې حفاظت د نبی دے د قتل نه، او پدے سورت کښې حفاظت د انبیاؤ دے د تکذیب نه او اول کار ډیر اَهم دے په نسبت د دویم سره، او حفاظت ئے پدے وجه کړیدے چه دهٔ کښې سړیتوب وو، نر سړے وو. (احسن الکلام)

اتَّبِعُوا الۡمُرۡسَلِیۡنَ: هر حق پرست د نبی تابعدارئ ته دعوت ورکړیدے او همدا کامیابی ده او د نبی په خلاف د بل اُمتی تابعدارئ ته دعوت ورکول ګمراهی ده.

اتَّبِعُوا مَنۡ لَا یَسۡـَٔلُكُمۡ: دا بدل دے د مُرۡسَلِیۡنَ نه.

وَهُمۡ مُّهۡتَدُوۡنَ: پدے دواړو جملو کښې څه مقصد دے؟، نو په اوله جمله کښې دا دی چه دوی مخلصین دی، ستاسو خیر خواهان دی. تاسو نه مزدوری نهٔ غواړی، او دویمه جمله کښې دا دی چه په دعوت کښې ئے هم نقصان نشته. کله یو انسان مُخلص وی لیکن دعوت ئے غلط وی، نو دلته وائی چه دعوت ئے هم د هدایت دے او اخلاص هم پکښې دے.

وَهُمۡ مُّهۡتَدُوۡنَ: نه معلومه شوه چه څوك د نبی پسے روان شی هغه هم په هدایت شی.

| وَمَا لِيَ لَا أَعْبُدُ الَّذِي فَطَرَنِي |
| --- |
| او څه وجه ده ما لره چه بندګي به نۀ کوم د هغه ذات چه زۀ ئې اول پيدا کړے يم |
| وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴿٢٢﴾ ءَأَتَّخِذُ مِنْ دُونِهِ آلِهَةً |
| او خاص هغه ته به تاسو ورګرځولے شئ. آيا زۀ به نيسم سوئ د الله نه نور حقداران د |
| إِنْ يُرِدْنِ الرَّحْمَٰنُ بِضُرٍّ لَا تُغْنِ عَنِّي شَفَاعَتُهُمْ |
| بندګئ، که اُوغواړي ماله رحمٰن ذات څه ضرر نو نۀ شي لرے کولے زما نه سفارش د دوي |
| شَيْئًا وَلَا يُنْقِذُونِ ﴿٢٣﴾ إِنِّي إِذًا |
| هيڅ ضرر او نۀ دوي ما لره خلاصولے شي. يقيناً زۀ به په دغه وخت کښې |
| لَفِي ضَلَالٍ مُبِينٍ ﴿٢٤﴾ إِنِّي آمَنْتُ بِرَبِّكُمْ فَاسْمَعُونِ ﴿٢٥﴾ |
| خامخا په ګمراهئ ښکاره کښې يم. يقيناً ما ايمان راوړيدے په رب ستاسو نو واورئ. |

**تفسير**: ددے پيغمبرانو دعوت څه وو؟ نو هغه يو اخے د الله بندګئ ته خلك رابلل او د شرك نه منع كول وو، نو څکه ورته هغه راښکاره کوی او په ډير مخلصانه او حکيمانه انداز کښې ورته دعوت پيش کوی چه کومه خبره ئې خلقو سره کول غوښتل، د هغے مخاطب ئې خپل خان جوړ کړو او وے وئيل چه آخر څۀ وجه ده چه زۀ د هغه حق ذات عبادت ونۀ کړم چه هغه زۀ پيدا کړے يم، يعنې څۀ وجه ده چه تاسو د هغه الله د وحدانيت قائل نۀ يئ چه هغه ستاسو خالق دے، او مرګ نه پس هغۀ ته ستاسو واپس تلل دی. آيا دا خبره د چا په عقل کښې راځي چه زۀ دغه د تمام جهان خالق او مالك پريدم او د داسے بے ساه بتانو عبادت اُوکړم، چه که الله ما په څۀ تکليف کښې مبتلا کړی، نو هغوئ زما هيڅ په کار نۀ راځي، نۀ هغوئ د الله په نيز سفارشي جوړيدے شی، او نۀ خپله دا تکليف لرے کولے شي. يعنې دا به څومره د کم عقلئ خبره وی چه کوم بتان زۀ په خپلو لاسونو جوړ کړم، د هغوئ مخے ته په سجده پريوځم. که چرے زۀ داسے وکړم نو په ښکاره ګمراهئ کښې به آخته شم. اے خلقو! تاسو واورئ چه ما ستاسو په رب باندے ايمان راوړے چه زمونږ د ټولو خالق او رازق او مالك دے، يعنې ګواه شئ چه زۀ په رب العالمين باندے ايمان لرم او د بتانو نه انکار کوم.

وَمَا لِيَ: پدے کښې عدم مانع ذکر دے او په (فَطَرَنِیُ) کښې مُقتضي او سبب د عبادت ذکر دے۔ او چه کله مانع نهٔ وی او سبب موجود وی نو هغه وخت خو عبادت کول لازم وی۔
وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ: پدے کښې دهمکی ده چه تاسو به الله ته پیش کیږئ، هغه به درسره حساب کوی۔ دلته ئے د پیدائش (فَطَرَنِیُ) نسبت ځان ته وکړو ځکه چه پیدائش د نعمت اثر دے او دا په دهٔ باندے زیات ښکاره وو، او رجوع کښې معنیٰ د زجر وه نو دا د هغوی د شان سره لائق وه۔ (فتح البیان)
او پدے کښې ئے ورته عقیده د بعث بعد الموت هم وخودله۔
اَاَتَّخِذُ: بیا په نرمه لهجه سره خپل ځان نه شروع کوی۔ یعنی هرکله چه الله زهٔ پیدا کړے یم نو آیا زهٔ به د هغهٔ نه سوئ نور معبودان ونیسم او د هغوی عبادت به شروع کړم او د مستحق ذات عبادت به پریدم، دا خو مره ناکاره او د تعجب خبره ده۔
شَفَاعَتُهُمْ: یعنی د دوی په شفاعت سره ما ته هیڅ فائده نهٔ ملاویږی او ﴿ وَلَا يُنقِذُونِ﴾ او که زهٔ د الله په عذاب کښې گرفتار شم، نو دوی مے خلاصولے نشی، نو هرکله چه دا معبودان داسے کمزوری دی چه زما د نفع او ما نه د ضرر دفعه کولو طاقت نهٔ لری، نو بیا د دوی عبادت کول لویه بی عقلی او ښکاره گمراهی ده۔ قادر ذات پریخودل او عاجز پسے روانیدل ښکاره گمراهی ده۔
شَفَاعَتُهُمْ نه معلومه شوه چه دوی دومره مخوریز هم نهٔ دی چه الله د دوی نه مجبوره شی او د دوی شفاعت قبول کړی او وَلَا يُنقِذُونِ نه معلومه شوه چه د دوی طاقت هم نشته چه د الله نه په زوره مجرم خلاص کړی۔
إِنِّيٓ إِذًا لَّفِيْ: دا جواب د سوال دے هغوی به ووائی چه د شرك پدے عقیده لرلو کښې څه نقصان دے؟ نو جواب ئے وکړو چه دا خو سراسر ښکاره گمراهی ده۔
إِنِّيٓ آمَنتُ بِرَبِّكُمْ: دا خپل ایمان ښکاره کول دی او مقصد پکښې هغوی ته دعوت ورکول دی چه ستاسو هم رب دے تاسو له هم پکار دی چه په هغه ایمان راوړئ۔
او فَاسْمَعُونِ کښې هغوی ته د فکر او سوچ دعوت ورکول دی چه دا نصیحت زما قبول کړئ چه بیا داسے ونهٔ وایئ چه مونږ ته چا حق نهٔ وو بیان کړے۔

قِيْلَ ادْخُلِ الْجَنَّةَ قَالَ يَا لَيْتَ قَوْمِيْ

ووئیل شو (دهٔ ته پس د مرگ نه) داخل شه جنت ته۔ اُووئیل دهٔ هائے ارمان چه قوم زما

| يَعْلَمُوْنَ ﴿۲۶﴾ بِمَا غَفَرَ لِيْ رَبِّيْ وَجَعَلَنِيْ |
|---|
| پوهیدلے۔ په هغه مسئله چه بخنه اُوکړه ما ته رب زما او وے کړخولم زهٔ |
| مِنَ الْمُكْرَمِيْنَ ﴿۲۷﴾ |
| د عزت کړے شوو نه۔ |

**تفسیر** : مفسرین لیکی چه کله دهٔ دا خبره وکړه نو ټولو په یو خل به هغهٔ حمله وکړه او هغه ئے اُووژلو، عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائی چه هغه ئے راونیولو او څیملولو او په خیټه ورته وختل او په خیټه ئے ورته تو پونه ووهل تردے چه خیټه ئے ورله وچوله، بیا ئے کوهی ته گوزار کړو لکه دوی ته (اصحاب الرس) هم وئیل شویدی۔

بعضو لیکلی دی چه هغه ئے په یو خندق (کنده) کښې ژوندے ښخ کړو۔

سدیؒ وائی چه هغه ئے په کانړو ویشتو او هغه به دا وئیل [اَللّٰهُمَّ اهْدِ قَوْمِيْ فَاِنَّهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ] اے الله! زما قوم ته هدایت وکړه ځکه چه دا ناپو هه دی۔

او بعضو وئیلی دی چه دا ئے په آره باندے دوه ټکړے کړو۔ بعض وائی چه د هغه په مرئ کښې ئے سورے وکړو او د هغه ښار په چوك کښې ئے راځوړند کړو۔ (فتح البیان)

نو هرکله چه دوئ هغه ووژلو نو الله تعالیٰ د هغهٔ روح آسمان ته اُوچت کړو، بیائے جنت ته داخل کړو۔ کله چه هغهٔ جنت او د هغے د نعمتونو لیدنه کتنه وکړه نو وے فرمایل :

آرمان دے چه زما قوم په الله باندے ایمان او د توحید عقیده پیژندلے او هغه ئے خپله کړے وے چه ددے په سبب الله تعالیٰ زما ټول گناهونه معاف کړل، او ماله ئے په جنت کښې د شهیدانو او صالحینو په مقام او مرتبے راکولو سره زما عزت او اکرام وکړو، دے دپاره چه دوئ هم په دے لاره باندے تلی وے او په جنت کښې ئے اعلیٰ مقام حاصل کړے وے۔

ابن عباس ﷺ وائی چه دے ایماندار سړی د خپل قوم دپاره په ژوند کښې د اخلاص او محبت ثبوت ورکړو چه هغوئ ته ئے په رسولانو باندے د ایمان راوړو نصیحت وکړو، او د مرگ نه پس ئے آرزو وکړه چه کاش دغه خلق مسلمانان شوی وے، دے دپاره چه د الله د عذاب نه بچ شوی وے، او د جنت حقدار جوړ شوی وے۔ نو دا څومره لوی اخلاص دے چه دوی وژلے دے او هغه ورله پس د مرگ نه هم خیرخواهی کوی۔

قِیۡلَ: دلته وقف دے یعنی دے شهید کړے شو او روح ئے ووتو نو دهٔ ته وویل شو.
قِیۡلَ ئے مجهول راوړه چه فاعل ئے ډیر کسان دی، الله هم ورته وویل، ملائکو هم، هر شی ورته وویل چه ته جنتی ئے. او دا په برزخ کښې جنت ته تلل دے، برزخ کښې هم انسان جنت ته ځی، ځکه چه د مؤمن روح جنت ته ځی بیا خاصکر د شهید.
اُدۡخُلِ الۡجَنَّةَ: جنت ته د هغهٔ داخلیدل خو د هغه په اختیار کښې نهٔ وو نو دا امر تکوینی دے یعنی الله په جلتئ سره د روح وتلو نه پس سمدست جنت ته داخل کړو.
دا دلیل دے چه جنت د اُوس نه الله تعالیٰ پیدا کړیدے.
دے رجل مؤمن ته جنت په یو څو کارونو ملاؤ شو، یو دا چه ایمان ئے راوړے، توحید ئے قبول کړے، دویم اتباع د رسول ئے کړے، دریم الله تعالیٰ او د الله د رسول اتباع (تابعداریٔ) ته ئے دعوت ورکړے. څلورم الشهادة. د الله په لاره کښې ئے شهادت موندلے او په لږ وخت کښې ئے دا کارونه کړی.
اَلۡمُکۡرَمِیۡنَ: علماء وائی چه صاحب الکرامة هغه دے چه په استقامت پاتے شی او بیا پدے حالت کښې پرے مرګ راشی.

| وَمَا اَنۡزَلۡنَا عَلٰی قَوۡمِهٖ مِنۡ بَعۡدِهٖ مِنۡ جُنۡدٍ مِّنَ السَّمَآءِ وَمَا كُنَّا |
|---|
| او نهٔ دے رالیږلے مونږ په قوم ددهٔ باندے روستو ددهٔ نه هیڅ لښکر د آسمان نه او نهٔ یو |
| مُنۡزِلِیۡنَ ﴿۲۸﴾ اِنۡ كَانَتۡ اِلَّا صَیۡحَةً وَّاحِدَةً فَاِذَا هُمۡ خٰمِدُوۡنَ ﴿۲۹﴾ |
| مونږ رالیږونکی. نهٔ وو (هلاکت د دوی) مګر چغه یوه وه، نو ناڅاپه دوی مړهٔ پراته وو. |
| یٰحَسۡرَةً عَلَی الۡعِبَادِ مَا یَاۡتِیۡهِمۡ مِّنۡ رَّسُوۡلٍ اِلَّا كَانُوۡا بِهٖ یَسۡتَهۡزِءُوۡنَ ﴿۳۰﴾ |
| اے افسوس دے په بندګانو نهٔ راځی دوی ته هیڅ رسول مګر دوی په هغه پورے توقے کوی. |

**تفسیر**: د رجل مؤمن حبیب النجار د قتل کیدو نه پس، د دغه کافر او ظالم قوم هلاکیدل د الله په نیز ثابت شو، هغه ورته په غضب شو او په جلتی سره ئے سزا ورکړه چه ددے دپاره هغهٔ د آسمان نه څهٔ فوج نهٔ وو نازل کړے اونهٔ ددے ضرورت وو، دا خو یوه چغه وه چه ددے په نتیجه کښې دوئ فوراً ټول هلاك شول، او د خپلو تمامو ګناهونو سره واخستے شول، دے دپاره چه د قیامت په ورځ دوئ بوج په سر کړے د حشر په میدان کښې د خپل رب په حضور کښې ولاړ وی او د هغے بدله اُوځکی.

عَلٰى قَوْمِهٖ مِنْ بَعْدِهٖ مِنْ جُنْدٍ مِّنَ السَّمَاءِ: پدے کښې د دوی ډیر لوی سپکاوے بیانیږی چه دوی ددے لائق نهٔ وو چه مونږ د دوی هلاکت دپاره د آسمان نه ډیرے لښکرے نازل کړے وے بلکه په یوه چغه مے هلاك کړل۔

ددے مطلب دا دے چه الله تعالیٰ د دوی هلاکت د جنګ په صورت کښې ونکړو چه ملائك راولیږی او تورے ورله ورکړی، او د دوی سره جنګ وکړی ځکه چه په جنګ کښې د جانبینو د قتل امکان وی، او بل طرفنهٔ د دشمن څه نا څه زړه هم یخیږی۔ او یو څو کسان پکښې مړهٔ کیږی۔ بلکه الله دوی په یو ځل مړهٔ کړل، جبریل علیه السلام په دوی باندے یوه چغه ووهله نو زړونه ئے وچودل او مړهٔ پراتهٔ وو۔ او دا چغه د ایتم بم نه زیاته قوی وی۔

اِنْ كَانَتْ: ضمیر هلاکت ته راجع دے۔ اَیْ اِنْ كَانَتْ هَلْكَتُهُمْ۔

خَامِدُوْنَ: خامد هغه سکارهٔ دی چه بل وی او اُوبه پرے وا چولے شی نو د هغے نه لوګی روان وی او تلك تور واوړی۔

يَا حَسْرَةً عَلَى الْعِبَادِ: الله تعالیٰ په بندګانو افسوسونه نکوی ځکه چه افسوس هغه څوك کوی چه کمزورے وی، وائی چه داسے نهٔ وے شوی نو ښه به وه۔ نو دلته مفسرین وائی چه دلته موجوده کسانو ته خطاب دے، تقدیر داسے دے:

(۱) [يَا هٰؤُلَاءِ تَحَسَّرُوْا حَسْرَةً عَلَى الْعِبَادِ] یعنی اے موجوده خلکو! تاسو په دغه بندګانو افسوس وکړئ چه څومره بد انجام ته ورسیدل۔ نو منادی پټه ده او حسرةً مفعول مطلق د تَحَسَّرُوْا دے۔ او مطلب دادے چه افسوس ته آواز وکړئ چه اے افسوسه راشه حاضر شه دا ستا وخت دے۔

(۲) (هُمْ أَحِقَّاءُ اَنْ يَّتَحَسَّرُوْا عَلٰى اَنْفُسِهِمْ) دا بندګان ډیر لائق دی چه په خپلو نفسونو افسوس وکړی۔ (۳) (يَا حَسْرَتَهُمْ عَلٰى اَنْفُسِهِمْ) د بندګانو افسوس په خپلو ځانونو دے۔ (عکرمة) یعنی په ځان دے افسوس وکړی چه مونږ ولے دومره کم عقل یو چه مونږ د رسولانو نه انکار وکړو۔ نو پدے کښې د الله د طرفنه بندګانو ته تنبیه ورکول غرض دے چه اُوس نه په ځانونو افسوس وکړئ نو ځانونه مهٔ جاهل کوئ۔

(٤) ابن جریرؒ وائی: (يَا حَسْرَةً مِنَ الْعِبَادِ عَلٰى اَنْفُسِهِمْ) اے افسوس د بندګانو دے په دوی باندے۔

يَسْتَهْزِءُوْنَ: یعنی یواځے په تکذیب اکتفاء نکوی بلکه استهزاء ورسره جمع کوی۔

| أَلَمْ يَرَوْا كَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُم مِّنَ الْقُرُونِ |
| --- |
| آیا نهٔ گوری دوی څومره هلاك کړیدی مونږ مخکښې د دوی نه د پیړو نه |
| أَنَّهُمْ إِلَيْهِمْ لَا يَرْجِعُونَ ﴿٣١﴾ وَإِن كُلٌّ |
| چه بیشکه هغوی دوی ته نهٔ راواپس کیږی. او یقیناً شان دا دے نهٔ دی هریو (د دوی نه) |
| لَّمَّا جَمِيعٌ لَّدَيْنَا مُحْضَرُونَ ﴿٣٢﴾ |
| مګر ټول به مونږ ته حاضر کړے شوی وی. |

**تفسیر** : د مکے او نورو کافرانو په حال باندے حیرانتیا ظاهرول دی چه د دوئ نه مخکښې چه کوم کافر قومونه وو، الله د کفر او شرك د وجے نه هغه هلاك کړل، او د هغوئ نه هیڅ یو قوم دوباره دنیا ته نهٔ راواپس کیږی، نو ددے فائده دا ده چه اقوام مکذبه هلاك شو بیرته دنیا ته نشی راواپس کیدے چه بیرته د دنیا نه ځان سره آخرت ته هدایت وسی، بلکه بے هدایته د دنیا نه لاړل، او د الله په ګرفت کښې راغلل، د هدایت نه محروم شو نو دے خلکو دپاره ددے نه عبرت اخستل پکار دی چه زمونږ ډیر دغه شان انسانان ورونه وو هغوی د پیغمبرانو تکذیب وکړو نو الله هلاك کړل او داسے جیل ته ئے بوتلل چه اُوس ترے بیخی راتللے نشی، نو ژوندو له پکار دی چه ویریږی چه که الله تعالیٰ په مونږ باندے داسے حال راولی مونږ به څه کوو.

وَإِن كُلٌّ لَّمَّا جَمِيعٌ: سوال پیدا شو چه بیخی به انسانان دوباره نشی راپورته کیدے. نو الله جواب کوی چه دنیا ته خو نشی راتللے البته الله تعالیٰ به ئے خپل ځان ته په قیامت کښې راپورته کوی. او د دوی سره به حساب کوی. یعنی اُوس د برزخ په جیل کښې دی بیا به آخرت ته لاړ شی، او دنیا ته راتلل خو ئے ممکن نهٔ دی.

وَإِن: (١) قراة والئی چه إِنْ نافیه دے او لَمَّا په معنیٰ د (اِلَّا) دے یعنی نهٔ دی داټول انسانان مګر زمونږ مخے ته به راجمع کړے شی.

(٢) مشهوره دا ده چه إِنْ مُخَفَّفْ مِنَ الْمُثَقَّل دے اَیْ إِنَّهٗ ۔ او د لَمَّا معنیٰ ده خامخا. یعنی شان دا دے یقیناً داټول خلك به خامخا مونږ ته راجمع کړے شی.

د کل نه مراد ټول افراد دی، او جمیع کښې اشاره ده د دوی په یو ځای په محشر میدان کښې راجمع کیدو ته.

وَآيَةٌ لَّهُمُ الْأَرْضُ الْمَيْتَةُ أَحْيَيْنَاهَا وَأَخْرَجْنَا مِنْهَا

او نخه د دوی دپاره زمکه ده چه راژوندئ کړو مونږ هغې لره او را اُوباسو د هغې نه

حَبًّا فَمِنْهُ يَأْكُلُونَ ﴿٣٣﴾ وَجَعَلْنَا فِيهَا جَنَّاتٍ مِّن نَّخِيلٍ

دانې نو بعض د هغې دوی خوری۔ او ګرځولی دی مونږ په هغې کښې باغونه د کجورو

وَأَعْنَابٍ وَفَجَّرْنَا فِيهَا مِنَ الْعُيُونِ ﴿٣٤﴾ لِيَأْكُلُوا مِن

او د انګورو او روان کړیدی مونږ په هغې کښې د چینو نه۔ دے دپاره چه اُوخوری دوی د

ثَمَرِهِ وَمَا عَمِلَتْهُ أَيْدِيهِمْ أَفَلَا يَشْكُرُونَ ﴿٣٥﴾

میوو د الله تعالیٰ نه او نهٔ دی جوړ کړی دا لاسونو د دوی آیا نو دوی شکر نهٔ کوی۔

سُبْحَانَ الَّذِي خَلَقَ الْأَزْوَاجَ كُلَّهَا مِمَّا تُنبِتُ

پاک دے هغه ذات چه پیدا کړی ئے دی جوړئ (قسمونه) ټولے د هغې نه چه رازرغونوی

الْأَرْضُ وَمِنْ أَنفُسِهِمْ وَمِمَّا لَا يَعْلَمُونَ ﴿٣٦﴾

ئے زمکه او د نفسونو د دوی نه او د هغه څه نه چه دوی پرے نهٔ پو هیږی۔

**تفسیر:** ربط

ذهن کښې سوال راغلو چه دا څنګه کیدے شی چه دا دومره ډیر انسانان راژوندیے کړے شی او ځان ته ودرولے شی، نو ددے وجه نه اُوس الله تعالیٰ دا خبره په دلائل عقلیه ؤ سره ثابتوی۔

نو ددے دلیلونو ډیر غرضونه دی، (۱) دا د اثبات الحشر دپاره دلائل دی۔

(۲) د الله د قدرت او معرفت دلیلونه دی۔

(۳) دا د رد د شرك دلیلونه هم دی۔ (٤) دا د الله تعالیٰ انعامات هم دی، نو ددے په مقابله کښې د هغه بندګی وکړئ او شریکان ورسره مهٔ جوړوئ۔

او پدے کښې اشاره ده چه د الله تعالیٰ دوه قسمه انعامات دی، یو ظاهری دی چه دا روستو ذکر کیږی، او باطنی انعامات ئے رسولان او کتابونه دی، او دا دواړه انعامات الله تعالیٰ په تاسو کړیدی نو بیا تاسو ولے انکار کوئ۔

د مرګ نه پس د دوباره ژوندون عقلي دلیل دادے چه د باران نهٔ کیدو په وجه زمکه مړه شي، په دے کښې هیڅ یو بوټے نهٔ رازرغونیږي، بیا الله تعالیٰ باران را ولیږي او هغه ژوندۍ کړي، په دے کښې دانے را اوټو کوي چه خلق ئے خوري، په دے کښې د کهجورو او انګورو مختلف باغونه پیدا کوي، او کومے اُوبهٔ چه زمکے ته لاړے شي، الله تعالیٰ په خپل قدرت سره هغه د چینو په صورت کښې دوباره په زمکه باندے بیوي، انسان دے تمامو نعمتونو نه فائده پورته کوي، میوے او دانے خوري او په دے میوو کښې د چانه رَس اوباسي، او څهٔ اُوچوي، یعنې مختلفو طریقو سره دا استعمالوي۔ آیا دا رنګ په رنګ نعمتونه د بندګانو نه دا نهٔ غواړي چه هغوئ د خپل خالق او مالك شکریه اداء کړي۔ او آیا دا ټولے خبرے ددے خبرے دلیل نهٔ دے چه الله تعالیٰ د انسانانو په دوباره ژوندي کولو باندے قادر دے ؟!، ولے نهٔ۔

حَبًّا: دانے د غنمو، وریشو، جوارو، وریژو وغیره چه د غذا سره تعلق لري.

نَّخِيلٍ وَّأَعْنَابٍ: دا په عربو کښې زیات وو او نخیل ئے مخکښې کړل څکه چه پدے کښې ډیرے فائدے دي، غذاء هم ده، فاکهه هم ده، او دارنګه د هغے لرګي، پاڼړے، پوستکے، سانګے او میوے بُسر او رُطب او تمر ټول نعمتونه فائدو والا دي، او زینت پکښې دا دے چه پاڼړے ئے نهٔ غورزیږي۔

مِن ثَمَرِهِ : ضمیر په تاویل د مذکور سره جَنّٰت ته یا دواړو ته راجع دے یا الله ته راجع دے۔

وَمَا عَمِلَتْهُ أَيْدِيهِمْ : ١- مَا نافیه دے او پدے کښې رد دے په مشرکانو چه دا میوے خو انسانانو او باطلو آلهه وُ نهٔ دي جوړے کړي بلکه صرف الله پیدا کړیدي۔

(ضحاكؒ ومقاتلؒ)

٢- یا ما موصوله ده او عطف دے په (ثَمَرِهِ) باندے، او مراد ترینه هغه رس، جوس شیره، او مشروبات دي کوم چه د میوو نه جوړیږي۔ او دوډۍ او تیل وغیره چه د دانو نه راوباسي۔

سُبْحَانَ الَّذِيْ : اُوس پرے د توحید تفریع کوي۔ یعنې انسانان چه الله تعالیٰ ته ددے عیب او عجز نسبت کوي چه هغه به انسانان دوباره نشي پیدا کولے، نو الله ددے نه خپله پاکي بیان کړیده چه هغه خو قادرِ مطلق دے چه هغهٔ تمام بوټي او انسانان جوړه جوړه یعنې نر او ماده پیدا کړي، او په آسمان او زمکه کښې موجوده ډیر زیات نور

څیزونـه یې هم جوړه جوړه پیدا کړي چه هغه مونږ ته معلوم نهٔ دي. نو ضرور په دوباره ژوندي کولو قادر دے.

الْأَزْوَاجَ : اصناف (اقسام) او جوړې ته وائي. الله تعالیٰ تقریباً اتیا زره اقسام د بوټو پیدا کړي.

وَمِمَّا لَا یَعْلَمُوْنَ : داسے مخلوقات په اُوچه او دریابونو او آسمان او زمکه کښې شته چه الله په هغے کښې جوړې او اقسام جوړ کړیدي او مونږ ته د هغے هیڅ معلومات نشته، په حیواناتو کښې، په بوټو کښې او په ستورو او په سپوږمئ او نور عالم کښې دي.

دا ټول د آخرت او د الله د طاقت او د باطلو معبودانو د عجز دلیل دے. نو بیا هغه سره ولے شریکان جوړوی، او د الله تعالیٰ د بندګۍ دلیلونه دي.

| وَآيَةٌ لَّهُمُ اللَّيْلُ نَسْلَخُ مِنْهُ النَّهَارَ فَإِذَا هُم مُّظْلِمُوْنَ ﴿۳۷﴾ |
|---|
| او نخه د توحید دوی لره شپه ده، را اُوباسو مونږ ددے نه ورځ نو ناڅاپه دوی په تیاره کښې |
| وَالشَّمْسُ تَجْرِيْ لِمُسْتَقَرٍّ لَّهَا ذٰلِكَ تَقْدِيْرُ الْعَزِيْزِ الْعَلِيْمِ ﴿۳۸﴾ |
| وي. او نمر روان دے دپاره د وخت مقرر خپل، دا اندازه ده د زورور، پوهه ذات. |
| وَالْقَمَرَ قَدَّرْنَاهُ مَنَازِلَ حَتّٰى عَادَ كَالْعُرْجُوْنِ |
| او سپوږمئ لره اندازه کړي دي مونږ منزلونه تردے چه راواپس شوه پشان د ځانګے |
| الْقَدِيْمِ ﴿۳۹﴾ لَا الشَّمْسُ يَنْۢبَغِيْ لَهَا أَنْ تُدْرِكَ الْقَمَرَ وَلَا |
| د کجورے زړے. نهٔ دے نمر چه آسان شي دے لره چه رالاندے کړي سپوږمئ او نهٔ ده |
| اللَّيْلُ سَابِقُ النَّهَارِ وَكُلٌّ فِيْ فَلَكٍ يَّسْبَحُوْنَ ﴿۴۰﴾ |
| شپه مخکښې کیدونکے د ورځے نه او هر یو په خپل ځائے د ګرځیدو کښې لامبو وهي. |

**تفسیر** : دا بل دلیل عقلي دے او تیر شوي دلیلونو کښې نعمتونه مکاني او سفلي وو، او دے کښې نعمتونه زماني وسطي ذکر کوي. یعنی د مرګ نه پس د دوباره ژوند او د الله د توحید دویم دلیل دا دے چه الله تعالیٰ ورځ د شپے نه جدا کوي، یعنی ورځ رخصت شي او شپه د خپلے تیارے سره راځي، او هر یو شے پټ کړي. د شپے او ورځے ددے انتهائي درجے ترتیب او انتظام سره د یو بل نه روستو تلل راتلل، او په دے کښې د ذرے هومره

خلل نهٔ راتلل، ددے خبرے قطعی دلیل دے چه د زمکے او آسمان دغه کار ساز یقیناً د انسانو په دوباره ژوندی کولو باندے قادر دے۔ او هغه یواځے د عبادت مستحق دے۔

نَسۡلَخُ: سلخ په اصل کښ د ذبح شوی حیوان نه پوستکی ویستلو ته وئیلے شی۔ او دے کښ تشبیه ده، یعنی شپه داسے ده لکه د حیوان بدن او د ورځے رڼا داسے ده لکه د هغے دپاسه څرمن، دے کښ شپه اصل گرځولے شویده ځکه چه ظلمت (تیاره) عدمی شے دے، او اصل په ممکناتو کښ عدم دے او ددے وجه نه شپه د میاشتو په حساب کښ د ورځے نه مخکښ حسابیږی۔

مُّظۡلِمُوۡنَ: اَیۡ دَاخِلُوۡنَ فِی الظَّلَامِ۔ په تیارهٔ کښ وی۔ په تیاره کښ آرام کیږی، او د قیام اللیل لذت پکښ حاصلیږی، نو ځکه دا نعمت دے، او ددے د نعمت کیدو نور وجوهات مخکښ سورة الروم کښ ذکر شو۔

وَالشَّمۡسُ تَجۡرِیۡ لِمُسۡتَقَرٍّ لَّهَا: دریم عقلی دلیل د نمر روزانه گردش دے چه ددے مطابق دا راخیژی او ډوبیږی، او په بخاری او مسلم کښ د ابو ذر رضی الله عنه د روایت کړی حدیث مطابق هره ورځ د عرش لاندے رب العالمین ته سجده کوی، او د نوے ورځے دپاره د خپل گردش جاری ساتلو اجازت غواړی۔ کوم غالب او علیم ذات چه دا باریك شمسی نظام قائم ساتلے، چه ددے نه نمر د وینتهٔ د سر هومره اوړیدل نشی کولے، گنے د کُرهٔ ارض تمام نظام به درهم برهم او خراب او برباد شی، آیا هغه په دے باندے قادر نهٔ دے چه هغه په خپل لاس باندے پیدا کړی انسانانو لره دوباره ژوندی کړی ؟!، ولے نهٔ۔

لِمُسۡتَقَرٍّ لَّهَا: ۱- د مستقر یوه معنیٰ د عرش نه لاندے ځای شو۔

۲- دویم ددے نه مراد قیامت ته نزدے نمر د مغرب د طرفنه راختل دی۔ (لکه دا هم په صحیح حدیث کښ ثابت دی) دا دوه قوله راجح دی۔

۳- حسن وائی چه د نمر دپاره په کال کښ (۳۶۰) مطالع دی، هره ورځ په یو مطلع کښ کوزیږی بیا کاله پورے هغے ته نهٔ راځی، نو دا په دغه منازلو کښ روان وی، او دغه ئے مستقر دے۔

وَالۡقَمَرَ قَدَّرۡنَاهُ مَنَازِلَ: څلورم دلیل د زمکے نه گیر چاپیره د سپوږمئ گردش دے، چه ددے مطابق هغه په خپل مقرر شوو آته ویشتو منازلو کښ په پوره پابندئ او ترتیب او انتظام سره تاویږی چه ددے په وجه د ورځے، هفتے، میاشتے او کال حساب معلومیږی۔ په شروع کښ سپوږمئ نرئ وی، بیا په مزه مزه لوئیږی، تردے چه

څـوارلسم تاریخ له پوره میاشت جوړه شي، دے نه پس بیا نرې کیدل شروع کیږي، تردے چه د میاشتے په آخره کښې د کهجورے د نرۍ پخوانۍ او زیړے څانگے غوندے شي. کوم حق ذات چه د سپوږمۍ په دے حیرانونکي گردش باندے قادر دے، هغه خامخا د تمامو انسانانو د وژلو نه پس په دوباره ژوندي کولو او هغوئ له د هغوئ د عملونو په بدله ورکولو باندے قادر دے.

كَالْعُرْجُونِ: څانګه د کجورے چه زړۀ او وچه شي نو نرۍ او کږه او زیړه شي نو دارنګه سپوږمۍ هم وګرځي.

لَا الشَّمْسُ يَنۢبَغِيْ لَهَا: پدے آیت کښې الله تعالىٰ خپل عظیم قدرت داسے واضح کړے چه دا نشي کیدے چه نمر سپوږمۍ لره رالاندے کړي، یعني دواړه په یوځای کښې جمع شي او په یو وخت کښې جمع شي، او دواړه د یو بل په عمل کښې کار ولري. داسے نشي کیدے چه نمر د شپے راوخیژي.

او داسے ئے ونۀ وئیل [وَلَا الْقَمَرُ يَنۢبَغِيْ لَهَا اَنْ يُّدْرِكَ الشَّمْسَ] یعني سپوږمۍ له مناسب نۀ دي چه نمر رالاندے کړي) ځکه چه سپوږمۍ په مزل کښې تیزه ده د نمر د وجود په وخت هم رابښکاره کیږي، ځکه چه سپوږمۍ په میاشت کښې خپل فلك (مدار) قطع کوي. او نمر په کال کښې خپل فلك قطع کوي.

يَنۢبَغِيْ لَهَا: اَیْ لَا يَسْهُلُ لَهَا وَلَا يُمْكِنُ. یعني دا ورله آسانه نۀ ده او نۀ ورله دا ممکن ده.

وَلَا الَّيْلُ سَابِقُ النَّهَارِ: یعني دا نشي کیدے چه شپه د خپل مقرر وخت نه وړاندے د ورځے نه رامخکښې شي، یا ورځ د شپے نه رامخکښې شي، بلکه دواړه د الله د تدبیر او حکمت مطابق همیشه یو بل پسے روستو ځي راځي.

وَكُلٌّ فِيْ فَلَكٍ يَّسْبَحُوْنَ: یعني نمر او سپوږمۍ او ستورې د آسمان په لوې مدار کښې لامبو وهي، نۀ هغه خپلو کښې ګډوډیږي، او نۀ یو بل سره ټکراوېږي، ګنے کائنات به ذرے ذرے شوې وے او دا مُنظّمه اومرتبه دنیا به تباه او برباده شوے وے.

فَلَكٍ: فلك جسم دے مُستدیر (ګول)، یا سطح مستدیره ده.

فلك: دا د مَلَكَةُ الْمِغْزَلِ نه جوړدے، دا هغه څرخے ته وئیلے کیږي چه په هغے سره د مالوچو او وړۍ نه تارونه جوړیږي د هغے حرکت چاپیره وي، نو معلومه شوه چه د نمر او سپوږمۍ حرکت هم چاپیره دے.

يَسْبَحُونَ: سبح اصل کښې لامبو وهلو ته وئیلے شي دلته ترے مراد په فراخئ او آسانئ سره کولاو مزل ته وئیلے شي۔ دا دومره محکم نظام د الله په وجود او د هغهٔ په وحدانیت باندے ضرور دلالت کوي۔

| وَآيَةٌ لَّهُمْ أَنَّا حَمَلْنَا ذُرِّيَّتَهُمْ فِي الْفُلْكِ |
| --- |
| او نخه د توحید دوی لره دا ده چه یقیناً مونږ پورته کړیدی نسل د دوی په کشتئ |
| الْمَشْحُونِ ﴿٤١﴾ وَخَلَقْنَا لَهُم مِّن مِّثْلِهِ مَا يَرْكَبُونَ ﴿٤٢﴾ |
| ډکه کښې۔ او پیدا کړیدي مونږ دوی لره ددے په شان هغه څیزونه چه دوی سورلي کوي |
| وَإِن نَّشَأْ نُغْرِقْهُمْ فَلَا صَرِيخَ |
| (په هغے باندے)۔ او که اوغواړو مونږ غرق به کړو دوی لره نو نهٔ به وي فریادرس (مددګار) |
| لَهُمْ وَلَا هُمْ يُنقَذُونَ ﴿٤٣﴾ إِلَّا رَحْمَةً مِّنَّا |
| دوی لره او نهٔ به دوی خلاص کړے شي۔ مګر د وجے د رحمت زمونږ نه |
| وَمَتَاعًا إِلَىٰ حِينٍ ﴿٤٤﴾ |
| او د مزے ور کولو تر یو وخته پورے۔ |

**تفسیر**: د الله تعالیٰ د عظیم قدرت یو دلیل دا هم دے چه هغهٔ سمندر ددے قابل جوړ کړے چه په دے کښې د مال او سامانونو نه ډکے کشتئ لامبو وهي، او د یو ښار نه بل ښاره پورے ځي۔ د انسانانو اولنئ کشتئ د نوح ؑ کشتئ وه چه په هغے کښې هغهٔ د الله په حکم سره خپل مومنان تابعداران او په دغه وخت کښې د زمکے په مخ باندے موجود تمام حیوانات سوارهٔ کړي وو، او د طوفان د مقابلے نه د هغهٔ نه سوئ دوئ لره هیڅ بچ کړے نهٔ وو۔ او بیا روستو انسانان په ډکو کشتو کښې سفرے کوي چه ډیر کسان پکښې سوارهٔ وي او اوبه ئے نهٔ ډوبوي او خپل مقاصدو ته ځان رسوي۔
ذُرِّيَّتَهُمْ: تمام نسل انساني ته وئیلے کیږي مشران وي که اولاد، مذکر وي او که مؤنث۔
وَخَلَقْنَا لَهُم مِّن مِّثْلِهِ مَا يَرْكَبُونَ: یعني د کشتئ په شان نور د سورلئ ډیر څیزونه الله پیدا کړیدي، اوښان، اسونه، قچرے، خرهٔ، او پدے زمانه کښې هر قسم قیمتي او د

سهولت نه دك جهازونه ګاړی موټرے چه داسے نارمل مزل کوی لکه کشتۍ کښ چه انسان ناست وی۔

مجاهدؒ، قتادةؒ، ابن عباس رضي الله عنه اَوْ د ډیرو مفسرینو وینا ده چه دے نه مراد اُوښ دے، چه ددے په ذریعه خلق د اُوچے لاره وهی۔ پخوانۍ زمانه کښ د عربو خلقو به اُوښ ته د اُوچے کشتۍ وئیله۔ د ابن عباس رضي الله عنه یوه بله وینا ده چه دے نه مراد هغه کشتۍ دی چه د نوح عليه السلام د کشتۍ نه روسته پیدا شوے او قیامته پورے پیدا کیږی۔ یعنی په مثل د دغه کشتۍ د نوح عليه السلام باندے مونږ د دوی دپاره هغه نورے کشتۍ پیدا کړیدی چه دوی پرے سوریږی کوی۔

وَإِن نَّشَأْ نُغْرِقْهُمْ : پدے کښ الله تعالیٰ په بندګانو خپلو باندے د خپل نعمت زیاته زیاتونه کړیده چه که زهٔ وغواړم دوی او د دوی کشتۍ به چپو ته حواله کړم او بیا به دوی ته د چغو او سورو مهلت هم نهٔ ورکوم لیکن د لطف او کرم د وجے نه هغه دوی نهٔ ډوبوی او سلامتۍ سره ئے غاړے ته رسوی، دے دپاره چه خپل باقی عمرونه په اُوچه باندے تیر کړی او د دنیا نه رخصت شی۔ او مقصد پدے کښ رد دے په شرك باندے چه د غرقیدو په وخت کښ به د دوی هیڅ صَرِیخ نهٔ وی۔

د صریخ نه مراد فریادرس او مُغیث او غَوث دے، چه هغهٔ ته فریاد وکړی او هغه ورسره مدد وکړی، سویٰ د الله نه داسے هیڅوك نشته۔

وَلَا هُمْ يُنقَذُونَ : صریخ دا دے چه مدد ورسره وکړی خو پس د هغے نه چه دوی ته تکلیف رسیدلے وی، او اُوبه ئے تیرے شوی وی، او لَاهُمْ يُنقَذُونَ مطلب دا دے چه د اول نه ئے هم څوك نشی بچ کولے۔

إِلَّا رَحْمَةً مِّنَّا : استثناء منقطع ده، او رحمةً مفعول لَهُ د پټ فعل دے۔ اَیْ لٰكِنْ نَحْفَظُهُمْ رَحْمَةً مِنَّا۔ لیکن مونږ د دوی حفاظت کوو د وجه د رحمت زمونږ نه۔

وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اتَّقُوا مَا بَيْنَ أَيْدِيكُمْ وَمَا

او کله چه ورته وویلے شی دوی ته اُوبریږئ د هغے عذاب نه چه مخکښ ستاسو دے او هغه

خَلْفَكُمْ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ﴿٤٥﴾ وَمَا تَأْتِيهِم مِّنْ

چه روستو ستاسو دے، دے دپاره چه په تاسو رحم اُوکړے شی۔ او نهٔ راځی دوی ته څه

| آيَةٍ مِّنْ آيَاتِ رَبِّهِمْ إِلَّا كَانُوا عَنْهَا مُعْرِضِينَ ﴿٤٦﴾ وَإِذَا قِيلَ |
|---|
| نخه د نخو د رب د دوی نه مگر وی دوی د هغې نه مخ گرځونکي. او کله چه اُورنېلے شي |
| لَهُمْ أَنْفِقُوا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللَّهُ قَالَ الَّذِينَ |
| دوی ته خرچ کړئ د هغې نه چه درکړیدی تاسو ته الله تعالیٰ وائي هغه کسان |
| كَفَرُوا لِلَّذِينَ آمَنُوا |
| چه کفر ئے کړیدے په باره د هغه کسانو کښې چه ایمان ئے راوړیدے |
| أَنُطْعِمُ مَنْ لَوْ يَشَاءُ اللَّهُ أَطْعَمَهُ |
| آیا خوراك ورکړو مونږ هغه چا ته که غوختلے الله تعالیٰ خوراك به ئے ورکړے وے هغه ته |
| إِنْ أَنْتُمْ إِلَّا فِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ ﴿٤٧﴾ |
| نهٔ ئې تاسو مگر په گمراهئ ښکاره کښې. |

**تفسیر**: پدې آیتونو کښې د مشرکانو قسوتِ قلب (د زړهٔ سختي) بیانوی چه دوی نهٔ د الله نه یریږی او نهٔ د الله تعالیٰ په مخلوق باندې شفقت لری، کله چه انسان کښې د الله یره ختمه شي او په مخلوق باندې شفقت ختم (یعنی عدم تعظیم د امر الله او عدم شفقت علیٰ عباد الله) نو انسان تباه کیږی.

**وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ**: یعنی کله چه مشرکانو ته ووئیلے شي چه تاسو په کومو آفتونو او مصیبتونو کښې راګیر شوی یئ او کوم دردونه او مصیبتونه چه په مستقبل کښې په تاسو راتلونکي دی، د هغې نه ویریږئ او ایمان راوړئ نو دا خلق مخ واړوی روان شي. د الله د حکمونو هیڅ تعظیم ورسره نهٔ وی.

ربط

مخکښې ئے ووئیل چه د عذاب د غرق نه خو دوی د الله په خاص رحم سره خلاص شو نو اُوس وائي چه د عامو عذابونو نه د خلاصیدو او د الله د خاص رحمت حاصلولو سبب تقویٰ ده.

د مَا بَيْنَ أَيْدِيكُمْ او مَا خَلْفَكُمْ مصداقات

**مَا بَيْنَ أَيْدِيكُمْ**: ۱- ددې نه مراد آسمان عذاب دے او مَا خَلْفَكُمْ: د زمکے عذاب دے.

۲-قتادة وائی : مَا بَيْنَ اَيْدِيْكُمْ : اَلْوَقَائِعُ فِي الْاُمَمِ السَّابِقَةِ ـ یعنی مَا بَيْنَ اَيْدِيْكُمْ عذابونه د پخوانو امتونو، او مَا خَلْفَكُمْ نه مراد عذاب د آخرت دے۔

۳- مَا بَيْنَ اَيْدِيْكُمْ نه تیر شوی گناهونه مراد دی او مَا خَلْفَكُمْ نه راتلونکی گناهونه۔ (سعید بن جبیرؒ، مُجاهدؒ) ٤- یا مَا بَيْنَ اَيْدِيْكُمْ دنیا او مَا خَلْفَكُمْ نه مراد آخرت دے۔ (سفیانؒ) او ثعلبیؒ ددے عکس د ابن عباسؓ نه نقل کریدے۔

د اِذَا قِيْلَ جزاء پټه ده۔ (اَعْرَضُوْا) یعنی دوی مخ اړوی او ددے دهمکئ هیڅ پرواه نهٔ لری۔ دلیل پرے روستو (اِلَّا كَانُوْا عَنْهَا مُعْرِضِيْنَ) دے۔

لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ: څوك چه یریږی په هغوی رحم کیږی او بی غمه خلکو باندے عذاب راځی۔

وَمَا تَاْتِيْهِمْ مِّنْ اٰيَةٍ : پدے کښې د مشرکانو بد عادت بیانوی چه د مشرکانو همیشه راسے دا طریقه را روانه ده چه کله هم دوی ته د دوئ د رب د طرفه د رسولانو د رشتین ولئ دلیل راغلے، نو دوئ دا دروغژن گنړلے، او د ایمان راوړو نه ئے انکار کړے۔ د مکے د مشرکانو هم دا حال دے چه دوئ د نبی کریم ﷺ د نبوت او د توحید د دعوت د رشتینی والی هر یو دلیل شاته گذارلے او په خپل کفر او شرك باندے کلك ولاړ دی چه گویا که د دوئ زړونه د کاڼړی نه جوړ دی، په دے کښې د خیر هیڅ خبره نهٔ داخلیږی۔

ربط

۱- مخکښې ئے وویل چه دوی د عذاب د یرے په وجه هم ایمان نهٔ راوړی، او دلته وائی چه د معجزاتو په لیدلو سره هم ایمان نهٔ راوړی۔

۲- مخکښې ئے وویل چه دوی د آفاقی دلائلو نه هم مخ اړوی په هغے کښې سوچ نکوی نو اُوس وائی چه دوی د قرآنی آیتونو نه هم انکار کوی۔

مِنْ اٰيَاتٍ: ۱- یو قرآنی آیتونه۔ ۲- اِو بل آیات مشهوده دی، یعنی په سترگو چه کومے نخے د الله تعالیٰ د قدرت وینی۔

وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ اَنْفِقُوْا : اُوس دا بیانوی چه ددے خلکو د الله تعالیٰ په بندگانو هم شفقت نشته نو څکه هلاك شو۔

حسن بصریؒ وائی چه په دے آیتِ کریمه کښې د ﴿اَلَّذِيْنَ كَفَرُوْا﴾ نه مراد یهود دی، چه الله دوئ له مال او دولت ورکړے وو، کله چه دوئ ته وئیلے کیږی چه دوئ دے د مدینے په فقیرانو او محتاجانو باندے خرچ وکړی، نو وائی : آیا مونږ هغه چاله خوراك ورکړو چه

کـه هغوئ تـه الله تـعالیٰ غوښتلے نو خوراك به ئے ورکړے وے، دا خو ښکاره گمراهي ده چه زمونږ نه د الله تعالیٰ د مرضئ خلاف کار کول غوښتلے کیږی.

مـقاتلؒ وائی چه ددے نه مراد د قریشو کافران دی. عاص بن وائل سهمی نه به چه کوم غـریب مسلمان څهٔ وغوښتل نو وئیلے به ئے چه د خپل رب خواته لاړ شه، په چا چه تا ایمان راوړے. خازنؒ په خپـل تـفسیر کښ د هغهٔ دا قول نقل کړے چه الله تعالیٰ خو دا محروم کړیدے، آیا زهٔ به ورله د خوراك دپاره څهٔ ورکړم.

مـفسرین لیکی چه د مدینے یهودو، یا د قریشو کافرانو، یا دواړه قِسمه خلقو به داسے خبرے مسلمانانو پورے د تهوقو کولو دپاره کولے. ځکه چه دوی به د مسلمانانو نه آوریدل چه هغوی به وئیل چه الله رزق ورکونکے دے، الله غنی کول او فقیر کول کوی نـو گویا کـه دوی پـه مسـلمانانو الزام کولو چه هرکله روزی الله ورکوی نو بیا ورشئ د هغه نه ئے غواړئ نو مونږ ته ولے دعوت راکوئ چه تاسو په غریبانو خرچه وکړئ.

نـو گویا که پدے کښ درے اقوال شو، یو دا چه دا د دوی استهزاء وه. دویم دا چه دوی به وئیل چه مونږ د الله تعالیٰ د مشیت موافق کار کوو، چا ته چه الله طعام نهٔ وی ورکړے نو مونږه ئے هم نهٔ ورکـوو. یـعنی چه الله غریبانان کړیدی نو زمونږ څه کار چه مونږه ئے مالداره کوو، لکه مفسرینو د یو باندِ چی واقعه لیکلے ده چه هغه به ځاربه اُوښان په ښه وابنو او شنه زمکه کښ څرول او خوار اُوښان به ئے په شاړه او وچه زمکه کښ څرول. چا تـرے ددے پـه باره کښ تپوس وکړو نو هغه ووئیل چه ((زهٔ اکرام کوم د هغے چه الله تعالیٰ ورته اکرام ورکړیدے او بی عزتی کوم د هغے چه الله تعالیٰ ورته بی عزتی ورکړے ده))

(المحرر الوجیز لابن عطیهؒ)

او دا تهول د دوی د جهالت خبرے وے، د الله تـعالیٰ پـه حکمة نهٔ پو هیدل، ځکه چه الله تـعالیٰ هغه غریب کړو نو دا په هغهٔ او په تا امتحان دے، خو تهٔ مکلف ئے چه هغه سره به احسان کوے، دا د الله تعالیٰ خوښه ده چه څوك غریب کوی او که مالداره کوی ئے.

پـه هغه دا امتحان دے چه صبر کوی او که نهٔ، او په تا دا امتحان دے چه تهٔ څه ورکوے او که نهٔ.

دریم قـول دا دے چه د الله مشیت باندے دلیل نیول دوی د ترك د انفاق دپاره بهانه جوړه کړے وه، یـعنـی د دوی مـقصد صرف بخل او شو متیا کول وو او د الله تعالیٰ په مشیت باندے رضا ښکاره کول ئے مقصد نهٔ وو. (القرطبی)

سوال: مشرکانو ته څنګه د انفاق امر کیږی حال دا چه که مشرك د الله په لاره کښ تول مال ولګوی هم نهٔ قبلیږی؟ جواب (۱) د انفاق نه د الله په نوم انفاق مراد دے۔ یعنی د الله په نوم خرچه وکړئ او په شرکی طریقه ئے مهٔ لګوئ۔

دا تاویل ضعیف دے۔ او بناء دے په یوه غلطه نظریه چه کفار مخاطب بالفروع نهٔ دی، هغوی ته صرف د ایمان خطاب کیږی چه ایمان راوړئ، نو قرآن کښ چه کفارو ته وئیلے کیږی چه مونځ وکړئ یا زکاة ورکړئ نو ددے رائے په خاوندانو باندے دا ناشنا لګی او دا اشاعره او ماتریدیه ؤ مذهب دے۔ او هر چه اهل سنت محضه دی نو هغوی وائی چه کفار په عقائدو او فروعو دواړو باندے مکلف دی او همدا حق مذهب دے چه د قرآن او د حدیث نه معلومیږی۔ دا آیت هم دلیل دے او په سورة المدثر (۴۳/ ۴۴) آیت کښ دی ﴿لَمۡ نَكُ مِنَ الۡمُصَلِّيۡنَ وَلَمۡ نَكُ نُطۡعِمُ الۡمِسۡكِيۡنَ﴾

دویمه غلطه نظریه دا ده چه وائی: څوك چه مشرك وی نو هیڅ نیك عمل فائده نهٔ ورکوی۔ دا خبره غلطه ده، څکه چه مشرکانو ته هم په نیك عمل باندے بدله ملاویږی لیکن صرف د دنیاء او د مؤمن په نیك عمل باندے دنیا او آخرت دواړه ملاویږی لکه دا په صحیح حدیث کښ راغلی دی۔ [فَيُطۡعَمُ بِحَسَنَاتِهِ مَا عَمِلَ لِلّٰهِ] (احمد: ۱۲۲۸۹ اسناده صحیح) (کافر په دنیا کښ د خپلو نیکو عملونو په وجه خوراك کوی۔)

(۲) بنهٔ جواب دا دے چه پدے آیت کښ یو بل مقصد پروت دے او هغه دا دے: بَيَانُ عَدَمِ شَفۡقَتِهِمۡ عَلٰى عِبَادِ اللّٰهِ وَ قَسۡوَةِ قُلُوۡبِهِمۡ۔ یعنی دوی د الله په بندګانو شفقت نهٔ لری او زړونه ئے سخت دی)۔ نو څکه دوی ته هم خطاب کول صحیح دی۔ لکه سورة الحاقه (۳۴) آیت کښ دی ﴿اِنَّهٗ كَانَ لَا يُؤۡمِنُ بِاللّٰهِ الۡعَظِيۡمِ وَلَا يَحُضُّ عَلٰى طَعَامِ الۡمِسۡكِيۡنِ﴾ (یعنی په الله ئے ایمان نهٔ وو او نهٔ ئے مسکین ته په طعام ورکولو بل چا ته تیزی ورکوله)۔ هلته دا سوال ذهن ته راځی چه مسکین ته طعام ورکول خو مستحب کار دے پدے باندے څنګه اُور ته داخل شی، دا خو اصول نهٔ دی؟، نو هلته هم دا جواب دے چه دا په ترك د مستحب باندے جهنم ته نهٔ دے تلے بلکه دا دلیل د قسوتِ قلب دے۔ او اُور د هغه زړونو د سیزلو دپاره پیدا کړے شویدے چه سخت وی۔

اِنۡ اَنۡتُمۡ اِلَّا فِىۡ ضَلٰلٍ مُّبِيۡنٍ: ظاهر دا ده چه دا قول د کافرو دے چه مؤمنانو ته ئے کوی چه اے مؤمنانو! تاسو چه مونږ نه مال غواړئ یا مونږ ته په انفاق باندے امر کوئ په ښکاره ګمراهئ کښ یئ، حال دا چه عقیده مو دا ده چه هر څه الله ورکوی۔ یا دا چه

تاسو د الله د ارادے خلاف کوئ او مونږ ته د الله د مقابلے کولو حکم راکوئ۔

| |
|---|
| وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا الْوَعْدُ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴿٤٨﴾ مَا يَنظُرُونَ إِلَّا صَيْحَةً |
| او وائی دوی کله به وی دا وعده که یئ تاسو رشتینی۔ انتظار نۀ کوی دوی مګر د چغے |
| وَاحِدَةً تَأْخُذُهُمْ وَهُمْ يَخِصِّمُونَ ﴿٤٩﴾ فَلَا يَسْتَطِيعُونَ |
| یوے چه راونه نیسی دوی لره او دوی به جګړے کوی۔ نو طاقت به نۀ لری |
| تَوْصِيَةً وَلَا إِلَىٰ أَهْلِهِمْ يَرْجِعُونَ ﴿٥٠﴾ |
| د وصیت کولو او نۀ به خپل اهل ته واپس کړے شی۔ |

**تفسیر** : قریشو کافرانو به مسلمانانو پورے د توقو کولو په طریقه دا هم وئیل چه تاسو چه د قیامت او د جنت او جهنم خبرے کوئ او مونږ له دهمکی راکوئ نو دا قیامت به کله راځی؟! یعنی دا خبره د ویخه غلطه ده، ددے هیڅ حقیقت نشته۔

**مَا يَنظُرُونَ** : پدے کښې دوی ته ددے توقو دا جواب ورکوی چه دا خو به یوه چغه وی چه دوئ به ناساپه را اونیسی، چه دوئ به د خپل عادت مطابق په اخستلو خرڅولو کښې بوخت وی، او یو بل سره به کارو باری معاملات فیصله کولو دپاره په جنګ وی۔

مَا يَنظُرُونَ په معنیٰ د (مَا يَنتَظِرُونَ) دے۔ یعنی دوی انتظار نۀ کوی۔ ځکه چه څوک تپوس کوی چه دا فلانے کار به کله واقع کیږی نو هغه د هغے د واقع کیدو په انتظار کښې وی۔

**صَيْحَةً وَاحِدَةً** : مفسرین لیکی چه ددے چغے نه مراد اولنئ شپیلئ ده چه دا به زمکه باندے وسیدونکی تول خلق آوری، او څوک چه چرته وی، ددے د اثر په وجه به هم هلته مړۀ شی، دے وجے نه په (٥٠) آیت کښې ووئیلے شو چه خلقو ته به دومره مهلت هم نۀ ملاویږی چه چاته څۀ وصیت وکړی، یا د خپل بال بچ خواته لاړ شی او د هغوئ حال معلوم کړی۔ بخاریؒ او مسلمؒ او نورو محدثینو د ابو هریره ﷺ نه روایت کړے چه رسول الله ﷺ وفرمایل : (قیامت به ناڅاپه قائمیږی په داسے حال کښې چه دوه سړو به کپړه خوره کړے وی او اخستل خرڅول به غواړی، نۀ به دا اخستل او خرڅول وکړی، نۀ به دا را اونغاړی۔ او قیامت به قائم شی په داسے حال کښې چه انسان به حوض سازوی، لیکن هغه به په دے کښې خپلو څناورو باندے اوبۀ ونۀ څکولے شی۔ او قیامت به راشی په

داسے حال كښې چه يو سړی به د خپلے اوښے پۍ په لاس كښې نيولې وی او هغه به ونۀ څكلے شی۔ او قيامت به قائميږی په داسے حال كښې چه سړی به خپل خوراك خپلے خُلے ته پورته كړے وی او هغه به اُونۀ خوړلے شی)۔

يَخِصِّمُوْنَ: دا په اصل كښې يَخْتَصِمُوْنَ دے۔ ١- دوی به په جګړو اخته وی۔ ٢- يا خپل مينځ كښې به په اخستو خرڅولو كښې بحث كوی۔

فَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ: مطلب دا دے چه دوی به په هغه ځای كښې سمدستی مړه شی كوم ځای كښې چه دوی معاملے كوی او مهلت به ورته نۀ ملاويږی۔

| |
|---|
| وَنُفِخَ فِي الصُّوْرِ فَإِذَا هُمْ مِّنَ الْأَجْدَاثِ إِلٰى رَبِّهِمْ |
| او پو كے به اُوكړے شی په شپيلۍ كښې نو دغه وخت به دوی د قبرونو نه خپل رب ته |
| يَنْسِلُوْنَ ﴿٥١﴾ قَالُوْا يَا وَيْلَنَا مَنْ بَعَثَنَا مِنْ مَّرْقَدِنَا سكتة |
| منډے وهی۔ وائی به اے هلاكت دے مونږ لره چا راپورته كړو مونږ د قبرونو (ځائے د |
| هٰذَا مَا وَعَدَ الرَّحْمٰنُ وَصَدَقَ |
| خوب) زمونږ نه دا هغه شے دے چه وعده ئے كړيده رحمٰن ذات او رښتيا وئيلی دی |
| الْمُرْسَلُوْنَ ﴿٥٢﴾ إِنْ كَانَتْ إِلَّا صَيْحَةً وَّاحِدَةً فَإِذَا هُمْ |
| رسولانو۔ نۀ ده دا (راپورته كول د دوی) مګر چغه يوه نو دغه وخت به دوی |
| جَمِيْعٌ لَّدَيْنَا مُحْضَرُوْنَ ﴿٥٣﴾ |
| ټول زمونږ په مخكښې حاضر كړے شی۔ |

**تفسير**: مخكښې د دنيا عذاب بيان شو نو اُوس د آخرت عذاب او د هغے تفصيلات بيانيږی۔

وَنُفِخَ فِي الصُّوْرِ: نفخے صرف دوه دی څوك چه درے يا څلور يادوی هغه خبرے كمزوری دی۔ اولے نفخے ته نفخة الفزع او نفخة الصعق هم وائی۔ پدے باندے صرف ژوندے مخلوق مړ كيږی او كائناتو كښې د هغے په وجه تبديل نۀ راځی۔ لكه سورة الزمر (٦٨) آيت كښې راځی ﴿وَنُفِخَ فِي الصُّوْرِ فَصَعِقَ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ﴾ په هغے سره بيهوشی راځی يعنی صرف مرګ۔ ددے نه څلوېښت كاله روستو بله نفخه ده لكه

دا په بخاري او مسلم کښې د ابو هریره ﷺ نه په روایت شوی حدیث کښې راغلی ده. چه د دوارو شپیلو ترمینځه به څلویښت کاله موده وي. او دے دویمے ته نفخة البعث وائي چه پدے باندے به انسانان او نور حیوانات راپورته کولے شي، دا چه شروع شي نو اول به انسانان راپورته کړے شي، ګویا که دا د انسانانو د راژوندي کولو دپاره یو کرنټ دے، او ددے صور حقیقت الله تعالیٰ ته معلوم دے لیکن ډیره غټه ده خکه چه په ټولو کائناتو باندے اثر کوی معلومیږی چه ډیر سخت زورئے دے. پدے کښې به الله تعالیٰ د سرو د منی په شان باران وکړی نو پدے سره به د شپیلۍ په زور انسانان راپورته کړے شي او د محشر میدان طرفته به منډے وهي.

**اَلْاَجْدَاثِ:** جمع د جَدَث ده، قبر ته وئیلے شي.

**اِلٰی رَبِّهِمْ:** یعنی الله به ورله یو ځای مقرر کړے وي چه هلته به ورسره حساب کتاب کوي.

**یَنْسِلُوْنَ:** نسل او نسلان په اصل کښې د شرمخ مزل ته وئیلے شي مراد ترے نه تیزه منډه ده.

**مَنْ بَعَثَنَا مِنْ مَّرْقَدِنَا:** دوی به په آخرت کښې هم شکیان وي چه دا مونږ چا راپورته کړو، روستو به ورته پته ولګی چه دا خو د قیامت ورځ ده. لکه د قیامت د راتلو په وخت کښې به هم انسان دا شك ښکاره کوی ﴿اِذَا زُلْزِلَتِ الْاَرْضُ زِلْزَالَهَا وَاَخْرَجَتِ الْاَرْضُ اَثْقَالَهَا وَقَالَ الْاِنْسَانُ مَالَهَا﴾

**مَّرْقَدِنَا:** مرقد د خوب ځای ته وئیلے شي. قبر ته ئے د خوب ځای ولے ووئیلو نو د قتادة، ابو صالح، مجاهد او اُبی بن کعب نه نقل دی چه د اولے شپیلۍ نه روستو به خلکو باندے څلویښتو کالو پورے عذاب نهٔ وي، صرف د اُوده په شان به پراتهٔ وي.

دویمه وجه دا ده چه په قرآن او حدیث کښې مرګ ته خوب وئیلے شویدے. ﴿اَللّٰهُ یَتَوَفَّی الْاَنْفُسَ حِیْنَ مَوْتِهَا﴾ (الزمر:٤٢) حدیث کښې دی: [اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ اَحْیَانَا بَعْدَ مَا اَمَاتَنَا] او په خوب کښې په انسان دوه حالته راځي، خوشحالي یا خفګان. نو دغه شان په قبر کښې هم دوه حالته راځي یا به خوشحالي او نعمتونه وي یا به خفګانونه او عذابونه وي. نو دلته ډیره فائده مند لفظ استعمال شویدے یعنی ددے خوب په ځای کښې یا عذاب یا راحت دے. نو دا مَرْقَدِنَا لفظ د قبر په عذاب او راحت باندے دلیل دے.

دلته سکته شویده او سکته د ډیر هیبت د وجه نه ده.

هٰذَا مَا وَعَدَ الرَّحْمٰنُ: دا هم د دوی وینا ده چه روستو ورته معلومه شوه چه دا خو قیامت دے۔ یا به بعض نور خلك دوی ته ووائی۔ دارنګه دا به د ملائکو جواب هم وی چه دوی ته به وائی چه دا د رحمٰن وعده ده۔ یا به مؤمنان ورته وائی۔

إِن كَانَتْ إِلَّا صَيْحَةً: دے یو یے شپیلئ ته کله صیحه، کله زجره، کله نفخة واحدة او کله ورته نداء وائی ﴿وَاسْتَمِعْ يَوْمَ يُنَادِ الْمُنَادِ مِن مَّكَانٍ قَرِيبٍ﴾ (ق: 41)

وَاحِدَةً: یعنی بار بار به نهٔ وهلے کیږی بلکه دغه یوه شپیلئ به وی خو داسے کرنټ به پکښې وی چه ټول انسانان به په یو ځل راپورته کوی۔

| فَالْيَوْمَ لَا تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْئًا |
| --- |
| پس نن ورځ به ظلم نشی کیدے په هیڅ یو نفس باندے هیڅ شے |
| وَلَا تُجْزَوْنَ إِلَّا مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٥٤﴾ |
| او بدله نهٔ درکړے کیږی تاسو ته مګر د هغے عملونو چه تاسو به کول۔ |

**تفسیر**: په قیامت کښې به دوه اعلانونه کیږی (۱) اول عمومی اعلان او بیا دوه خصوصی اعلانونه، یو جنتیانو ته دے چه جنت ته راځئ، دویم جهنمیانو ته چه ﴿وَامْتَازُوا الْيَوْمَ﴾ او عمومی اعلان پدے آیت کښې ذکر دے چه اے خلکو! دا خبره یاده کړئ چه الله تعالىٰ په هیچا د ذرے هومره ظلم نهٔ کوی، د الله د ظلم نه خاطر جمع شئ۔

ورسره دا خبره واورئ چه دلته نن ورځ چه انسان سره حساب کتاب کیږی او سزا او جزاء ملاویږی نو دا به په اعمالو سره وی۔ د ځان سره چه مو څه راوړی د هغے مطابق کار به درسره کیږی۔ نو دے وخت کښې به خلکو ته ارمانونه ورځی چه ما دا عمل ولے کولو او دا فلانے عمل مے ولے پریخودو۔ ﴿عَلِمَتْ نَفْسٌ مَّا قَدَّمَتْ وَأَخَّرَتْ﴾ (انفطار:5) (پوهه به شی هر نفس په هغه عمل چه کوم ئے مخکښې رالیږلے او کوم ئے روستو پریخے)

﴿عَلِمَتْ نَفْسٌ مَّا أَحْضَرَتْ﴾ (التکویر:14)

(پوهه به شی هر نفس په هغه عمل چه کوم ئے (قیامت ته) حاضر کړیدے)

مشرك به وائی چه ما شرك ولے کولو، د نبی خلاف مے ولے کولو، د آخرت نه مے ولے انکار کولو دا خو ما ځان تباه کړیدے۔ مؤمن ګناهګار به وائی چه دا ګناه مے ولے کوله، غیر محسن به وائی چه ما کوشش ولے نهٔ کولو او خواص مؤمنان به خوشحاله وی۔ نو

الله تعالیٰ مونږ ته پدے آیت کښې دا اعلان په دنیا کښې رانقل کړو چه د آخرت دپاره تیاری وکړئ۔

| |
|---|
| إِنَّ أَصْحَابَ الْجَنَّةِ الْيَوْمَ فِي شُغُلٍ فَاكِهُونَ ﴿٥٥﴾ |
| یقیناً جنت والا نن ورځ به په مشغولتیا کښې وی مزے اخستونکی به وی۔ |
| هُمْ وَأَزْوَاجُهُمْ فِي ظِلَالٍ عَلَى الْأَرَائِكِ مُتَّكِئُونَ ﴿٥٦﴾ |
| دوی او د دوی بیبیانے به په سورو کښې وی په پالنګونو باندے به تکیه وهونکی وی۔ |
| لَهُمْ فِيهَا فَاكِهَةٌ وَلَهُم مَّا يَدَّعُونَ ﴿٥٧﴾ سَلَامٌ |
| دوی لره په هغے کښې میوے دی او دوی لره هغه څه دی چه دوی ئے غواړی۔ سلام دے، |
| قَوْلًا مِّن رَّبٍّ رَّحِيمٍ ﴿٥٨﴾ |
| ویئنا به کیږی د طرف د رب رحم کونکی نه۔ |

**تفسیر:** اُوس دوه ډلے یو د جنتیانو او بله د جهنمیانو۔ څوك چه نیك عملونه وکړی نو الله به ورته دا راتلونکی نعمتونه ورکوی۔

فِي شُغُلٍ: مشغولتیا نه مراد څه شے دے؟

۱- وکیع بن الجراح وائی چه ددے نه مراد سماع ده۔ یعنی په ګانو بجانو او ښائسته آوازونو به مشغول وی۔ ۲- فِي شُغُلٍ عَنْ أَهْلِ النَّارِ - یعنی په نعمتونو کښې به داسے مشغول وی چه دوئ به د کافرانو او د دوئ د بد انجام نه بیخی غافله وی، اګرکه هغه د دوئ خپل خپلوان او عزیزان هم وی۔ ۳- فِي ضِيَافَةِ اللهِ الْجَبَّارِ - د الله په میلمستوب کښې به مشغول وی لکه میلمه چه د کوربه په خوراك څکاك مصروف وی۔

٤- ابن کیسانؒ وائی : فِي زِيَارَةِ بَعْضِهِمْ بَعْضًا - د یو بل په ملاقاتونو به مصروف وی۔

٥- غوره مصداق ابن عباسؓ بیان کړیدے [أَيْ فِي اِفْتِضَاضِ الْأَبْكَارِ] یعنی دوی به د خپلو ښځو سره د ملاویدو په حالت کښې وی۔ دا د روستو نه معلومیږی (فَاكِهُونَ) یعنی مزے به اخلی۔ بله دا چه کله په قرآن کښې د یو لفظ مصداق مجمل وی نو د هغے روستو تشریح کیږی، نو دلته د شغل تشریح روستو په ﴿ هُمْ وَأَزْوَاجُهُمْ فِي ظِلَالٍ عَلَى الْأَرَائِكِ مُتَّكِئُونَ ﴾ سره کړیده یعنی دوی به د ناوے په کټونو وی او د ښځو سره به وی، نو

دغه وخت خلك نور څه کوي) ګویا که الله تعالیٰ به جنتیانو له په اوله ورځ وادهٔ وکړي۔ په وادهٔ والا بانـدے اُوږده شپـه څـومـره لـنډه تیره شي نو دغه شان به دوی هم وي۔ (فتح البیان)

فَاكِهُونَ : اَیْ فَرِحُوْنَ (ابـن عباسؓ) خـوشـحاله به وي۔ ۲- نَـاعِمُوْنَ مُتَلَذِّذُوْنَ ۔ مزے اخستونکي به وي۔

فَاكِهَةٌ : یعني هره نوعه میوه جات به وي۔

وَلَهُم مَّا يَدَّعُونَ: دے کښې روحاني نعمتونو ته اشاره ده، یعني خوشبویانے او تازګیانے او د زړه خوشحالیانے دي۔

سَلَامٌ: دا بل نعمت دے اَیْ وَلَهُمْ سَلَامٌ۔ یعني د دوی دپاره به په جنت کښې سلامونه هم وي چه دا به پرے څوك اچوي؟ نو فرمائي (قَوْلًا مِنْ رَّبٍّ) اَیْ يَقُوْلُ اللّٰهُ لَهُمْ قَوْلًا ۔ یعني الله بـه دوی تـه دا ویـنـا د سـلام کـوي چـه هـغـه رب رحیـم دے۔ رحیم کښې اشاره ده همیشوالي د رحمت ته۔

په روایت کښې ابن مـاجـه کښې دي چه الله تعالیٰ به دوی ته رابښکاره شي او دوی ته به ووائي چه په تاسو دے سلام وي اے جنت والو! (قال ابن کثیرؒ وفي اسناده نظر)۔

ابن عباسؓ فـرمـائـي : الله بـه پـه دوی بـانـدے (د انتهائي تـعظیم او اکرام کولو دپاره) سلامونه اچوي۔ (ابن المنذرؒ وابن ابي حاتمؒ)۔

| |
|---|
| وَامْتَازُوا الْيَوْمَ اَيُّهَا الْمُجْرِمُوْنَ ﴿٥٩﴾ اَلَمْ اَعْهَدْ اِلَيْكُمْ يَا بَنِيٓ |
| (وُبه وئیلے شي) جدا شئ نن اے مجرمانو۔ آیا حکم نهٔ وو کړے ما تاسو ته اے اولاد |
| آدَمَ اَنْ لَّا تَعْبُدُوا الشَّيْطَانَ اِنَّهٗ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ ﴿٦٠﴾ وَّاَنِ |
| د آدم! چه بندګي مهٔ کوئ د شیطان یقیناً هغه تاسو لره دشمن ښکاره دے۔ او دا چه |
| اعْبُدُوْنِيْ هٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيْمٌ ﴿٦١﴾ |
| بندګي اُوکړئ زما دا لاره نیغه ده۔ |

**تفسير** : اُوس د کـافـرانـو حال۔ کـافرانو ته به الله تعالیٰ آواز وکړي چه اے هغه خلقو! چه هغوئ د کفر او شرك او د ګناهونو په سبب په خپلو ځانونو ظلم کړے وو، اُوس تاسو د جنتیانو نه جدا اُودریږئ۔ الله تعالیٰ خپله دا فیصله د قرآن کریم په ګنړو آیتونو کښې

بيان کړے ده. د سورتِ یونس په (۲۸) آیت کښې دي: ﴿ وَيَوْمَ نَحْشُرُهُمْ جَمِيعًا ثُمَّ نَقُولُ لِلَّذِينَ أَشْرَكُوا مَكَانَكُمْ أَنتُمْ وَشُرَكَاؤُكُمْ فَزَيَّلْنَا بَيْنَهُمْ ﴾ (او هغه ورځ هم د يادولو وړ ده په کومه ورځ چه به مونږ دا ټول راجمع کړو، بيابه مشرکانو ته اُووايو چه تاسو او ستاسو شريکان په خپل ځاى ودرېږئ، بيا به مونږ د دوئ ترمينځه جدائي راولو).

مفسرين ليکي: ددے جدائي راوستو نه مراد دادے چه کله مومنان جنت ته اُوليږلے شي نو کافران به يو ځاى کړي او انتهائي ذلت او رسوائي سره به ئے لکه د ځناورو غونته (چه مخونه به ئے ورله تور کړي وي) جهنم طرفته په شړلو بوځي، او هغے ته به ئے ورديکه کړي، عملنامے به ئے ورله په ګس لاس کښې ورکړي وي.

وَامْتَازُوا: دا جدائي د مؤمنانو نه ده. ضحاکؒ وئيلي دي: [اِنَّ لِكُلِّ كَافِرٍ بَيْتًا فِى النَّارِ لَا يَرٰى وَلَا يُرٰى] د هر کافر دپاره په اُور کښې يوه کوټه ده چه نۀ به څوك وينى او نۀ به دۀ لره څوك وينى). يعني روستو زمانه کښې به يو وخت کښې داسے کيږي.

ضحاكؒ وئيلي دي چه کافران به د يو بل نه جدا جدا کړے شي، يهوديان به يوه ډله، نصاريٰ بله ډله، مجوس بله، صابئين بله، بت پرستان بله ډله.

أَلَمْ أَعْهَدْ: بيابه الله تعالىٰ دوئ ته د زجر او رټنے په توګه اُووائي چه آيا ما د خپلو رسولانو په ژبه تاسو ته دا نصيحت نۀ وو کړے چه تاسو د شيطان عبادت مۀ کوئ، ځکه چه هغه ستاسو ښکاره دشمن دے، صرف زما عبادت کوئ، همدا نيغه لاره ده، همدا هغه اسلامي دين دے چه خپل منونکي جنت ته رسوي.

أَلَمْ أَعْهَدْ: [اَىْ اَلَمْ اُوْصِكُمْ وَاُبَلِّغُكُمْ عَلٰى اَلْسُنِ رُسُلِىْ] يعني آيا ما تاسو ته حکم نۀ وو کړے او وصيت مے درته نۀ وو کړے او خبره مے د رسولانو په ژبه نۀ وه رسولے. د عهد په لفظ سره ئے ذکر کړو اشاره ده تاکيد ته.

أَنْ لَا تَعْبُدُوا: د شيطان عبادت دا دے چه د هغۀ د وسوسے تابعداري وکړے شي او دے ته ئے عبادت ووئيلو دپاره د زيات يرولو ځکه چه داد الله تعالىٰ د عبادت په مقابله کښې دے.

نو معلومه شوه چه د غير الله عبادت د شيطان عبادت دے ځکه چه هغه پرے خوشحاليږي او د هغۀ په وسوسے سره کيږي. او پدے امت کښې داسے نا اهله بيوقوف خلك هم شته چه بعينهٖ د شيطان عبادت هم کوي لکه مونږ بعض بيان ددے په تفسير د سورة النساء کښې ليکلے دے هغے ته رجوع وکړئ.

نو دلته عبادتِ حقيقي هم مراد دے او په معنىٰ د طاعت هم دے.

صِرَاطٌ مُّسْتَقِيمٌ : د الله یواځې بندګي کول هم الله ته نیغه لاره ده، او رسول الله ﷺ هم پدې لاره باندې رالیږلې شوې وو۔

| وَلَقَدْ أَضَلَّ مِنكُمْ جِبِلًّا كَثِيرًا أَفَلَمْ تَكُونُوا تَعْقِلُونَ ﴿٦٢﴾ |
|---|
| او یقیناً ګمراه کړیدي هغه ستاسو نه ډلې ډیرې آیا نو تاسو د عقل نه کار نهٔ اخستو۔ |
| هَٰذِهِ جَهَنَّمُ الَّتِي كُنتُمْ تُوعَدُونَ ﴿٦٣﴾ اصْلَوْهَا الْيَوْمَ بِمَا |
| دا جهنم دې هغه چه تاسو سره ئې وعده کیدې شوه۔ داخل شئ دې ته نن ورځ په سبب د |
| كُنتُمْ تَكْفُرُونَ ﴿٦٤﴾ الْيَوْمَ نَخْتِمُ عَلَىٰ أَفْوَاهِهِمْ وَتُكَلِّمُنَا |
| هغې چه تاسو به کفر کولو۔ نن ورځ مهر وهو مونږ په خولو د دوی او خبرې به کوی |
| أَيْدِيهِمْ وَتَشْهَدُ أَرْجُلُهُم بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ ﴿٦٥﴾ |
| مونږ سره لاسونه د دوی او ګواهي به کوی خپې د دوی په هغې عملونو چه دوی کول۔ |

**تفسیر** : په دې آیت کښې انسانانو سره د شیطان دشمنی بیانوی او دوی ته د غور او کفر دعوت ورکوی فرمائی چه دې مردود خو بې شماره خلق ګمراه کړی دی، دې وجې نه دا ستاسو دوست څنګه جوړیدې شی؟ آیا دومره خبره ستاسو په عقل کښې نهٔ راځی۔ پخوانی ولې هلاك شول؟ دا د شیطان د ګمراه کولو په وجه، نو عقلمند انسان خو د پخوانو نه عبرت اخلی۔

جِبِلًّا كَثِيرًا: جمع د جِبِلَّةٌ ده، یعنی ډلې ډیرې۔ او جِبِلٌّ کښې د جَبَلٌ (غر) معنیٰ پرته ده۔
خطیب شربینیؒ لیکی چه پدې لفظ کښې اشاره ده چه دا مخلوق د غرونو په شان غټ وو لیکن سرهٔ ددې نه شیطان دهوکه کړل۔

هَٰذِهِ جَهَنَّمُ: یعنی جهنم به ورته ښکاره کړې شی نو داسې خطاب به ورته وکړې شی۔ معلومه شوه چه مخکښې حال د میدانِ حشر وو او بیا به ئې جهنم ته داخل کړی۔

بِمَا كُنتُمْ تَكْفُرُونَ: دې نه معلومه شوه چه د غیر الله عبادت کفر هم دې۔

الْيَوْمَ: د حشر په میدان کښې د کافرانو دیو حالت تصویر راخکلې شوې، کله چه به کافران د خپل رب په حضور کښې پیش کړې شی، او د خپلو ګناهونو نه به انکار اوکړی، نو الله تعالیٰ به د دویٔ په خُلو مهر ولګوی، او د دویٔ لاسونو او خپو له به د خبرو

کولو طاقت ورکړي، چه هغه به د دوئ د يو يو کار ګواهي ورکوي، او د هغه جرمونو خبر به ورکوي چه هغوئ به د دنيا په ژوند کښې کول۔ الله تعالیٰ د سورتِ حٰمٓ سجده په (۲۱) آيت کښې فرمائيلي :

﴿ وَقَالُوْا لِجُلُوْدِهِمْ لِمَ شَهِدْتُّمْ عَلَيْنَا قَالُوْا اَنْطَقَنَا اللّٰهُ الَّذِيْٓ اَنْطَقَ كُلَّ شَيْءٍ ﴾ (او دا خلق به خپلو څرمنو ته اُووائي چه تاسو زمونږ په خلاف ولې ګواهي ورکړه؟ هغه به وائي چه مونږ له هغه الله د ګويايئ طاقت راکړو چا چه هر يو شي له د وئيلو طاقت ورکړے)۔

د الله طريقه دا ده چه په بندګانو حجت قائموي او په خپل علم باندے فيصله نه کوي او همداسے په پټو سترګو سره ئے اُور ته نه بوځي، نو علمنامه، زمکه، ملائك او د دوی اندامونه به ګواهي ورکوي، دے دپاره چه بندګان بهانه او عذر ونکړي چه مونږ سره زياتے وشو، نو الله تعالیٰ ظلم دفع کوي۔ او دا ددے دپاره چه ټول موقف والو ته معلومه شي چه دا انسان مجرم وو وګوره ددهٔ لاسونه او خپے ددهٔ په خلاف خبرے کوي۔

وَتُكَلِّمُنَآ اَيْدِيْهِمْ : **فائده ۱** : د دوی په خولو باندے ولے مهر وهي؟ ددے وجه دا ده چه اقرار د خولے نه دومره قوي نهٔ وي، او د اندامونو ګواهي په دليل کښې ډير مضبوطه وي ځکه چه کوم شے خبرے نشي کولے د هغے نه خبرے راوتل اعجاز وي، نو دا په حجت کښې ډير کامل وي۔ دويم ددے دپاره چه دوی ته پته ولګي چه کوم اندامونه د دوی د الله په نافرمانئ کښې مددګار وو هغه په دوی باندے ګواهان جوړ شو۔

**فائده ۲** : د ختم نسبت الله تعالیٰ خپل ځان ته وکړو او د کلام نسبت ئے لاسونو ته اګرکه د لاسونو کلام هم د الله په قدرت سره دے، پدے کښې اشاره ده چه کلام د لاسونو په جبر سره نهٔ دے بلکه په اختيار سره دے، او په خوله باندے مهر وهل د الله په جبر سره دي۔

**فائده ۳** : لاسونو ته ئے نسبت د کلام او خپو ته ئے نسبت د شهادت وکړو، حکمة دا دے چه اکثر عملونه په لاسونو سره کيږي او خپے حاضرے وي نو قول د کونکي اقرار وي او قول د حاضر شهادت وي۔ دويمه وجه دا ده چه لاسونه نزدے وي او عام کارونه په لاسونو کيږي نو دا په منزله مدعيانو دي او خپے وړاندے دي نو دا په منزله د اجنبي دي نو دا ئے ګواهان جوړ کړل۔ (فتح البيان)

**فائده ٤** : که سوال وشي چه لاسونه او خپو چه ناکاره عملونه کړيدي نو دوی فاسقان دي او د فاسق ګواهي نهٔ قبليږي؟ جواب دا دے چه دوی دا کارونه په خپل اختيار

سره نۀ دي کړي نو دوی ته نسبت د فسق نشي کیدلے۔ دویم جواب دا دے چه د دوی په ګواهي نۀ قبلولو کښې هم ګواهي قبلول خود بخود راځي ځکه چه دوی به په دغه ورځ یا رشتیا وائي یا دروغ که رشتیا وائي نو جرمونه پرے ثابت شو، او که په دغه ورځ هم دروغ وائي، نو معلومیږي چه دوی به په دنیا کښې هم ضرور ګناهونه کړي وي۔

په سورة حم السجده کښې راځي چه د دوی څرمنے به هم ګواهي ورکړي نو تول بدن به پرے ګواهي وکړي نو پدے وجه انسان به ځان ملامته کړي، [دَخَلُوا النَّارَ وَاِنَّ الْحَمْدَ لَفِيْ اَفْوَاهِهِمْ] نو دوی به اُور ته روان وي، او د الله حمد به ئے په خپلو خولو کښې وي چه واقعي الله تعالىٰ مونږ سره انصاف وکړو او مونږ مجرمان یو۔

بِمَا كَانُوا يَكْسِبُوْنَ : دے کښې اشاره ده چه دوی کښې د کفر سره نور هم ډیر بد اعمال موجود وو۔

پدے آیت کښې اشاره ده چه الله تعالىٰ چه انسان جهنم ته بوځي نو ددے څه اسباب دي ؟ یو (اَلْمُجْرِمُوْنَ)۔ (یعني جرم باندے) بل د شیطان په عبادت او طاعت باندے، بل په ترك د عبادت د الله تعالىٰ باندے، او بل د کفر په وجه او (بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ) د دوی د نورو بدو اعمالو په وجه۔ دا ډیرے خبرے الله راجمع کړے چه وګوره الله تعالىٰ په هیڅا ظلم نۀ کوي۔

| وَلَوْ نَشَاءُ لَطَمَسْنَا عَلٰى أَعْيُنِهِمْ فَاسْتَبَقُوا الصِّرَاطَ |
|---|
| او که چرے اُوغواړو مونږ خامخا ورانے به کړو سترګے د دوی نو مخکښې به شي لارے ته |
| فَأَنّٰى يُبْصِرُوْنَ ﴿٦٦﴾ وَلَوْ نَشَاءُ لَمَسَخْنَاهُمْ |
| نو نۀ ځنګه به اُووینې دوی۔ او که چرے اُوغواړو مونږ خامخا شکلونه به بدل کړو د دوی |
| عَلٰى مَكَانَتِهِمْ فَمَا اسْتَطَاعُوْا مُضِيًّا |
| (ولاړ به وي) په ځایونو خپلو باندے نو طاقت به نۀ لري د مخکښې تللو |
| وَّلَا يَرْجِعُوْنَ ﴿٦٧﴾ |
| او نۀ به واپس راګرځیدے شي۔ |

**تفسیر:** اُوس بیا تخویف دنیوي بیانوي۔ او ربط ئے دا دے چه مخکښې د خولو بندول

ذکر شو نو دلته دا بیانوی چه په دنیا کښې هم الله تعالیٰ پدې قادر دے چه د دوی سترګے بندے کړي. او پدے کښې اشاره ده چه د الله تعالیٰ رحمت په دنیا کښې د کافر او مومن تولو دپاره عام دے، دے وجے نه د زرونو کفرونو او شرکونو باوجود الله تعالیٰ کافرانو او مشرکانو له روزي ورکوي، او دوئ له په دنیا کښې د يو څو ورځو ژوند تيرولو موقع ورکوي، که چرے هغهٔ په کفر او شرك باندے په دنیا کښې رانيول کولے نو د دوئ سترګے به ئے اخستے وے، بيا به دوئ په خپلو ليدلو کتلو لارو هم نهٔ وے تللي، او د دوئ شکلونه به ئے مسخ کړي وے، نهٔ به مخے ته تللے شوے اونهٔ به روستو واپس کيدلے شوے، ليکن هغهٔ د انتهائي رحمت د وجے نه داسے ونهٔ کړل.

مطلب دادے چه که تاسو د الله بندګی نهٔ کوئ او د هغهٔ د رسول دشمني کوئ نو الله به درنه سترګے واخلي او يو جماد به درنه جوړ کړي چه هيڅ حرکت به نشئ کولے.

او دا آيت د ﴿ وَلَوْ شَاءَ اللهُ لَذَهَبَ بِسَمْعِهِمْ وَأَبْصَارِهِمْ ﴾ په شان دے.

**لَطَمَسْنَا** : طمس اخيرکول او هموارول دي چه يو تبئ ترے جوړه شي چه د سترګو چاودې ورك شي.

**مَكَانَتِهِمْ**: اَىْ عَلٰى نَاحِيَتِهِمْ وَجَانِبِهِمْ. د دوی په طرف او د دوی په ځای کښې. یا په ځای د ګناه کښې. یا د مکانة نه مراد د دوی کارونه دي (ابن عباسؓ)

**مُضِيًّا وَلَا يَرْجِعُونَ**: يعني نهٔ به مخکښې تللے شوے او نهٔ به بيرته راګرځيدلے شوے.

دے نه چا دا مطلب هم اخستے دے چه که مونږ وغواړو نو د دوی ظاهري سترګے به د هدايت نه ړندے کړو نو دوی به نيغے لارے ته مخکښې کيږي ليکن چرته به نيغه وينی. يعنی دوی چه دا جرمونه کوی نو کيدے شي چه الله تعالیٰ ئے د هدايت نه محروم کړي او مهر پرے ووهي. (فتح البيان) ليکن اول تفسير ظاهر د آيت دے.

| وَمَنْ نُعَمِّرْهُ نُنَكِّسْهُ فِي الْخَلْقِ |
|---|
| او هغه څوك چه عمر ورکړو مونږ هغه ته (نو) کمزورے ئے کړو په اندامونو کښې |
| أَفَلَا يَعْقِلُونَ ﴿٦٨﴾ |
| آيا نو دوی عقل نهٔ لري. |

**تفسير** : (١) ابن عاشورؒ دا د مخکښې تخويف دنيوي سره متعلق کړيدے، او دا دريم

صورت د دهمکئ دے یعنی الله وائی زهٔ دا هم کولے شم چه انسان ډیر بوډاوالی ته ورسوم چه بیا په هیڅ نهٔ پوهیږی۔ یعنی که سترګے مو خرابے نکړے او دوی مو مسخ نکړل نو بیا به ئے داسے عمر ته ورسوو چه ذلیله به وی۔ (التنویر والتحریر)

(۲) ظاهر دا ده چه دے ځای باندے د دنیا دهمکی ختمه شوه، اُوس بیرته د اثبات د آخرت او حشر دپاره دلیلونه بیانیږی۔ دلیل پدے طریقه دے چه هغه ذات په تَغییر الاحوال باندے قادر دے، انسان اول نطفه وه، بیا علقه او بیا مضغه ترے جوړه شوه، بیا دنیا ته راغے ماشوم وو، کیناستے هم نشو، بیا کیناستو بیا ودریدو بیا وګرځیدو بیا ځوانئ ته راورسیدو بیا بوډا والے شروع شو بیا آخر د هرم زمانے ته ورسیدو چه اندامونه ئے بیخی راکاږه شو، هرکله چه پدے تغییر الاحوال الله قادر دے، نو په دوباره ژوندی کولو خامخا قدرت لری۔ نو د انسان وژل داسے دی لکه رَحِم ته بوتلل او د قبر نه راویستل داسے دی لکه د مور د رَحِم نه چه دنیا ته راوځی۔

لکه دا استدلال په سورة الروم (٥٤) ﴿اَللّٰهُ الَّذِیْ خَلَقَكُمْ مِّنْ ضُعْفٍ ثُمَّ جَعَلَ مِنْۢ بَعْدِ ضُعْفٍ قُوَّةً ثُمَّ جَعَلَ مِنْۢ بَعْدِ قُوَّةٍ ضُعْفًا وَّشَیْبَةً﴾ او دا استدلال په قرآن کریم کښ ډیر دے چه اے انسانه! خپل ځان ته وګوره د کوم ځای نه راروان شوے ئے او کوم ځای ته ورسیدے، نو اُوس دا یو شے نهٔ منے چه د قبر نه راپورته کیدل دی۔ نو دا د اثبات د حشر او د الله د قدرت دلیل دے، او مناسبت ئے دا دے چه ګوره الله پدے قادر دے چه ستاسو سترګے خرابے کړی او تاسو نه جماد جوړ کړی لکه څنګه چه ستا په تغیر د احوالو قادر وو چه تا کښ ئے څو مره تغیر پیدا کړو نو دغه تغیر باندے هم قادر دے۔ الله تعالیٰ د بندګانو د متوجه کولو دپاره خپلے داسے کارنامے بیانوی چه داسے مے کړیدی نو داسے کولے شم۔

نُنَكِّسْهُ: راکاږه کړو اندامونه د هغه، تنکیس سرکوزی کیدو ته وئیلے شی۔

الْخَلْقِ: ددے نه مراد شکل او اندامونه او قوتونه دی۔

| وَمَا عَلَّمْنَاهُ الشِّعْرَ وَمَا یَنبَغِیْ لَهٗ اِنْ هُوَ اِلَّا |
|---|
| او نهٔ دے خودلے مونږ دهٔ ته شعر جوړول او نهٔ دے مناسب دهٔ لره، نهٔ دے دا کتاب مګر |
| ذِكْرٌ وَّقُرْاٰنٌ مُّبِیْنٌ ﴿٦٩﴾ لِّیُنْذِرَ مَنْ كَانَ حَیًّا |
| نصیحت او قرآن ښکاره دے۔ ددے دپاره چه اُویروی هغه څوک چه ژوندی دے (زړهٔ د هغه) |

| وَيَحِقَّ الْقَوْلُ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ ﴿۷۰﴾ |
| --- |
| او ثابته شي وینا (حجت) په کافرانو باندې. |

**تفسیر**: دا آیت د اول د سورت آیت (۳) ﴿تَنْزِيْلَ الْعَزِيْزِ الرَّحِيْمِ﴾ سره متعلق دے. او دا د قرآن کریم طریقه ده چه په اوله کښې کومه خبره وکړي، نو په آخره کښې ئے بیا کوي، دے دپاره چه اول او آخر یو شان شي. نو دے آیت کښې د رسول الله ﷺ او د قرآن کریم صدق ذکر دے، او د مشرکانو د دوه اعتراضونو جواب دے، مشرکانو به وئیلے چه محمد شاعر دے او قرآن دده د شاعرئ نتیجه ده. الله په دے دوو خبرو رد کوي چه نۀ محمد شاعر دے او نۀ قرآن د هغۀ د طبیعت د تیزئ نتیجه ده. الله تعالیٰ وفرمایل چه مونږ دۀ ته شاعري نۀ ده ښودلے چه دا شعرونه ووئیلے شي، او نۀ د نبوت مقام دپاره دا مناسب ده. د نبوت منصب په شاعرئ باندے نشي قیاس کولے، ځکه شاعران خو دروغ وائي او مبالغے او د واقعے خلاف خبرے بیانوي او دنیا پرست وي، او رسول الله ﷺ خو رشتیني، حق ویونکے، امانتدار او مخلص او الله والا باوقار انسان دے. نو د شاعر وقار او دده په وقار کښې ځو مره فرق دے.

وَمَا يَنْبَغِيْ لَهٗ: ۱- یعنی دۀ دپاره آسان نۀ دی ۲- یا دۀ سره مناسب نۀ دی.

ځکه چه شعر هغه کلام دے چه په تکلف سره جوړ کړے شي او دا د ﴿وَمَآ اَنَا مِنَ الْمُتَكَلِّفِيْنَ﴾ خلاف ده. دارنګه شعر خو هغه مزخرف بنانسته کړے شوے کلام وي چه په خاص وزن او قافیه باندے جوړ کړے شوے او د خیالاتو او اوهامو نه یو ځای شوے وي او د الله کلام چرته داسے کیدے شي، هغه خو ټول په حقیقت بناء دے او د قِسم قسم حکمتونو او قوي احکامو نه ډك دے چه انسان لره د دنیا او د آخرت سعادت ته رسونکي دي.

بیا رسول الله ﷺ خپله شعر نشو جوړولے مګر کله نا کله به ئے پردے شعر رانقل کولو. مګر اکثر به ئے د هغے وزن هم مات کړو. لکه یوه ورځ ئے د طرفه بن العبد شعر لوستلو

| سَتُبْدِيْ لَكَ الْاَيَّامُ مَا كُنْتَ جَاهِلًا | ۞ | وَيَاْتِيْكَ بِالْاَخْبَارِ مَنْ لَمْ تُزَوِّدِ |
| --- | --- | --- |

نو دا ئے داسے ولوستو: وَيَاْتِيْكَ مَنْ لَمْ تُزَوِّدْ بِالْاَخْبَارِ.

یوه ورځ ئے داسے ولوستل: كَفٰى بِالْاِسْلَامِ وَالشَّيْبِ لِلْمَرْءِ نَاهِيًا

نو ابوبکر صدیق ﷺ ورته وفرمایل: اے د الله رسوله! شاعر داسے وئیلی دی:
كَفَى الشَّيْبُ وَالْإِسْلَامُ لِلْمَرْءِ نَاهِيًا ـ او بیا ئے وفرمایل: زهٔ گواهی کوم چه ته د الله رسول ئے الله فرمائی: ﴿ وَمَا عَلَّمْنَاهُ الشِّعْرَ وَمَا يَنْبَغِي لَهُ ﴾ ـ (طبقات ابن سعد: ۳۸۲/۱)
امام خلیلؒ فرمائی: رسول الله ﷺ ته شعر د نورو ډیرو کلامونو نه خوښ وو لیکن خپله ئے نشو وئیلے۔
آؤ، رسول الله ﷺ ته الله تعالیٰ ډیر فصاحت او بلاغت ورکړے وو نو مقفی کلام به ئے کله نا کله لوستلو لکه د هغے مثالونه دا دی:
[اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُ بِكَ مِنَ النِّفَاقِ وَالشِّقَاقِ وَسُوْءِ الْاَخْلَاقِ] [اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُ بِكَ مِنْ جَهْدِ الْبَلَاءِ وَدَرْكِ الشَّقَاءِ وَسُوْءِ الْقَضَاءِ وَشَمَاتَةِ الْاَعْدَاءِ]
[هَلْ اَنْتِ اِلَّا اِصْبَعٌ دَمِيْتِ وَفِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ مَا لَقِيْتِ] دا هم مقفی کلام دے۔ دا بعض علماؤ شعر نهٔ دے گنړلے، او څینې وائی چه دا شعر دے، لیکن امام زجاجؒ وئیلی دی چه ددے مطلب دا دے چه رسول الله ﷺ الله تعالیٰ شاعر نهٔ وو جوړ کړے نو دا ددے سره منافی نهٔ ده چه په غیر د قصد نه غیر اختیاری د هغه په کلام کښې د شعر وزن راشی۔
او اهل علم وائی چه هر هغه څوك چه یو موزون کلام ووائی او د هغهٔ مقصد شعر وئیل نهٔ وی نو دهٔ ته شاعر نشی وئیلے، بلکه دهٔ د شعر سره موافقه وکړه نو شعر کښې قصد د شاعریت ضروری دے۔ داسے خو ډیر خلك یو کلام وکړی که یو شاعر هغے له اعتبار ورکړی نو هغه به د شعر په وزن شی لیکن بیا هم دے شخص ته ددے کلام په وجه شاعر نهٔ وئیلے کیږی۔ او داسے په قرآن کښې هم شته لکه ﴿ لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتّٰى تُنْفِقُوْا مِمَّا تُحِبُّوْنَ ﴾ او ﴿ وَجِفَانٍ كَالْجَوَابِ وَقُدُوْرٍ رّٰسِيٰتٍ ﴾ (سبا: ۱۳)
او علامه ابن عاشورؒ د شعر د تولو بحورو نه د قرآن کریم آیتونه راجمع کړیدی هغے ته رجوع وکړه۔ (التنویر والتحریر ۲۶٤/۲۲)
او الله تعالیٰ رسول الله ﷺ ته شعر نهٔ وو خودلے دے دپاره چه په عربو باندے حجت بنهٔ قائم شی ځکه که دهٔ ته شعر خودلے شوے وے نو عربو به وئیلے چه دا یو شاعر دے، که داسے لوی کلام ئے راوړو نو څه بعیده ده۔
اِنْ هُوَ اِلَّا ذِكْرٌ وَّقُرْاٰنٌ مُّبِيْنٌ: یعنی قرآن خو د یاداشت کتاب دے، او د بندګانو دپاره نصیحت دے، او دا هغه د لوستلو آسمانی کتاب دے چه په ښکاره احکامو مشتمل دے، او په محرابونو او عبادت خانو کښې لوستلے شی او پدے باندے عبادت کیدے شی او

ددے په تلاوت او عمل باندے د دنیا او د آخرت کامیابی او درجات حاصلیږی، نو ددے او د شعر ترمینځ څومره فرق دے؟!۔
په شعر کښې دومره واضح مضمون چرته وی کوم چه په قرآن کښې دے، په شعر کښې خو د وزن د برابرولو فکر وی، پوره وضاحت پکښې نهٔ کیږی، پدے وجه ئے قرآن ته (مبین) ووئیلو۔ او په قرآن لفظ کښې اشاره ده چه د قرآن کریم په لوستلو سره انسان نهٔ تنګیږی، په هر ځل لوستلو سره انسان ته جدا جدا فائده ورکوی، بار بار لوستلے کیږی، او هرچه شعر دے که دوه درے کرته دے ولوستلو زړه به درله تنګ کړی۔
لِيُنذِرَ مَنْ كَانَ: دا د قرآن کریم د راتللو مقصد دے، او اول کښې ئے هم ووئیل ﴿لِتُنذِرَ قَوْمًا﴾ نو د قرآن د راتللو مقصد انذار الغافلین دے۔
حَيًّا: د حیاة نه مراد دلته حیاتِ قلبی دے یعنی د چا زړه چه ژوندے دے هغه پرے ویروی او هغوی الله طرفته راویلی او د کفر او سرکشئ د بد انجام نه یره ورکړی۔ ژوندے زړه هغے ته وائی چه هغے کښې الله ته میلان وی، الله ته شوق او رغبت لری چه زمونږ لوی الله شته، هغه ته به ورکرځو۔ ﴿مَنِ اتَّبَعَ الذِّكْرَ وَخَشِيَ الرَّحْمٰنَ﴾ کښې ذکر شو۔ حیاتِ قلبی انابت ته هم وائی۔
وَيَحِقَّ الْقَوْلُ عَلَى الْكَافِرِينَ: یعنی دے دپاره راغلے دے چه په کافرانو باندے حجت ثابت شی چه که دوی نهٔ منی نو دوی دپاره به د آخرت عذاب وی۔

| أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّا خَلَقْنَا لَهُم مِّمَّا عَمِلَتْ |
|---|
| آیا نهٔ ګوری دوی یقیناً مونږ پیدا کړیدی دوی لره د هغے نه چه کړیدی (جوړ کړیدی) |
| أَيْدِينَا أَنْعَامًا فَهُمْ لَهَا مَالِكُونَ ﴿٧١﴾ وَذَلَّلْنَاهَا لَهُمْ |
| لاسونو زمونږ چارپیان نو دوی د هغے مالکان دی۔ او تابع کړیدی مونږ دا د دوی دپاره |
| فَمِنْهَا رَكُوبُهُمْ وَمِنْهَا يَأْكُلُونَ ﴿٧٢﴾ وَلَهُمْ فِيهَا |
| نو بعض ددے نه سورلی د دوی ده او بعض د هغے نه خوری دوی۔ او دوی لره په هغے کښې |
| مَنَافِعُ وَمَشَارِبُ أَفَلَا يَشْكُرُونَ ﴿٧٣﴾ |
| فائدے دی او د څکلو سامان دے آیا شکر نهٔ کوی دوی۔ |

**تفسیر**: د الله تعالیٰ د قِسما قِسم انعاماتو او احساناتو تقاضا دا ده چه بندگان صرف د رب العالمین عبادت وکړی، او د هغهٔ نه سویٰ د هیچا مخے ته خپل سر بنکته نهٔ کړی. او د هغهٔ په کتاب به عمل کوی.

الله فرمائی آیا دوی کفر کوی او دے نعمتونو ته نهٔ گوری چه چارپایان مونږ پیدا کړی، زمونږ نه سویٰ بل هیڅوك ددے په پیدا کولو قادر نهٔ دے، او بیا مونږ دا د بندگانو دپاره تابع کړی، څنګه ئے چه غواړی د مالك په حیثیت سره په دے کښ تصرف کوی، ځینی څناور د سورلیٔ په توگه استعمالوی، او د ځینو غوښے خوری. څرمنے، وینښتهٔ او وړیٔ نه فائده پورته کوی، او د ځینو څناورو پیٔ هم څکی. ددے تمامو نعمتونو تقاضا دا ده چه بندگان د خپل خالق او مالك شکر اداء کړی، صرف د هغهٔ عبادت وکړی، او د هغهٔ نه سویٰ نور څوك خپل حاجت روا او مشکل کشا ونهٔ گنړی.

**اَنْعَاماً**: دا مفعول دے د خَلَقْنَا دپاره او د (مِمَّا عَمِلَتْ اَيْدِيْنَا) پورے متعلق دے.

یعنی دا چاریان هغه مخلوق دے چه مونږ په لاس سره پیدا کړیدی. لاس ته نسبت کولو کښ مقصد دا دے چه دے کښ د بل چا واسطه او شرکت نشته. دا مبالغه ده په اختصاص او تفرد بالخلق کښ.

اَنْعَام جمع د نَعَم ده، پدے کښ غواگانے، گډے بزے، اُوښان داخل دی. تول څیزونه الله پیدا کړیدی خو انعام ئے پدے وجه خاص کړل چه دا د عربو زیات مال وو او دے نه فائده ډیره حاصلیږی.

ایدی دلته د محاورے د وجه نه وئیلے شویدے، د ایدی معنیٰ قدرت ده اگر که د الله حقیقی لاس شته لیکن دلته نهٔ دے مراد څکه چه الله تعالیٰ په خپل لاس باندے صرف درے څیزونه پیدا کړیدی. آدم، طوبیٰ ونه، اَلتَّوْرَاة. او په روایت د ابن عمر کښ موقوفا څلور څیزونه ذکر دی: (عرش، عدن، قلم او آدم) (اخرجه ابو الشیخ ۵/ص ۱۰۱۸ رقم: ۱۵۵۵) واسناده صحیح انظر تحقیق البدور السافرة لجلال الدین السیوطی وتحقیقه لاحمد ابراهیم احمد) که دلته لاس واخستے شی نو بیا د آدم ﷺ او د حیواناتو د پیدائش فرق نهٔ راځی. او دا تاویل د الله په صفت کښ نهٔ دے څکه چه مُؤَوِّلِین په تاویل سره د الله حقیقی صفت ختم کړی، او مونږ چه کومه خبره وکړه دا علمی خبره ده هغه دا چه د الله لاس شته لیکن د محاورے د وجه نه په یو ځای کښ د قدرت یا د نعمت معنیٰ هم کیږی.

**مَالِكُوْنَ**: یعنی دوی هغه راتینگونکی وی، او په هغے کښ تصرف کوی څنګه چه

وغواړي. كه دا الله وحشي او تريدونكي ګرځولي وے نو بيا به د خلكو نه تبتيدلے نو پدے باندے به ملكيت نشوے راتللے.

**وَذَلَّلْنَاهَا** : الله تعالىٰ داسے تابع كړيدي چه وړوكے ماشوم ئے هم ځان پسے راكاږي. او يواځے يو قصاب ئے ذبح كړي او په زمكه ئے راګوزار كړي، كه دا په غصه شي نو ډير خلك به ئے رايسار نكړے شي.

**مَنَافِعُ وَمَشَارِبُ**: ددے نه پئ، ماسته، شوملے، كُچ، ملائي، غوړي وغيره ترے اخستے كيږي، نور شربتونه ترے تياريږي.

| وَاتَّخَذُوا مِنْ دُوْنِ اللهِ آلِهَةً لَعَلَّهُمْ يُنْصَرُوْنَ ﴿٧٤﴾ |
|---|
| او نيولي دي دوي سوئ د الله تعالىٰ نور معبودان دے دپاره چه دوي سره مدد اُوكړے شي. |
| لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ نَصْرَهُمْ وَهُمْ لَهُمْ جُنْدٌ مُّحْضَرُوْنَ ﴿٧٥﴾ |
| طاقت نهٔ لري دوي د مدد د هغوي او دوي (مشركان) هغوي لره لښكر دے حاضر كړے |
| فَلَا يَحْزُنْكَ قَوْلُهُمْ إِنَّا نَعْلَمُ مَا |
| شوے. نو غمژن دے نكړي تا لره وينا د دوي يقيناً مونږ پوهيږو په هغه څه |
| يُسِرُّوْنَ وَمَا يُعْلِنُوْنَ ﴿٧٦﴾ |
| چه دوي ئے پټوي او په هغے چه دوي ئے ښكاره كوي. |

**تفسير** : ددے نعمتونو تقاضا خو دا وه چه بندګان صرف يو الله ته متوجه شوي وے ليكن د دوئ د بے عقلئ او كور مغزئ حال دا دے چه دوئ د رب العالمين نه سوئ معبودان نيسي او ګمان كوي چه د مصيبتونو په وخت به دوئ په كار راځي، حال دا چه حقيقت دادے چه دا باطل معبودان د ذرے هومره هم د دوئ د مدد قدرت نهٔ لري.

**لَعَلَّهُمْ يُنْصَرُوْنَ** : اَيْ رَجَاءَ اَنْ يُّنْصَرُوْا مِنْ جِهَتِهِمْ. يعني دا اُميد لري چه دوي سره به ددے معبودانو د طرفنه مدد وكړے شي.

**لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ نَصْرَهُمْ** : دا رد دے د دوي د ګمان چه هيڅ مدد ورسره نشي كولے، مدد لا څه چه هغوي خپله دوي ته محتاج دي.

**﴿وَهُمْ لَهُمْ جُنْدٌ مُّحْضَرُوْنَ﴾** ١- هُمْ ضمير معبودانو ته راجع دے او لَهُمْ ضمير

مشرکانو ته. مُحۡضَرُوۡنَ نه مراد په آخرت کښې حاضریدل دي. یعنې دا معبودان به مشرکانو دپاره لښکر جوړ شي، او په مقابله کښې به ئې حاضر شي او دوی ته به غصه شي چه تاسو ته چا وئیلي دي چه زمونږ عبادت وکړئ لکه څنګه چه فوج چا ته په غصه شي، نو د هغوی مخې ته ودریږي.

۲- هُمۡ ضمیر مشرکانو ته راجع دے او لَهُمۡ ضمیر معبودانو ته، او دے کښې ډیره مبالغه ده، یعنې معبودان خو د مدد طاقت نۀ لري بلکه اُلټه دا مشرکان د خپلو معبودانو سره مدد کوي، یعنې دا مشرکان د معبودانو دپاره لښکر دے حاضر کړے شوی په مقابله د مؤمن کښې. که یو مؤمن پرے رد کوي یا د هغې عجز بیانوي، یا د هغې قبر برابروي، یا بت ماتوي نو دوی پرے غصه کیږي، او د موحد بې عزتي کوي او کله عالمي برادرئ ته خبره وړاندے کیږي چه دوی ولے بتان ماتوي، د ابراهیم علیه السلام په زمانه کښې مشرکانو وئیلي وو ﴿وَانۡصُرُوۡا اٰلِهَتَكُمۡ﴾ د خپلو معبودانو مدد وکړئ. دوی د قبرونو نه څوکیداري کوي او د هغې ساتنه او سنبالښت کوي. نو دا څنګه معبود دے چه ستا مدد ته محتاج دے، آیا دا کمزورے مخلوق د عبادت لائق شو؟!.

**فَلَا یَحۡزُنۡكَ قَوۡلُهُمۡ:** نبی کریم ﷺ ته د تسلئ دپاره وئیلے کیږي چه د مکے مشرکان په تا باندے مختلف نومونه ږدي، کله درته شاعر وائي، نو کله جادوګر، او کله درته کاهن وائي او کله وائي چه اے محمده! ته د الله رسول نۀ ئې، او پدے سره ئې مقصد خلکو ته ستا نه نفرت ورکول دي، نو تا لره دے د دوی دا توقے غمژن نکړي یعنې پدے مۀ خفه کیږه، او دوی چه د خپلو باطلو معبودانو دپاره د اُلوهیت دعوه کوي پدے خبره مۀ متأثره کیږه چه کار ورته پریدے بلکه د دوئ د تولو پټو او ښکاره کارونو نه خبر یو، دوئ به مونږ نه نشي بچ کیدے، مونږ به د دوئ د کفر او شرك او د کبر او عناد بدله ورکوو.

| أَوَلَمۡ یَرَ الۡإِنۡسَانُ أَنَّا خَلَقۡنَاهُ مِنۡ نُّطۡفَةٍ فَإِذَا هُوَ خَصِیۡمٌ |
| --- |
| آیا نۀ ګوري انسان چه یقیناً مونږ پیدا کړیدے دا د نطفے نه نو دغه وخت دے جګړه مار دے |
| مُّبِیۡنٌ ﴿۷۷﴾ وَضَرَبَ لَنَا مَثَلًا وَّنَسِیَ خَلۡقَهٗ قَالَ مَنۡ |
| ښکاره. او بیانوي مونږ لره مثال او هیر کړے ئې دے پیدائش خپل، وائي څوك به |

يُحۡيِ الۡعِظَامَ وَهِيَ رَمِيۡمٌ ﴿٧٨﴾ قُلۡ يُحۡيِيۡهَا

راژوندی کړی هډوکی پداسې حال کښې چه هغه ذره ذره وی. اُووایه راژوندی به کړی دا

الَّذِيۡۤ اَنۡشَاَهَاۤ اَوَّلَ مَرَّةٍ وَهُوَ بِكُلِّ خَلۡقٍ عَلِيۡمُۨ ﴿٧٩﴾

هغه ذات چه پیدا کړې دی دا اول ځل او هغه په هر پیدائش باندې پو هه دې.

**تفسیر** : پدې آیتونو کښې زجر دې په انکار د بعث باندې، او د بعث بعد الموت د اثبات دپاره پنځه دلیلونه ذکر کیږی.

**اَلۡاِنۡسَانُ**: ددې نه عام منکر انسان مراد دې، او پدې زورنه کښې په درې طریقو سختی ده یوه دا چه خپل خالق سره جګړې کوی. دویم دا چه د ډیر سپک شی نه پیدا دې او د لوی اعلیٰ ذات مخالفت کوی، او دریمه دا چه د لوی نعمت ناشکری کوی.

یعنی انسان خپل اصل حقیقت ته نهٔ ګوری چه دې څومره د سپکو او معمولی اُوبو نه پیدا دې، (لکه یو پلار چه بچی ته ووائی چه تهٔ خو زما نه پیدا ئې او تهٔ راځې اُوس ما سره بحثونه کوې). لیکن کله چه دې ځوان سړې جوړ شی نو بیا د خپل کبر او غرور په نشه کښې خپل حقیقت هیر کړی، الله تعالیٰ سره بل څوك شریك جوړوی، او وائی چه دا څنګه کیدې شی چه د مړ کیدو نه پس به خلق د قیامت په ورځ دوباره ژوندی کړې شی. حالانکه دهٔ له سوچ کول پکار دی چه ګوم قادرِ مطلق ذات دا اول ځل د سپکې نطفې نه پیدا کړې هغه یقیناً په دې قادر دې چه دا دوباره پیدا کړی.

نو دوه ردونه شو، یو دا چه د سپکو اُوبو نه پیدا دې، او د لوی ذات سره جګړې کوی، دویم دا چه هغه ذات چه د نطفې نه په پیدا کولو قادر دې، نو هغه د خاورو نه هم په پیدا کولو قادر دې. نو جګړې کول بې وقوفتیا ده.

**وَضَرَبَ لَنَا مَثَلاً**: ١- د الله مثال د مخلوق سره ورکوی وائی چه مونږ داسې ذرات نشو راجمع کولې نو الله هم داسې ذرات نشی راجمع کولې، (والعیاذ بالله) همیشه انسان په الله باندې د خپل ځان او د بل مخلوق په شان ګمان کوی. او د تشبیه بیان ئې دا دې:

**مَنۡ يُّحۡيِ الۡعِظَامَ وَهِيَ رَمِيۡمٌ** : یعنی دا به څوك راژوندی کړی یعنی هیڅ انسان ئې نشی راژوندی کولې نو دغه شان الله به ئې هم نشی راجمع کولې (العیاذ بالله) نو تشبیه ئې د مخلوق سره ورکړه.

٢- يا د مثل نه مراد عجيبه خبره ذكر كول دي ځكه چه دا د الله د قدرت او د هغهٔ د علم نه انكار كول دي او دا عجيبه خبره ده.

حاصل معنىٰ ئے دا ده : يَعْرِضُ لَنَا الدَّلِيْلَ. زما په مقابله كښې دليلونه پيش كوي.

وَنَسِيَ خَلْقَهٗ: ١- يعني خپل اصل ماده ئے هيره كړے ده چه دے څومره ذليله دے او د لوى ذات د خبرے نه ځان لوى ګڼړى. ٢- يا مطلب دا چه دهٔ خپل ابتدائي پيدائش هير كړے چه الله تعالىٰ د مور د رَحِم نه راويستلو نو دغه شان به وے د قبر نه هم راوباسي.

د نسيان نه مراد دلته قصداً هيرول دي يعني غفلت كول.

مفسر طيبيؒ ليكلي دي چه ددے آيت عطف په (٧١) آيت ﴿ أَوَلَمْ يَرَوْا ﴾ باندے دے، او د دواړو مفهوم دادے چه الله تعالىٰ رنګا رنګ نعمتونه پيدا كړي دے دپاره چه انسان د خپل رب شكر اداه كړي، ليكن هغهٔ ددے ناشكري اُوكړه. او هغهٔ انسان لره د سپكو اُوبو د يو څاڅكي نه پيدا كړو دے دپاره چه هغه خپل رب ته عاجزي او انكساري اختيار كړي، ليكن هغهٔ د كبر او عناد نه كار واخستهٔ او د هغهٔ په قادرِ مطلق كيدو كښې ئے شبهات شروع كړل. (القاسمیؒ)

## شان نزول

ابن جريرؒ، ابن المنذرؒ، ابن ابى حاتمؒ او حاكمؒ د ابن عباس ﷺ نه روايت كړے (او حاكمؒ ورته صحيح وئيلي) چه عاص بن وائل سهمي يو زوړ او وروست هډوكے را واخستهٔ او هغه ئے په خپل ورغوى كښې ومړلو او وے غورزولو، او وے وئيل : اے محمده ! آيا اُوس به دا الله دوباره ژوندے كوي؟ نو نبي ﷺ وفرمايل :

[نَعَمْ، يَبْعَثُ اللّٰهُ هٰذَا وَيُمِيْتُكَ ثُمَّ يُحْيِيْكَ ثُمَّ يُدْخِلُكَ نَارَ جَهَنَّمَ] هاؤ ! دا به دوباره پورته كوي او تا له به هم وژني، بيا به دے ژوندے كوي، بيابه دے جهنم ته ننباسي. دے واقعے نه پس د سورت يسؔ دا آخري آيتونه نازل شو.

بيا د الفاظو عموم لره اعتبار دے، نهٔ خاص واقعے لره.

قُلْ يُحْيِيْهَا: دا قياس الاعاده على الابتداء دے. يعني كوم ذات چه ددے څيزونو په اول كرت پيدا كولو قادر وو نو هغه په دوباره پيدا كولو باندے خامخا قادر دے.

وَهُوَ بِكُلِّ خَلْقٍ عَلِيْمٌ: يعني الله تعالىٰ د خپل مخلوق په تفصيلاتو پوهه دے، د هرے ذرے نه خبر دے، د هغے ځايونه پيژني او د هغے د جدائي د طريقے نه خبر دے.

الَّذِیْ جَعَلَ لَکُمْ مِّنَ الشَّجَرِ الْاَخْضَرِ نَارًا فَاِذَآ اَنْتُمْ مِّنْهُ

هغه ذات دے چه پیدا کړے ئے دے تاسو لره د ونے شنے نه اُور نو دغه وخت تاسو د هغے نه

تُوْقِدُوْنَ ﴿۸۰﴾ اَوَلَیْسَ الَّذِیْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِقٰدِرٍ عَلٰٓی اَنْ

اُور بلوئ۔ آیا نهٔ دے هغه ذات چه پیدا کړے ئے دی آسمانونه او زمکه قادر پدے خبره

یَّخْلُقَ مِثْلَهُمْ بَلٰی وَهُوَ الْخَلّٰقُ الْعَلِیْمُ ﴿۸۱﴾ اِنَّمَآ اَمْرُهٗٓ

چه پیدا کړی پشان د دوی او هغه ډیر پیداکونکے دے ،ښه پوهه دے۔ یقیناً حکم د هغه

اِذَآ اَرَادَ شَیْئًا اَنْ یَّقُوْلَ لَهٗ کُنْ فَیَکُوْنُ ﴿۸۲﴾ فَسُبْحٰنَ

کله چه اراده اُوکړی د یو شی (د پیدا کولو) چه وائی هغه ته شه نو هغه شی۔ پس پاکی

الَّذِیْ بِیَدِهٖ مَلَکُوْتُ کُلِّ شَیْءٍ وَّاِلَیْهِ تُرْجَعُوْنَ ﴿۸۳﴾

ده هغه ذات لره چه په لاس د هغه کښې بادشاهی د هر شی ده او هغه ته به تاسو ورګرځولے شئ۔

**تفسیر** : دا د الله تعالیٰ د قدرت او د بعث بعد الموت دپاره بل دلیل دے چه الله تعالیٰ د شنے ونے نه اُور پیدا کوی۔ نو د کائناتو کوم خالق چه د شنے ونے نه د اُور په را اُوخکلو قادر دے هغه یقیناً د انسان په دوباره پیدا کولو قادر دے۔

عربو به اُور په دوه طریقو سره لګولو، یو دا چه دوه سپین کاڼړی (بکرے) به ئے راواخستے او یو بل سره به ئے ووهلے نو اُور به ترے راوچت شو۔

دویمه طریقه دا وه چه په عربو کښې دوه ونے وے مَرْخ (چه نر دے) او عِفَار (چه ما ده ده) چه ددے نه به ئے د مسواك په اندازه دوه تازه لرګی راپریکړل او خپل مینځ کښې به ئے ووهل نو ددے نه به اُور راووتو۔

دویم دا چه په هره ونه کښې اُور شته (سوئ د عناب (مرخنړئ) نه) الله تعالیٰ وُنه د اُوبو نه پیدا کوی چه لوبه شی او شنه شی، بیا د زمانے په تیریدو سره غرند لرګے جوړ شی او د خشاکو کار کوی۔ کاڼړے او لوټه اُور نهٔ کوی او ونه اګرکه شنه وی هم اُور اخلی او سوزی۔ او دا وجه ده چه د بجلئ تار په شنه ونه کښې شاټ (کرنټ) پیدا کوی ځکه چه دوه اُورونه یو ځای شول۔نو لکه ځنګه چه د شنے ونے نه د اُور راوخکلو نه مانع نشته نو

دغه شان الله تعالیٰ څوك د خپل فعل او عمل نه نشی بندولے. هغه به ضرور مړی راژوندی کوی.

عرب وائی : فِیۡ کُلِّ شَجَرٍ نَار وَاسۡتَمۡجَدَ الۡمَرۡخُ وَالۡعِفَار . په هره ونه کښ اُور شته خو مرخ او عفار کښ زیات دے.

نو د الله د ناشنا قدرت نه د شنے وُنے نه اُور راوبستل دی، سره ددے نه چه د اُور او د اُوبو خپل مینځ کښ ضد دے، اُور په اُوبو سره مړ کیږی، نو کوم ذات چه په ونه کښ د اُوبو او د اُور په جمع کولو قادر دے، نو دغه ذات په انسان کښ د یو بل نه پس مرګ او ژوند راوستلو باندے هم قادر دے او یو ضد روستو د بل ضد نه راوستل په عقل کښ آسان دی د راجمع کولو د دواړو نه په یو ځای بغیر د ترتیب نه. (فتح البیان)

أَوَلَیۡسَ الَّذِیۡ: د دوباره ژوند دپاره څلورم دلیل د آسمانونو او زمکے پیدائش دے، یعنی کوم تنها ذات چه د عظیم آسمانونو او زمکے په پیدا کولو قادر دے، هغه یقیناً د وړوکی حجم والا انسان په دوباره پیدا کولو قادر دے.

مِثۡلَهُمۡ: بعض خلکو ته دا اشکال راپیښ شوے چه دلته ئے مثل ووئیل یعنی د دوی په شان خلك پیدا کولے شی، نو آیا بعینه د انسانانو په پیدائش قادر نهٔ دے؟ نو بیا ئے دا جواب کړے چه مثل په معنیٰ د (عَیۡنَهُمۡ) سره دے. یعنی بعینه همدوی. یا دا جواب کوی چه څوك په مثل باندے قادر وی نو هغه په عین همغه شی هم قادر وی. ظاهره دا ده چه دا په هره محاوره کښ وئیلے کیږی چه ((آیا زهٔ ستا په شان سړے نشم برابرولے)) یعنی تا نشم برابرولے. نو دا هم داسے محاوره ده، یعنی چه آسمانونه او زمکه ئے پیدا کړی نو ستاسو په شان کمزوری انسانان (یعنی تاسو) نشی پیدا کولے؟.

إِنَّمَا أَمۡرُهُ: دا پنځم دلیل د بعث بعد الموت او د الله تعالیٰ د قدرت دے. آخرت به څکه راځی چه پدے باندے د الله تعالیٰ څه قوت او قدرت نهٔ صرف کیږی او نهٔ ورته پدے کښ څه مشکلات شته بلکه هغه ذات چه د یو شی اراده وکړه نو هغه په امر سره موجودیږی، یو شی ته ووائی چه (کُنۡ) یعنی موجود شه نو بس هغه موجود شی. چه د یو ذات په حکم سره هر شے موجودیږی، نو بیا هغهٔ ته د کمزوری انسان دوباره ژوندی کول څه مشکل دی؟. هغه یواځے ذات چه د هر شی مالك دے او په کوم ځیز کښ چه غواړی د خپلے مرضیٔ او ارادے مطابق تصرف کوی، هغه د هر عیب او نقصان او عجز نه پاك دے، او په هرے خوبیٔ او ښهٔ صفت سره متصف دے. او قیامت به راځی، او تول

به دوباره ژوندي شي، او هم هغهٔ طرفته به ورواپس کړے شي، دے دپاره چه دغه د کائناتو خالق هر يو له د هغهٔ د عملونو بدله ورکړي. نو بس دغه ورځے له تيارے پکار دے نۀ د هغے نه انکار. وبالله التوفيق.

## امتيازات د سورة يس

١- دے سورت کښ ئے د غافلانو د غفلت رد وکړو او هغوی ئے رابيدار کړل.

٢- د مهر وهلو دپاره الله تعالیٰ د أغلال او سَدًا مِنْ خَلْفِهِمْ الفاظ استعمال کړل.

٣- واقعه د اصحاب القريه او د صاحب يس.

٤- د حشر په اثبات باندے ډير دليلونه وو.

٥- په قيامت کښ د لاسونو خبرے پدے سورت کښ ذکر دی.

ختم شو تفسير د سورة يس په رحم د رحمن او رحيم سره په رمضان 21 سنه 1436 هـ موافق : 2015 -7 (جولائی). اسريت کالام سوات. بجه : 5:30 صباح يوم الاربعاء. او پدے سره ختم شو نهم جلد د تفسير حكمة القرآن ولله الحمد رب العالمين.

# فهرست تفسیر حکمة القرآن جلد (۹)


| | |
|---|---|
| **سورة النمل** مناسبتونه ........................................ | ۳ |
| د سلیمان علیه السلام په واقعه کښې فوائد او حکمتونه .......................... | ۱۹ |
| د میږئ په واقعه کښې حکمتونه ........................................ | ۲۰ |
| د هدهد او بلقیس په واقعه کښې حکمتونه ........................................ | ۳۱ |
| فائده: د کافرانو د هدیه قبلول جائز دي؟ ........................................ | ۳۵ |
| الذي عنده علم من الکتاب څوك وو؟ ........................................ | ۳۸ |
| بلقیس ولې هدایت نهٔ وو قبول کړے؟ دوه سببونه ........................................ | ٤۳ |
| د لوط علیه السلام د واقعې حکمتونه ........................................ | ٥۲ |
| د اله څه معنیٰ ده؟ ........................................ | ٦۰ |
| آیا زمکه حرکت کوی؟ ........................................ | ٦۱ |
| د مضطر دعاء ولې قبلیږی؟ ........................................ | ٦۲ |
| مسئله د سماع موتی (آیا مړی آوری او که نهٔ؟) ........................................ | ۷٦ |
| دابة الارض څه شے دے؟ ........................................ | ۷۸ |
| **سورة القصص** مناسبتونه ........................................ | ۹۱ |
| د موسیٰ علیه السلام او د شعیب علیه السلام په واقعه کښې علوم او معارف ........................................ | ۱۱۷ |
| د قارون تعارف ........................................ | ۱٦۰ |
| ویکأن څه معنیٰ؟ ........................................ | ۱۷۰ |
| د علو (لوئی کولو) صورتونه ........................................ | ۱۷۱ |
| **سورة العنکبوت** مناسبت ........................................ | ۱۷۹ |
| د سعد بن ابی وقاص ﷜ واقعه د خپلې مور سره ........................................ | ۱۸٦ |
| دنیا د لهو او لعب سره ولې مشابه ده ........................................ | ۲۳٥ |

| | |
|---|---|
| د مجاهدے صورتونه ........................ | ۲۳۹ |
| سورة الروم :مناسبت او مقصد د سورت ........................ | ۲٤۱ |
| د رومیانو د مغلوبیت او د بیرته غالبیت قصه ........................ | ۲٤۳ |
| د رومیانو د واقعے فوائد او حکمتونه ........................ | ۲٤٥ |
| د فطرت معانی ........................ | ۲٦۸ |
| په زمکه کښې د فساد مصداقات او صورتونه ........................ | ۲۸۱ |
| **سورة لقمان** ........................ | ۲۹۷ |
| آیا لقمان نبی وو؟ ........................ | ۳۰۷ |
| واتبع سبیل من اناب الی کښې د تقلید رد ........................ | ۳۱۳ |
| ختار او کفور څوك دی ؟ ........................ | ۳۳۱ |
| پنځه علمونه الله پورے خاص دی ........................ | ۳۳٤ |
| د ویعلم ما فی الارحام صحیح معنیٰ او مطلب ........................ | ۳۳٦ |
| **سورة السجدة** فضیلت او مناسبت ........................ | ۳۳۸ |
| د مقداره الف سنة او خمسین الف سنة تعارض جوابونه ........................ | ۳٤٤ |
| **سورة الاحزاب** ........................ | ۳٦۲ |
| شان نزول د سورت ........................ | ۳٦۳ |
| د زید بن حارثه رضی الله عنه د غلامئ او متبنیٰ کیدو واقعه ........................ | ۳٦٦ |
| ما جعل الله لرجل من قلبین مثال دے د ډیرو څیزونو ........................ | ۳٦۹ |
| د غزوة خندق یا احزاب واقعه ........................ | ۳۷٥ |
| رسول الله ﷺ څنګه اسوه حسنه ده ؟ ........................ | ۳۸۷ |
| غزا د بنو قریظه ........................ | ۳۹٥ |
| بی بیانو ته د طلاقو اختیار ورکول – او پدے سره طلاق واقع نشو ........................ | ٤۰۰ |
| رسول الله ﷺ په زړه کښې کومه خبره پټه ساتله ........................ | ٤۱۷ |
| رسول الله ﷺ خاتم النبیین دے ........................ | ٤۲۳ |

| | |
|---|---|
| د الله تعالیٰ د ډیر یادولو شرطونه ........................ | ٤٢٤ |
| د ذکر کثیر طریقه ........................ | ٤٢٤ |
| د دخول نه مخکښې د طلاقې شې ښځې حکم ........................ | ٤٣٠ |
| د دخول نه مخکښې ښځې ته د طلاقو ورکولو طریقه ........................ | ٤٣٢ |
| آیا په رسول الله ﷺ باندې قسم (نمبر تقسیمول) واجب وو؟ ........................ | ٤٣٧ |
| د زینب رضی الله عنها او د زید رضی الله عنه د واده قصه ........................ | ٤٤٢ |
| فائده: آیا د تره او ماما نه ستر شته؟ ........................ | ٤٤٧ |
| الله او رسول ته د ضرر ورکولو صورتونه او طریقې ........................ | ٤٥١ |
| په تقلید باندې رد ........................ | ٤٦٠ |
| موسیٰ علیه السلام ته د ضرر ورکولو مثالونه ........................ | ٤٦٢ |
| د قول سدید مصداقات ........................ | ٤٦٤ |
| د عرض الامانة څه مطلب دې؟ ........................ | ٤٦٦ |
| **سورت سباء** مناسبت او موضوع د سورت ........................ | ٤٧٠ |
| کافر همیشه په عذاب کښې مبتلا دې په دنیا او په آخرت کښې ........................ | ٤٧٩ |
| د داود علیه السلام مزیدار کسب زغرې جوړولو طریقه ........................ | ٤٨٣ |
| د داود او سلیمان علیهما السلام د واقعې فوائد او علوم ........................ | ٤٩٠ |
| سبا والا څوك دی؟........................ | ٤٩٢ |
| د الله دپاره پورا څې او دوه دوه ودریدو څه مطلب؟ ........................ | ٥٢٥ |
| **سورة فاطر** (٣٥) ........................ | ٥٣٣ |
| مناسبت او موضوع د سورت ........................ | ٥٣٣ |
| نیك عمل په ذکر اذکار سره د قبولیت مقام ته پورته کیږي ........................ | ٥٤٣ |
| بتان او مړي آوریدل نشي کولې ........................ | ٥٥٠ |
| د قیامت په ورځ درې اهمې خبرې ........................ | ٥٥٥ |
| د الله تعالیٰ د نه ډیرې صورتونه او کیفیتونه ........................ | ٥٦١ |

| | |
|---|---|
| د ظالم او مقتصد او سابق بالخیرات ښکلے تفسیرونه او فرقونه .... | ٥٦٧ |
| د نصب او لغوب فرقونه ......... | ٥٦٩ |
| د تبدیل او تحویل فرق ......... | ٥٧٧ |
| سوال : د انسانانو د گناهونو اثر په ژنده سرو باندے ولے راځي؟ ... | ٥٧٩ |
| امتیازات د سورت فاطر ... | ٥٢٠ |
| **سورة یس** فضیلت..... | ٥٨١ |
| د اصحاب القرية په باره کښې وضاحت | ٥٨٨ |
| قدموا وآثارهم فرقونه ......... | ٥٩٦ |
| دا رسولان څوك وو؟ | ٥٩٨ |
| د رجل مؤمن واقعه ......... | ٦٠٣ |
| د نمر دپاره مستقر څه شے دے؟ ... | ٦٣١ |
| د ما ایدیکم وما خلفکم مطلبونه .. | ٦١٧ |
| جنتیان به په څه کښې مشغوله وي؟ . | ٦٢٥ |
| فائده : په خولو باندے ورله ولے مهر وهي؟ . | ٦٢٧ |
| رسول الله ﷺ په شعر جوړولو نه پوهیدو او ددے مثالونه......... | ٦٣٣ |
| اختتام کتاب......... | ٦٤٧ |


دفتر تمام گشت وبپایان رسید عمر ما همچنان در اول وصف تو مانده ایم

اخراج الکتاب من الکمبیوتر یوم الخمیس ۱٤۳۷/ هـ رجب ۲۲
الموافق : ۲۸/٤/۲۰۱٦

السلام علیکم

دا تفسیر چې چا ته
ورسی نو په خپل
د واټساپ پیج
او د فیس بک د
پیج نه دی نشر
کښې. چه فائده ئې
عامه شی جزاک الله